لَمْ يَبْقَ مِنَ النُّبُوَّةِ إِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ قَالُوا وَمَا الْمُبَشِّرَاتُ قَالَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ (رواه البخاري)

# تعبير الرؤيا

د خوب د تعبير په اړند بشپړ او جامع کتاب


**مصنف:**

**امام محمد ابن سيرين رحمة الله عليه**

**ژباړه:**

**محمد أحمد الحقاني الأفغاني**



**ناشر:**

**راشد کتابخانه، چمن**

موبايل: 03003896353

# د کتاب پېژندنه


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | :: | تعبير الرؤيا (پښتو) |
| مصنف | :: | امام محمد ابن سيرين رحمة الله عليه |
| ژباړن | :: | محمد أحمد الحقاني الأفغاني |
| کمپوزر | :: | سراج الدين (افغان) |
| | | روښان سينټر، الامان پلازه، کاسي روډ، کوټه |
| | | د اړيکي شمېره: 3218016371 (0092) |
| سمون | :: | محمد أحمد الحقّاني الأفغاني |
| ناشر | :: | راشد کتابخانه، چمن |
| | | د اړيکي شمېره: 03003896353 |
| چاپ کال | :: | ۱۳۸۹ ل = ۲۰۱۱ ز |
| چاپ وار | :: | لومړی |
| چاپ ځای | :: | لاهور، پاکستان |
| چاپ شمېر | :: | (۱۰۰۰) ټوکه |

# د تعبیر الرؤیا د مضامینو فهرست

**د مضامینو فهرست پای ته ورسېدی**



# یادونه

**له الف څخه تر یا پوري د ټولو تورو فهرست یعني اشاریه یا انډیکس په پای کي وګورئ.**

# سریزه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وپوهیږه چي د خوب تعبیر ډیر لوی اهم علم دی چي په دې سره راتلونکي حالات معلومیدلای سي ځکه نبي ﷺ ویلي دي: لـم يبق من النبوة الا المبشرات قالوا وما المبشرات قال الرؤيا الصالحة، رواه البخاري عن ابي هريرة) ژباړه: د خوشخبریو ماسوا دنبوت څخه بل هیڅ شی نه دی پاته، اصحابو ﷺ پوښتنه و کړه چي د خوشخبری څه مطلب دی؟ ده ﷺ وویل: چي رښتینی خوب، د دې حدیث څخه ثابته سوه چي اوس د خوب څخه علاوه دمومنانو سره بل شی نه دی پاته چي په هغه سره راتلونکي حالات ښکاره سي، مقصد دا چي لکه څنګه چي وریځ پر وجود د باران دلالت کوي دغه ډول رښتینی خوب د راتلونکي حالت طرفته ته اشاره کوي.

## دنیک خوب اهمیت

د رښتینی خوب اهمیت د دې حقیقت څخه هم معلوم دی چي په وحي الهي کي د ټولو څخه اولنی شی په کوم سره چي نبي کریم ﷺ ته پیژندګلوي وسوه هغه رښتینی خوب وو، په دې ورځو کي چي به نبي کریم ﷺ هرڅه په خوب کي لیدل دهغه تعبیر به دسهار د سپېدو په څېر بالکل ښکاره کیدی د دې حالت څخه وروسته د ده طبعي رغبت د خلکو څخه دشکیدو او جلا کیدو وخواته سو او دی ﷺ په غارِ حراء کي خلوت کوونکی سو. (بخاري، مسلم).

د رښتینې خوب فضیلت د دې څخه هم ښکاره دی چي دې ته دنبوت جزء ویل سوی دی څرنګه چي روایت دی: (قال رسول الله ﷺ الرؤيا الصالحة جزء من ستة واربعين جزء من النبوة، بخاري ومسلم).

ژباړه: نبي کریم ﷺ فرمایلي دی چي رښتینی خوب دنبوت په شپږ څلویښت حصو کي یوه حصه ده. د دې حدیث څخه معلومه سوه چي رښتینی خوب دنبوت یو جزء دی او علم دنبوت باقي دی مګر نبوت جاري نه دی پاته، په نورو ټکو کي رښتینی خوب دنبوت عکس دی که څه هم خوب لیدونکی نبی نه وي لکه چي په بعضو نورو روایتونو کي راغلي دي چي نیك خوی، زغم کول او میانه روي دنبوت څخه دی.

## د نبوت د جزء کېدو صحیح مفهوم

لیکن دبعضو عالمانو په نزد د نبوت دجزء کیدو څخه هغه نسبت مراد دی کوم چی دعامو مومنانو د ابتدائي استعداد دانبیاء علیهم السلام دانتهائي استعداد سره دی، څرنګه چي په نوع دبشر کي دا ابتدائي استعداد ډیر ضعیف ایښودل سوی دی او د دې ضعف څخه علاوه ظاهري حواسو ته لوی لوی بندیزونه په وړاندي پراته دي په دې وجه دالله تعالی رحمت نوازي په انسان کي دننه داسي فطرت کښیښودی چي دخوب په حالت کي دطاقت مناسب حجاب یعني پرده لیري سي په داسي حالت کي چي دده نفس دکوم شي خوا ته هم متوجه وي د هغه علم حاصلوي، په همدې مناسبت سره نبي کریم ﷺ خوب په خوشخبری سره تعبیر کړ.

## پر ده څنګه پوره ته سي؟

بعضي عالمان فرمايي چي د نفس ناطقه ادارك او دهغه كار دروح حيواني په وسيله سره كوم چي يو لطيف قسم بخار دی سر ته رسيږي، او د دې بخار ځاي او مستقر دجالينوس او نورو د وضاحت موافق دزړه لاندنۍ حصه ده دا روح حيواني د ويني سره په ټولو رګونو او شريانونو كي خپريږي او په بدن كي حس او حركت او نورو كارونو ته قوت وركوي، د دې لطيف بخار څخه يو څه حصه د دماغو خواته خيژي په دماغي يخوالي سره اعتدال مومي، د دې په كومك سره دماغي قوت په خپل كار كي اخته وي. ګويا نفس ناطقه هم د دې حيواني روح په كومك سره ادراك اوتعقل كوی او د دې سره متعلق دی ځكه چي د باريك شی تعلق د باريك شي سره كيدلاي سي. كله چي حواس خمسه پرلپسې په كار كولو ستړي سي نو روح حيواني دخپل فطرت موافق په خپل كامل هيئت سره بغير دبل شي دكومك څخه دپوهي حاصلولو لپاره تيار سي دا كيفيت عموما هغه وخت پيدا كيږي كله چي روح حيواني ظاهري حواس پاته كړي دباقي حواسو طرفته راګرځي، د ظاهري حواسو څخه د روح په جلا كولو كي د شپي يخوالی كم چي پر جسم غالب كيږي كومك كوونكي جوړيږي، په دې وجه طبعي حرارت هم د جسم د دننه حصو وخوا ته مخ كوي د لوړ څخه د ننه ځي، مقصد دا چي كله روح حيواني ظاهري حواس پريږدي باطني حواسو ته ورسي او نفس د حسي مشاغلو څخه ازاد سي، د هغو صورتونو طرفته متوجه سي كم چي په حافظه كي پټ دي نو په عام طور سره د دې څخه خيالي صورتونه جوړ سي، د دې څخه وروسته دغه صورتونه حس مشترك ته كم چي جامع د حواسو ظاهريه وو دی ورسي، حس مشترك دظاهري حواسو په طريقه د دغو ادراك كوي او بعض وخت عكس دقواىِ باطنيه سره د ټكر خوړلو څخه وروسته يو دم د خپل روحانيت طرفته متوجه سي، او دروحانيت دفطري طاقت په كومك سره ادراك معلوموي، او دهغو شيانو او حقيقتونو ادراك كوي كوم چي په حالت موجوده كي دده د ذات او حقيقت سره متعلق وي، د دې څخه وروسته د دوي پر صورتونو حاوي كيږي، او كه نفس په موجوده صورتونو كي مخكي د دې څخه چي نفس د حواسو څخه په پوره ډول خلاصون پيدا كړي علم او اقتباس حاصل كړي تحليل او تركيب شروع كړي، نو دي ته اضغاث احلام يا بد خابي وايي.

## ښه او بد خوب

كه څه هم دخوب پيدايش او ليدل دواړه كارونه د الله تعالی د طرف څخه وي، بيا هم علماوو ليكلي دي چي ښه دالله د طرف څخه خوشخبری وي، چي بنده د خپل مولیﷻ سره په نيك ګمان كي پخي عقيدي والا سي، او دا خوشخبري دزيات شكر كولو او احسان منلو باعث سي، درواغ او خراب خوب دشيطان دطرف څخه القاء وي په دي القاء سره د شيطان مقصد مومن تنګول او غمجن كول دي ځكه چي ارشاد نبوي ﷺ دی، (الرويا الصالحة من الله و الحلم من الشيطٰن فاذا راي احدكم ما يحب فلا يحدث به الا من يحب واذا راي مايكره فليتعوذ بالله من شرها ومن شر الشيطان فليتفل ثلاثا عن

يساره ولايحدث بها احدا فانها لن تضره، بخاري ومسلم) ژباړه: ښه خوب د الله تعالی دطرف څخه وي او خراب خوب د شيطان دطرف څخه وي هر کله چي څوك ښه خوب ويني نو دی دي هغه سړي ته بيانوي چي پر ده ګران وي، اوکله چي خراب خوب ويني نو د الله پاك څخه دي د دې خوب د شر څخه او د شيطان دفتني څخه پناه و غواړي، او دا هم مناسب ده چي چپه طرف ته دي دري واره ناړي توکي او دا خوب دي چاته نه وايي، نو دا خوب به بيا هيڅ کله ونه ويني. د تاوان نه رسولو مطلب دادی چي الله تعالی مذکوره کار درنځ او غم څخه د ساتلو ذريعه ګرځولي ده، لکه صدقه چي يي دمال دساتلو او بلاګانو دليري کيدو ذريعه جوړه کړي ده، د ناکاره خوب د ليدو څخه وروسته داړخ بدلولو حکم هم دی ځکه چي دي ته په تغير د حال کي ډير لوي اثر او دخل دی: (عن جابر انه قال قال رسول الله ﷺ اذا رای احدکم الرؤيا يکرهها فليبصق عن يساره ثلاثا و يستعذ بالله من الشيطان الرجيم ثلاثا وليتحول عن جنبه الذي کان عليه، رواه مسلم)، ژباړه د جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبی ﷺ فرمايلی دی څوك چي خراب خوب ويني نو دري واري دي چپه خواته ناړي توکي دشيطان څخه دی د الله پناه وغواړي او هغه اړخ دي بدل کړي کوم چي ددې خوب دليدو په وخت کي ورباندي وو.

## د شيطان تصرف

د پورتني حديث څخه معلومه سوه چي ډير خوبونه د شيطان القاء وی ځکه چي د بيري او د خوف ټول خوبونه مثلاً دا ليدل چي سر يي کاټ سوی دی يا يي څوك مړ کړی د دې قبيلي څخه دي احتلام هم د شيطان د اثر څخه وي، او په دي سره دلښکر دشيطان دا مقصد وي چي مومن د غسل او پاکي په زحمت کي واچوي، يا د حاجت د غسل په ذريعه سره د سهار د لمونځ په پر وخت کولو کي خلل راسي، ليکن ياد ساتئ چي شيطان د بيری دخوب په ښولو سره مومن په هر رقم سره پريشانه کولای سي مګر دا خبره دده دقدرت څخه دباندي ده، چي د نبی ﷺ شکل او صورت جوړکي يومومن ته په خوب کي دوکه ورکړي ارشاد نبوي دی: (من رأنی فی المنام فقد رانی فان الشيطان لا يتمثل فی صورتی، رواه البخاری ومسلم)، ژباړه چا چي زه په خوب کي وليدم په تحقيق سره يي زه وليدم (دده دا خوب ريښتنی دي) ځکه چي د شيطان دا مجال نسته چي چاته په خوب کی زما په شکل سره ښکاره سی. ځينو تحقيق کوونکو ويلي دي چي شيطان په خوب کی دحق تعالی په حيثيت سره ښکاره کيداي سي درواغ جوړولای سي اوليدونکی ته دوکه ورکولای سی چي دا واقعی الله تعالی دی ليکن د نبی کريم ﷺ شکل دی نه سی اختيارولای ځکه چي حضور ﷺ مظهر دهدايت اوشيطان مظهر دضلالت دی اوپه هدايت او ضلالت کي ضديت دی او حق تعالی داضلال او هدايت دصفاتو اوټولو متضادو صفتونو جامع دی، دوهمه وجه داده چي دمخلوق دعوی دالوهيت ښکاره باطله ده په دی کي په هيڅ ډول اشتباه نه سی کيدای په خلاف ددعوی دنبوت څخه، ځکه چي په زرګونو او لکونو تش لاسو کسانو دخود ساخته نبيانو

د دکانونو دښایسته کولو لپاره ایمانونه راوړي دی دحق د لاري ځخه ورك سوي دی په دي بنا باندي د نبي کریم ﷺ په شکل اختیارولو سره خلکو ته په دوکه ورکولو یي قدرت نسته، همدا وجه ده چي دالوهیت دمدعي ځخه خوارق العادة کارونه صادریدل ممکن دی، لیکن که څوك د نبوت دعوٰی وکړی نو الله ﷻ دده ځخه دمعجزو ښولو قدرت سلب کړي، ترڅو دخدای ﷻ کمزوری مخلوق دخوارقو په وجه سره دده د دوکی په دام کي ګیر نه سي.

## د خوب قسمونه

امام محمد ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي دخوب دري قسمه دی، یو حدیث النفس (دزړه خیالات) دوهم د شیطان بیرول، دریم مبشرات خداوندي، (دالله پاك دطرف ځخه خوشخبریاني) د دې تقسیم ځخه ظاهره ده چي دخوب ټول اقسام صحیح قابل تعبیر او دالتفات قائل نه وي، بلکه دتعبیر او التفات قابل دخوب هغه قسم دی کم چي د الله تعالٰی دطرف ځخه بشارت او خبرداری وي، دحدیث نفس مثال دادی چي یوسړی یوکار یا کسب کوی دی په خوب کي هم عمومًا دغه شیان ویني په کم کي چي ټوله ورځ مشغول وي یا یو عاشق محروم الوصال چي هر وخت دخپل محبوب په یاد او خیال کي مستغرق وي دی په خوب کي هم عمومًا هغه ویني، رښتینی خوب په دي وجه لیدل کېږي چي بنده محفوظ اوپه طلب دحق او محبت الٰهي کي زیات مشغول وي داسي خوب قابل تعبیر دی او پر دي لویي لویي اهمي نتیجي مرتب کېږي.

## پر خوب در ښتیا خبرو اثر

حلال خوراك اورښتیا ویلو ته په رښتینی خوب کي لوي دخل دی په دي وجه کم حضرات چي دبیري او ترهي دخوبونو لیدو عادي وي دوي ته دخپل اخلاقي حالاتو معاینه کول په کار دی خصوصًا دحرام او مشتبه خوراك غیبت او درواغ ویلو ځخه قطعا پرهیز لازم دی په دي معنٰی کي یو مرفوع حدیث هم مروي دي چي کوم سړي زیات رښتیا ګویه وو دده خوب هم د ټولو ځخه زیات رښتینی دي.

## د بد خوب بیانولو ممانعت

کوم سړي چي مکروه او ناکاره خوب ووینې نو پکار دی چي دحق تعالٰی ځخه ددغه خوب دشر او دشیطان دفتنی ځخه پناه وغواړي او دا خوب دي هیچاته نه بیانوي په دي صورت کي به پر ده څه بد اثر نه مرتب کیږي د نبي کریم ﷺ ارشاد دی: (الرؤیا علی رجل طائر ما لم یتحدث بها فاذا حدث بها وقعت، رواه الترمذي عن ابي رزین العقیلي واخرجه ابوداود في معناه) ژباړه: تر څو پوري چي خوب بیان نه سي تر هغه وخته دمرغه په پښو ځړیږي (قیام او ثبات یي نه وي) او چي بیان سي نو همدغسي درباندي درځي. دناکاره خوب دبیانولو ځخه په دي وجه ممانعت سوي دی چي هسي نه معبر یي دظاهر موافق ناکاره تعبیر وباسي او په عام طور سره دا په مشاهده کي راغلي دي چي ځنګه یي څوك تعبیر ورکړي په تقدیر الٰهی سره دغسي واقع کیږي، که څه هم چي ټول واقعات او حادثي دقضا او قدر سره تړلی دی خو بیا هم دخوب پټول یې په تاثیر ساقطولو کي ځکه اثر

کوي چي د دعا او صدقي په شان دا قسم اسباب هم دقضا او قدر سره متعلق دی.

**خوب به چاته بیانوي؟**

د تعبیر لپاره خپل خوب صالح انډیوال، باعمله عالم، صاحب دل، درایی دخاوند څخه ماسوا بل چاته ویل نه دي پکار ځکه چي داخلک خوب ترممکنه حده پوري پر نیکي محمول کوي ښه تعبیر یي ورکوي، نبي کریم ﷺ ویلي دي: (لا تحدث رؤیاك الا حبیبا او لبیبا، رواه الترمذي وفي روایة ابي داود: لا تقصها الا علي واد او ذي رای)، ژباړه: خپل خوب دانډیوال یا عالم څخه ماسوا بل چا ته مه وایه دا روایت دترمذي دی، د ابوداود دروایت الفاظ دا دي: خپل خوب د هوښیار انډیوال څخه ماسوا بل چاته مه وایه.

**د نبي ﷺ عادت او د جماتونو د امامانو فریضه**

دسمره بن جندب رضي الله عنه څخه روایت دي چي نبي کریم ﷺ به د سهار دلمانځه څخه وروسته عمومًا داصحابو څخه پوښتنه کوله چي په تاسو کي چا خوب لیدلي دی؟ که چا به خوب لیدلي وو نو بیانوی به یي او مخبر صادق ﷺ به یي تعبیر بیانوي (بخاري) امام محي الدین نووي رحمه الله ویلي دي چي د دې حدیث څخه د دې خبري استحباب ثابتیږي چي د جمات امام د سهار دلمانځه څخه وروسته مقتدیانو ته متوجه سي او د دوی خوبونه واوري تعبیر دي وکړي ځکه چي دورځي په شروع کي دانسان دماغ صحیح وی او د دې څخه وروسته یي دمعاش فکر ذهن پریشانه کړی لیکن ظاهره ده چي په موجوده دور دفتنو کي چي دعهد نبوت څخه څوارلس سوه کاله تیر سوي دی او داسلامی ملت پوهه او ایمان ورځ په ورځ مخ پر زوال دی دجماتونو داسی امامان دعنقاء په حکم کي دی کم چي دخوبونو د تعبیر او تاویل اهل دي، البته که دوی د تعبیر د خوبونو د مستندو کتابونو مطالعه وکړي نو په دي فن کي په قدر داستعداد بصیرت پیدا کولي سي.

**د فن تعبیر مستند او جامع ترین کتاب**

په فن تعبیر کي چي ترننه پوري څرنګه کتابونه لیکل سوي دی په دوی کي غالبا دټولو څخه زیات جامع ضخیم او مستند کتاب کامل التعبیر دی کوم چي شیخ ابوالفضل حسین بن ابراهیم محمد تقلیسي په زمانه دآل سلجوق کي کم از کم دیو ویشتو کتابونو څخه انتخاب کړ، او ویي لیکی مؤلف په دیباجه د کتاب کي ویلي دی چي ما کتاب کامل التعبیر مدون کړ، دسلطان قزل ارسلان (ثاني) بن سلطان مسعود ناصر سلجوق والی روم او شام په حضور کي مي پیش کړ او دتاریخ د کتابونو څخه معلومیږي چي سلطان قزل ارسلان ثاني په ۵۵۵ هـ کي پر تخت ناست وو ددې څخه اندازه کیداي سي چي دا کتاب د نن څخه تقریبا اته سوه کاله مخکي تالیف سوي وو، دا دی اوس د پښتنو ورونو لپاره دا کتاب ژباړل کیږي ترڅو پښتانه ورونه ورڅخه بشپړه ګټه پورته کړي، او د راشد کتابخانه، چمن له محترم سرپرست ښاغلي مولوي عبدالرازق ''راشد'' څخه مننه کوو چي د دې دروند بار پورته کولو ته یې اوږه ورکړه، کامل

التعبير چي ديو ويشتو كتابونو خلاصه ده د اته سوه كلونو راهيسي په مسلمانانو كي معمول او مقبول را روان دی، دعا ده چي الله تعالی په دی ازرښتناك تاليف سره خاصو او عامو ته فايده ورسوي. آمين

## امام محمد بن سيرين رحمه الله عليه

موږ په تيرو كرښو كي دخوب دماهيت او د دې دتعبير او تاويل په اړه چي څه وويل هغه كه څه هم لږ وه ليكن تږوله ضروري بحثونه پكښي راغلي دی مگر دا بيان تر هغه وخته پوري ناتمام او ناقص شميرل كيږي ترڅو چي دتعبير دميدان د غښتلي امام يعني امام محمد بن سيرين رحمه الله عليه ذاتي حالات هم په رڼا كي رانه سي په دي وجه موږ دلته په لنډه توگه سره ددی عظيم شخصيت پيژندنه كوو چي له زرو كلونو راهيسي د غټو غټو علماوو د امت څخه ښه عقيدت ترلاسه كوي ترڅو د دوي دژوند دعملي كارنامو په شان ددوی علمي كمالات هم دناظرينو دبصيرت د زياتوالي لامل سي.

## ابن سيرين رحمه الله عليه د معبر په حيث سره

په امت مرحومه كي د دې درجې لرونكي په لكونو اولياء الله تير سوي دی كومو ته چي دشيانو دحقيقت او دكائناتو د رازونو علم وركړه سوي وو په خوښو سويو هستيو كي كومو ته چي دالله جل جلاله په قرب كي ځاي وركړل سوی وو دامام محمد ابن سيرين رحمه الله عليه شخصيت داسي نامداره دی چي په ذات كي يې دولايت سره سره دخوب دتعبير غير معمولي جوهر هم امانت وو او دا ويل قطعًا مبالغه نه ده چي ابن سيرين رحمه الله عليه ته چي په تعبير داني كي كم كمال حاصل وو د دې نظير خو په تابعينو او ددوی دزماني څخه په مابعد كي خوڅه كوي چي په صحابه كرامو رضي الله عنهم كي هم په مشكل ليدل كېدی سي ددوی په ژوند كي به د اسلامي دنيا دا عام معمول و چي كله به چا داسي خوب وليدی چي علماء او صحابه به يي دتعبير څخه عاجزه سوه نو اخر به يي دابن سيرين ته طرف رجوع كوله دوی چي به كوم تعبير وركي هغه به داسي صحيح او پوره وو چي د اثر په ظاهريدو به يي دوخت لويو لويو امامانو هم دزيات فراست داد وركوی، په قول دسيوطي چي امام ذهبي رحمه الله عليه دهر فن دمنتخبو او برگزيده علماوو يو فهرست مرتب كړيدي، په كوم كي چي يې امام محمد بن سيرين رحمه الله عليه په معبر خصوصي سره ياد كړيدی، د دې فهرست يو څو نموني دادي:

| فن | دفن ستر علماء | فن | دفن عمائدين |
|---|---|---|---|
| تفسير | ابن عباس رضي الله عنه | نحو | سبويه رحمه الله عليه |
| شجاعت | خالدبن وليد رضي الله عنه | فقه الحديث | امام شافعي رحمه الله عليه |
| تعبير دخوب | محمدبن سيرين رحمه الله عليه | سنت | امام احمدبن حنبل رحمه الله عليه |
| وعظ اوتذكير | امام حسن بصري رحمه الله عليه | حديث | امام بخاری رحمه الله عليه |
| قرائت | نافع رحمه الله عليه | تصوف | جنيد بغدادي رحمه الله عليه |

| فقه | امام اعظم ابوحنیفه رضي الله عنه | کلام | امام ابوالحسن اشعري رحمة الله عليه |
|---|---|---|---|

## دژوند ابتدايي دور

محمد بن سيرين رحمة الله عليه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د خادم انس بن مالك رضي الله عنه ازاد كړي غلام وو ددوی والده صاحبه صفيه د امير المومنين ابوبكر صديق رضي الله عنه مينځه وه، ددوی كنيت ابوبكر وو، انس رضي الله عنه د ډېر وخت ځخه دكاتب په حيث سره دنبي صلى الله عليه وسلم بي اندازي ډېر خدمتونه كړيدي اوكله چي موږ ګورو چي يو معمولي غلام چي دژوند ټوله اولنۍ دوره يې د مالك په خدمتونو كي تيره سوه او دكوم كمال دحصول لپاره يي د لوړوالي او بلندي په ظاهره ځه اسباب نه وو خو د ذو المِنن خدای جل جلاله په ډېري پېرزويني سره په اسمان دعلم او عمل كي عموما او په تعبير دخوب باندي خصوصا لمر جوړ سو او وځلېدی، ددوی د پيدائش او پرورش ځاي جرجرايا وه كوم چي دبصري په علاقه كي دی وطن يي پرېښودی په بصره كی يي اوسيدل شروع كړل، ددوی دكشر ورور انس بن سيرين بيان دی چي زما ورور محمد بن سيرين دعثمان رضي الله عنه د حادثی د شهادت ځخه دوه كاله مخكی پيدا سو او زه بيا يو كال وروسته پيدا سوم.

## تقوی او الهي بېره

امام ابن سيرين غټ زاهد بي حده پرهيزګاره مشهوره تابعي او امام تير سوی دی، د ابن عون قول دی چي زما سترګو دري بي مثله حضرات ليدلي دي او ځلورم بزرګ يي ددوی برابر نه دي ليدلي: ابن سيرين، قاسم بن محمد او رجا بن حبوه رحمهم الله، دخلف بن هشام بيان دی چي محمد بن سيرين ته دالله تبارك و تعالٰى دطرف ځخه دحسن اخلاق، ښه معاملې او دعاجزي نعمت په پوره درجه سره وركړل سوي وو، او دښو اخلاقو او خشيت الٰهي په بركت ددوی داحالت هميشه وو، چي ددوی په ليدو به يې خدای يادېدي، اشعث وايي چي كله به دابن سيرين ځخه دحلالو او حرامو په باره كي پوښتنه كيده نو ددوی رنګ به بدل سو، سفيان ثوري رحمة الله عليه دزهير اقطع ځخه روايت كړيدی چي كله به دابن سيرين په مخكي دمرګ ذكر وسو نو ددوی اندامونه به بالكل مړه او بي حسه سوه، مهدي وايي چي يوه ورځ موږ دابن سيرين په مجلس كي ناست وو علمي مذاكري كيدي اتفاقا يو سړی د مرګ ذكر وكي فورا ددوی مخ ژړ سو او د لوي تكليف په ډول حالت پر ښكاره سو اٰخر ترځو چي موږ ددوی طبعيت بي تكلفه بل طرف ته متوجه نه كي ددوی حالات برابر نه سوه، دابن حبان محدث قول دی چي دی دبصري په خلكو كي دټولو ځخه زيات متقي وو تر دی چي خلكو دوي ته پر امام حسن بصري رحمة الله عليه فوقيت وركړيدي.

## د كاملي تقوی نا اشنا مثال

لكه ځنګه چي يوسف عليه السلام دخپل كمال او تقوٰی په نتيجه كي ځو كاله د زندان او قيد سختی برداشت كړي وه دغه رقم دوی ته هم د دې تقوٰی په وجه په سنت يوسفي د عمل كولو سعادت نصيب سوي وو، دابن سعد محدث بيان دی چي ما د محمد بن عبدالله انصاری ځخه پوښتنه وكړه چي ابن سيرين په كوم جرم كي دزندان په بلا كي بندي سو، دوی وويل چي دوی

دځلوېښتو زرو درهمو (تقريبا دلسو زرو روپو) غله په غرض د تجارت اخيستي وه ددی اخستو څخه وروسته دوی ته معلومه سوه چي خرڅونکی د دې غلی پیداوار په ځينو داسي طريقو سره کړیده کوم چي شرعًا مشکوك دی دوی ټوله غله په غريبانو او مسکينانو تقسيم کړه او قيمت يي ددوی پر ذمه واجب الاداء پاته سو ځکه چي دوی قرضه په وخت اداء نه کړه نو دقرضدار ښځي ددوی خلاف دعوٰی دايره کړه او دوی يي قيد کړل او دوی تر هغه وخته پوری په قيد کي بند وو تر څو چي ټول رقم يي اداء نه کي.

## دابن سيرين استاذان او شاګردان

کوم صحابه کرامؓ او تابعين چي ددوی استاذان پاته سوي دي شيخ ابن حجر عسقلاني رحمه الله ددوی نومونه په تهذيب التهذيب کي داسي ليکلي دی:

انس بن مالكؓ، حسن بن عليؓ بن ابي طالب، جندب بن عبدالله ؓ، حذيفهؓ بن يمان، رافع ؓ بن خديج، سليمان بن عامره ؓ، سمره بن جندب ؓ، عبدالله بن عمرؓ، عبد الله بن عباس ؓ، عثمان بن ابي العاص ؓ، عمران بن حصين ؓ، كعب بن عجره ؓ، معاويه ؓ بن ابوسفيان، ابودرداء ؓ، ابو سعيد ؓ، ابوقتاده ؓ، ابوهريره ؓ، ابوبكر ثقفي ؓ، ام المومنين عايشه صديقه ؓ، ام عطيه ؓ، حميدؓ بن ابي عبد الرحمٰن حميری، عبد الله ؓ بن شفيق، عبد الرحمٰن بن ابي بكرهؓ، عبيدة السلمانيؓ، عبد الرحمٰن بن بشر بن مسعودؓ، قيس بن عباد ؓ، كثير بن ؓ افلح، عمرو بن وهبؓ، مسلم ؓ بن يسار، يونس بن جبيرؓ، ابومهلبؓ، جری او ددوی ورونه مهلب او يحيٰی ؓ، حفصه ؓ، يحيٰی بن ابي اسحاق حضریؓ، او خالد حذاء کوم چي داسحاق حضری شاګرد و، رضوان الله عليهم اجمعين.

ددوی څخه علاوه دبعضو کبارو تابعينو څخه يي هم روايت کړيدی، په تابعينو او تبع تابعينو کي يي دلاندي ليکل سوو حضراتو څخه شاګردي کړيده: شعبي، ثالث، خالد حذاء، داود بن ابی هند، ابن عون، يونس بن عبيد، جرير بن حازم، ايوب، اشعث بن عبد المالك، حبيب بن شهيد، عاصم احول، عوف اعرابي، قتادة، سليمان تيمي، قره بن خالد، مالك بن دينار، مهدی بن ميمون، اوزاعي، علي بن زيد جدعان و غيره، رحمة الله تعالٰی عليهم اجمعين.

۱: عبدالله بن احمد د خپل والد محترم امام احمد بن حنبل څخه روايت کړيدي چي محمد بن سيرين د انسؓ اوعمر ؓ ابوهريره ؓ اوعبد الله بن عمرؓ څخه روايت کوي ليکن د عبدالله ابن عباس څخه يي يو حديث روايت کړي نه دی، دخالد حذاء بيان دی چي هر هغه روايت دکوم په نسبت چي ابن سيرين وايي چي ماته دابن عباس ؓ څخه رسيدلي دی، دغه دوی د عکرمه څخه اوريدلي دي د کوم سره چي دوی د مختار ثقفي په ورځو کي ملاقات کړي وو، د امام بخاری رحمه الله بيان دی چي ابن سيرين د عبدالله ابن زبير ؓ په حکومت کي حج وکړي او دغه وخت يي د ابن زبيرؓ اوزيد بن ثابتؓ څخه دحديثو روايت وکړي.

## دامام ابن سيرين ثبوت ته رسيدلي ثقه والی

شيخ ابن حجر عسقلانی ليکي چي امام ابن سيرين کامل العلم، ثقه، دغره تر ډېری زيات مضبوط، د تعبير دمملکت علامه، د پرهيز گاري او تقوٰی سرتاج او دامام حسن بصري څخه هم زيات ثابت قدم او مستقل مزاجه وو، د مورق عجلی بيان دی چي ما يو سړي تر ابن سيرين زيات په ورع کي افقه او په فقه کي محتاط نه دی ليدلي، ابو قلابه به ويل چي په کوم سړي کي دومره صلاحيت د دې کار سته کوم چي ابن سيرين ته ورکړه سوي دی، نوموړی خو دتوری پر تيره سر باندي قدم ايښوونکي بزرگ دی، شعبی به ويل چي تاسو خلک دابن سيرين صحبت اختيار کي، د ابن عون بيان دی چي ابن سيرين به دحديث روايت بالمعني نه کوي بلکه حرف په حرف به يي دضبط کولو اهتمام کوي، او کله چي به هشام بن حسان ددوی څخه يو حديث نقل کوی نو ويل به يې چي ماته داسي بزرگ ددې حديث روايت کړيدی کوم چي ما پخپل عمر کي تر ټولو زيات صادق البيان موندلی دی.

د عجلي بيان دي چي ابن سيرين ثقه تابعي دی دوی دشريح ﷺ اوعبيده ﷺ څخه تر ټولو زيات روايتونه نقل کړيدي او په هغو کوفيانو کي يي تربيت پيدا کړيدی کوم چي دعبيد الله ابن مسعود ﷺ شاگردان وو، ابن سعد ليکلي دی چي ابن سيرين ثقه، عالَي قدر، رفيع المنزلت او جليل القدر امام وو، دابن المديني قول دی چي د ابوهريره ﷺ شاگردان شپږ دی: ابن المسيب ﷺ، ابو سلمه ﷺ، اعرج ﷺ، ابو صالحه ﷺ، ابن سيرين ﷺ، طاوس ﷺ، دابو قلابه قول دی چي ابن سيرين ته په هر حيثيت سره چي وگوری په هر حالت کي دټولو څخه زيات مستقيم الاحوال، متقي او پرنفس قابو لرونکي دی، اود ابن عون بيان دی چي ما د دې حضراتو په ډول په دنيا کي څوک نه دی پيدا کړي: په عراق کي ابن سيرين، په حجاز کي قاسم بن محمد، او په شام کی رجاء بن حبوه، بيا په دی دري واړو کی ابن سيرين بالکل بي مثله وو، دعثمان تيمي رحمه الله قول دی چي په بصره کي د ابن سيرين څخه زيات اعلم بالقضاء څوك نه دی تير سوي.

## د حديثو په علم کی دابن سيرين لوړ مقام

دحديث درواية مقدس ترين اصول دادي چي کومه واقعه بيانيږي دهغه سړی دڅېي څخه دی ذکر سی کوم چي شريك دواقعی وي يا ده بذات خود نبي کريم ﷺ په څه کار کولو يا ارشاد فرمايلو ليدلي وي او که بذات خود يي نبي کريم ﷺ په څه کولو يا فرمايلو نه وي ليدلی يا په واقعه کي پخپله موجود نه وي، دټولو راويانو نومونه به په ترتيب سره بيانوي، ددی سره به دا هم ښيي چي دا روايت کوونکي څنگه خلک وه، ددوی ديني او دنيوي کارونه څه شي وه، په تقوٰی اوطهارت کي ددوی څه مرتبه وه؟ ذهن، حافظه، معامله فهمي او د عقل او پوهی حال يي څه وو؟ ثقه او رښتيا گوی وو يا غير ثقه، باريك بين وو که سرسري نظر والا، وسط الذهن عالمان وه که جاهلان، که څه هم دا جزئی حالات پيدا کول، سخت او مشکل بلکه ناممکن ته نژدي وو، ليکن په زرگونو محدثينو کرامو خپل ټول عمرونه په دی يو کار کي صرف کول، دا

ناممکن یي ممکن کیدونکی کار جوړ کړ، دا پاك نفسونه یو یو ښار او کلی ته ولاړل دراویانو سره یي ملاقاتونه وکړل ددوی متعلق یي دخلکو څخه هر قسم معلومات حاصل کړه، دچا د حیثیت او مرتبی پروا یي ونه کړه، د والیانو او ملَك څخه واخله تر مقدسو پیشوایانو پوری یي لټون وکړ، او دحدیثو دتنقیح او صفا کولو په خاطر یې دیوه یوه سړي د احوالو څخه پرده پورته کړه، ابن سیرین دمحدیثونو کرامو په اولو العزم جماعت کي دصدر حیثیت درلودی، دوی په خپله روایت وکی او په تحقیق او تنقیح کي یي خاصه حصه واخسته، دوی د دې خپلو روایت کړو احادیثو څخه علاوه چي کوم په روایت د حدیث کي لېدل کیږی، دثقاهت یو بل معیار هم قایم کړی او هغه دا چي صرف دحقي فرقی اهل سنت والجماعت څخه یی حدیث اخستی دی، دروافضو او خوارجو، معتزله او نورو مبتدعو فرقو د مرویاتو سره دی څه مقصد نه لري، امام شمس الدین ذهبي د (میزان الاعتدال في نقد الرجال) په مقدمه کي دهغو ثقاتو ذکر کوي، د کومو احادیث چي قابل داستناد نه شمیرل کیږی، لیکي چي په روایت د عاصم احول ابن سیرین وایي چي په اول کي به دحدیثو په روایت کي داسناد څه لحاظ نه ساتل کیدی اٰخر دا چي هر کله فتني را پورته سوي او د صالحینو دامت په ډول اهل بدعت او اهل هوا هم روایت دحدیثو شروع کړ، نو موږ په حق او باطل کي دامتیاز کولو لپاره دا معیار مقرر کی چي صرف داهل سنت والجماعت حدیث دی واخستل سی، او داهل بدعت بیان دی قابل توجه نه شمیرل کیږی واقعي چي دروایت دتنقیح دا یو غټ ضروري اصل وو کوم چي اختیار سو، که هغه وخت دا التزام نه وای سوی نو نن به په اصل او نقل، صحیح او موضوع کي تمیز ګران څه چي بلکي نا ممکن به وو.

## وفات

په کومو ورځو کي چي ددوی لمر د ژوندانه په ترقي کي وو دوی د کایناتو دهر شي څخه منقطع سو یوازی په ذکر، عبادت، دقران تلاوت، ریاضت او مجاهده کي مستغرق سو، د دې تنهایي په ورځو کي یو واري ددوی مزاج داعتدال څخه ډیر زیات خراب سو اٰخر په ۹ دشوال سنه ۱۱۰ هـ دورځې دا لمر د علم او عمل ددنیا دافق څخه ډوب سو، او په ټول عالم کي تیاره خپره سوه، دحماد بن زید بیان دی چي امام حسن بصري د رجب پر اوله سنه ۱۱۰ هـ په ورځ رحلت وکي زه دده دجنازي په لمانځه کي شریك وم، د دې حادثي او فاجعي څخه پوره سل ورځي وروسته ابن سیرین رَحمۃُاللہِ عَلَیہ د ۷۷ کالو په عمر وفات سو.



# د کتاب کامل التعبیر سریزه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم وعلی جمیع اولیاء الله العلی العظیم.

## د علم تعبیر تعریف غرض او موضوع

واضحه دی وي چي دهر علم د شروع څخه مخکی ددرو خبرو پیژندل نهایت ضروری دی:
(۱): تعریف دعلم: ځکه چي په تعریف سره د دې علم حقیقت واضح سي چي فایده یي داوي چي انسان دغه علم په بصیرت او پوهه سره حاصل کړی. (۲): غرض او غایه دعلم: ځکه چي تر څو پوري دیو شي غرض او غایه معلومه نه وي، تر هغو پوري ددغه شي په تحصیل کي کوشش کول محض عبث او بي فایدي کار وي او د ړوند کوڼ شخص په یو شي پسی دور پسی کیدو په ډول وی. (۳): موضوع دعلم: دهر علم موضوع هغه وي دکوم حالات چي په دی علم کي مذکور دی، لکه جسم انساني دعلم طب موضوع ده ځکه چي په علم طب کي د جسم انسانی دصحت او مرض حالات مذکور دی، ترڅو چي دیو علم موضوع معلومه نه وی ترهغه وخته ددغه علم دنورو علمو څخه امتیاز او فرق مشکل وی، مثلا کله چي یو سړی ته دا معلومه سي چي دعلم طب موضوع جسم انساني دی نو که دده په مخکی دعلم صرف یا نحو یا دطب څخه ماسوا د بل یوه علم مسئله بیان سی او ده ته دا وویل سي چي دا مسئله د علم طب ده نو دی به فورا ووایي چي دا مسئله دعلم طب هیڅکله نه ده، ځکه چي په علم طب کي دجسم انساني حالات مذکور وی، نه چي داسم، فعل، حرف، مبني او معرب حالات، نو معلومه سوه چي دعلومو د یو بل څخه د امتیاز او فرق لپاره ددغو علومو موضوع پیژندل ډیر ضروري دی، چونکه علم التعبیر یو ځانګړی علم دی، ځکه نو د دې تعریف، غرض او موضوع ذکر کوو:

### د علم تعبیر تعریف

علم تعبیر هغه علم دی په کوم کي چي دخوبونو دتعبیر اصول او قاعدي بیانیږي.

### د علم تعبیر غرض

د علم تعبیر غرض دادی چي دخوب تعبر صحیح صحیح وسي دغلط تعبیر څخه انسان محفوظ پاته سي.

### د علم تعبیر موضوع

د علم تعبیر مضوع خوب دی ځکه چي په دی علم کي دخوب متعلق حالات بیانیږي.

### د علم تعبیر موجد او بنسټ ایښوونکی

اګر چي دهر شي موجد په حقیقت کي الله تعالٰی دی لیکن په عرف عام کي دهر علم موجد هغه سړی ته وایي چا چي د ټولو څخه اول دغه علم ته په دنیا کی رواج ورکړي دی، لکه دعلم منطق

موجد ارسطو او د علم عروض موجد خليل نحوی دی، نو دعلم تعبير موجود او واضع يوسف عليه السلام دی کوم ته چي دټولو څخه اول دا علم دالله تعالٰی دطرفه ورکړل سو، دوی دی ته په دنيا کی رواج ورکی ځکه ارشاد باري تعالٰی دی: (وكذٰلك يجتبيك ربك ويعلمك من تاويل الاحاديث، سورة يوسف: ٦) ژباړه: (ای يوسفه! دغسي به ستا رب تا غوره کړي او تاته به دخوبونو دتعبير علم درکړي. په دی آيت کی ديوسف عليه السلام سره دعلم تعبير دخوب ورکولو وعده سوي ده، بيا داوعده پوره هم سوه، يعنی يوسف عليه السلام د دې خبری پخپله اقرار کوي چه: (ربی قد اٰتيتني من الملك وعلمتني من تاويل الاحاديث، سورة يوسف: ۱۰۱) ژباړه: ای زما ربه تا ماته حکومت هم راکړو او دخوبونو دتعبير علم دي هم راکړ، ديوسف عليه السلام علم د تعبير په دنيا کي داسي مشهور او مروج سو چي په کومو ورځو کی دی دزليخا دخواهش نفساني دنه پوره کولو په وجه دمصر په جيل خانه کي قيد سوی وو، په دغو ورځو کي ددوی سره دوه قيديان نور گرفتار سوي وه دغه جيل خانی ته تللی وه، دغو دواړو په جيل کي خوب وليدی چي په دی آيت کي يي ذکر سوی دی: (قال احدهما اني اراني اعصر خمرا وقال الاخر اني اراني احمل فوق راسي خبزا تاكل الطير منه نبئنا بتاويله انا نراك من المحسنين، سورة يوسف: ٣٦)، ژباړه: ديوسف عليه السلام دواړو ملگرو په جيل کی وويل چي ما په خوب کی خپل ځان وليدی چي شراب جوړوم او بل وويل چي ما په خوب کی وليدل چي پر سر مي ډوډی وي او مرغان يي خوری ای يوسفه ته موږ ته ددی خوبو تعبير راکړه ځکه ته موږ ته ډير ښه سړی معلوميږي. څرنگه چي يوسف عليه السلام دواړو ملگرو ته دخوبونو تعبير ورکړ چي: (يا صاحبی السجن اما احدكما فيسقي ربه خمرا واما الاخر فيصلب فتاكل الطير من راسه، سورة يوسف: ٤١) ژباړه: ای زما دجيل دواړو ملگرو په تاسوکی به يو دخپل مشر دشرابو ساقی وی او دا بل به پانسی سی او مرغان به دده دسر څخه په منگولو خوراك کوی. يو دم هماغسی وسوه يو دجيل څخه ازاد سو، دمصر دپاچا ساقی سو او بل په يو جرم پانسی سو، دکوم په باب چي يوسف عليه السلام داويلي وه چي ته به دمصر دپاچا ساقی جوړيږي دازاديدو په وخت کي يي ورته وويل: وروره که موقع پيدا سوه نو بيا پاچا ته زما ذکر وکړه هغه وعده وکړه ليکن وروسته بيا دده هيره سوه، اتفاقًا يو وار دمصر پاچا خوب وليدی، ارشاد باری تعالٰی دی: (وقال الملك انی اریٰ سبع بقرات سمان يأكلهن سبع عجاف وسبع سنبلت خضر واخر يابيسات يا ايها الملاء افتونی فی رؤيای ان كنتم للرؤيا تعبرون، سورة يوسف: ٤٣) ژباړه: دمصر پاچا وويل ما په خوب کی وليدل چي اووه چاغ غوايي اووه ډنگر غوايي وخوری، او اووه شنه تازه او اووه نور وچ وږی می ليدلی دی، ای سردارانو که تاسو دخوب تعبير ور کولای سی نو زما ددی خوب معنٰی را کړی. ساقی ته ديوسف عليه السلام قصه ورياده سوه او دمصر دباچا څخه يي اجازه وغوښته چي زه جيل خاني ته ولاړ سم او ديوسف عليه السلام څخه

به ددی خوب معنٰی و پوښتم، څرنګه چي ساقی دمصر دپاچا په اجازت سره دیوسف ﷺ په خدمت کی حاضر سو او دپاچا خوب يي ورته په تفصيل سره بيان کی او دتعبير پوښتنه يي څني وکړه دوی ورته تعبير رقم ووايه: (قال تزرعون سبع سنين دابا فما حصدتم فذروه في سنبله الا قليلا مما تاكلون ثم ياتى من بعد ذالك سبع شداد ياكلن ما قدمتم لهن الا قليلا مما تحصنون ثم ياتى من بعد ذالك عام فيه يغاث الناس وفيه يعصرون، سورة يوسف: ٤٧ –٤٩) ژباړه: يوسف ﷺ د خوب په تدبيرکي داسي وويل چي تاسو خلک به اووه کاله دعادت مطابق فصل کری او څومره فصل چي کيدی دا به په وږو کی ساتی او لږ به د خپل خوراك لپاره اخلی بيا به اووه کاله سخته قحطی راځی چي دتيرو اوو کالو غله به ختمه سی ليکن لږ به څني محفوظه پاته سی چي بيا يي وکری بيابه ددی څخه وروسته يو دخوشحالی کال راسی چي ښه باران به په کښی وسی چي خلک به پکښی دانګورو څخه شراب جوړوی.

## دعلم تعبير شپږ مشهوره امامان

که څه هم په دې علم کی اکثرو اولياء کرامو او علماء ربانيونو ته کافی دسترس ترلاسه سوی دی ليکن دا مخ ته ليکلی شپږ بزرګان په دی علم کی په خاص طور سره مشهور ماهرين او بی مثله د زمانې تير سوی دی دا وجه ده چي په دی علم کی عموما ددی شپږو امامانو اقوال په طور دسند پيش کيږي دغه شپږ امامان دادی:

(۱) دانيال ﷺ (۲) امام جعفر صادق (۳) امام محمد بن سيرين (۴) امام جابر مغربی (۵) امام کرمانی (۶) امام اسمٰعيل بن اشعث رحمهم الله.

يادونه: که څه هم دا شپږ امامان په علم تعبير کی پرخپل ځاي بي مثله وو ليکن دامام محمد بن سيرين نوم په دی علم کی په خاص طور سره دخلکو په ژبه دی ګواکی داسی ويل زيات مناسب معلوميږي چي ابن سيرين په لحاظ دشهرت په علم تعبير کي داسمان لمر دی.

## د علم تعبير مشهور کتابونه

دغه رقم خو پر علم تعبير باندې په هره ژبه کی بي شميره کتابونه ليکل سوي دی ليکن دا لاندی ليکل سوی کتابونه په دی فن کی زيات مشهور، مقبول او مستند دی ځکه چي ددی کتابونو مصنفين په دی علم کی کامل ماهران تير سوی دی، د کتابو نومونه دادی:

(۱) کتاب الوصول، مصنف دانيال ﷺ.
(۲) کتاب التقسيم، مصنف امام جعفر صادق رضي الله عنه.
(۳) کتاب جامع، مصنف امام محمد ابن سيرين رحمة الله عليه.
(۴) کتاب دستور، مصنف امام ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه.
(۵) کتاب الارشاد، مصنف امام جابر مغربی رحمة الله عليه.
(۶) کتاب التعبير، مصنف امام اسماعيل اشعث رحمة الله عليه.
(۷) کتاب کنز الرؤيا، مصنف امام مامونی رحمة الله عليه.

(۸) کتاب بیان التعبیر، مصنف حافظ ابن اسحاق رحمه الله علیه.
(۹) کتاب التعبیر، مصنف حافظ ابن اسحاق رحمه الله علیه.
(۱۰) کتاب حمل الدلایل والمنافات.
(۱۱) کتاب مبادی التعبیر.
(۱۲) کتاب ایضاح التعبیر، مصنف امام فخری رحمه الله علیه.
(۱۳) کتاب کافی الرؤیا.
(۱۴) کتاب التعبیر، مصنف بطاووس.
(۱۵) کتاب مفرح الرؤیا.
(۱۶) کتاب تحفة الملوك.
(۱۷) کتاب منهاج التعبیر، مصنف امام خالد اصفهانی رحمه الله علیه.
(۱۸) کتاب مقدمة التعبیر.
(۱۹) کتاب حقایق الرؤیا.
(۲۰) کتاب وجین، مصنف امام محمد بن شاهوید رحمه الله علیه.

## د علم تعبیر د پاره کوم کوم علمونه ضروری دی؟

په علم تعبیر کی دماهر او کامل کیدو لپاره دلاندي لیکل سوو علمونه ازده کول بي اندازی ضروری دی: (۱) علم تفسیر (۲) علم حدیث (۳) علم ضرب الامثال (۴) اشعار عرب (۵) نوادر (۶) علم اشتقاق (دعلم صرف یوه حصه) (۷) لغات (۸) علم الفاظ متداوله.

## د علم تعبیر فضیلت او تصدیق د قرآنی آیاتو څخه

علم تعبیر ډیر افضله علم دی، ددی دفضیلت تفصیل دلاندی دلائلو څخه ثابت دی:
۱: کوم شی چي الله تعالی په خپلو خاصو انعاماتو کی حساب کی، دهغه په افضل کیدو کی هیڅ خبره نسته حال دا چي علم تعبیر الله پاك په انعاماتِ یوسفی (علیه السلام) کی حساب کړیدی، ارشاد باری تعالی دی: (وکذالك مکنا لیوسف فی الارض ولنعلمه من تاویل الاحادیث، سورة یوسف: ۲۱).
ژباړه: دغه رقم موږ یوسف علیه السلام ته په ځمکه (مصر) کی پاچاهي ورکړه او ده ته مو علم دتعبیر دخوب وښووی. که دا علم ښه او افضل نه وای نو الله تعالی به په خپلو انعاماتو کی دا ولی ذکر کوی؟ په انعاماتو الهیه کی ددی ذکر کیدل ددی خبری ښکاره دلیل دی چي علم تعبیر یو بی اندازی افضل او اعلی علم دی.
۲: نبی کریم صلی الله علیه وسلم دمعراج څخه وروسته یو خوب ولیدی د کوم چي الله تعالی پخپله تصدیق کړیدی، ارشاد باری تعالی دی: (لقد صدق الله رسوله الرویا بالحق، سورة الفتح: ۲۷)، ژباړه: الله تعالی خپل رسول صلی الله علیه وسلم ته رښتونی خوب وښودی. کله چي الله تعالی دنبی کریم صلی الله علیه وسلم دخوب تصدیق کړی دی نو ثابته سوه چي خوب یو بی اندازی ډیر لوي شی دی، ځکه یي نو نبی صلی الله علیه وسلم ته خوب وښووی او الله جل جلاله ددوی دخوب تصدیق ووایه دا ښکاره خبره ده چي کوم شی پیغمبرانو ته په

طور دانعام نصيب وی او الله تعالی يي صحيح او رښتيا هم وبولي نو ددی په افضل کيدو کی چا ته څه خبره کيدای سی؟ کله چي ثابته سوه چي خوب دپېو رازونو يو لوړ نعمت دی نو ددی څخه په لازمی طور سره داخبره هم ثابته سوه چي دخوب د تعبير علم هم يو بی اندازی لوړ او افضل شی دی ځکه چي داخبره ترلمر روښانه ده چي دخوب دتعبير دعلم شرافت ددی علم د موضوع په شرافت سره دی يعنی دکوم علم موضوع چي ښه وی دغه علم ښه وی او دکوم علم موضوع چي خرابه وی دغه علم هم خراب وی لکه علم سحر، او په تيرو سوو آياتونو سره دخوب افضل او لوړ کيدل ثابت سوه نو ثابته سوه چي په کوم علم کی دخوب حالات مذکور وی دغه علم يعني دخوب دتعبير علم به هم عظيم او لوړ وی.

۳: يو انسان بيله څه ګناه قصداً قتل کول يو بد ترين اوبی اندازی کبيره ګناه ده، چي سزا يی دقران کريم په ثبوت سره هميشه هميشه په دوږخ کی اوسېدل دی، دا خبره دټول اهل اسلام په نزد ثابته ده چي انبياء عليهم السلام دګناهونو څخه بالخصوص دکبيره ګناهونو څخه پاك او معصوم وي ليکن ددی خبرو با وجود چي ابراهيم عليه السلام کله په خوب کی دا وليدل (انی اریٰ فی المنام انی اذبحك، سورة الصافات: ۱۰۲) ژباړه: ای اسمٰعيله ما په خوب کی ليدلی دی چي دخدای جل جلاله په لاره کي تا حلال کړم، نو ابراهيم عليه السلام داسمٰعيل عليه السلام په رضامندی سره نوموړی دالله لپاره حلال کړ، نو ځکه الله جل جلاله ويلي دی: (وتله للجبين وناديناه ان يا أبراهيم قد صدقت الرؤيا انا كذلك نجزی المحسنين، سورة الصافات: ۱۰۳ –۱۰۵) ژباړه: هغه اسماعيل عليه السلام د حلالېدو لپاره پرې ايست، او موږ ږغ پر وکړ چي ای ابراهيم عليه السلام تا بی شکه خوب رښتيا کړ موږ نيکو خلکو ته همداسی اجر ورکوو. نوکه خوب لوړ او افضل نه وای ابراهيم عليه السلام به محض دخوب په بنا سره دخپل زړه سر دحلاليدو لپاره نه تياروی او الله تعالی به ده ته په امتحان کی د کامياب کيدو دا بهترين او ښايسته سند نه ورکولای چي (يا ابراهيم قد صدقت الرؤيا، سورة الصافات: ۱۰٤) ژباړه: ای ابراهيمه! بيشکه تا خپل خوب رښتيا کی. نو په دی سره هم دخوب فضيلت د روښانه ورځی په شان ثابت سو، او ددی څخه داهم معلومه سوه چي په کوم شی کی ددی لوړ او افضل شی تذکره وی دغه علم چي علمِ تعبير دخوب دی هم اعلی او افضل دی.

## د علم تعبير فضيلت دا حاديث نبوی صلی الله عليه وسلم څخه

(۱) په حديث شريف کی راغلی دی چي دخوبونو دتعبير علم ديوسف عليه السلام يو علمی معجزه وه او دا يوه ظاهره خبره ده چي کوم شی دپيغمبر معجزه وی دغه يقيناً بهتر، او افضل وی.

(۲) د انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي نبی کريم صلی الله عليه وسلم ويلي دی: (الرؤيا جزء من ستة واربعين جزء من النبوة) يعني دمومن خوب دنبوت شپږ څلويښتمه حصه وی، په ټولو انسانی کمالاتو کی نبوت دټولو څخه بهتره او افضل کمال دی دکوم په وجه چي انسان ترفرښتو هم افضل سی نو کوم شی چي دبهتره او افضل شی جزء وی دغه به هم بهتره او افضل وی نو ثابته سوه چي خوب يو اعلی

اوافضل شی دی او داهم ثابته سویده چي په کوم علم کی داعلی شی ذکر وي دغه علم به هم اعلی وی، نو په دی وجه ثابته سوه چي علم تعبیر یو اعلی او افضل شی دی ځکه چي په دی کي دخوب په شان داعلی او افضل شی حالات مذکور وی.
(۳) په حدیث شریف کی راغلی دی چي دعبدالله ابن عباسﷺ څخه روایت دی چي نبی کریم ﷺ ویلي دی چي خوب یو قسم وحی ده دکوم په ذریعه چي الله تعالی خوب لیدونکی ته دده په ښو یا بدو باندی خبر ورکوی کوم چي ده ته رسیدونکی وی چي دغه سړی په دنیا کی مغرور نه سی او دخدای ذوالجلالﷻ دحکم څخه غافله نه سی ددی حدیث څخه ثابته سوه چي خوب داسی اعلی شی دی لکه وحی.
(۴) ابوهریرهﷺ ویلی دی چي کله به نبی کریم ﷺ ناجوړه سو نو صحابه کرامﷺ به غمجن په خدمت کی حاضر سول او عرض به یي کوی چي تاسو به موږ ته دخیر کارونه راښول خدای دي نه کوی که په تاسو یو څه وسول نو موږ ته به څوك نصیحت کوی، او موږ ته به دنیوي او اخروي خیر او شر څنگه معلومیږی؟ نبي کریم ﷺ په جواب کی وویل (بعد وفاتی ینقطع الوحی ولا ینقطع المبشرات): ژباړه: زما دوفات څخه وروسته خو به وحی بندي سي لیکن مبشرات به نه بندیږي، صحابه کراموﷺ عرض وکی چي مبشرات څه شی دی؟ نبی کریم ﷺ وویل چی (الرؤیا الصالحة التی یراها المرء الصالح) ژباړه: مبشرات هغه ښه خوبونه دی کوم چي نیکو بنده گانو ته ښکاره کیږی. ددی حدیث څخه ثابته سوه چي ښه خوب دنبوت قایم مقام دی، دا ظاهره ده چي کوم شی د یو اعلی او افضل شی قایم مقام وی دغه هم اعلی او افضل وی، نو ثابته سوه چي خوب یو اعلی او افضل شی دی، داهم ثابته سوی ده چي دکوم علم موضوع اعلی او افضل وی دغه علم هم اعلی او افضل وی نو ثابته سوه چي دخوب دتعبیر علم یو اعلی او افضل علم دی.
(۵) ابو سعید خدریﷺ ویلی دی چي ما دنبی کریمﷺ څخه اوریدلي دي چي یوه ورځ یي صحابه کرامﷺ ته دا وویل چي کله په تاسو کی یو سړی یو ښه خوب ویني نو ده ته پکار ده چي دالله تعالی شکر ادا کړی او دغه خوب دخپلو مومنو انډیوالانو او ورونو په مخکی بیان کړی او که بی کاره خوب ویني او ښه سړی لیدلی وی نو درې واری دی ووایي: (اعوذ بالله من الشیطٰن الرجیم) ژباړه: زه د مردود شیطان څخه دخدایﷻ پناه غواړم، او دا بد خوب دی چاته نه وایي چي ده ته یو قسم تاوان او غم ونه رسوی، ددی حدیث څخه هم دخوب عظمت ثابتیږی، کله چي نبی کریم ﷺ صحابه کراموﷺ ته دخوب دویلو یا نه ویلو تینگار کوی که بل ضروری یا ادنٰی شی وای نو دومره تینگار به یي نه کاوه.
## دعلم تعبیر فضیلت دصحابه کرامو اوبزرگانو داقوالو څخه
۱: دعبدالله ابن عباس قول دی چي دټولو څخه اولنی نعمت کوم چي الله تعالی نبیﷺ ته ورکړی وو، هغه دا وو چي دوی په خوب کی یوه مقربه فرشته ولیده چي ددویﷺ سره داسی

په خبرو مشغوله سوه ای محمده! تاته دی خوشخبری وی چي تاسو ته الله تعالی دانبیاوو په صنف کی کامیاب ویلی دی او تاته یي خاتم الانبیاء ویلی دی او ستا په حق کی الله تعالی دا ویلی دی: (ولکن رسول الله و خاتم النبيين، سورة الاحزاب: ٤٠) ژباړه: رسول ﷺ ستاسو په سړیو کی د کوم سړی پلار نه دی بلکه دالله رسول او اخری نبی دی. کله چي نبی کریم ﷺ بیداره سو نو دوی ددی تعبیر دنبوت په خوب سره وکړ، د عبدالله ابن عباس ﷺ ددی قول څخه ثابته سوه چي خوب یوداسی اعلی او افضل نعمت دی دکوم په وجه چي نبی کریم ﷺ ته دپیغمبری بشارت حاصل سو اود کوم په ذریعه چي دوی ته دمقربی فرشتی (جبرئیل ﷺ) زیارت حاصل سو نو په کوم علم کی چي دداسی افضل شی ذکر وی ضرور به هغه افضل وی، نو دصحابی ددی قول څخه هم دعلم تعبیر افضلیت په ښه شکل ثابت سو.

(۲) هشام بن عروه ﷺ دخپل پلار څخه روایت کوی چي (عروه) ویلي دی چي په قرآن مجید کی چی کوم دا ذکر سویدی چي (لهم البشرٰى في الحيوة الدنيا، سورة يونس: ٦٤) یعني دی نیکو بندګانو ته ددی دنیا په ژوند کی هم بشارت سته. په دی آیت کی دبشارت څخه مراد دنیکو بندګانو خوب دی برابره خبره ده که هغه نیك بنده پخپله څه نیك خوب ویني یا بل سړی ده لره په خوب کی یو داسی اعلی او افضل شی ویني کوم ته چي په قرآن کی په بشری او خوشخبری سره تعبیر سوی دی، د خوب دافضیلت څخه دعلم تعبیر د خوب افضلیت هم په پخوانی طریقه معلوم سو.

(۳) ابن سیرین ﷺ ویلی دی چي په علم تعبیر او نورو علومو کی دافرق دی چي ددې علم طالب ددی علم داصولو خلاف نه سی کولای او دده قیاس قابل تعبیر هم نه وی او ده ته د تعبیر طریقه نه سی معلومیدلای، لیکن دا علم داسی نازك دی چي ددی اصول پر یوه حالت قایم نه وی ځکه چي دخلکو حالات بدلیږی په موجب ددوی دشکل، شباهت، صفت، دیانت، همت او اعتقاد. داوقاتو په اختلاف سره هم په دی علم کی اختلاف واقع کیږی ځکه چي یو وخت خو تعبیر په مثل او اصل سره کیږی، او کله دده په ضد او نقیض سره، کله خوب درست وی او کله درست نه وی، په دی قول سره هم دا خبره په ښه ډول ثابته سوه چي دا علم لوی لطیف او نازك شی دی او دا تر لمر زیاته روښانه ده چي نازك شی اعلی او افضل وی.

## د کومو خلکو څخه د خوب د تعبیر پوښتنه کول منع دی

امام جعفر صادق ﷺ وایي چي دڅلور قسمه خلکو څخه دتعبیر دخوب پوښتنه کول نا روا دی: ۱: د بی دینو خلکو څخه، کوم چي دشریعت پابنده نه وی ځکه چي دخوب دتعبیر دنیکو او بابرکته خلکو څخه پوښتنه کول پکار دی او بی دینه خلك دخدای د نافرمانی په وجه د دروازی څخه شړل سوی وی په دوی کی خیر او برکت نه وی. ۲: دښځو څخه، ځکه چي په تعبیر د خوب کی لوی عقل او پوهه پکار وی او دا ظاهره ده چي ښځی ناقص العقل وی په دی وجه په شریعت محمدی کی ددوو ښځو ګواهی دیوه سړی قایم مقامه ګرزول سوېده. ۳: دجاهلانو

ښخه، کوم چي ددیني علم ښخه پوره خبر نه وی په دنیوی علومو کی که ښه هم دی رسېدلی وی، ځکه اول ذکر سوی دی چي تعبیر ورکوونکی ته دعلم تفسیر او حدیث او نورو عالم کیدل ضروری دی. ۴: ددښمن ښخه، ځکه چي دښمن هم دخیر او برکت ښخه خالي وی دارنګه ددوی ښخه دا بیره هم وی چي دخوب بد تعبیر وکړی او دا ظاهره ده چي دخوب ښنګه تعبیر وسی هماغسی واقع کیږی نو ځکه ارشاد باری تعالٰی دی: (قضی الامر الذی فیه تستفتیٰن، سورة یوسف: ٤١) ژباړه: یوسفعلیه السلام دجیل خانی انډیوالانو ته وویل ای زما دجیل انډیوالانو دکوم خوب دتعبیر چي تاسو زما ښخه پوښتنه کړېده دغه به زما دتعبیر مطابق په حکم دخدای جل جلاله واقع کیږی.

## په معبر کی د کومو کومو ادابو شرطونه ضروری دی؟

امام ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي تعبیر کونکی ته علاوه دعالم دین کیدو ښخه ددی خبرو هم پابنده کیدل ضروری دی چی دخلکو دطریقو خصایلو عاداتو او احوالو ښخه پوره واقف وی او دالله تعالٰی ښخه همیشه دا توفیق غواړی چي الله تعالٰی دده پر ژبه باندی ښه او د ثواب خبره جاری کړي او دبدو خبرو ویلو او اوریدلو ښخه ځان ساتی ددی لپاره چي دی د: (العلماء ورثة الانبیاء) یعني علماء ربانی او باعمله عالمان دپیغمبرانو وارثان وی، مصداق جوړ سی. امام ابراهیم کرمانی ویلي دی چي تعبیر کونکی ته ددی ادابو لحاظ ساتل ډیر ضروری دی: چي خوب په ډیره هوښیاری اوخاصه توجه سره واوری او دخوب د پوښتنی کوونکی ددین، مذهب او خیالاتو ښخه واقفیت حاصل کړی چي ده ته دا معلومه سی چي پوښتنه کوونکی رښتیا وایي که دروا‌غ ځکه چي نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویلي دی: (اصدقکم رؤیا اصدقکم حدیثا) یعني کوم سړی چي په تاسو کی زیات رښتیا ګویه وی هغه سړی په خوب بیانولو کی هم ستاسو ټولو ښخه زیات رشتونی دی. ابن سیرین ویلی دی چي دتعبیر کوونکی لپاره دا ضروری ده چي کله دی خوب اوری نو دي باید په اوداسه کی وی، که پوښتنه کوونکي دتعبیر کونکی دښمن وی نو محض ددښمنی په وجه دی دده برخلاف تعبیر نه کوی که دخوب تعبیر دسایل لپاره نقصانی وی نو دا تعبیر دی خلکو ته نه وایي. دانیالعلیه السلام ویلی دی چي معبر ته پکار ده چي هوښیار او تقوٰی داره وی، ارام طبع او صاحب علم هم وی او دګناهونو ښخه پرهیز کوی او ښه وخت چی دده ښخه د تعبیر پوښتنه وسی نو دی هوښیار او متوجه وی او دسایل ښخه سوال په کمال احتیاط سره اوری او دا هم معلومه کړی چي ښوك بادشاه وی یا ادنٰی رعیتی، سردار دقوم دی او که سپك جاهل، غریب دی که امیر، ښځه ازاده ده که مشغوله، او دخوب دسایل ښخه دي پوښتنه وکړي چي په موسم دګرمی کی لیدلی دی که په موسم دیخ کی، کله چي دا ټول امور معلوم کړی نو دهری یوی خبری تعبیر دی ددی علم داستاذانو داصولو اوقواعدو مطابق وکړي دغسی بلا سوچ اوفکر دی دخپل طرف ښخه هیڅکله تعبیر نه ورکوی. ابن سیرین سره ددی چي دعلم

تعبير يوازينى امام وو ليکن چي دکوم خوب تعبير به يي په فکر کی رانغی دهغه تعبير به يي هيڅکله نه بيانوی، ابو حاتم اصمعی دابو المقدام څخه روايت کوی چي امام ابن سيرين ويلي دی: معبر ته پکار دی چي اول دپوښتنه کوونکی خبره په ښه شان سره واوری او په تعبير کی يي ښه فکر وکی که يوه خبره سخته وی ليکن معنٰی يي صحيح وی نو څنگه چي په يو بل ډول سره ددی دتعبير احتمال وی دهغه مطابق دی دغه وخت تعبير ورکړی او که دخبری په منځ کی څه زيات او بی کاره مضمون وی نو دغه زايد مضمون دي ځنی جلا کړی او د اصل خبری تعبير دی ورکی، که ټول خوب بی جوړه او مختلف وو او ددی څه مضمون ديو بل سره نه يو ځای کيدی نو داسی خوب دی پريشانه خوب بولی او تعبير دی نه کوی، که معبر ته دسائل دخوب تعبير معلوم نه سی نو په داسی حالاتو کی دی دسائل په نوم سره تعبير وکړی يا دی دده دطبعيت، بيان، خبرو، ښايست او بدرنگوالی، رښتيا او درواغ او بل يو شی محفوظ وساتی تعبير دی معلوم کړي، که دخوب تعبير يي بد ګڼی نو سايل ته دی نه وايي او دده څخه دی پټ ساتی.

امام ابراهيم کرمانی ويلي دی چي معبر دی په قبرستان کی دخوب تعبير نه کوی، دانيال عليه السلام ويلي دي چي معبر ته پکار دی چي دسائل يا دسائل دپلار پر نوم فکر وکړی که دسائل يا دسائل دپلار نوم دپيغمبرانو دنومونو څخه وو نو دجذر او فال په حساب سره دی ددی تعبير په خير او بشارت او خوښی سره کوی او که نوم يي ناکاره وو نو په شر او فساد سره دی کوی. ابن سيرين ويلی دی چي معبر ته پکار ده چي دټولو څخه اول دسائل نوم او مرتبه مذهب او سيرت، خصلت اوعقل فهم معلوم کی بيا دا وګوری چي خوب يي دورځی ليدلی دی يا دشپی او دا دي په نظر کی ساتی چي سائل دپوښتنی په وخت څه حرکت کوی اوخوب په څه طريقه بيانوی او بيا دی موسم مياشتی او ورځ معلومه کړی، وروسته دی يو ځای ولاړ سی ددی خوب تعبير دی په په غور او سوچ سره معلوم کړی او ودی وايي، لکه طبيب چي د ناجوړ په علاج کی تجربه کاروی.

## خوب ليدونکی ته کوم اداب او شرائط پکار دی

ابراهيم کرمانی ويلی دی چي خوب ليدونکی ته پکار ده چي ده څنگه خوب ليدلی وی بعينه يي هغه رقم معبر ته بيان کړی کمی او زياتی دی هيڅکله نه په کښی راولی او نه دي درواغ وايي او نه دی ددرواغو خوب جوړوي ځکه چي په جيل خانه کی يوسف عليه السلام چي هغو دوو قيديانو ته دخوب تعبير ور وښووی نو صاف صاف يي ورته وويل: چي دکومی خبری تاسو دواړو زما څخه تعبير غوښتی وو دغه به زما دتعبير مطابق په حکم دخدای پاك واقع کيږی، خوب ليدونکی ته پکار ده چي دی رښتنی او ديانتدار وی، که خوب ليدونکی دڅه بيری يا ترهی خوب ووينی چي دی ځنی وبيريږی نو ده ته پکار ده چي دری واری آية الکرسی ووايي اوپر ځان دی چوف کی او دا کلام دی وايي (اعوذ برب موسٰی وابراهيم من شر الرؤيا التی رأيتها من منامی ان يضرنی فی دينی ودنياى

ومعيشتی عز جاهك وجل ثنائك ولا اله غيرك) ژباړه: زه دموسی عليه السلام او ابراهيم عليه السلام په رب سره پناه غواړم د دی خوب دبدوالی څخه کوم چي ما په خپل خوب کی ليدلی دی چي داسی نه وی ماته څه ضرر اونقصان را ورسوی زما د دين او دنيا په کارونو کی او زما په روزګار کی الهی ستا مرتبه دټولو څخه لويه ده او ستا ثنا ډيره لويه ده او ستا څخه ماسوا بل دعبادت لائق نسته. ددی څخه وروسته دی دوه رکعته نفل لمونځ وکړی او صدقه دی وکړی نو ددی خوب د نقصان څخه به محفوظ پاته سی.

## شيطان په خوب کی په کوم کوم شکل نه سی راتلای

امام جابر مغربی ويلی دی چي شيطان په ټولو خوبونو کی خامخا دخل کوی او خپل ځان دټولو شيانو په شان جوړوی ليکن دخدای تعالی دپيغمبرانو، فرشتو، آسمان، لمر، سپوږمی، ستورو په شان نه سی راتلای ځکه چی که ده ته دخدای دطرف څخه دا اختيار حاصل سی نو دی به خپل ځان ددی شيانو په شان جوړوی او ښکاره کيږی به، نو په ټولو بنی آدمو کی به فتنه او فساد خپروی او خلک به ګمراه کوی ځکه چي دی به کله ځان د پيغمبرانو په صورت کی ظاهروی او صاحب خوب ته به وايي چي زه ستا څخه ډير خوشحال يم ته چي څه غواړی کوه يي او چاته به وايي چي زه ستا پيدا کوونکی يم ما ستا ټول ګناهونه معاف کړی دی او ته می بخښلی يي او نور... نو داسی به د الله تعالی بندګان په قسم قسم خبرو ګمراه کوی.

## د ابن سيرين د علم تعبير متعلق بعضی اقوال او قصی

ابن سيرين ويلی دی چي په خوب کی يوه عجيبه خبره دا ليدل سوی ده چي بعضی وخت په خوب کی يوه دخير او ښيګڼی يا شر او افت خبره ليدل سوی وي او چي بيدار سی نو بعينه دغه رقم ده ته خير او راحت يا شر او افت ورسيږی، يوه ددی څخه هم زياته عجيبه خبره ليدل سوی ده هغه دا چي ډير خلک بيکاره ذهن او ژبه ور وی چي په بيداری کی يو معمولی شعر هم په ښه ډول سره نه سی ويلای اونه يي يادولای سی، ليکن په خوب کي يې دغه خراب ذهن او ژبه ور په ښه رقم وايي او يادوي يې او بيا دبيداری په حالت کی يې هم په ښه طريقه سره اوری، علی هذا القياس ډير جاهلان او نالوستي خلک په خوب کي داسی د حکمت خبری او ښه ښه الفاظ وايي چي حاکمان او عالمان يې هم نه سی ويلی او چي بيدار سی نوبيا دغه خبری دوهم واری په ويښه وايي.

### قصه

وايي چي يو سړی دابن سيرين څخه پوښتنه وکړه چي ما په خوب کی دلمانځه اذان ويلی دی ابن سيرين وويل چي ته به اسلامی حج وکړی، دغه وخت يو بل سړی راغی هغه هم دا پوښتنه وکړه چي ما ځان په خوب کی د لمانځه لپاره اذان کوونکی وليدی نو ده ته يي وويل چي تابه خلک دغلا په تهمت ونيسي نو شاګردانو پوښتنه وکړه چي دا دواړه خوبونه خو په ظاهره يو رقم دی ليکن تعبير يي تاسو ديو بل څخه خلاف وکړی؟ دوی وويل د اولنی سړی شکل او

صورت ماته دنیك او صالح غوندي په نظر راغی نو ما ورته وویل چي ته به حج وکړی په موجب ددی آیت: (ثم اذن مؤذن ایتها العیر انکم لسارقون، سورة یوسف: ۷۰) یعنی یو اواز کونکی دا اواز وکړی چي ای دقافلی خلکو: تاسو ضرور غله یاست.

ابن سیرین ویلی دی چي دخوب دوه قسمه دی، اول: دخوب حکم کوم چي صحیح وی، دوهم: اضغاث او احلام، دغه خوب پریشانه او ګډوډ وی او اضغاث دوښو خلاصی ګیډی ته ویل کیږی یعنی لکه څنګه چي دوښو ګیډی په باغونو کی ګډی وډی او خوری وری پرتی وی دغه رقم اضغاث احلام هم پاشلی او خپاره وی، بیا دا اضغاث او احلام (ګډوډ خوبونه) پر دری قسمه وی: ۱: بعضی دطبیعت او هوا د غلبی څخه وی ۲: بعضی دشیطان دنمائش څخه وی ۳: بعض دنفساني خبرو څخه، دا دری قسمونه دی.

ابن سیرین ویلی دی چي کله دخوب لیدونکی څخه خوب هیر سی او معبر دغه خوب معلومول غواړی نو پکار دی چي خوب لیدونکی ته ووایي ته خپل لاس پر خپل یو اندام باندی کښیږده، که پر سر یي کښیښودی نو په خوب کی به یي سمساره لیدلی وی او که پر پزه یي لاس کښیښووی نو دغره لمن به یي لیدلی وی، او که پرمخ یي لاس کښیښودی نوده به سرسبز فصل یا شین ځنګل لیدلی وی اوکه پرخوله یي لاس کښیښودی نو ده به چینه لیدلی وی، او که پر سترګو یي لاس کښیښودی نو ده به دترخو اوبو چینه لیدلی وی او که پر غوږ یي لاس کښیښووی نو ده به غار لیدلي وی، او که پر ږیره یي لاس کښیښودی نو ده به ګیاه لیدلی وی او که پر ګیډه یي لاس کښیښودی نوده به په خوب کی دریاب لیدلی وی، او که پر عورت یي لاس کښیښودی نو ده به په خوب کی غیر اباده ځمکه لیدلي وی، اوکه پر اوږه یي لاس کښیښودی نو ده به کوټه یا بله نظاره لیدلی وی، او که پر مړوند یي لاس کښیښودی نو ده به څه میوه داره درخته لیدلی وی، او که پر ګوتو یي لاس کښیښودی نو ده به ددرختی کوچنی کوچنی ښاخونه لیدلی وی، او که پر مقعده یي لاس کښیښودی نو ده به ټټی لیدلی وی، اوکه پر زنګون یي لاس کښیښودی نو ده به یوه لوړه غونډۍ لیدلي وی، او که پر پنډۍ یي لاس کښیښودی نو ده به بی میوی درخته لیدلی وی.

ابن سیرین ویلی دی چي په کوم خوب کی بنده خدای ﷻ بی مثله او بی مثال ووینی ددی خوب څخه زیات بابرکته بل خوب نه وی، جبرئیل عليه السلام په خوب کی خوش طبع او په ورین تندی لیدل پر دښمن دفتحیاب کیدو علامت دی که ددی بر خلاف وو نو درنج او غم نښانه ده، په خوب کی عزرائیل عليه السلام پر اسمان او ځان پر ځمکه لیدل ددی خبری علامه ده چي خوب لیدونکی به دخپلی مرتبی څخه معزول سی، فرشتي دیو بل سره په جنګ لیدل ددی خبری نښه ده چي خوب والا به په ګناهونو اوعذاب الهی کی ګرفتار سی، په خوب کی صدیق اکبر رضي الله عنه لیدل دخوشحالی او راحت علامت دی او عمر فاروق رضي الله عنه لیدل ددی خبری علامت دی چي خوب والا به عادل او انصاف والا وی، که دوی یي په یو ښار کی خوشحاله ولیدل نو ددی خبری علامت

دی چي په دی ښار کی به دعدل او انصاف ظهور وی، عثمان ﷺ په خوب کی لیدل ددی خبری علامت دی چي خوب والا زاهد عابد او پرهیزگاره دی او په یو ښار کی د ده خوشحاله لیدل ددی خبری نښه ده چي ددی ښار خلک به دقران کریم او نورو علومو حاصلولو شوقمند وی، علی ﷺ په خوب کی خوشحاله لیدل دصاحب خوب دبهادر او سردار کیدو نښه ده، او په یو ښار کی دوی خوشحاله لیدل ددی خبری نښه ده چي ددغه ځای خلک به عدل او انصاف والا وی لیکن کله کله به په دوی کی جنګ او فسادات ښکاره کیږی، صحابه کرام ﷺ په خوب کی لیدل ددی خبری علامت دی چي خوب والا به ددین اسلام پر لاره باندی مضبوط وی او په مسلمانانو کی به رښتنی مشهور سی او په دیانتداری کی به هم معروف سی، امام حسن ﷺ اوحسین ﷺ په خوب کی لیدل ددی امر علامت دی چي خوب والا به خیر او راحت ویني او په اخر کی به شهید مړ سی، په خوب کی داوربشو اوړه صحیح لیدل ددین دروغتیا علامت دی او دغنمو اوړه لیدل نفع بخښونکی او دتجارت دمال حاصلیدو نښه ده او د باجری اوړه لیدل دلږ مال دحاصلیدو علامت دی.

## د دانیال ﷺ اقوال

دانیال ﷺ ویلي دی چي خوب په اصل کی پر دوو خبرو مبنی دی، اول: هغه خوب چي د حقیقت د حال څخه خبر ورکړی، دوهم: هغه خوب چي دهر یو کار دانجام خبر ورکوونکی دی، بیا ددواړو قسمو څخه څلور قسمونه راوزی: اول: آمر خوب: (حکم ورکوونکی خوب) دوهم: زاجر خوب (منع کوونکی خوب) دریم: منذر خوب (بیروونکی خوب) څلورم: مبشر خوب (خوشخبری ورکوونکی خوب). دانیال ﷺ ویلی دی چي خوب لیدل او ددی هیریدل دڅلورو وجهو څخه کیداي سي: اول دکثرت ګناه په باعث خوب یاد نه پاته کیږی، دوهم دمختلفو اعمالو په وجه سره خوب هیریږي، دریم دنیت او اعتقاد دکمزوری په وجه سره خوب هیریږی، څلورم دطبع داختلاف په وجه سره یعنی کله چي دی دخپلو حالاتو څخه بدل سی نو په دی حالاتو کی صاحب خوب خپل خوب هیروی، دانیال ﷺ ویلی دی چي کوم سړی د سهار څخه واخلی تر غرمی پوری دخوب دتعبیر پوښتنه کوی دده تعبیر به په اقبال او بهتری سره ورکول کیږی او که دزوال څخه وروسته پوښتنه کوی نو تعبیر به یي په شر او فساد سره کیږي، دارنګه دوی ویلي دی چي دوریځي او باران په ورځ او دلمر دختلو او لویدو په وخت کی دتعبیر پوښتنه ناجائز ده، دانیال ﷺ ویلي دی چي کوم مومن بنده خدای تعالٰی بی مثله او بی مثاله په خوب کی ویني لکه چي دقرآن په آیاتونو او احادیث نبویه کی ذکر دی نو ددی تعبیر دادی چي الله تعالٰی به دي خوب والا ته خپل دیدار عطاء کړی او دده حاجتونه به هم پوره کړی، که داسی خوب ویني چي دی ولاړ دی او الله تعالٰی ویني نو په دی کی به دلیل دده صلاحیت رښتیا او سلامتی دنفس وی اودی به د مغفرت لپاره مخصوص وی او که دی ګناه ګار وی نو توبه به وباسی.

## دامام جعفر صادق رضی الله عنه اقوال

امام جعفر صادق رضی الله عنه ویلی دی چي داوړو چانولو دغلبیل تعبیر په دی څلورو شیانو کیدای سي: (۱) نیك سړی (۲) خرابه ښځه (۳) ناکاره مزدور (۴) یو څه نفع، په قول دامام جعفر صادق په خوب کی نغری یا انګیټی لیدل دمزدوری ښځی یا دمنځی تعبیر ظاهروی، لمر په خوب کی لیدل په اتو وجهو کیدای سی: اول: خلیفه، دوهم: غټ بادشاه، دریم: رئیس، څلورم: بزرګ عامل، پنځم: عادل پاچا، شپږم: د رعیت فایده، اووم: دسړی لپاره ښځه او دښځی لپاره سړی، اتم: یو نیك او روښانه کار، دغه رقم ددوی دا هم قول دی چي که یو سړی په خوب کي خپل ځان ولیدی چي لمر ته یي سجده وکړه نو ددی تعبیر دادی چي پاچا به ده ته عزت ورکړی او خپل مقرب به یي جوړ کړی او دده کاروبار به پر ترقی سی، هنداره په خوب کی لیدل په شپږو وجهو وی: (۱) ښځه (۲) لور (۳) بادشاهي (۴) یار و دوست (۵) شریك (۶) ښه کاروبار، دا رقم ددوی قول دی چي که یو غریب سړی په خوب کی هنداره ووینی نو ددی خبری علامت دی چي دی به دیوی ښځی سره واده وکړی اوبزرګی به پیدا کړی اوکه یوه انجلی هنداره ووینی نو تعبیر یي دادی چي دي ته به داسی ښه خاوند ورسیږی چي دا به ورسره په عزت او ابرو ژوند تیر کړی، په خوب کی دلرګیو ځیرلو آره لیدل په درو وجهو ده: (۱) فرزند (۲) خور یا ورور (۳) شریك اوهم سفر، په خوب کی دقلعی لیدل پر درو وجهو مبنی وی: (۱) نفع (۲) خدمتګار (۳) د کور اسباب، په خوب کی امرود خوړل پر پنځو وجهو مبنی وی: (۱) حلال مال (۲) مالداری (۳) ښځه (۴) مراد موندل (۵) نفع حاصلول.

## دامام کرمانی رحمه الله علیه اقوال

امام کرمانی ویلي دی چي که چا دا خوب ولیدی چي یو سړی دده دکور څخه بالښت واخلی دبل کور ته یي یوسي نو تعبیر یي دادی چي یو سړی به دده ښځه یا مینځه تښتول غواړی او وریسی به وی، دډبری یا چونی پر پوړیو دختلو تعبیر دادی چي خوب لیدونکی به قدر او منزلت پیداکی شرف او بزرګی به حاصله کړی او که خوب والا خپل ځان ولیدی چي اسمان ته ختلی دی او بیا وروسته رانغی نو ددی خبری علامت دی چي دده اجل او مرګ به نژدی راغلی وی او که وروسته راغلی نو دا ګڼل پکار دی چي خوب والا به سخت ناجوړه سی لیکن په اٰخر کی به شفا پیدا کوی، کرمانی ویلي دی چي په خوب کی دباغ څخه مراد مالداری او صاحب جمال سړی وی که څوك داخوب ووینی چي په پسرلی یا دګرمی په موسم کی دی خوشحاله ګرځی او په باغ کی قسم قسم میوی دی او رنګارنګ ګلونه دی او اوبه پکښی بهیدلی او دی په باغ کی ناست وو نو تعبیر یي دادی چي خوب والا به دشهادت په مرګ مړ سی ځکه چي داټول صفتونه دجنت دی که څوك نبی کریم صلی الله علیه وسلم په ښار یایو ځای کی ووینی نوتعبیر یي دادی چي په دغه ښار یا ځای کی به نعمت فراخ سی او ددغه ځای پر خلکو به نعمت فراخ سی او تسلی دخاطر به ورته حاصله سی.

که یو سړی اسرافیل علیه السلام غمناك ووینی او دغمناکي په حالت کی یي شپیلۍ وهونکی ووینی

نو دا ددې خبرې علامت دی چې په دغه ملك کې به مرګ ډیروی اوظالمان به هلاك سی، که یو سړی په خوب کی دا ووینې چې ده دچا مال دمال والا په رضامندی سره دخدای په لاره کی خرڅ کړی نو ددی دخیر اوشر تعبیر به دصاحب مال طرفته کیږی، که یو سړی په خوب کی دا ووینې چې ده دیوه سړي تیبونه رودل نو تعبیر یي دادی چې خوب والا به ناجوړه سی اوکه دده ښځه حامله وی نو هلك به یي پیدا سی، کرمانی ویلی دی چې که څوك په خوب کی دا ووینې چې دده زړه درد کوی نو دا ددی خبری علامت دی چې دده مال به زیات سی او که ووینې چې دده دزړه سترګی خلاصی سوی دی نو دا ددی خبری نښه ده چې خوب والا به ددین اودنیا دکارونو حریص وی او که دده دزړه څخه وینه وتله نوتعبیر یي دادی چې دی به دبدو کارونو څخه توبه وکړی او دخدای طرفته به رجوع وکړی، که ووینې چې دده دزړه څخه ژړی اوبه وځی نو تعبیر یي دادی چې دی به مریض سی او که ووینې چې دده پر زړه باندی څه خفګان یا زخم وی نو تعبیر یي دادی چې دی به بی غمه سی او که ووینې چې دده دزړه څخه ملغلری راوزی او هغه ملغلری ده دخولی څخه وغورځولي نوتعبیر یي دادی چې دخوب خاوند به کافر سی او که ووینې چې ملغلری ده دځمکی څخه پورته کړي او ویي خوړی نو تعبیر یي دادی چې دی به مسلمان سی که په خوب کی څوك منګی یا منګوټی ووینې نو په مینځه یا خادم سره یي تعبیر کول پکار دی اوکه ووینې چې ده منګی یا منګوټی اخستی دی یا جوړ کړی دی نو تعبیر یي دادی چې دی به مینځه یا غلام واخلی یابه مزدور ورته حاصل سی، د مږز په خوب کی لیدل دمال او رزق علامت دی په خوب کی، دخره په نظر راتلل دمال نښه ده.

## د جابر مغربی رحمة الله علیه اقوال

جابر مغربی ویلي دی چې که چا په خوب کی دا ولیدل چې دی پر یو کلني اوښ ناست دی نو ددی خبری دلیل دی چې دی به غمګین وی او که ووینې چې دده د اوښ دیوه اندام څخه وینه بهیدله نو دا ددی خبری نښه ده چې دی به په قدر دوینې سعادت او نعمت دنیوی حاصل کړی او که ووینې چې ده د اوښ مهار راکشوی نو تعبیر یي دادی چې د یو فرمانبردار سړی سره به جګړه وکړی، په خوب کی بادام لیدل دمال علامت دی لیکن که بادام د پوستکی سره وی نو تعبیر یي دادی چې مال به ورته په یوڅه رنځ او سختی سره په لاس ورسی او که بادام بیله پوستکی ووینې نو دا ددی نښه ده چې مال به په اسانی په لاس ورسی که څوك ووینې چې په خوب کښی یي دبزی غوښه خوړه نو ددی خبری نښه ده چې دی به ناجوړه سي او بیا به جوړسي په خوب کی زړه پرده لیدل دپاچا او رعیت دواړو لپاره ښه نښه نه ده او که چا په خوب کی ولیدل چې دده پر مخ ګرزونه پراته دی دا ددی خبری نښه ده چې ده ته به رنځ او غم ورسیږی، په موجب ددی آیت: (ووجوه یومئذ علیها غبرة ترهقها قترة، سورة عبس: ٤٠ – ٤١) یعنی ډیر مخونه به په دغه ورځ داسی وی چې ګردونه به پر پراته وی او توروالی به پر خپور وی. که څوك په خوب کی ووینې چې دده ورك سوی یا غائب سړی دسفر څخه وروسته راغلی دی نو دا ددی امر دلیل دی

چي دده بندکار به ور خلاص سی او که دا ووینی چي دده غائب او ورك سوی سړي خفه او غمناکه وو نو داسی وګڼه چي ده ته به تکلیف ورسیږی او که دا ووینی چي دده غائب او ورك سوی سړی سپور دسفر څخه وروسته راغلی نو تعبیر یي دادی چي دغه غائب او ورك سوی به ژر دمال اونعمت سره دسفر څخه وروسته راسی او که غائب یي پیاده او عاجزه او لغړ ولیدی نوددی خبری علامت دی چي په لاره کی به دغه غائب غله لوټ کی اومفلس به ورته راسی، که په خوب کی ووینی چي دی دعنابو درختی جمع کوی نو ددی خبری ښه ده چي دی به مال په تکلیف سره حاصل کړی، که څوك دا خوب ووینی چي دی په معروف اومشهور، شین او ښایسته او تازه ځای کی پاته سوی دی نو دا ددی خبری ښه ده چي صاحب خوب به ددغه ځای څخه ډیره نفع اوخیر حاصل کړی، عقل اوروح په خوب کی لیدل ددی خبری ښه ده چي دمور او پلار دیدار به وکړی.

## دامام اسماعیل بن اشعث اقوال

اسمٰعیل بن اشعث ویلي دی چي که څوك په خوب کی ووینی چي دی پخپل کور کی په مناسب ځای کی تشی بولی کوی نو د دې خبری علامت دی چي دی به خپل مال په خپل اهل او عیال ددوی دخوراك څښاك لپاره خرڅ کړی لیکن ددې بدله به ده ته ورکول سی لکه چي خدای پاك ویلی دی: (وما انفقتم من شیء فهو یخلفه وهو خیر الرازقین، سورة سبا: ۳۹) یعنی تاسو چي څه هم پخپل ځان خرڅ کوی الله تعالٰی به اجر درکوی اوهغه ښه رزق ورکوونکی دی. په خوب کی د آسمان څخه دباران په شان اور اوریدل ددی ښه ده چي ددی ملك پر باچا به اسمانی بلا او مصیبت نازل سی او په دغه ملك کی به ډیره خونریزی وسی، که څوك په خوب کی ووینی چي داسمان څخه واوره اوریدل نو دده دطاعت کار به دالله تعالٰی په بارګاه کی قبول وی لکه چي ارشاد باری تعالٰی دی: (بقربان تاكله النار، سورة آل عمران: ۱۸۳) یعنی یوه قربانی چي ویي خوری اور. او که دا ووینی چي د اسمان څخه اور را غورزي لیکن څه شی یي ونه سوزی نو ددی تعبیر دا دی چي خوب لیدونکی ته به د الله تعالٰی عذاب ورسیږی یا به دبادشاه دطرف څخه ده ته څه بیره او خطر پیښ سی. که څوك خوب ووینی چي ده داور عبادت کوی نو داسی دی وګڼی چي د پاچا ددربار سپاهی به جوړ سی او که ده دغه اور داور دسکروټو په صورت کی لیدلی وی نو تعبیر یي دادی چي حرام مال به ډیر جمع کړی که څوك په خوب کی ووینی چي داسمان څخه د ډبرو باران وسو نو تعبیر یي دادی چي ددغه ځای پر خلکو به یوه سخته بلا اوعذاب الٰهی نازل سی په موجب ددی آیت: (وامطرنا علیهم حجارة من سجیل، سورة الحجر: ۷٤) یعنی موږ واورولی پر هغو باندی دکاڼو ډبری. که څوك ووینی چي داسمان څخه غنم او اوربشی اوریږی نو دا ددی خبری ښه ده چي په دغه ملك کی به قسم قسم نعمتونه بی شماره او بی قیاسه سی او خلکو ته به په امن او امان او فراخی سره روزی حاصله سی.

**بسم الله الرحمٰن الرحيم**

دالله تعالٰی شکر دی، کوم چي يو بی نيازه قادر دی مالك او صاحب دجلال او ژوند دی، خالق دی دمخلوق او رازق دی، په زړونو عالم دی، داسمان او روښانه ستورو خالق دی، په غيبو عالم او په رازونو پوه دی، ظاهر او باطن دی اول او اٰخر دی، او درود او سلام دی وی پر محمد ﷺ باندی چي دټولو انبياوو عليهم السلام سردار او سند او دافتخار وړ دی، ابو الفضل حسين بن ابراهيم محمد تقليسی داسی بيان کوی کله چي زه دکتاب صنعة الابدان دتصنيف څخه فارغ سوم نو ما د تعبير په اصلی کتابونو کی نظر وکړی کوم چي خلکو جوړ کړی وو ماته يو کتاب هم جامع او واضح حاصل نه سو چي په کوم کی ددی علم د استاذانو د اقوالو څخه دهر يو خوب تعبير په دليل او سند سره بيان سوی وی او د خوب دليدلو طريقه دحروف تهجی په ترتيب سره په تشريح او تفصيل پکښی ذکر وی، کله چي په دی طرز سره يو مفيد کتاب حاصل نه سو نو ما په دی باره کی کوشش وکی او تکليف می تير کی دا کتاب می جوړ کی، او داکتاب مي دسلطان المعظم په ستر دربار کی پيش کړ کوم چي شهنشاه اعظم دعرب او عجم دپاچاهانو پاچا دی د ټولو ټولګيو دګردنونو مالک دی ددنيا عزت دغازيانو فريادرس دمشرکانو قاتل دروم او دمثق او شام او فرنګستان پاچا دی ابو الفتح قزل ارسلان بن مسعود ناصر امير المؤمنين، الله تعالٰی دی دده عمر اوږد کی، ما هر قسم خوبونه دحروف معجم په طرز په روانه فارسی کی جمع کړه او دهغو کتابونو څخه می وليکل کوم چي په دی نفيس علم کی نهايت مشهور او معروف دی چي نومونه يي دادی: ۱: کتاب وصول د دانيال عليه السلام، ۲: کتاب تقسيم، دجعفر صادق رضي الله عنه ۳: کتاب جامع، دمحمد بن سيرين ۴: کتاب دستور د ابراهيم کرمانی ۴: کتاب ارشاد، دجابر مغربی ۶: کتاب تعبير، د اسمٰعيل بن اشعث ۷: کتاب کنز الرؤيا، دمامونی ۸: کتاب بيان التعبير، دعبدالروس ۹: کتاب تعبير، دحافظ ابن اسحاق، ۱۰: کتاب حمل الدلائل والمنامات ۱۱: کتاب مبادی التعبير ۱۲: کتاب ايضاح التعبير دفخری ۱۳: کتاب کافی الرؤيا ۱۴: کتاب تعبير طاووس ۱۵: کتاب مفرح الرؤيا ۱۶: کتاب تحفة الملوك ۱۷: کتاب منهاج التعبير، دخالد اصفهانی، ۱۸: کتاب مقدمة التعبير ۱۹: کتاب حقائق الرؤيا ۲۰: کتاب وجين دمحمد بن شاهويد ۲۱: کتب متفرقه او نور کتابونه کوم چي خلکو په دی علم کی تصنيف کړی دی، دمذکوره بالا جماعت کلام می اختيار کړو، او دهر يوه خوب ترتيب د اول او دوهم او دريم حرف په طرز می په دی کتاب کی په طور دتشريح بيان کړی دی اوما ددی کتاب نوم (کامل التعبير) ايښی دی ځکه چي په دی علم کی ددی کتاب څخه عمده بل کتاب تر اوسه پوری نه دی تصنيف سوی، او انصاف دادی چي ددی کتاب هر يو سړی ته ضرورت دی اوکوم سړی چي دی تعبير نامی ته ګوری هغه به دنورو ټولو تعبيرونو څخه بی پروا وی، او دی عاجز داستاذانو په فرمائشونو کي دشپږو کسانو فرمائشونه زباني ياد کړي دي کوم چي هريو په خپله زمانه کي يوازينی عالم دزماني اوحکيم دوخت تير سوی دی اوپه خپله زمانه کي نجيب النسب دی: (۱): دانيال عليه السلام (۲): امام جعفر صادق (۳): محمد بن سيرين

رحمة الله عليه (۴): جابر مغربي رحمة الله عليه (۵): ابراهيم كرماني رحمة الله عليه (۲): اسماعيل بن اشعث رحمة الله عليه ، دټولو ځخه اول مى چي دكومو شيانو وتعبير بيانونكو ته سخت ضرورت دى، هغه مى په شپاړسو فصلونو كي بيان كړي دى او هره يوه خبره مي په خپل ځاى بيان كړي ده، چي لوستونكو او ازده كونكو ته اساني وي ترڅو څه خبره په دوى كي پټه پاته نسي، ان شاء الله تعالىٰ، او الله تعالىٰ بهتر او ښه عالم دى، د كتاب ترتيب په لاندي ډول دى:

اول فصل دخوب مزاج پيژندل، دوهم فصل دخوب دقسمونو پيژندل، دريم فصل دنفس اوروح په بيان كي، ځلورم فصل دخوب دسموالي په پيژندلو كي، پنځم فصل درښتينى او دروغجن خوب په پيژندلو كي، شپږم فصل دخوبونو دفرق پيژندو په بيان كي، اووم فصل د متفرقو خوبونو په پيژندلو كي، اتم فصل دعلم جفر او فال په پيژندلو كي، نهم فصل دهيرو سوو خوبونو په پيژندلو كي، لسم فصل دجاهلانو دقول مطابق دخوب دپريښولو په بيان كي، يوولسم فصل دخوب د حالت په پيژندلو كي، دوولسم فصل دشرط او ادب دتعبير په پيژندلو كي، ديارلسم فصل دپوښتنه كونكو په اقسامو كي، څوارلسم فصل دتعبير دطريقو په پيژندلو كي، پنځلسم فصل دهغه مسئلو په پيژندلو كي دكوم چي تعبير برعكس وي، شپاړسم فصل دحق سبحانه تعالىٰ ددېدار په تعبير كي او دفرشتو، پيغمبرانو، د زيارت په بيان كي، دا ټول فصلونه په ترتيب سره بيان سوي دي، دخوبونو دتعبير طرز اوطريقه موږ مخكي بيان كړي ده ، يعني كه دخوب اولنى حرف الف او ي وه نوپه حرف الف يايي كي تلاش كوى، اوكه حرف اول الف او تا وه نو په حرف الف او تا كي يي پيدا كوى، اوكه اولنى حرف الف او يا ي يا الف او ميم وه نو دا ترتيب دنورو حروفو په شروع كي په نظر كي ساته چي دخوبونو راوستل اسان سي او پر يو هوښيار دا طريقه پټه پاته نسي، په دي كتاب كي دتاويل سره نظر كول پكار دى او موږ دحق سبحانه وتعالىٰ ځخه ددې كتاب دختمولو توفيق غواړو، او درب الارباب ځخه د دواړو جهانونو دثواب اميد لرو او الله تعالىٰ ښه پوه دى.

## د علم تعبير د فضيلت بيان

دا خبره ياده ساتى چي علم تعبير ډير لوى او شريف علم دى او حق سبحانه وتعالىٰ دا علم يوسف عليه السلام ته وركړى وو ځكه چي په قران كريم كى ارشاد دى: (وكذالك مكنا ليوسف في الارض ولنعلمه من تاويل الاحاديث، سورة يوسف: ٦) ژباړه: موږ دغسى يوسف عليه السلام ته په مځكه كى ځاى وركړى وو او د خوبونو تعبير مو ورته ښوولى وو. او دابن عباس رضي الله عنه ارشاد دى چي د ټولو ځخه اول الله تعالىٰ چي څه نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته وركړى دى دا يوه فرشته وه چي په خوب كى يي ورته دا وويل اى محمده! تاته دى خوشخبرى وى چي حق تعالىٰ ته د انبياوو په جماعت كى شامل كړى او تاسو يي غوره كړاست دخاتم الانبياء شرف يي درته دركړى ابن عباس رضي الله عنه ويلى دى چي هركله نبى كريم صلى الله عليه وسلم دخوب ځخه راپورته سو نو ده ته يي خوب دنبوت او خير او اقبال وركى، بيا نبى كريم صلى الله عليه وسلم دمعراج ځخه وروسته دوهم خوب وليدى ځكه دحق سبحانه تعالىٰ

ارشاد دی: (لقد صدق الله رسوله الرؤيا بالحق لتدخلن المسجد الحرام ان شاء الله اٰمنين محلقين رئوسكم ومقصرين لا تخافون فعلم ما لم تعلموا فجعل من دون ذالك فتحا قريبا، سورة الفتح: ۲۷) ژباړه: البته رښتونی وښودی الله تعالٰی خپل رسول ته خوب په حقه سره چي خامخا به داخل سی تاسی مسجد حرام ته که الله وغوښتل په امن سره سرونه خروونکی او لنډونکی، نه به بیریږی، پس معلوم وو الله ته هغه چي تاسوته نه وو معلوم پس در بيي کړه مخکی ددی څخه دا فتح چی نژدی ده. او دابراهيم ﷺ په قصه کی بيي ارشاد ويلي دی: (انی ارٰی فی المنام انی اذبحك فانظر ماذا تری قال يا ابت افعل ما تؤمر ستجدونی ان شاء الله من الصبرين فلما اسلما وتله للجبين وناديٰه ان يا ابراهيم قد صدقت الرؤيا انا كذالك نجزی المحسنين، سورة الصافات: ۱۰۲ –۱۰۵) ژباړه: اسماعيله ماته په خوب کی ليدلی بيي چي زه تا په خوب کی حلالوم ته خپله رايه ووايه، جواب بيي ورکړی ای زما پلاره د کم شی چي تاته حکم سويدی پر ځای بيي کړه، ته به ما په صابرانو کی پیدا کړی کله چي دواړو د الله حکم ته غاړه کښېښوده او ابراهيمﷺ اسمٰعيلﷺ پړمخی پری ايستی نو الله تعالٰی ابراهيم ﷺ ته اواز وکی او وي ويل چی ای ابراهيمه! تا خوب رښتونی کی په تحقيق سره موږ نيکانو ته دغسی بدله ورکوو. او په حديث کی داسی راغلی دی چي دا علم ديوسف ﷺ معجزه وه او کوم علم چي دپيغمبری معجزه وی هغه يقينا بزرگ او شريف علم دی او بعض انبياء عليهم السلام کوم چي مرسل پيغمبران نه وه دهغو خوب کرامت وو او هشام بن عروه ﷺ دخپل پلار عروه ﷺ څخه روايت کوی چي دوی ددی آيت په تعبير کی ارشاد فرمايلی دی (لهم البشرٰی فی الحياة الدنيا، سورة يونس: ٦٤) ژباړه: ددوی لپاره ددنيا په ژوند کی خوشخبری ده ددی بشارت څخه دالله تعالٰی مراد دنيکو خلکو خوب دی چي نيك سړی پخپله خوب وينی يا دده لپاره بل څوك خوب ويني دخوب په تصديق کی ډير آياتونه او احاديث موجود دی که ټول ذکر کوو نو کتاب به ډير غټ سی، دانس ﷺ څخه روايت دی چي دنبی کريم ﷺ ارشاد دی (الرؤيا جزء من سبعة واربعين جزء من النبوة) ژباړه: رښتونی خوب ليدل دنبوت شپږ څلويښتمه حصه ده، دا حديث بيي ځکه ارشاد فرمايلی دی چي نبی کريم ﷺ دڅلويښتو کالو وو چي کله پر دوی وحی ربانی راغله او ددرو شپيته کالو په عمر کی وو، چي ددنيا څخه بيي سفر وکی دوحی او د دنيا څخه دسفر په منځ کی درويشت کاله زمانه ده او څه چي به بيي غوښتل په خوب کی به بيي دشپږو مياشتو په موده کی ليدل، دنبوت دشپږ څلويښتو حصو سره بيي نسبت داسی دی، نبی کريم ﷺ ارشاد فرمايلی دی چي ريښتونی خوب دنبوت شپږ څلويښتمه حصه ده، د نورو پيغمبرانو هم دا حال وو چي څه به بيي غوښتل الله تعالٰی به ورته په خوب کی ښودل او دابن عباسﷺ څخه روايت دی چي نبی کريم ﷺ ويلي دی چي رښتينی خوب وحی ده چي ليدونکی دنيك او بد څخه خبر سی چي په دنيا کی مغرور نه سی او د حق امر څخه غافل نه سی، او د ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي کله نبی کريم ﷺ ناروغه سو نو اصحاب ډير غمجن سوه او په خدمت کی حاضر سوه عرض بيي

وکی چي یا رسول الله ﷺ تاسو به موږ ته دبهتری خبر راکوی که خدای مه کړه تاسو وفات سی نو موږ ته به ددین دکار اختیارولو ځوك ترغیب راکوی؟ او د دی د تدبیر کولو خبر به څنګه پیژنو؟ نبی کریم ﷺ ارشاد وفرمایی: (بعد وفاتی ینقطع الوحی ولا ینقطع المبشرات) ژباړه: یعنی زما دوفات څخه وروسته به وحی بندی سی لیکن رشتونی خوبونه به بند نه سی اصحابو کرامو عرض وکی چي یا ! مبشرات څه شی دی؟ دوی وویل (الرؤیا الصالحة التی یراها المرء الصالح او یری له) ژباړه: نیك خوب کوم چي نیك سړی پخپله ویني یا یې دده لپاره بل ځوك ویني. او د ابوسعید خدری رضی الله عنه څخه روایت دی، دی وایي چي ما دنبي کریم څخه اوریدلی دی چي دوی اصحابو ته وویل چي که ځوك په تاسو کی ښه او نیك خوب ویني نو دالله تعالی شکر دی ادا کړی او دغه خوب دی خپلو وروڼو او دوستانو ته هم ووایي او که نیك سړی ناکاره خوب وويني نو (اعوذ بالله من الشیطن الرجیم)، ژباړه: زه د الله جل جلاله پناه غواړم دشیطان ترټل سوی څخه، دی ووایي او دشیطان دشرارت څخه دی دالله تعالی جل جلاله پناه حاصله کړي او دا خوب دی چاته نه وایي چي ده ته نقصان او تکلیف ونه رسوی، او د علی بن ابی طالب رضی الله عنه څخه روایت دی دوی وایي چي کله مومن څه خوب ویني یا دی په خوب کی ویني نوده ته دخوب تعبیر پیژندل واجب دی چي په نیك خوب سره دخوشحالی حصه پیدا کړی او دبد خوب څخه خلاص سی یعنی په دعا او عبادت او صدقو کی مشغول سی، ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي کوم سړی دعلم طلب کوی هغه یې داصل څخه نه ګرځوی او دده قیاس تعبیر نه غواړی او د هغه طریقه معلومه وی لیکن دا علم په اصل کی دخلکو داحوالو سره دصورت او صفت قدر او دیانت همت او ارادت او اوقاتو په اختلاف سره بدلیږی ځکه چي کله تعبیر په مثل او اصل وی اوکله په ضد سره وی کله واقفیت وی او پریشانه کوونکی خوب بی اصله وی.

پوه سه! چي دهر یوه علم عالم دبل علم څخه بی پروا وی لکن دتعبیر بیانوونکو لپاره علم تفسیر قران او دنبی کریم ﷺ داحادیثو او مثالونو دعربو او عجمو او نوادرو او اشتقاق دلغت او الفاظ متداوله کوم چي دیو بل څخه وزی د دې ټولو پیژندل ضروری دی، او دتعبیر بیانوونکو لپاره بزرګ او پاك او ادیب کیدل هم ضروری دی او چي د تعبیر بیانوونکو حالات او خصائل په ښه شان سره پیژنی او هر وخت دحقانی توفیق غوښتونکی وی چي حق تعالی په خپل کرم سره دده راهنمایی وکړی او ژبه یې صالحه او نیکه وی او دا خبری دخدای تعالی دطرف څخه داسی بنده ته ورکول کیږی چي دده طبعیت دټولو خبرو څخه پاك وی او دحرامی ډوډی خوړلو او بی معنی خبرو څخه ساتل کیدونکی وی او دګناهونو څخه ځان وساتی چي په سر رشتهٔ دعلماوو او دانبیاء علیهم السلام په وارثانو کی حساب سی، لهذا پر هوښیارانو دعلم تعبیر پیژندل او ددی دقواعدو زده کول واجب دی ځکه چي دی علم ته هر سړی عام اوخاص جاهل اوعالم حاجتمند دی لیکن هغه خلك دکومو په حق کی چی الله تعالی ویلی دی (اولئك

کالانعام بل هم اضل اولئك هم الغفلون، سورة الاعراف: ۱۷۹) ژباړه: چې هغه خلک کوم چې دحیوانانو په شان دی بلکه ددوی څخه هم زیات ګمراه وی دغه خلک غافلان دی داسی خلکو ته ضرورت نسته او الله تعالٰی ښه پوهیږی.

❋ ❋ ❋

## اول فصل

## دخوبونو دمزاج په پیژندلو کی

موږ په دی فصل کی بیانوو چې دخوب حد او مزاج څه شی دی؟ په دی خبره پوه سه چې حکماوو ویلي دی چې دخوب سبب د تر او لانده بخار وجود دی کوم چې دجسم څخه د دماغو طرفته خیژی دکومو په وجه سره چې ټول حواس او قوتونه ارام پیدا کوی، اوخوراك هضم کیږی او دجسم اخلاط پخته کیږی طبیب دی خوب ته طبیعی وایي، او دبعضو په نزد خوب ددماغ دافعالو څخه دیو فعل نوم دی او دغه طبعی فعل دی ځکه چې په دی سره قوتونو ته ارام رسیږی، خاصا تخیل او قوت فکر ته زیات ارام رسیږی، او دا قوتونه دکومو ذکر چې سویدی، دروح نفسانی حرکات دی او د دوی ځای دماغ دی او په خوب سره ارام وی چې روح نفسانی تسکین پیدا کوی، په دی دلیل چې کوم سړی په تحمیل دعلم کی مشغول وی او دشپی خشکی او ګرمی دده پر مزاج باندی غالبه سی او روح نفسانی په کثرت دحرکت سره سست او کمزوری سی او ددی څخه درد او ناجوړی پیدا سی دده علاج یخ او لانده شیان دی لکه روغن نیلوفر او کوم شیان چې ددی سره مناسب دی، حکماء بیان کوی چې خوب پر دوه قسمه دی یو طبعی بل غیر طبعی مګر طبعي حرارت غریزی قایم ساتی یعنی اصلی ګرمی دننه په نظر کی ساتی لیکن تر څو چې قواوی نفسانی سستی سی، ځکه چې پر دوی ځینی غالبه سی لیکن دغم لیری کول پکار دی اوکوم فضلات چې په جسم کی جمع سویدی ددغه دښودلو په ذریعه یې رفع کول پکار دی، غیر طبعی خوب پر دری قسمه دی، یو جسم دمزاج په فساد سره، دوهم د بعضو اخلاطو یعنی خون، صفرا، او سوداء په زیاتیدو سره، دریم دخرابو خوراکونو په خوراك سره دی یا دیخ او لانده دماغو په افکارو سره، ددوی سرمایه د دماغو دسروي اوځنی نه ظاهریږی په دی وجه ګرمو او خشکو دماغو والا ته خوب کم ورځی، او په ګرم او لندو دماغو کی خوب ډیر وی که یو سړی اعتراض وکړی او وایي چې تاته معلومه ده چې خوب یو فعل دافعال یخ او تر او راحت او قوت متخیله او متفکره دی؟ ددی جواب دادی چې موږ ته دعقل په ذریعه معلومیږی چې کښېنستل تردریدو راحت دی دراحت په وجه سره دبیداری او دماغ دقوتونو تروالی دی په دی وجه یقیناً خوب دافعالو ددماغو څخه یو فعل دی او خوب طبعی او غیر طبعی ضعف قوت تخیل او قوت ذکر او قوت فکر دی، شرح یې دپخوانیو حاکمانو دقول څخه په سند او دلیل سره موږ پخپل کتاب (کفایة الطب) کی په مفصل طور سره بیان کړیده.

## دوهم فصل
## دخوب د قسمونو بيان

دانيال عليه السلام ويلی دی چي خوب په اصل کی دوه شيان دی يو په حقيقت دحال باندی خبروونکی دی، بل دسر انجام دکار څخه اطلاع ورکوونکی دی او ددی دوو بيا ځلور قسمونه دی يو خوب امر کوونکی دی دوهم خوب منع کوونکی دی دريم خوب بيروونکی دی ځلورم خوب خوشخبری ورکوونکی دی، د ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبی کريم صلى الله عليه وسلم ويلي دی چي دخوب دری قسمونه دی: يو دالله تعالی دطرف څخه کوم چي ايماندارو ته بشارت دی، دوهم قسم دشيطان دطرفه دايماندارو لپاره، دريم قسم اضغاث او احلام يعنی پريشانه کوونکی خيالات دی يعنی خوب دری قسمونه دی: يو دالله تعالی دطرف څخه دمومنانو لپاره ددنيا په ژوند کی بشارت دی، دوهم هغه خوب کوم چي خلک په غم کی اچوی، دريم پريشانه خوب دی، جعفر صادق رضي الله عنه ويلی دی چي اصل خوب پر دری قسمه دی يوه ته حکم بل ته متشابه دريم ته اضغاث او احلام وايي، او اضغاث او احلام يعنی پريشانه خوب ځلور قسمه خلک ويني: اول دچا طبعيت چي دفساد طرف ته مائل وی، دوهم هغه چي شراب خوری، دريم هغه چي غلطه سودا پيدا کوونکي خوراك خوری لکه تور بانجڼ، د مسود او مالګه سره يوځای سوی غوښی او کوم شيان چی ددی مشابه دی، ځلورم نابالغ کوچنی داقسم خوب وينی، ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي خوب پر دوه قسمه دی يو خوب دحکم يعنی فيصله کوونکی، کوم چي صحيح وی، دوهم اضغاث او احلام کوم چي پريشانه او پاشلی خوب وی، اضغاث دګياه پاڼو ته وايي يعنی ګياه چي څنګه په چمنونو کی ګډه وډه او پريشانه وي، دغه خوب هم دری قسمه دی: بعضی دطبيعت او خواهش په غلبه سره او بعضی دشيطان په نمائش سره او بعضی دنفس په خپلو خبرو سره وی، او دا دری سره قسمونه صحيح نه وی، کرمانی رحمه الله ويلی دی چي خوب په دری قسمه دی يوقسم دالله تعالی دطرف څخه بشارت دی دوهم قسم دشيطان وسوسه ده، دريم هغه خبره ده کومه چي په خيال کی پيښه سی او دشوق په وجه سره هغه په خوب کی ويني، رښتونی خوب د فرشتی په صورت کی وی چي دکولو شی دلوح محفوظ څخه ورته ښکاره سی، لهٰذا کوم سړی چي خوب ووينی او هير يي کړی تعبير بيانوونکی دی په ده توبه وباسی او دخوب هيرول ګناه ده ځکه چي دخوب نمائنده ممکنه ده چي دلوح محفوظ څخه فرشته وی، مغربی رحمه الله ويلی دی چي خوب پر دوه قسمه دی يو رښتونی دوهم درواغجن، او رشتيا خوب پر دری قسمه دی يو زيری دی دوهم خبرداری دی او دريم الهام دی دبشارت قسم دادی چي الله تعالی يوه فرشته پر لوح محفوظ مقرر کړی ده چي څه ښه او بد پر انسان باندی راتلونکی وی چي ده ته د هغه اطلاع ورکړی او ده ته يي په خوب کی ښکاره کی ددغه فرشتی نوم ملك الرويا دی که چاته بشارت رسول وی نو دخوب فرشته يي ورته په خوب کی ظاهروی، اوخوب دخبرداری دادی چي فرشته دی بيروی او دراتلونکی شيانو اطلاع ورته ورکوی چي خوب ليدونکی اطاعت وکړی او دګناه څخه بچ سی او ددی په وجه عبادت او فرمانبرداری وکړی او د

راتلونکی بدی څخه په امن کی سی دحق تعالیٰ ارشاد دی (وتوبوا الی الله جمیعا ایها المؤمنون لعلکم تفلحون، سورة النور: ۳۱) ژباړه: ایماندارو دالله تعالیٰ وطرف ته رجوع وکی چي تاسو نجات پیدا کی. دالهام خوب دادی چي الله تعالیٰ فرشتی ته حکم وکی چي هغه بنده ته په خوب کی الهام وکی چي دی صدقه ورکی او جهاد وکی او د حق تعالیٰ طرف ته رجوع وکی او دګناه څخه ځان ساتی او دمخلوق سره احسان وکی، د درواغجن خوب هم دری قسمونه دی یو خوب دهمت دوهم خوب دعلت دریم خوب د شیطان یعنی پریشانه او پراګنده، خوب دهمت دادی چي دی په بیداری کی څه سوچ کوی هغه څه په خوب کی وینی ددی خوب اصل نسته اونه ددې تاویل سته، اوخوب دعلت دادی چي دردمند بنده د درد څخه ژاړی او په خوب کی هغه درد غلبه کوی ناکاره او خوفناکه شیان په خوب کی وینی او ددی خوب باعث درد وی ددی خوب هم اصلیت نسته، او خوب شیطانی دادی چي پر ده غسل واجب کی یا ناممکن شیان وینی ددی هم تعبیر او تاویل نه وی ځکه دحق تعالیٰ فرمان په طور د نقل دی: (وما نحن بتاویل الاحلام بعالمین، سورة یوسف: ٤٤) ژباړه: موږ دپریشانه خوبونو په تاویل عالمان نه یو او علی کرم الله وجهه ویلی دی چي دالله ﷻ دعجائباتو څخه یو خوب هم دی او همدا ډول څه چي په خوب کی دالله تعالیٰ په حکم سره نیکی او بدی رسیږی. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي دخوب دعجائباتو څخه یو دادی چي بنده په خوب کی خیر او منفعت اوراحت وینی یا شر او افت وینی اوهغه خیر او راحت یاشر او افت بالکل په بیداری کی وینی، دوهمه خبره داده چي ډیر خلک خوب لیدونکي بی دماغه او سختی ژبی والا وی کوم چي په بیداری کی اوږد بیت یا شعر نه سی یا دولی په خوب کی یي ووایي یاد یي کی او په بیداری کی یي بیا صحیح وایي، او ډیر جاهل خلک وی چي دحکمت خبری او ښه الفاظ بیانوی کوم چي یي په خوب کی یاد کړی وی، کومو ته چي څوك حکیم او عالم هم نه سی ویلی او په بیداری کی یي هم درست بیانوی، جابر مغربی رحمة الله تعالیٰ علیه ویلی دی چي دخوب دعجائباتو څخه یوه داده چي په خوب کی یو درواغ شی په نظر راځی او تاویل یي دده پر فرزند یا ورور واقع کیږی ځکه نبی کریم ﷺ خوب ولیدی چي ابو جهل مسلمان سوی دی حالانکه دده څخه وروسته عکرمه رضی الله عنه دابو جهل زوی مسلمان سو، یو سړی خوب ولیدی چي اسد دمکی امیر اسلام راوړی دی حالانکه دده څخه وروسته عباس رضی الله عنه داسد زوی اسلام راوړی، دا هم کیدای سی چي دبچی دخوب تعبیر پر مور پریوزی او دغلام دخوب تعبیر پر اقا پریوزی، داسی عجائبات په خوب کی ډیر وی که ټول بیانوو نو کتاب به ډیر اوږد سی.

## دریم فصل

## د نفس او روح د یادولو په بیان کی

په قرآن کریم کی دالله ﷻ ارشاد دی: (الله یتوفی الانفس حین موتها والتی لم تمت فی منامها فیمسك التی قضٰی

عليها الموت ويرسل الاخرٰی الی اجل مسمٰی، سورة الزمر: ٤٢) ژباړه: الله تعالی دمرګ په وخت کی روحونه وفات کوی او هغه چي په خپل خوب کی نه وي مړه پر کومو چي دمرګ حکم دی هغه حصاروی اوبل تر مقرر وخت پوری پاته کوی. دعلماوو اوحکماوو په مینځ کی دنفس او روح په باره کی اختلاف دی بعض وايي چي دا دواړه یو شی دی دنفس او روح معنٰی جان یعنی ساه ده، ددوی دلیل دادی چي په کلام دعربو کی دنفس اته معناوی دی: ساه، وینه، اوبه، منی، بولی، همت، بدن، لاس، او دروح دولس معناوی دی: کلام، روح القدس، باران، وحی، جادو، مسیح مریم، ژوند، فرشته دالله ﷻ. او دحکماوو بل جماعت وايي چي دخوب لیدونکی روح دجسم څخه وزی او اسمان ته ځی، اولیدل او اوریدل یادوی او دبیداری په وخت بیا روح جسم ته راځی ددی دلیل دادی چي نبی کریم ﷺ ویلی دی کوم سړی چي په اوداسه بیده کیږی او دالله ﷻ ذکر پر ژبه جاری ساتی دده روح آسمان ته بیولای سی او بعضی تعبیر بیانوونکی وايي چي دا حدیث دنبی کریم ﷺ فرمان نه دی، کله چي د بیده انسان ساه اخلی نو ددی څخه معلومیږی چي روح دجسم څخه جلا نه وی، بعضی خلک په جان او روح کی فرق کوی چي دخوب په وخت روح دجسم څخه وزی او پرجهان چاپیره ګرځی بیا جسم ته بیا راځی او دلیدل سوي شی جان ته خبر ورکوی، ددی دا دلیل بیانوی چي جان دلمر دټکی مشابه دی او روح دلمر دڼا مشابه دی لکه دلمر ټکی چي په څلورم آسمان کی ده او ڼا يي په ټوله جهان کی ده، او دحکماوو یو جماعت وايي چي ځان او روح یوشی دی په دواړو کی فرق نسته ځکه چي د دوی صفت دقیاس عقلی مطابق داسی دی لکه د اوبو څخه واوره او دواوری څخه چی اوبه جوړيږی، او دحکیم ارسطاطالیس په نزد نفس مبدأ اول (دشروع ځای) دی او دروح څخه زیات شریف او بزرګ دی لیکن د نفس او روح حقیقت موږ پخپل کتاب (سماع المسائل) کی بیان کړی دی او دحکماوو اقوال مو پکښی درج کړی دی، د اهل سنت والجماعت په نزد روح امر درب دی ځکه دحق تعالٰی ارشاد دی: (ويسئلونك عن الروح قل الروح من امر ربی، سورة الاسراء: ۸۵) ژباړه: کوم خلک چي ستا څخه د روح متعلق پوښتنه کوی دوی ته ووايه چي روح زما درب امر دی. زموږ اعتماد د الله ﷻ او نبی ﷺ پر فرمان دی او دحکماوو داقوالو دنقل کولو وجه داده چي دا کتاب د دوی د ذکر څخه هم خالی پاته نه سی، الله دی موږ پر دین الهی اوسنت پیغمبر ﷺ باندی قایم ولری او توفیق دخیر دی راکړی (آمین).

## څلورم فصل

## په علامو سره دخوب دسمولو په بیان کی

کرمانی رحمة الله عليه ویلی دی چي کوم سړی خپل خوب په علاماتو او دلیلونو سره په ښه رقم پیژندل غواړی نو ترخپله وسه دی په اوداسه په ښه زړه الله ﷻ یاد کی او خوراك دی کم وخوری ځکه ډیر خوراک کوونکی الله ﷻ نه سی یادولای دده معده ډکه وی او دخوراك بخارات دماغو ته رسیږی او طبعیت یې دقسم قسم خیالاتو څخه ډك سی، په دی وجه ډیر مختلف او پریشانه

خوبونه ویني ځکه چي طبعیت په خوراك نه پیدا کیدو سره سست اوضعیف سی او خوب به نه ورته راځی که خوب راسی هم نو پریشانه خوبونه به وینی او دخوب په وخت کی نه ډیر وږی او نه ډیر موړ کېدل پکار دی چي کوم خوب وینی نو رشتیا او درست وی او دخوب هیرول هم نه دي پکار، ابن مسعود ﷺ وایي چي یو اعرابی نبی کریم ﷺ ته راغلی او عرض یي وکی چي یا رسول الله ﷺ! پرون ما یو داسی خوب ولیدی، او یو پریشانه خوب بیانول یي شروع کړل نبی کریم ﷺ وویل چي تا څه شی خوړلي وه؟ عرض یي وکی چي ما ډیره پخه خرما خوړلي وه نبی کریم ﷺ جواب ورکی چي ددی خوب تعبیر صحیح نه راځی په دی وجه سره تعبیر بیانوونکی دداسی ډیرو خوبونو تعبیرونه نه بیانوی کوم چي صحیح نه خیژی، تعبیر بیانوونکی دی ددی خبرو څخه بی خبره کیږی نه او دسائل څخه دی پوښتنه کوی بیا دی تعبیر بیانوی چي بیان سوې خبره رشتیا او صحیح وی او دربنتونی خوب نښی هغه دی کومی چي بیان سوی دی، ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي کله انسان ډیر خوبونه وینی نو ځکه چی هغه ددی لائق نه وی په دی وجه ددغو تاویل دده پر رشته دارانو ورور یا پلار یا زوی پریوزی او ډیر واری خوب د ده پر مرګ تاثیر کوی، او موږ په دی باره کی د عکرمه ﷺ بن ابوجهل په بابت خبره کړیده چي پلار یي په خوب کي ولیدل سو او تاویل یي په زوی ظاهر سو لکه د نابالغ بچی دخوب تاویل چي دده پر پلار واقع کیږی کله چي پردی اصولو غور وکړی نو تاویل بیانوونکی ته به څه مشکل مخ ته نه راځی.

جعفر صادق رحمه الله ویلی دی چي کله خوب لیدونکی ته رنځ او افت په نظر ورسی نو تاویل ددی خلاف وی لکه چي دغم او بیری تاویل ښادی او خوشحالی وی دحق تعالی ارشاد دی: (ولیبدلنهم من بعد خوفهم امنا، سورة النور: ۵۵) ژباړه: موږ ددوی بیره ضرور په امن سره بدلوو. او د پاچا او دښمن دبیری څخه تښتیدل او نور څه چي ددی مشابه وی، ددی امر دلیل دی چي خوب والا به د خدای تعالی په امان کی وی د حق تعالی ارشاد دی: (ففروا الی الله انی لکم منه نذیر مبین، سورة الذاریات: ۵۰) ژباړه: دالله تعالی طرف ته تښتی زه تاسو ددی څخه په ښکاره ببروم. ددی تاویلونو مشکلات ډیر دی موږ به دا ټوله ان شاء الله تعالی ددوی پر محل باندی بیان کړو.

## پنځم فصل

## دربنتونی او درواغجن خوب په پیژندلو کی

دانیال علیه السلام ویلی دی چي د خلکو شکل او صورت طبعیت او قد او په خبرو کی یو دبل څخه اختلاف وی، دښار او هوا داختلاف په وجه سره دیو خوب دبل مطابق نه وی کله چي دچا پر طبعیت دغوښی اوحلوا او شرابو او نورو شیانو په استعمال سره وینه غالبه وی نو په خوب کی رګ وهل ښکر لګول او دشونډو حرکت او خوشحالی او دسرود اواز او نور څه چي ددی مشابه وی اوری، نو تعبیر ښوونکی دی دده مخ او رنګ او د جسم څورب والی او خوشحالی ته وګوری چي دا خوب دويني د غلبی څخه دی او ددی هیڅ اصلیت او تعبیر هم نسته، اوکله چي

د چا پر طبعيت دګرم اوخشك شيانو په خوراك سره لکه پنير، پياز، مرچ او نورو سره دصفرا دخلط غلبه سی نو دا سړی په خوب کی اور، ډيوه، شمع لاټين او نوری ډيری داسی خبری ويني نو پوه به سی چي پر دی سړی د خلط دصفرا غلبه ده او دده دخوب هيڅ اصليت او تعبير نسته، که د يوسړی پر طبعيت دبلغم زياتوونکو شيانو په استعمال سره لکه شلومبی، مستی، او شيدی او نورو سره د بلغمو غلبه سی نو داسړی به په خوب کی واوره باران او کوم شيان چي د دی مشابه دی ويني کله چي تعبير ښوونکی د صاحب خوب سپين رنګ او څورب جسم او په خبرو کی ګرانی ووينی نو پوه به سی چي دده پر مزاج دبلغمو خلط غالب دی او دداسی سړی د خوب هيڅ اصليت نسته، که ديو سړی پر طبعيت دسودا راوستونکو شيانو په خوراك سره لکه مالګه، غوښه اوتروش شيان اوتور بانجڼ او نورو سره دسودا دخلط غلبه سی نوداسی سړی خوفناك خوبونه مار لړم تياری او توروالی او نور به ډير ويني کله چي تعبير بيانوونکی دده رنګ او مخ تور ووينی او صورت يي غمجن او فکر مند په نظر ورسی او بی وجه په خپله ږيره او مخ لاس وهی نوپوه به سی چي پر دی سړی دخلط دسودا غلبه ده او دده خوب بی اصله دی، په دی وجه پر تعبير بيانوونکی باندی لازم دی چي پر دی ټولو خبرو باندی غور وکړی او دهر يوه خوب په ښه ډول سره پوښتنه وکړی او واقفيت پر حاصل کړي وروسته تعبير بيان کړی چي رښتيا راسی، ابن سيرين رحمه الله ويلی دی چي کوم خلك اصحاب همت دی لکه عاشق چي معشوق په خوب کی ووينی يا کسبګر خپله پيشه په خوب کی ووينی لکه بزاز کپړه او اهنګر اوسپنه نو پر تعبير بيانوونکی باندی لازم وی چي د خوب دوباره پوښتنه وکړی چي پرون دی څه خوړلی وه او په کوم خيال کی بيده وی بيا دی تعبير بيان کړی، يا په خوب کی يو سړی په باران واوره او وريځ کی ګرفتار وی کله چي بيداره سی نو دخوب کپړی دده څخه جلاوی نو دا لغړوالی به دده دخوب باعث وی نو داخوب بی حقيقته دی، که په خوب کی ووينی چي په حمام کی وو يا په غرمو او ګرمی کی وو اوکله چي ويښ سو نو خپل ځان يي په ډيرو کپړو کی نغښتی پيدا کی نو په خوب کی داسی ګرمی محسوسول د ډيرو کپړو باعث دی داخوب هم بی حقيقته دی، که يو سړی په خوب کی ووينی چي د ناجوړی او جسمانی درد څخه ژاړی او ناجوړه پروت دی او په حقيقت کی ناجوړه هم وو نو داخوب هم بی اصله دی، که يو سړی په خوب کی ووينی چي بولی کوی او چي ويښ سو نو په کپړو کی يي بولی کړی وي او وې ليدل يا يي معلوم کړل چي بولی په زور سره ورته راځی نو دا خوب هم بی حقيقته دی، او دده هيڅ تعبير نسته.

## شپږم فصل

## د خوبونو په مينځ کی فرق پيژندل او د هر خوب د تفصيل بيان

ابن سيرين رحمه الله ويلی دی چي خوب ليدونکی ددوو حالاتو څخه دباندی نه وی مومن به وی يا کافر ددی اصلی څوارلس اقسام دی: ۱: دپاچاهانو خوب ۲: دقاضيانو خوب ۳: دمفتيانو

خوب ۴: دعالمانو خوب ۵: دازادو خلکو خوب ۶: دغلامانو خوب ۷: دسړیو خوب ۸: دښځو خوب ۹: دنیکو خلکو خوب ۱۰: دبدکارو خلکو خوب ۱۱: دمالدارو خوب ۱۲: دفقیرانو خوب ۱۳: دبالغانو خوب ۱۴: دنابالغو خوب.

په دی ټولو کی دپاچاهانو خوب زیات رشتیا او صحیح وی او بیان کوی چي دپاچاهانو خوب ته دنورو پر خوب دومره فضیلت دی څومره چي دپاچاهانو پر رعیت فضیلت دی ځکه چي الله تعالی پاچاهان برګزیده کړي او سرداری یې ورلره ورکړیده او مخلوق ته یې دهغوی په اطاعت حکم کړی دی ځکه چی حق تعالی ویلی دی: (یا ایها الذین امنوا اطیعوا الله واطیعوا الرسول واولی الامر منکم، سورة النساء: ۵۹) ترجمه: ای ایمان والاوو تاسو دالله تعالی تابعداری کوی او درسول او دصاحب امر تابع داری کوی. او نبی کریمﷺ ویلی دی (من اطاع الامیر فقد اطاع الله ورسوله) ترجمه: چا چي دامیر اطاعت وکړ ده دالله او دهغه درسول اطاعت وکړ. لهذا کوم خوب چي عادل مصلح پاچا ويني دغه خوب به دپاچا دقربت والی په وجه وی او دپاچا خوب نزدیکتر اوصحیح تر دی، دقاضی خوب ته دنورو پر خوبونو فضلیت دی ځکه چي عدل او انصاف او دخاص وعام دکاروبار بندول او خلاصول دقاضیانو متعلق دی او دفقهاو خوب ته دعامو خلکو پر خوب فضلیت دی ځکه چي دوی داصول فقه او دمسلمان دحدودو، فرض، سنت، حلال او حرام پیژندونکی دی، دازادو خلکو خوب ته دغلامانو پر خوب فضیلت دی ځکه چي الله تعالی ازادو خلکو ته پر غلامانو شرف دنسب ورکړیدی، دعالمانو خوب په دی وجه افضل دی چي الله تعالی دوی ته شرافت او توفیق ورکړیدی چي مخلوق ښي لاری ته راولی او خلکو ته دخیرات او طاعت رغبت ورکوی، دغلام په خوب سره بادار لره فائده وی ځکه چي غلام ته دده څخه حصه رسیږی، او دسړیو خوب دښځو پر خوب باندی فضلیت لری ځکه الله تعالی سړیو ته پر ښځو دځو شیانو په زیادت سره ترجیح ورکړېده الله تعالی ویلی دی: (الرجال قوامون علی النسآء، سورة النساء: ٣٤) ترجمه: سړی پر ښځو غالب دی اوالله تعالی سړی پیغمبران را لیږلی دی، اوبل ځای وایي: (فرجل وامرأتان ممن ترضون من الشهداء، سورة البقرة: ۲۸۲) ترجمه: پس یو سړی او دوی ښځی د هغو خلکو څخه کوم چي دشهادت لپاره راضی وی، دعقل په نزد دسړی صبر او بخشش، رای، او شجاعت، سخاوت او امارت او دبدبه او حشم وغیره ظاهر دی او دښځو په نسبت سړی په فطرت کی زیات دی، او دښځو خوب دغلامانو خوب ته قریب دی. او دنیکو خلکو خوب دبدکارو خلکو پر خوب فضلیت لری، ځکه چي دنیکو خلکو خوب دطاعت طرف ته مائل وی او دګناه څخه لیری وی او دبدکارو خوب به پر دوی دقیامت په ورځ دکافرانو دخوب په شان حجت وی، ځکه چي بدکاره سړی پر ګناه زړور وی، او دمالدار خوب دفقیر پر خوب فضلیت لری ځکه چي مالدار زکاة او صدقات ورکوی حج او جهاد کوی او نبی کریم ﷺ ویلی دی: (الید العلیا خیر من الید السفلی) ترجمه: لوړ لاس پر کښته لاس باندی بهتره دی یعنی

بخښنې والا تر اخستونکې افضل دی. دتعبير بيانوونکی ديوی ډلی وينا ده چي دفقيرانو دخوب هيڅ حقيقت نسته ځکه چي ددوی زړه هميشه دګټې په غم او دعيال دطرف څخه پريشانه وی فقير که څه هم ښه خوب ووينی نو اثر يې ډېر وروسته ظاهريږی اوکه بد خوب ووينی نو اثر يې ژر ښکاره کيږی او ددولت والاوو خوب ددرو شيانو دخوب بر عکس وی: دبالغ خوب معتبر وی ځکه چي پر ده شهوت غالب وي او هلك دعقل او ادب څخه محروم وی، بعض تعبير بيانوونکی وايي چي که دنابالغ هلك خوب نيک وو نو والدينو ته به يې نيکی رسيږی اوکه بد وو نو دوی ته به يې دبدی اثر رسيږی، دنابالغ کوچنی دخوب په بابت دوه قوله دی يو قول دادی چي دده خوب رشتيا اوصحيح وی او دده حکم ظاهريږی ځکه چي دکوچنی زړه دګناه څخه پاك او دبدۍ او شغل ددنيا څخه بالکل فارغ وی، دوهم قول دادی چي دکوچنی خوب صحيح نه وی ځکه چي ددوی عقل اوتميز نه وی، دمست اوجنب او حائضی ښځی خوب صحيح وی، يو وخت صفيه بنت هند ﷞ خوب وليدی چي داسمان څخه لمر او سپوږمی ددې غيږی ته رالوېدلی دی کله چي بيداره سوه نو امير دخيبر يې ددی خوب څخه خبر کړ امير دخيبر ددې مخ په چپلاخی وواهه او ويې ويل که تا رشتيا داسی خوب ليدلی وی نو محمد ﷺ به خيبر فتح کړی اوتا به خپله ښځه جوړه کړي، بله ورځ نبی کريم ﷺ خيبر فتح کړ او اسلامی لښکر صفيه ﷞ نبی کريم ﷺ ته بوتله نبی کريم ﷺ پوښتنه ځنی وکړه چي دا شين داغ ستا پر مخ دڅيشی دی؟ دې دغه دخوب واقعه ورته بيان کړه کوم چي دی ليدلی و او رشتونی سو او ددی دخوب تاويل رشتيا سو. والله اعلم

## اووم فصل

## دخوبونو په منځ کي دفرق پېژندنه

کرمانی ﷫ ويلی دی چي دمسلمانانو خوب دکافرانو دخوب څخه زيات رشتيا وی او دعاقل خوب دناپوه دخوب څخه او دصالح خوب دفاسق دخوب څخه بهتر وی الله تعالی ويلی دی (ام حسب الذين اجترحوا السيئات ان نجعلهم كالذين امنوا وعملوا الصالحات سوآء محياهم ومماتهم سآء ما يحكمون، سورة الجاثية: ۲۱) ترجمه: ايا ددغو خلکو خيال دی کومو چي ګناه کړی ده چي موږ به دوی دهغو خلکو په شان کړو کومو چي ايمان راوړ او نيك عملونه يې وکړل چي ژوند او مرګ يې برابر دی بده ده هغه کومه چي دوی فيصله کوی. دسپين ږيرو خوب دکوچنی دخوب څخه زيات رشتيا وی، او دازادی ښځی خوب دمينځی دخوب څخه بهتر وی، تعبير بيانوونکی ته دهر سړی په خوب کی دنيکو مرتبو خيال ساتل پکار دی اوکله چي دصاحب خوب څخه پوښتنه وکړی او پراګنده الفاظ ځنی واوری نو ټول دی په عقل او قياس سره صحيح کړی دالفاظو تقديم او تاخير دی صحيح کړی او بيا دی تعبير بيان کړی او قوی الفاظو ته دی په اصولو دتعبير کی نظر کوی که ميزان دکلام په نظر کی ساتی نو بيا به غلطی نه وی اوڅه چي بيانوی صحيح دی بيانوی ځکه چي متقدمينو اهل علمو به داسی قياس کوی او تعبير به رشتيا او صحيح راتلی.

## قصه

بیان کوی چي يو سړی دابن سیرینؒ په خدمت کي حاضر سو او پوښتنه يې وکړه چي ما يو خوب لیدلی دی چي زه دلمانځه لپاره اذان کوم دوی جواب ورکړ چي ته به اسلامی حج وکړی بیا دغه وخت يو بل سړی راغلی هغه پوښتنه وکړه چي ما ځان دلمانځه لپاره په اذان کولو لیدلی دی دوی تعبیر بیان کړ چي پر تا به دغلا تهمت ولګیږی. شاګردانو دابن سیرینؒ څخه پوښتنه وکړه چي ددواړو خوب په یوه صورت و چي دواړو سړیو په خوب کي دلمانځه لپاره اذان کړی دی ددواړو په تعبیر کی اختلاف ولی دی؟ ده جواب ورکړ چي دا اولنی سړی دمخ څخه دنيك بختی. ښنی ښکاره کیدلی ما وویل چي ته به اسلامی حج وکړی او کوچنيان به ستا طرف ته په ځغستا راځی، او په دوهم سړی کی می دفساداتو او دمخالفت ښنی لیدلی وی ما تعبیر بیان کی چي ته به په غلا کی ونیول سی دالله تعالی ارشاد دی (ثم اذن موذن ايتها العير انكم لسارقون، سورة يوسف: ۷۰) ترجمه: اواز وکی اواز کوونکو ای دقافلی خلکو! تاسو خامخا غله یاست. جعفر صادقؓ ویلی دی چي بعضي وختونه دشپې خوب ولیدل سی او تعبیر يې دغه ورځ راخيژی او بعضي وخت خوب ولیدل سی او تاويل يې کال بعد پوره کيږی او دبعضو دا شپږ میاشتی وروسته او دبعضو دا شل او څلویښت کاله وروسته تاويل ظاهريږی لکه چي دامير المؤمنين حسينؓ دشهيد كيدو خوب نبی کریمﷺ داسی ولیدی چي يو سپي ددوی وینه چینبله بیا څلويښت کاله وروسته ددې خوب تاويل ظاهر سو چي حسينؓ شهيد سو، جابر مغربیؒ ویلی دی چي دشپې دخوب تاويل دورځی دخوب څخه قوی وی او دشپی داولی حصی خوب صحیح نه وی اکثره داندیښنو او فکرونو خوبونه راځی او دنیمی شپی خوب هم محض پریشان کوونکی وی دټولو څخه صحیح خوب دسهار دوخت وی ځکه چي دسهار دوخت خوب مقربی فرشتی خلکو ته دلوح محفوظ څخه ښيي په دی وجه ددی تاويل صحیح او رشتیا ظاهريږی، ابن سیرینؒ ویلی دی دشپی داولی حصی تعبیر تر پنځه کاله پوری او دنیمی شپی دخوب تعبیر ترپنځو میاشتو پوری او دسهار دخوب تاويل ترلسو ورځو پوری ظاهريږی لنډه داچه څومره خوب سهار ته زيات نژدې وی دومره يې تاويل نيك او صحيح او ژر ظاهریدونکی وی.

## اتم فصل

## دخوب دتعبير بيانولو لپاره علم جفر او فال پيژندل ضروري دی

دانيالؑ ویلی دی چي دخوب دتعبير بيانوونکی لپاره علم جفر اوفال پيژندل کوم چي دپخوانیو استاذانو څخه منقول دی ډېر ضروری دی که څوك دخوب دتعبير پوښتنه وکړی نو تعبیر بیانوونکی دی دنوم پوښتنه څنی وکړی که دهغه نوم ښه و لکه محمد، احمد، حسين، فيصل، سهيل، بشير، حبيب، محبوب او داسی نور نومونه نو دلالت يې دصاحب دخوب لپاره بهتری او خوشحالی وی اوکه نوم يې ښه نه و نو دليل دغم اوبدئ وی، کله چي سائل دخوب

تعبير وکړي او دتعبير بيانوونکی په مخکی دغه وخت آس يا غاطره يا خره وی نو دده خوب به نيك او ښه وی او صاحب خوب به سفر کوی خاص کر که يې په مخکی آس يا غاطره تيره سی او دواګو سره وی دالله ﷻ قول دی: (والخيل والبغال والحمير لتركبوها وزينة، سورة النحل: ۸) ترجمه: آس غاطره او خره ستاسو دسپرتيا او ښايست لپاره دی. که د پوښتنه کوونکی دپوښتنی په وخت کارغه دری اوازونه وکړي نو دخير او دنيکی دليل دی او که کارغه دوه اوازونه وکړي نو دبدی دليل دی جابر مغربی رحمه الله ويلی دی چي يو سړی دعبدالله ابن عباس رضي الله عنه څخه دخپل خوب دتعبير پوښتنه کوله دغه وخت يو کارغه راغی دکور پر ديوال کښينستی اودوه اوازونه يې وکړل ابن عباس رضي الله عنه وويل چي دا ددی خبری دليل دی چي تا ته به څه بدی رسيږی، په دغه شپه غل دده په کور کی سری وکی او هرڅه يې يوړل، عبدالله رضي الله عنه ويلی دی چي ما خپلو انډيوالانو ته وويل چي که څوك دخوب دتعبير پوښته وکړي او کارغه دوه اوازونه وکړي نو دليل دبدی او دنقصان دی که څلور اوازونه وکړي نو دليل دنيکی او بهتری دی که پنځه وکړي نو دبدی دليل دی او که شپږ وکړي نو دصاحب خوب لپاره دبهتری دليل دی. ابن سيرين ويلی دی چي طاق اواز دنيکی دی او جفت اواز دبدی دليل ورکوی، جعفر صادق رضي الله عنه ويلی دی چي که يو سړی په دی نيت بيده سی چي څه خوبووينم او په دی خوب سره ښه اوبد حالات پيژندل غواړی نو که په خوب کی بزه اويا دبزی بچی يا غوا يا اس يا ددی په مثل داسی حيوانان ووينی چي غوښه يې حلاله وی نو دصاحب خوب دکار دتباهی دليل دی او که بنده دروازه ووينی او يا دده لپاره وتړل سی يا خوږ خوراك پيدا کی او وي خوری نو داخبری دصاحب خوب لپاره دبهتری اونيکی دليل دی.

## نهم فصل

## دهير سوی خوب په بيان کي

جعفر صادق رضي الله عنه ويلی دی چي که يو سړی خوب ووينی اوځنی هير سی اوتعبير بيانوونکی دخوب معلومول غواړی نوطريقه يې داده چي دصاحب خوب څخه دی دنوم پوښتنه وکړي اودده دنوم حرفونه دی حساب کړي او دابجد په حساب دی نهه نهه ځنی منفی کوی او ګوری دی چي څومره باقی پاته کيږی که نهه باقی سوه نو دا دخوب دفساد دليل دی چي ده ناکاره خوب ليدلی دی دالله تعالی ارشاد دی (وكان في المدينة تسعة رهط يفسدون في الارض ولا يصلحون، سورة النمل: ٤٨) ترجمه: په ښار کی نهه ډلی وی کومو چي به فساد کوی او اصلاح يې نه کوله. که اته پاته سوه نو صاحب خوب به سفر کوی يا به يې نکاح وسی دالله تعالی ارشاد دی: (ثماني حجج فان اتممت عشرا فمن عندك، سورة القصص: ٢٧) ترجمه: اته کاله دی که تا لس پوره کړل دا به ستا دطرف څخه وی. او که اووه پاته سوه نو صاحب به يې درندګان يا سپی ووينی دالله تعالی فرمان دی: (ويقولون سبعة وثامنهم كلبهم، سورة الكهف: ٢٢) ترجمه: او وايي چي اووه دی اواتم يې سپی دی. که

شپږ پاته سوه اوصاحب خوب نیك سړی وو نو دا ددی امر دلیل دی چي ده په خوب کی فرشتي اواهل اصلاح لیدلی دی ددی تاویل دادی چي دده ټول کارونه به نیك وی اوکه صاحب خوب مفسد وو نو ددی امر دلیل دی چي ده په خوب کی شیطانان او اهل فساد لیدلي دی او تاویل یې ددغه سړی تباهی ده الله ﷻ ویلی دی: (رفع السموات بغیر عمد ترونها ثم استوی علی العرش، سورة الرعد: ۲) ترجمه: تاسو وینی چي اسمانونه یې بغیر دستنو پیدا کړی دی بیا پر عرش قایم سو. که پنځه پاته سوه نو دده په خوب کی آسونه او وسلی دی او که څلور پاته سوه نو به ده په خوب کی اسمان او ستوری لیدلی وی (فی اربعة ایام سواء للسائلین، سورة حٰم السجدة: ۱۰) ترجمه: په څلورو ورځو کی دسوال کوونکی لپاره برابر دی. که دری پاته سوه نو صاحب خوب به چاته دخه کار ویلی وی (مایکون من نجوٰی ثلثة الا هو رابع، سورة المجادلة: ۷) ترجمه: ددری تنو په پټو خبرو کی څلورم خدای دی، بل ځای ارشاد دی (ثلثة ایام الا، سورة آل عمران: ٤۱) ترجمه: دری ورځی مگر. که دوه یا یو پاته سو نو ددی خبری دلیل دی چي په دین او دنیا کی به یې نفع وی (ثانی اثنین اذ هما فی الغار اذ یقول لصاحبه لا تحزن، سورة التوبة: ٤۰) ترجمه: په دوو کی دوهم کله چي دواړه په غار کي وه کله چي یې خپل انډیوال ته وویل چي غم مه کوه. او ددی تاویل دادی چي دبیری څخه به په امن وی او دهر طرف څخه به محفوظ وي. ابن سیرین ویلی دی چي که څوك خوب ووینی هیر یې سی نو تعبیر بیانوونکی دی سائل ته ووایي چي په خپلو اندامونو کی پر یوه اندام لاس کښیږده که پر سر یې لاس کښیښنوی نو غر یې لیدلی دی که پر سترگو یې لاس کښیښنوی نو دتروو اوبو یوه چینه یې لیدلي ده که پر پزه یې لاس کښیښنودی نو دغره لمن یې لیدلی ده که یې پر مخ لاس کښیښنودی نو چمن یې لیدلی دی که پر خوله یې لاس کښیښنودی نو دخوږو اوبو چینه یې لیدلی ده که یې پر غوږ لاس کښیښنودی نو چاوده اوغار یې لیدلی دی که پر نس یې لاس کښیښنودی نو واله یی لیدلی ده که پر شرمگاه یی لاس کښیښنودی نو خرابی یې لیدلی ده که پراوږه یې کښېښودی نو محل یې لیدلی دی که پر څنگلو یې کښیښنودی نو میوه داره درخته یې لیدلی ده او که پر گوتو یې لاس کښیښنودی نو ده دگلونو ښاخونه او ځانگی لیدلی دی، او که دغټو بولو پر ځای یې لاس کښیښنودی نوده به دخزلو ډېران لیدلی وی اوکه پر زنگون یې لاس کښیښنودی نو غونډی به یې لیدلی وی اوکه پر پنډی یې لاس کښیښنودی نو ده به په خوب کی میوه داره درخته لیدلی وی، دانیال ؑ ویلی دی چي که څوك خوب ووینی او هیر یې سی نودی دڅلورو حالو څخه خالی نه دی یو دډېرو گناهونو په سبب دوهم دمختلفو کارونو په سبب دریم دضعف نیت په سبب څلورم دطبعیت داختلاف په سبب کله چی پر دې حال وگرځی نو ضرور به خوبونه هیروی.

## لسم فصل

## جاهلانو ته په خوب بیانولو کې

کرمانیرحمة الله علیه ویلی دی چې هوښیاران خلک وایې چې جاهلانو ته خوب بیانول نه دی پکار، او دجاهلانو څخه دی دتعبیر پوښتنه وسی نو څه چې ووایې دغه رقم به کیږی ځکه چې دخوب نمائنده فرشته ده هغه هرګز خطاء نه کوی او څه چې وایې حق وی دیو عقل په غلط تعبیر سره حق باطل کیدای نه سی په عالم او جاهل کی ډېر فرق دی دحق تعالی ارشاد دی (قل هل یستوی الذین یعلمون والذین لا یعلمون، سورة الزمر: ۹) ترجمه: دوی ته ووایه چې عالم او جاهل برابریدای نه سی. او دنبی کریمصلی الله علیه وسلم ارشاد دی (لا یستوی العالم والجاهل) ترجمه: علم والا او بی علمه برابر نه دی. او چونکه دخوب ظاهروونکې فرشته ده کومه چې یې دلوح محفوظ څخه ښیې که خیر په رسیږی او که شر. که عالم یا جاهل دغه بدلول غواړی نو کیدونکی شی به خامخا کیږی دیوچا څخه ماسوا دقضایې معلقه نه چې په صدقو او دعاګانو سره وروسته کیږی ددې څخه بغیر بل څه هرګز نه سی وروسته کیدای کله چې ریان پاچا دمصر هغه خوب ولیدی لکه چې اللهجل جلاله ویلی دی (قالوا اضغاث احلام وما نحن بتأویل الاحلام بعالمین، سورة یوسف: ۴۴) ترجمه: دوی جواب ورکړ چې دا پریشانه خوب دی او موږ ته دپریشانه خوبونو تعبیر نه دی معلوم. پاچا خپل قوم راوبلی او دخپل خوب دحال پوښتنه یې ځنی وکړه (یا ایها الملاء افتونی فی روءیای ان کنتم للرؤیا تعبرون، سورة یوسف: ٤٣) ترجمه: سردارانو زما دخوب په باب فتوی راکړی که تاسو دخوبو تعبیر بیانولای سی. بیا یوسفعلیه السلام تعبیر بیان کړ او د اوو کالو دقحطي بیان یې ورکړ.

## یولسم فصل

## دخوبونو حال دوخت او قسم او صورت څخه تر لاسه کول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چې خوب دوخت په لحاظ سره بدلیږی که یو سړی دشپې په خوب کی ووینې چې پر پل یا لاره باندی ناست دی ده ته به په دې کار کی لږ نفع وی او که داخوب دورځی ووینې نو خپلی ښځی ته به طلاق ورکړی که دشپې یې په خوب کی ولیدل چې چرګ یا سپی یې نیولی دی نو ددی خبری دلیل دی چې دده به دیو نادان سره اړیکه راسی اوکه داخوب دورځی ووینې نو ناجوړه به سی، جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چې خوب په اصل کی ددین، صنعت، حرفت او کسب په لحاظ سره نه ګرځی، دیو خوب تعبیر مختلف وی دیو خوب تاویل عذاب دی اللهجل جلاله ویلی دی (غلت ایدیهم ولعنوا بما قالو، المائدة: ٦٤) ترجمه: ددوی لاسونه تړل سوی دی او ددوی دخبرو په وجه سره پر دوی لعنت پریوتی. کله چې دا خوب نیك سړی ووینې نو دلیل یې دادی چې دګناهونو او ناکاره کارونو څخه به دستبردار وی. محمد بن عبد العزیز په صحیح سند سره دعبد الرحمن اسلمی څخه روایت کړیدی چې نبی کریمصلی الله علیه وسلم په صدیق اکبر او سلمان فارسیرضی الله عنهما کی وروروِلی جوړه کړه اوسلمان فارسیرضی الله عنه یو خوب ولیدی او صدیق

اکبرﷺ ته یې بیان کی او ددی خوب سبب دده څخه لیری سو ابوبکر صدیقﷺ وویل چې تر قیامته پوری ستا دسر څخه لاس لنډ سو، سلمانﷺ دا خوب نبی کریم ﷺ ته بیان کی دوی یې هم هغه تاویل بیان کی کوم چې ابوبکر صدیق ﷺ بیان کړی وو. ابو مسلم رحمة الله علیه دعطاء بن خباب څخه روایت کوی چې محمد بن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چې کوم سړی په خوب کی پر منبر وی ددې تاویل دادی چې که دده سړی نیك وی نو شرف او بزرگی به پیدا کوی اوکه بد وی نو پانسی به سی، په حدید الحدیث کی دی چې احمد بن سعد دابو عبیدهﷺ څخه روایت کړی دی چې یوی ښځی دنبی کریمﷺ څخه پوښتنه وکړه چې ما په خوب کی لیدلی دی چې زما دکور دچت ستن پر ملا ماته سوېده دوی وویل چې ستا خاوند به دسفر څخه راسي بل واری دې بیا دا خوب ولیدی او دابوبکرﷺ څخه یې دتعبیر پوښتنه وکړه دوی وویل ستا خاوند به مړ سی دواړه یو رقم خوبونه وو لیکن دوخت په اختلاف سره تعبیر مختلف سو. ابو حاتم داصمعی څخه روایت کوی چې اشعری پوښتنه وکړه چې ما په خوب کی لیدلي دی چې غنم داوربشو په بدله خرڅوم دوی جواب ورکړ چې ته قرآن شریف په شعر سره بدلوی، دبنده دحالت په تبدیلی سره غنم او اوربشی دخپل اصلیت څخه بدل سوه، که څوك داسی خوب ووینې نو هغه دی داصمعی دملگری خبره یاد ساتي. کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چې کوم سړی په پسرلی کی خوب ووینې نیک دی لیکن تاویل به یې وروسته ظاهرېږی او دگرمی دموسم دخوب تاویل ډېر ژر ښکاره کیږی او کوم سړی چې دخزان په فصل کی خوب ووینې ددې تاویل صحیح نه وی ددی خبری دلیل دادی چې یو سړی دابوبکرﷺ څخه پوښتنه وکړه چې ما ته په خوب کی دیوې درختی څخه او یا پاڼی حساب کړه سوی راکړل سوی، دوی جواب ورلره ورکړ چې ته به اویا دُرې وهل کیږی او په دغه هفته کی هغه اویا ډنډې ووهل سو بیا دغه سړی بل کال دغه خوب داویا پاڼو ولیدی او دابو بکرﷺ څخه یې دتعبیر پوښتنه وکړه دوی وویل: اویا زره درهمه به درته ورسیږی دغه سړی عرض وکی چې یا امیر المومنین تیر کال ما دا خوب لیدلی وو او تاویل یې اویا ډنډې وی اوما په دی کال هم دا خوب لیدلی دی او تاویل یې اویا زره درهمه دی، تاسو ماته ددی تاویل فرق وښیاست، دوی وویل چې تیر کال تا خوب په فصل خزان کی لیدلی وو هغه وخت ټولی درختی وچی وی پاڼی ځنی رژېدلی وی دهغی تاویل دغه وو او په دی کال موسم بهار دی اودرختی مخ په ترقی دی ددی تاویل دادی او بیا دی سړي ته اویا زره درهمه ورسیده، دانیالعلیه السلام ویلي دي چې کوم سړی دسهار څخه تر نیمی ورځی پوری دخوب دتعبیر پوښتنه وکړی ددی تاویل په اقبال او نیکی باندی دی او دزوال څخه وروسته تر شپې پوری دشر اوفساد دلیل دی او دخوب تعبیر دواوری وریځی اوباران اولمر دختو او پریوتو په وخت کي نه دی پوښتنه کول پکار. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلی دی چې په ټولو خوبونوکی رښتونی خوب هغه دی چې دسهار څخه دلمر ترختو پوری راسی یا دلمر دنیغ دریدو په وخت کي خوب نیك رښتیا او صحیح دی او تاویل دخوب، ددرختو پاڼو رژېدل، دمیوو پخیدل ددی وختونو خوبونه ډېر ښه دی او تاویل یې صحیح وی او کوم خوب چې دیخنی په موسم کی ولیدل سی

ددی دتاویل حکم کمزوری وی په یخنی کی باد او باران وی په بهار کی اهل جهان خوشحاله وی، په هر حال دهر خوب تعبیر به مطابق دحال او صورت او وخت جلا جلا وی.

## دولسم فصل

## دخوب والاوو دشرطونو او ادبونو په پیژندلو کي

دانیال علیه السلام ویلی دی چي تعبیر بیانوونکی هوښیار او پرهیزګار کېدل پکار دی عالم خاموش پسند او نیك کیدل پکار دی چي دتعبیر ورکولو په وخت حاضر او هوښیار وی او دسائل خوب په احتیاط سره اوری او معلومه کړی چي سائل پاچا دی که رعیت؟ بزرګ عالم دی یا جاهل؟ ازاد دی یا غلام؟ مالدار دی یا فقیر درویش؟ سړی دی که ښځه؟ فارغ دی که مشغول؟ په موسم دګرمی کی یې خوب لیدلی دی که په یخنی کي؟ کله چي هره یوه خبره په قیاس او عقل سره معلومه کړی نو لکه څنګه چي ددی علم استاد بیان کوی تاویل دی بیان کړی او دخپل طرف څخه دی څه نه وایي، ابن سیرین له ا صمعی څخه روایت کوی او هغه دابو المقدم څخه چي ابن سیرین رحمه الله علیه ددیرشو څخه ترڅلویښتو کالو پوری داسی و چي له ده څخه به خلکو پوښتنه کوله یو جواب به یې وایه او دباقی تعبیر به یې نه وایه، په دی وجه بیان کوونکی ته پکار دی چي اول دصاحب خوب خبره په ښه شان سره واوری اوپه تعبیر کی ښه غور وکړی اوکه خبره سخته وی او په معنی کی فضول خبره وه، نودغه فضول دی ځنی جلا کړي او داصل تعبیر دي بیان کړی که په اصل خوب کی فضول خبره وه، نو دغه فضول دی ځني جلا کړی او دباقی تعبیر دی بیان کړی، که ټوله خبره مختلفه وه او دیو بل سره یې جوړ نه خوړی نوخوب پریشانه دی تعبیر دی نه ورته کوی اوکه تعبیر پټوی نو دسائل څخه دی پوښتنه وکړی چي تنګ دله دی که خوش دله او څه چي دده څخه واوري په هغه دی دخوب دتاویل بنا وکړی اوکه هغه نه سی ویلی اوتعبیر بیانوونکی یې نوم ونه پیژنی نو دطبعیت، عبادت، ګفتار، بد صورتی، خوب‌صورتی، درواغ او رشتیا څخه دی تعبیر وکړی اوکه دده دخوب تاویل بد شی وی نو نه دی وایي او دده څخه دې پټ ساتی. کرمانی رحمه الله علیه ویلی دی چي اصل خوب په درو شیانو دی یو جنس دوهم صفت دریم طبیعت، جنس لکه د درختو او مرغانو دا ټول دسړیو تاؤیل دی اوصفت دادی چي تعبیر بیانوونکی یې وپیژنی چي درخته څنګه ده او سړی دکوم جنس څخه دی او دکوم صفت لرونکی دی اوکه دغوز درخته ده نو معلومه دی کړی چي عجمی سړی دی ځکه چي په عربو کی دغوزانو درخته نه وی اوکه مارغه طاوس وی نو عجمی دی که شتر مرغ دی نو سړی عربی دی او طبیعت دادی چي معلومه کړی چي ددی درختی طبعیت څه قسم دی؟ لهذا ددی په نوعه دی تاویل بیان کړی که دغوز درخته ده نو سړی مالدار دی لیکن بد معامله بخیل اوبد دی ځکه چي که تاسو غوزان ښوروی نو اواز کوی او ترڅو چي یې مات نه کړی نو مغز نه ځنی وځی اوکه دخرما درخته ده نو کوم کار چي اختیاروی اسان به وی (شجرة طیبة اصلها ثابت وفرعها فی السمآء، سورة ابراهیم: ٢٤) ترجمه: لکه پاکه درخته چي ریښی یې ثابتي وی او ښاخونه یې په اسمان کي دی

دشجرې طيبې څخه مراد دخرما درخته ده، که مرغۍ والوزي نو تعبير کوونکی دی پوه سی چي دا صاحب خوب به سفر کوی په دی وجه دمرغۍ طبعيت هم پيژندل پکار دی که کارغه وی نو دغه سړی ضرور شرير اوبد عهد دی، خوب ليدونکی دی رښتني او ديندار وی او چي په ليدلې خبره کی کمی او زياتی نه کوی ځکه چي په دې سره په خوب کي نقصان کيږی او کوم سړی چي خوب ووينې او وبيريږی نو درې واری دی اية الکرسی ووايي پر ځان دی دم کړی او دا دعا دی ووايي (اعوذ برب موسی وابراهيم من شر رؤيا التی رأيتها من منامی ان يضرنی فی دينی ودنيای ومعيشتی عز جاهك وجل ثناؤك ولا اله غيرك) ترجمه: زه په رب دموسی او ابراهيم عليهما السلام پناه غواړم ددی خوب دشر څخه کوم چي ما پخپل خوب کی ليدلی دی چي زما دين او دنيا اومعاش ته نقصان رسوی ستا مرتبه دټولو څخه لويه ده او ستا ثنا لويه ده او ستا څخه ماسوا بل معبود نسته. ددی څخه وروسته دی دوه رکعته لمونځ وکړی او صدقه دی ورکړی چي دخوب بدوالی ځنی ليری سی.

مغربی رحمة الله عليه ويلی دی چي ابليس ملعون په ټولو خوبونو کی دست درازی کوی او دټولو شيانو په شان کيږی ليکن دخدای تعالی، فرشتو، پيغمبرانو، اسمان، لمر، سپوږمی او ستوری په ډول ځان نه سی کولای اوکه دده دا طاقت وای نو خپل ځان به يې دپيغمبرانو په ډول ښکاره کولی او ويل به يې چي زه ستا خالق يم ما ستا ګناهونه معاف کړی دی او ته می بخښلی يې اوپه داسی خبرو کولو به يې دخدای مخلوق ګمراه کوی جعفر صادق رضی الله عنه ويلی دی چي کله ابليس ملعون خپل ځان دنبی په صورت جوړول وغواړی نو داسمان څخه اور راکښته سی اودی وسوزی اوپه ټولو کارونو کی مشکل کار ابليس ملعون ته داوی چي دمومن زړه روښانه سی او الله جل جلاله وپيژنی او خوب يې رشتيا سی.

## ديارلسم فصل

## دسائل او تعبير ورکوونکي لپاره دآدابو دخيال ساتلو په بيان کي

کرمانی رحمة الله عليه ويلی دی په تعبير بيانوونکی کی داصفت پکار دی چي دده په هر يوکار کی هوشياری او حوصله وی چي دسائل دسوال پر وخت دده خوب په ښه رقم واوری او دده په دين او مذهب اواعتقاد باندی واقفيت حاصل کړی او دده رشتيا او درواغ وپيژني ځکه نبی کريم صلی الله عليه وسلم ويلی دی (اصدقكم رؤيا اصدقكم حديثا) ترجمه: کوم سړی چي دخبری په باره کی رښتينی وی دغه سړی به په خوب کی هم رښتني وی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلی دی چي پر عاقل سړی باندی واجب دی چي داوداسه سره بيديږی او دبيديدو په وخت کی دي الله تعالی ياد کړی اودا دعا دی ووايي (اللهم سلمت نفسی اليك ووجهت وجهی اليك وفوضت امری اليك والجات ظهری اليک لا ملجا منك الا اليک تبارکت وتعاليت انت الغنی ونحن الفقراء استغفرك واتوب اليك اللهم ارنا الرؤيا صادقة عارية صالحة غير فاسدة غير تجربة رافعة غير راضية) ترجمه: ای الله زه خپل ځان تاته سپارم او خپل مخ ستا طرفته

متوجه کوم او خپل امر تاته سپارم او خپله ملا تاته کښته کوم بغير ستا څخه بله پناه نسته، ای زما ربه ته بابرکته اولوړ يې ته غني يې موږ فقيران يو زه ستا څخه معافي غواړم او توبه کوم ای خدايه ما ته رښتوني خوب صاف نيك او ښه بغير دڅه قسم خرابۍ څخه وښيي په کوم کښې چي څه ازمائش نه وی رفعت والا وی ناخوښه نه وی. پر راسته طرف دی بيديږی اوکله چي ويښ سی نو دغسي دی الله تعالی ياد کړی که نيك خوب يې ليدلی وی نو شکر دی وکی او صدقه دی وکړی او که بد خوب يې ليدلی وی نو (اعوذ بالله من الشيطان الرجيم) ترجمه: زه په الله سره دشيطان مردود څخه پناه غواړم. دی دووايي او سورة الاخلاص تر اخره پوری او چپی خوا ته دي يې چوف کړی او بيده دي سی او وايي دی ای الله ته پوه يې او زه نه پوهيږم که خير وی نو ددی خوب خير ماته را ورسوی او که بد وی نو ددی خوب دبدوالی څخه ما او ټول مسلمانان وساتی (يا مجيب دعوة المضطرين يا اله العالمين ويا ارحم الراحمين) ترجمه: ای دبې قرارو دعا قبولوونکی دټولو جهانونو معبوده دټولو څخه زيات رحم کوونکي. دپريوتو او د را کښينستلو په وخت او دهر يو کار په شروع کی دی دا دعا وايي (بسم الله الذی لا يضر مع اسمه شیء فی الارض ولا فی السمآء وهو السميع العليم) ترجمه: دالله تعالی په نوم سره شروع کوم چي دهغه دنوم سره څه شی تاوان نه سی رسولای نه پر ځمکه اونه پر اسمان باندی هغه هر څه اوری اوپوه دی کړی کله چي دلمانځه څخه فارغ سی نو خپله وظيفه قران مجيد او دعاګانی دی وايي بيا دی تعبير بيانوونکی ته ولاړ سی په ښه وخت کی او په خوب بيانولو کی دی کمی زياتی نه کوی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي دتعبير بيانوونکی لپاره دا شرط دی چي په اوداسه کی وی او که دده څوك دښمن وی نو ددښمنۍ په وجه دی ناجائز تعبير نه بيانوی او دکوم سړی په بدی چي پوه سی نو بل چا ته نه دي ښيي چي رسوا يې کړي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلی دی چي خوب ليدونکی دي په خوب کی کمی او زياتی نه کوی او ددرواغو څخه دی ځان ساتی ځکه چي په حديث شريف کی راغلي دی چي رښتونی خوب دالله تعالی دطرف څخه وحی ده او کوم سړی چي په وحی ربانی کی کمی زياتی کوی دی پر الله تعالی درواغ وايي او خوب دالله تعالی اوبنده په مينځ کی امانت دی نبی کريم صلی الله عليه وسلم ويلی دی چي کوم سړی پرما چي زه رسول يم درواغ وايي دی پر خپل ځان دتباهی او بربادی ګواهی ورکوی په دی وجه کوم سړی چي درواغ خوب جوړوی دنبی کريم صلی الله عليه وسلم دارشاد په موجب ګناه ګاره دی او دا خبره دخوب پر عظمت او بزرګی باندی دليل دی او سائل او تعبير بيانوونکی لره دادابو په نظر کی ساتل شرط دی.

## څوارلسم فصل

## په دی بيان کي چي تعبير پر څو قسمه وي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي تعبير بيانوونکی ته پکار دی چي اول دسائل دنوم اوقدر او مرتبی پوښتنه وکړی مذهب، خصلت او عقل فهم يې معلوم کړی اودا معلوم کړی چي خوب يې

دشپې لیدلی دی که دورځې او ودی ګوری چې سائل دپوښتنه کولو په وخت کی څه حرکت کوی او خوب په څه طرز سره بیانوی فارسی میاشت او عربی میاشت دی معلومه کړی بیا دغه وخت چې کومه خبره نزدی قیاس ته وی هغه دی بیان کړی تعبیر دی ورکړی. دانیالعليه السلام ویلی دی چې که یو سائل دخوب پوښتنه وکړی که دده نوم یا دده دپلار نوم دپیغمبرانو دنومونو څخه و نو دجذر او فال په طریقه سره دی دده پر خیر او بشارت اوخوشحالی باندی دلیل حاصل کړی اوکه نوم یې بد وی نو دده پر شر اوفساد دی دلیل کړی دیك شنبی دورځی خوب نیك وی دلمر سره تعلق لری ددوشنبی دورځی خوب هم ښه دی دسپوږمی سره تعلق لری دسه شنبی دورځی خوب دمریخ سره تعلق لری ددې پوښتنه کول نه ده پکار، دچهارشنبی دورځی خوب دعطارد سره تعلق لری په کومه ورځ چې قوم دهودعليه السلام او اصحاب الرس هلاک سوی وو ددی هم پوښتنه نه ده پکار دپنج شنبی ورځ دمشتری ده داولی ورځی خوب دسعادت او خوشحالی دلیل دی او دجمعی دورځی اول دزهره څخه دی چی دزړه دخوشحالی او عیش او جمعیت دخاطر دلیل دی. مغربی رحمه الله ویلی دی دخوب په باره کی دتعبیر کوونکی لپاره ډېره تجربه پکار ده لکه ډاکتر ته چې دناجوړه او دهغه په علاج کی تجربه پکار ده.

### قصه

امیر المؤمنین مهدی یوه شپه خوب ولیدی چې دده مخ تور سوی دی چې را بیدار سو نو وبیریدی او تعبیر بیانوونکی ته یې دحاضریدو حکم وکړ اوخوب یې ورته بیان کړ ټول دخوب دتاویل څخه عاجزه سوه، بیا یې ابراهیم کرمانی کوم چې دتعبیر بیانوونکو استاد وو را وغوښتی دوی چې دخلیفه خوب واوریدی نو وې ویل چې ستاسو به لور پیدا سی خلکو پوښتنه وکړه چې پر دی تعبیر څه دلیل دی؟ دوی دا ایت تلاوت کړ (واذا بشر احدهم بالانثی ظل وجهه مسودا وهو کظیم، سورة النحل: ۵۸) ترجمه: او چاته چې په لور زېری ورکړل سی نو دده مخ تور سی په داسی حال کی چې دی غضبناك وی امیر المومنین مهدی کرمانی ته هزار درهمه انعام ورکړ او په دغه ورځ یې لور پیدا سوه بیا یې لس زره درهمه په طور دانعام ورلره ورکړه.

### قصه

یو سړی خوب ولیدی چې دی یې خصی کړی دی تعبیر بیانوونکی ته ولاړی او خپل خوب یې ورته بیان کړ یوه وویل چې دی به ډېر ژر مړ سی دوهم وویل دخپلو کوچنیانو څخه به جلا سی، دریم وویل چې خصنتینو (خایو) ته به یې تاوان ورسیږی، څلورم وویل دده نسل به ختم سی، پنځم وویل دا سړی به خپلی ښځی ته طلاق ورکړی اوس لا څه وخت نه وو تېر سوی چې ده خپلی ښځی ته طلاق ورکړ او دبچیانو سره په سفر روان سو او په کښتۍ کی کښینستل هوا مخالفه راغله او کښتی غرقه سوه ددریاب پر غاړه یو ماهی دده عضو تناسل او خصیتین وخوړل دده مال او کوچنیان ټول هلاک سوه او دخوب تعبیر داسی پوره سو څنګه چې تعبیر بیانوونکو ویلی وو. کرمانیرحمه الله ویلي دي چې پوښتنه کوونکی دی رشتیا رشتیا بیانوی

ځکه چي په جيل خانه کی يوسفؑ ويلی وه (قضی الامر الذی فيه تستفتيان، سورة يوسف: ٤١) ترجمه: په کوم امر کی چي تاسو دواړو فتوی طلب کړی وه په هغه حکم سوی دی. دواړو چي په کوم فال پوښتنه کړې وه پوره سوه. جعفر صادقؓ ويلی دی چي دځلورو قسمو خلکو څخه دی دخوب دتعبير پوښتنه نه کيږی اول دبی دينو څخه دوهم دښځو څخه دريم دجاهلانو څخه څلورم ددښمنانو څخه.

## پنځلسم فصل

## په هغو مسائلو کي دکومو تعبير چي بر عکس وی

ډېر سوالونه دی دکومو تعبير چي چپه وی ځکه موږ بعضي په دې فصل کی بيانوو چي پر ازده کوونکو باندی پټ پاته نه سی. ابن سيرين ويلی دی چي طاعون په خوب کی ليدل په بيداری کی جنګ دی او په خوب کی ژړل په بيداری کی خوشحالی ده او په خوب کی ګوته لګول په بيداری کی اقرارنامه ليکل دی او په خوب کی دغاښ درد ليدل دقبر کښلو دليل دی، په خوب کی خپل ځان په قبر کی ليدل جيل خانی ته دتللو دليل دی په خوب کی کور خراب ليدل دانجونو دمړو کيدو دليل دی او په خوب کی جينکی پيدا کيدل دزميندارۍ دليل دی دالله تعالی فرمان دی (نسآئکم حرث لکم فاتوا حرثکم انی شئتم، سورة البقرة: ٢٢٣) ترجمه: ستاسو ښځی ستاسو فصل دی دکوم طرف نه چي غواړی ورته راځی. او په خوب کی کالی جوړول نيکی کول دی، په خوب کی انځر خوړل بد او پښېمانی ده، او سيلاب پر يو ځای راتلل ددښمن راتلل دی، نوي شيان په خوب کی ليدل نيك دی، زاړه شيان په خوب کی ليدل بد دی، په خوب کی نوې موزه بغير دوسلی څخه اغوستل بد دی، غم او پريشانی راولی او په خوب کی زړه موزه دوسلی سره اغوستل په بيداری کی ښادی او خوشحالی ده، که څوك په خوب کی غلام اخلی نو بد دی او که غلام خرڅوی نو ښه دی که منځه اخلی نو ښه دی او که منځه خرڅوی نو خوب ښه نه دی، دا ډول چپه خوبونه ډېر دی که ټول ذکر کوو نو کتاب به غټ سی ليکن دهر يوه شرح به پر خپل ځای باندی وسی ان شاء الله تعالی.

## شپاړسم فصل

## دخدای تعالی او فرشتو او پيغمبرانو په زيارت او ليدلو کی

ددی کتاب مصنف وايي چي ددی عاجز استاد دخداوند تعالی او فرشتو او پيغمبرانو دليدو تاويل دخپل کتاب په شروع کی دمقدمی په طور بيان کړيدی ماهم دغسی مناسب وشميرله چي دا اول بيان کړم او دباقی شيانو تاويل لکه چي په ديباچه کی يې وعده سوېده دحروف معجم په ترتيب سره بيا ان شاء الله بيان کړم چي دخوبونو تاويل را ايستونکو او زده کوونکو ته اسان وی.

### دخدای تعالی دليدلو تاويل

دانيالؑ ويلی دی چي کوم مومن بنده خدای تعالی په خوب کی بی مثاله او بی مثله ووينی

لکه چي په احاديثو کی راغلی دی ددی امر دليل دی چي ديدار الهی به يې نصيب سی او حاجتونه به يې پوره سی او که بنده ولاړ وي او خدای تعالی ووينې دا دصلاح دکار او سلامتی دنفس دليل دی او په مغفرت سره به مخصوص وی که ګناهګاره وی نو توبه به وکړی، ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی که څوك په خوب کی ووينې چي الله تعالي دده سره درازه خبره کوی نو ددی خبری دليل دی چي دغه سړی دالله تعالی په نزد بزرګ دی دالله تعالی فرمان دی (وقربناه نجيا،سورة مريم: ۵۲) ترجمه: او موږ دی دمشورې لپاره نزدی کړ که يو سړی خوب ووينې چي الله تعالی دده سره دپردې څخه هاخوا خبری کوی نو دا ددين ددخل يا خطاء دليل دی دالله تعالی فرمان دی: (ما کان لبشر ان يکلمه الله الا وحيا او من وراء حجاب، سورة الشوری: ۵۱) ترجمه: ديو بشر لپاره نسته دا چي الله تعالی دده سره خبری وکړی مګر په طور دوحی يا دپردو څخه شاته که په خوب کی ووينې چي الله تعالی دی مقرب او عزيز کړی دی بزرګ يې جوړ کړی دی نو دا دده دبخښنی دليل دی او په دنيا کی به مصيبت ووينی که خوب ووينی چي الله تعالی ده ته نصيحت کوی نو دا ددی خبری دليل دی چي دالله تعالی رضا په ده کی نسته دالله تعالی فرمان دی (يعظکم لعلکم تذکرون، سورة النحل: ۹۰) ترجمه: تاسو ته نصيحت کوی چي تاسو نصيحت قبول کړی. که په خوب کی ووينې چي الله تعالی ده ته خوشخبري ورکوی نو دا يې درضا دليل دی اوکه ووينې چي ده خدای تعالی ته سر کښته کړی دی ولاړ دی نو دا دغم او خفګان دليل دی دالله تعالی فرمان دی (ولو تری اذ المجرمون ناکسو رؤسهم عند ربهم، سورة الٓم السجدة: ۱۲) ترجمه: او کله چي ته ګناهګاره ووينی چي دوی خپل سرونه درب په مخکی کښته کړي دي. کرمانی رحمة الله عليه ويلی دی چي که يو سړی په خوب کی ووينی چي الله تعالی ده ته څه شی ورکړی دی نو په دنيا کی دبلا او دمصيبت دليل دی اوکه ووينې چي الله تعالی ده ته په نظر درحمت ګوری نو دا ددی خبری دليل دی چي الله تعالی ده ته جنت او خپل ديدار نصيب کړی دی اوکه په خوب کی ووينی چي ده ته يې ددنيا دسامان څخه څه ورکړی دی دا دسختي بيماری دليل دی ليکن اجر او ثواب به يې حاصل سی بعضی تعبير بيانوونکو دا هم ويلی دی چي عذاب به حاصل کړی، که الله تعالی ووينی او بل څوک ورته وو ايي چي دا الله تعالی دی، نو دليل يې دادی چي دده به يو پاچا ته حاجت پيښ سی اوکه ووينی چي الله تعالی مځکی ته يا يوځای ته راغلی دی دا دليل دی چي ددغه ځای والا مظلومان دی او الله تعالی به يې مدد وکړی اوکه په دغه ځای کي قحطي او تنګی وی نو فراخی به سی او که ددغه ځای خلک ګناهګار وی نو توبه ګار به سی، اوکه ووينی چي الله تعالی دده کورته راغلی دی اوپه مهربانی سره يې دده پر سر لاس راکش کړی دی يا يې خلعت وراغوستی دی نو دا دالله تعالی دکرم دليل دی ليکن داسړی به په دنيا کی په غم او ناجوړی کی اخته وی، او که خدای تعالی په نورانی شکل کی ووينی داسی چي بيان يې نه سی کيداي نو دا دغم او خفګان دليل دی. که په خوب کی ووينی داسی چي الله تعالی پرده بل نوم

اینښی دی دا دشرف او بزرګی دلیل دی اوکه پرده الله تعالی غصه کړی ده نو دا دزهد او پرهیزګاری دلیل دی که په خوب کی ووینی چي الله تعالی دی ځان ته نژدی رابللی دی نو تعبیر یې دادی چي ددغه سړی مرګ نژدی سوی دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلی دی چي که یو سړی په خوب کی الله تعالی په یو ښار یا کلی کی ووینی نو ددی دلیل دی چي ددغه ځای نیك خلك به شرف او مرتبه پیدا کړی او ددغه ځای څخه به دظلم لاس پورته سی دالله تعالی فرمان دی (الله يحكم بينكم يوم القيمة فيما كنتم فيه تختلفون، سورة الحج: ٦٩) ترجمه: الله تعالی به ستاسو په مینځ کی ستاسو داختلاف په بابت فیصله وکړی، که په خوب کی ووینی چي الله تعالی پر دغه ځای خفه دی نو ددی امر دلیل دی چي ددی ښار قاضی بی انصافه دی یا ددی ښار حاکم پر رعیت ظلم کوي، یا ددی ښار عام خلك بی دینه دی او که دا خوب غل ووینی نو دده لاس او پښې به پریکړه سی او په دې ښار کی به فتنې او بلا او قتل واقع وی دالله تعالی فرمان دی (وهو القاهر فوق عباده ويرسل عليكم حفظة حتى اذا جآء احدكم الموت توفته رسلنا وهم لايفرطون، سورة الانعام: ٦١) ترجمه: دی پر خپلو بندګانو غالب دی اوپر تاسو محافظان لیږی تر دی چي کله دچا مرګ راسی نودی زموږ قاصدان وژنی او هغوی کمی نه کوی. عباس رضي الله عنه ویلی دی چي که یو سړی خدای تعالی بی مثله بی نظیره په خوب کی ووینی دی به دبیری او دخوف څخه په امن وی اوکه مسلمان وی نو په اخرت کی به دیدار الهی ووینی دالله تعالی فرمان دی (للذين احسنوا الحسنى وزيادة، سورة يونس: ٢٦) ترجمه: چا چي احسان وکړ ددوی لپاره نیکی او زیاتی ده. دتعبیر تفسیر کوونکی دخدای تعالی دزیارت په باره کی وایي که: خدای جل جلاله په هغه صورت کي ووینی چي دغه صورت ده هیچیری نه وی لیدلی نو دا دهغه دفضل اوکرم دلیل دی او که دیو سړی په صورت کی یې ووینی نو دغه سړی به غالب اونامداره وی اوکه خدای جل جلاله په لمانځه او تسبیح کی ووینی نو دا یې درحمت او بخشش دلیل دی او که خدای تعالی غازیان خلک په جهاد کی ووینی نو دایې دبخشش دلیل دی که څوك خدای تعالی ته ښکنځل وکړی نو دا دده دکفر دلیل دی، که خدای تعالی پر تخت ناست یا بیده ووینی نو دا نالائق صفتونه دی اودا ددی امر دلیل دی چي دغه سړی به بی دینه او ګناهګار وی جعفر صادق ویلی دی چي دالله تعالی په خوب کی دلیدو تعبیر په اووه وجهو سره دی اول: معافی او بخشش، دوهم: دبلا او مصیبت څخه امن دی، دریم: نور او هدایت او په دین کی قوت، څلورم: پر ظالمانو باندی فتحه مندی، پنځم: دبلا او اخرت دعذاب څخه امن، شپږم: په دی ملك کی ابادی او پاچا به عادل وی، اووم عزت اوشرف او په دنیا او اخرت کی پورته مرتبه، دا وجوهات دنظر درحمت په صورت کی دی که خدای مه کړه نظر دقهر وی نو ددی برخلاف به وی، اوکه قاضی په خوب کی ووینی چي خدای تعالی ده ته دغصی په نظر سره ګوری دا ددی خبری دلیل دی چي دی دشرع دحدونو څخه تجاوز کوی، او دمظلوم فریادرسی نه کوی، که پاچا ووینی نو دده دبی انصافی دلیل دی اوکه عالم یې ووینی

نو دده ددين او اعتقاد خلل دی حاصل دادی چي که په نظر درحمت سره وګوری نو بخشش دی اوکه په قهر سره وګوری نو زحمت او عذاب دی، زمونږ دليل دادی چي الله تعالی هرځای موجود دی دده ليدل دعقل په لاری سره دی لهذا په خوب کی دقهری الهی څخه منکر کيدل نه دی پکار، ابو حاتم دمحمد ابن سيرين څخه اوريدلی دی چی دوی ويلی دی: په ټولو خوبونو کی صحيح دادی چي الله تعالی په خوب کی بی مثله او بی مثاله ووينی.

## په خوب کي د فرشتو ليدل

په خوب کی دفرشتو ليدل کامياب ديندار او ديانت دار پاچا دی، يا يي دليل عالم پرهيزګار دی او په ټولو فرشتوکی څلور فرشتی اول: جبرائيلؑ دوهم: ميکائيلؑ دريم: اسرافيلؑ څلورم: عزرائيلؑ دټولو څخه بزرګ ترينی دی.

## جبرائيلؑ

ابن سيرين رحمه الله ويلی دی چي که څوك جبرائيلؑ خوش طبع او روښانه مخ ووينی نو دليل دی چي پر دښمن به کامياب سی اوخپل مراد ته به ورسيږی، اوکه ددې خلاف ووينی نو دپريشانی اوغم دليل دی اوکه په خوب کی ووينی چي ده ته جبرائيلؑ خوشخبری ورکړی وه يا يې پخه وعده کړی وه يا يې ديو کار څخه منع کړی دی نو دا دعزت اودولت او دزړه دتحمل دليل دی او که ده ته يې څه شی ورکړی وی نو دپاچا څخه به مرتبه ورورسيږی او بعض تعبير بيانوونکي وايي چي که په خوب کی جبرائيلؑ ده ته څه ورکړی نو دا دبيری او غټې دهشت دليل دی، که خلک ده ته په خوب کی ووايي چي ته جبرائيل يې نو دليل يې دی چي په خبره به پوه او فصيح به وی او مراد به پيدا کړی او په امانتداری او ديانداری به مشهور وی.

## ميکائيلؑ

که څوك په خوب کی ميکائيلؑ ووينی لکه چي دهغه صورت دی دليل دخير او بشارت دی ځکه چي جبرائيلؑ خوب راوړونکی او ميکائيلؑ خوشخبری او نعمت وغيره راوړونکی دی، ابن سيرين ويلی دی چي که په خوب کی ووينی چي ميکائيلؑ ده ته څه شی ورکړيدی دا دخير او بزرګی دليل دی اوکه په خوب کی ووينی چي خلک ده ته ميکائيلؑ وايي دليل دی چي دده څخه به خلکو ته خير او بشارت ورسيږی.

## اسرافيلؑ

ابن سيرين رحمه الله ويلی دی چي که څوك اسرافيلؑ په خوب کی دده په صورت ووينی نو دا دقوت او بزرګی او جاه او جلال او علم ودانش دليل دی او په کوم ملك کی چي يې ووينی دهغې دابادۍ اوامن دليل دی اوکه په شپيلۍ وهلو يې ووينی نو دا دبلا اوفتنی دليل دی دالله تعالی فرمان دی (ونفخ فی الصور فصعق من فی السموات ومن فی الارض، سورة الزمر: ٦٨) ترجمه: شپيلۍ به پوه کړه سی اوڅوك چي په اسمانونو اوپه مځکه کی دی بی هوښه به سی او که ووينی چي دده په لاس کی شپيلۍ ده اووهی يې نو دليل يې دادی چي په ښار کی به بلا او فتنه او نهايتي

بیره پریوزی اوکه ووینی چې اسرافیل علیه السلام دده کور ته راغی اودی دخوبه راویښ سو دلیل دی چې ددغه ښار پاچا به دده څخه ناراضه وی. کرمانی رحمه الله ویلی دی چې که څوك اسرافیل علیه السلام په خوب کی ووینی چې غمګین دی شپیلۍ وهی او ده په طور دبرکت دشپیلی اواز اوریدلی وی نو دلیل یې دادی چې په دغه ملك کی به مرګ پریوزی اوظالمان خلک به هلاک سی، اوکه ووینی چې اسرافیل علیه السلام ورین تندی او په خوشحالی سره دده طرف ته ګوری نو ددی امر دلیل دی چې ده ته به دپاچا څخه امن او خیر ورسیږی اوکه ووینی چې اسرافیل علیه السلام یې پر خط مهر ولګاوه ده ته یې ورکړ نو دلیل یی دادی چې دده مرګ نژدی دی او که ووینی چې اسرافیل علیه السلام پر ده چیغه وکړه اوغائب سو دلیل یې دادی چې ده ته به دپاچا دطرف څخه نقصان ورسیږی.

## عزرائیل علیه السلام

ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چې که څوك ملك الموت پر اسمان او ځان پر مځکه ووینی نو دلیل یې دادی چې دغه سړی به دخپل کار څخه معزوله سی اوکه پخپله خوا کی یې ووینی نو دلیل یې دادی چې دده مرګ نژدی دی اوکه ملک الموت خوشاله ووینی دشهادت دلیل دی او که دملك الموت سره غیږه وباسی اوغوزار سی نو دلیل دی چې ددنیا څخه به ژر رخصت سی اوکه ملك الموت را غوزار کړی نو بعضی یې تعبیر بیانوی چې ناجوړه به سی لیکن شفاء به حاصله کړی. جابر مغربی رحمه الله ویلی دی چې څوك ملك الموت په خوب کی خوشحاله ووینی نودلیل دی چې دده ژوند به اوږد وی اوکه سلام کوونکی یې ووینی دا سړی به ژر شهادت حاصل کړی او که خواږه ورکوونکی یې ووینی نو روح به یې په اسانی ووزی، اوکه په غصه کی یې ووینی نو دده مرګ به خطرناك وی او که تریخ شی ورکړی نو روح به یې په سختی سره ووزی، او که په خوب کی ده ته خلک خبر ورکړی چې ملك الموت په فلانی ځای کی دی او لیری یې ووینی نو دلیل یې دادی چې دده به دپاچا سره کار جوړ سی، اوکه په خوب کی یې ووینی چې ملك الموت یې وهلی دی نو دا سړی به دمخلوق دښمن وی.

## دعرش حاملاني ملايکي ليدل

حاملاني دعرش هغه فرښتی دی کومو چې دالله تعالی په حکم دالله تعالی عرش پورته کړی دی که څوك په خوب کی دوی ووینی نو په خپل مقصد کی به کامیابه سی اوپاچا به سی اوکه ووینی چې ددوی سره یې ملاقات کړی دی نو دیو بزرګ پاچا سره به یې کار پیښ سی او خیر او فائده به ووینی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلی دي چې په خوب کی حاملانی دعرش لیدونکي به ددیندارو سره وینی اوحج به کوی، په قران شریف کی الله تعالی ویلی دی (وترى الملائكة حآفين من حول العرش يسبحون بحمد ربهم، سورة الزمر: ۷۵) ترجمه: او ته به فرښتې دعرش پر شاوخوا چاپیره په صفونو کی ولاړی ووینی چې هغه به دخپل رب حمد اوثنا وايي اوکه ووینی چې دده سره مهربانی کوی او په عبادت کی یې دځان سره شریك کړی نو دا ددی خبری دلیل دی چې دده مرګ نژدی سوی دی.

## کرام کاتبین لیدل

کرام کاتبین هغه دوه فرښتو ته وایي کومی چي دخلکو عمل او خبری نیکی اوبدی لیکی. ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي که څوك دا په خوب کی ووینی او دی نیك وی نو په دواړو جهانونو کی به خیر او غوره والی پیدا کړی اوکه غریب وی نوغم اوفکر به تیروی، دالله تعالی فرمان دی (یعلمون ما تفعلون، سورة الانفطار: ۱۲) ترجمه: هغه ستاسو کارونه پیژنی. اوکه دا فرشتی دیو بل سره په جنګ ووینی نو دلیل یې دادی چي دا سړی ګنهګاره او نافرمانه دی او دخدای تعالی دعذاب مستحق دی او دالله تعالی فرمان دی (انا نبشرك بغلام ، اسمه یحي، سورة مریم: ۷) ترجمه: موږ تاته دیو هلك زیری درکوو چي دهغه نوم یحیٰی دی. اوکه دا فرشتی ووینی چي دشیانو داخیستلو په انتظار کی دی نو دلیل یې دادی چي دده په مال او نعمت کی به زوال راځی او که دا فرښتی په یو ځای کی ولاړی ووینی نوهلته به امن وی او که په جنګ کولو یې ووینی نو پر دښمن به کامیابی حاصله کړی او که په رکوع اوسجده کی یې ووینی نو دلیل یې دادی چي دده ددین او دنیا ټول کارونه صحیح دی، اوکه دښځو په شکل کی فرښتی ووینی نو دلیل یې دادی چي خوب لیدونکی په الله تعالی پوری درواغ تړی، دالله تعالی فرمان دی (افاصفاکم ربکم بالبنین واتخذ من الملئکة اناثا انکم لتقولون قولا عظیما، سورة الاسراء: ۴۰) ترجمه: آیا ستا لپاره ستاسو رب زامن غوره کړی دی او دځان لپاره یې ملائکی لونړی تاسو یوه ډیره لویه خبره کوی. اوکه څوك په خوب کی ووینی چي وزری لری او دفرشتو سره الوتی وي نو دلیل یې دادی چي دده مرګ نژدی دی او په دنیا کی به توبه وباسی او مری به. او که څوك دلیری څخه فرشتی ووینی او نژدی ورتلی نه سی نو دلیل یې دادی چي پر ده به څه مصیبت راسی، دالله تعالی فرمان دی (یرون الملئکة لا بشری یومئذ للمجرمین، سورة الفرقان: ۲۲) ترجمه: چي فرشتی ووینی په هغه ورځ دګنهګارو لپاره هیڅ خوشحالی نسته، او که په خوب کی ووینی چي فرشتی ده ته دخپل اطاعت کولو حکم کوی نو که نیك وی نو واده او خوشحالی به ووینی او که نیك نه وی نو تکلیف او غم به ووینی دالله تعالی فرمان دی (اقرأ کتابك کفی بنفسك الیوم علیك حسیبا، سورة الاسراء: ۱۴) ترجمه: ووایه خپل کتاب نن ورځ ستا نفس ستا دحساب اخستلو لپاره پوره دی. او که څوك په خوب کی ووینی چي ده ته فرشتی په عزت سره سلام کوی نو دلیل یې دادی چي پر دښمن به کامیابه سی او انجام به یې په خیر سره وی اوکه فرشتی په را کښته کیدو سره یو ځای ووینی نو دلیل یې دادی چي دهغه ځای خلک به دغمونو او تکلیفونو څخه خلاص وی ځکه چي فرشتی همیشه د پیغمبرانو دمدد لپاره راتللی. کرمانی رحمه الله ویلی دی چي فرشتی په خوب کی لیدل پند اونصیحت دی او که فرشتی وصیت کوونکی ووینی نو دا سړی به شهید کیږی اوکه مقربی فرشتی په یو ځای کی ووینی په کوم ځای کی چي مسلمانان دکافرانو سره جنګ کوی نو مسلمانان به کامیابي حاصله کړی او که په هغه ځای کی تکلیفونه، قحط او سختی وی نوالله

تعالی به دهغه ځای خلکو ته ددی ځخه نجات ورکړی، او که ووینی چي فرشتی راټولي سوی دی اواسمان ته تللی دی نو داسړی به په دنیاکی پرهیزګاری اختیار کړی او ددنیا ځخه به لاس واخلی او داخرت دلاري تلاش به کوی اوکه ووینی چي دفرشتو سره اسمان ته تللی دی او وروسته نه دی راغلی نو ژر به ددنیا ځخه ولاړ سی اوخپل نیك نوم به پرېږدی. جابر مغربی ویلی دی چي که ځوك په خوب کی ووینی چي مقربی فرشتی دعزت په نظر د ده طرفته ګوری نو دا سړی به دناجوړئ ځخه ژر شفاء پیدا کړی او ددی ځخه به خلاص سي بیا به حج او جهاد وکړی او ډېر نیك کارونه به کوی اوکه ځوك خپل ځان دفرشتی په شکل کی ووینی نو دلیل یې دادی چي دغم اوقرض ځخه به خلاصون پیدا کړی او که مالداره وی نو مال به یې زیات سی او که فقیر وی نو غنی به سی جعفر صادق رحمه الله علیه ویلی دی چي که ځوك په خوب کی ووینی چي فرشته ده ته دیو کار زیری ورکړی نو دلیل یې دادی چي یو بزګر سړی به دی په یو کار لګوی اوکه ووینی چي فرشته ده ته انعام ورکوی نو دا سړی به عطاء او بزرګی پیدا کړی اوکه مقربه فرشته استقبال کوونکی ووینی نو ددواړو جهانونو دولت به پیدا کړی او که ووینی چي فرشته دده زیارت ته راځی او شمعی او چراغونه ورسره دی نو دلیل یې دادی چي دی به هوښیار اوعالم زوی پیدا کړی، اوکه ووینی چي فرښتی ده ته سپینی او شنی جامي ورکوی نو دلیل یې دادی چي یا به دا سړی پخپله مری اویا به یې په خپلوانو کی ځوك مری، اوکه ووینی چي دده طرفته په خوشحالی سره ګوری نو دده انجام به په خیر سره وی اوکه په خوب کی فرشته جامع قران ورکوی یا لیکل سوی خط ورکوی نو دلیل یې دادی چي یو ځوك به پر ده حکومت کوی او پر ده به غالب راځی.

## د پیغمبرانو علیهم السلام دزیارت په بیان کي

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلی دی چي پیغمبران علیهم السلام په دری قسمه دی ۱: اولو العزم ۲: مرسل ۳: نبی. اولو العزم پیغمبران شپږ دی. ۱: ادم ۲: نوح ۳: ابراهیم ۴: موسی ۵: عیسی ۶: محمد علیهم الصلاة والسلام. مرسل هغه پیغمبران دی پر کومو چی جبرائیل علیه السلام وحی راوړی ده د دوی تعداد دری سوه او دیارلس دی او صرف نبی هغه دی په کومو چي جبرائیل علیه السلام نازل سوی نه وی.

## اولو العزم

اولو العزم پیغمبر چي ځوك په خوب کی ووینی نو دا دعزت او دبدبی دلیل دی اوکه ځوك په خوب کی مرسل ووینی نو پر دښمنانو به فتح پیدا کړی اوکه دهغه ځای خلق په غمونو، تکلیفونو او سختیو کی وی نو خیر، صلاح او ددین دنیا دکاروبار آبادی به ووینی، اوکه پیغمبران دیو ځای ځخه بل ځای ته تلونکی ووینی اوهغه ځای ته ښراوی کوی نو دلیل یې دادی چي پر دغه ځای به الله تعالی لویه بلا نازله کړی او ددی علاج توبه او دالله تعالی طرف ته رجوع کول دی.

## نبی

کرمانی رحمه الله ویلی دی چي که مومن بنده په خوب کی یو پیغمبر تازه اوخوشحاله ووینی نو عزت مرتبه او مدد به پیدا کړی اوکه په غصه کی يې ووینی نو دا د بدحالی، غم او سختی دلیل دی، او که په خوب کی د پیغمبرانو څخه څه اوری نو دا دهغوی دعلم څخه دڅه حصی د پیدا کولو او دخوشحالی دلیل دی او که ووینی چي ده پیغمبر وهلی دی نو دا دخیانت دلیل دی لکه څنګه چي الله تعالی فرمایلی دی (فبما نقضهم میثاقهم وکفرهم بایت الله وقتلهم الانبیآء بغیر حق، سورة المائدة: ١٥٥) ترجمه: ددوی دوعدی ماتولو او دالله تعالی په ایتونو باندی دکفر او په ناحقه دنبیانو دقتلولو په وجه سره.

## آدم علیه السلام

جعفر صادق رحمه الله ویلی دی چي که څوك ادم علیه السلام په خوب کی ووینی نو بزرګی او مشری به پیدا کړی، دالله تعالی فرمان دی (وعصی ادم ربه فغوی ثم اجتبه ربه فتاب علیه وهدی، سورة طٰهٰ: ١٢٢) ترجمه: آدم علیه السلام نافرمانی وکړه او دهوکه سو بیا الله تعالی دی منتخب کړ اوتوبه يې قبوله کړه دده او هدایت يې ورته ورکړ. اوکه په خوب کی ادم علیه السلام دځان سره په خبرو کولو ووینی نو دا دعلم ښوولو دلیل دی، دالله تعالی فرمان دی (وعلم ادم الاسمآء کلها، سورة البقرة: ٣١) ترجمه: او آدم علیه السلام ته يې ټول نومونه وښوول. اوکه څوک په خوب کی ووینی چي دآدم علیه السلام تابعداری يې نه ده کړی نو دا دده لپاره دنافرمانۍ او بدبختۍ دلیل دی او که ووینی چي ادم علیه السلام دده لاس نیولی دی نو دا دبزرګی او پاچاهی دلیل دی.

## حوا علیها السلام

که څوک حوا انا په خوب کی ووینی نو دولت اوخوشحالی به پیدا کړی، عیش، خوشحالی، ډیر دولت او ډیر عمر به پیدا کړی.

## نوح علیه السلام

که څوک نوح علیه السلام په خوب کی ووینی نو ډېر عمر به پیدا کړی لیکن د دښمن څخه به غم او سختی ووینی او مراد ته به ورسیږی.

## ادریس علیه السلام

که څوک ادریس علیه السلام په خوب کی ووینی نو د هغه کار به نیك وی او انجام به يې هم نیك وی.

## هود علیه السلام

که څوک هود علیه السلام په خوب کی ووینی نو دښمن به پر ده افسوس کوی او په آخر کی به فتح پیدا کړی.

## لوط علیه السلام

که څوك لوط علیه السلام په خوب کی ووینی نو کار به يې سم سی او دزړه مراد به يې حاصل سی.

### صالح علیه السلام

که څوك صالح علیه السلام په خوب کی ووینی او ځای په ځای بدل کړی نو پر ده به دخیر دروازی خلاصی سی.

### ابراهیم علیه السلام

که څوك ابراهیم علیه السلام په خوب کی ووینی نو اسلامی حج به وکړی بعضو دتعبیر بیانوونکو ویلی دی چي ظالم پاچا به پر ده ظلم کوی او دا سړی به دخپل مور اوپلار سره بد سلوك کوی.

### اسماعیل علیه السلام

که څوك اسماعیل علیه السلام په خوب کی ووینی نو خوشخبری فتح او غنیمت به پیدا کړی دالله تعالی فرمان دی (فبشرنٰه بغلام حلیم، سورة الصافات: ۱۰۱) ترجمه: یعنی موږ خوشخبری ورکړه هغه ته په یو زوی بردبار.

### یعقوب علیه السلام

که څوك یعقوب علیه السلام په خوب کی ووینی نو دزامنو په غم او فکر کی به وی، او په اخر کی به بې غم په خوشحالی سره بدل سی.

### یوسف علیه السلام

که څوك یوسف علیه السلام په خوب کی ووینی نو خلک به پر هغه ددرواغو الزام لګوی او په اخر کی به بزرګی پیدا کړی.

### شعیب علیه السلام

که څوك شعیب علیه السلام په خوب کی ووینی نو دښمن به پر هغه غلبه پیدا کوی او بیا به هغه پخپله پر دښمن کامیابی پیدا کوی.

### موسی علیه السلام

که څوك موسی علیه السلام په خوب کی ووینی نو په اهل او عیال به ګرفتار سی او بیا به خوشحاله سی او پر دښمن به کامیابی پیدا کړی دالله تعالی فرمان دی (ووهبنا له من رحمتنا اخاه هارون نبیا، سورة مریم: ۵۳) ترجمه: او موږ هغه ته د خپل رحمت څخه دهغه ورور هارون علیه السلام نبی ورکړ. بعضو تعبیر کوونکو ویلی دی چي ددوی په خوب کی لیدل دهغه ملک دپاچا دهلاکیدو دلیل دی.

### داود علیه السلام

داود علیه السلام په خوب کی لیدل دبزرګی پاچاهی او دنعمت او دمال دمرتبی دزیاتوالی دلیل دی.

### زکریا علیه السلام

زکریا علیه السلام په خوب کی لیدل دنیکیو دتوفیق دلیل دی.

### یحیٰی علیه السلام

که څوك یحیٰی علیه السلام په خوب کی ووینی نو الله تعالی به ده ته دښو کارونو توفیق ورکړی.

## خضر ؑ

خضر ؑ په خوب کی لیدل د اوږد سفر، امن، رزق او ډیر عمر دلیل دی.

## یونس ؑ

که څوك یونس ؑ په خوب کی ووینی نو دغمونو څخه به خلاصون پیدا کړی او د تیارو څخه به رڼا ته راسی.

## ایوب ؑ

که څوك ایوب ؑ په خوب کی ووینی نو نا امیدی به یې په امید بدله سی، او دطاعت او خیر او خیرات توفیق به ورکړه سی.

## محمد ﷺ

که څوك محمد ﷺ په خوب کی ووینی نو دغمونو څخه به راحت پیدا کړی، او دقرض څخه به بري سی که قیدی وی نوخلاص به سی که په بیره کی وو نو په امن به سی، قحطی او تنګی به یې لیری سی بعضي وایي که مالداره وی نو فقیر به سی. ابوهریره ؓ ویلی دی چي دنبی ﷺ څخه ما اوریدلی دی چي که زه په خوب کی چا ولیدم نو هغه صحیح لیدلی یم (من رانی فقد رای الحق فان الشیطان لا یتمثل بی) ترجمه: چا چي زه په خوب کی ولیدم نو ده په حقه ولیدم ځکه چي شیطان زما په شکل نسی جوړېدای. او څوك چي ما په خوب کی ووینی نو هغه به غمونه او تکلیفونه نه وینی حیرانتیا مه کوئ زما زیارت دلیل پر سعادت د اخرت دی. څوك چي نبی ﷺ په خوب کی تریو تندی ووینی نو دا ددین سستتی او په هغه ملك کی دبدعت دظاهریدو دلیل دی او که نبی ﷺ په داسی ځای کی ووینی چیری چي خلک اوازونه کوی نو دا ددی خبری دلیل دی چي هغه وران سوی ملك به بیا اباد سی، اوکه نبیﷺ په څه خوراك کولو ووینی نو دا دصدقی او زکاة ورکولو دلیل دی اوکه نبیﷺ په داسی ځای کی ووینی چیری چي هیڅ قسم بلا او محنت نه وی نو په هغه ځای کی به ډېر زیات نعمت وی اوکه په جماعت کی یې ووینی یا یې په غم یا ناجوړی کی ووینی نو دا ددی سړی ددین دکمزوری دلیل دی. کرمانی رحمه الله ویلی دی چي که نبی ﷺ په کوم ځای یا ښار کي ووینی نو دلیل یې دادی چي په هغه ځای کی به نعمت فراخه وی او خلکو ته به سکون وی او دهغه ځای خلق به پر دښمن کامیابی حاصلوی او که دنبی ﷺ په اندامو کي یو اندام کم ووینی نو دلیل یې دا دی چي دهغه ځای خلک په شریعت کي سست دی، ځکه چي دنبیﷺ د وجود نقصان دهغه سړی ددین نقصان دی اوکه ووینی چي هغوی ده ته لندې یا وچی میوې ورکړی دی نو ده ته به په دین کی پرهیزګاری حاصله سی. ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي که څوك په خوب کی نبی ﷺ دځه نقصان سره ووینی نو دهغه ﷺ دا نقصان به پر دی خوب لیدونکی پریوزی ځکه چي نبیﷺ په خوب کی نیك خلک وینی او هغوی ته دهغو شیانو خبرداری ورکوی کوم چي به دوی ته پیښیږی اوخراب خلک د ګناه څخه بچ کوی ددی وجهی څخه چي دعذاب څخه خلاصون پیدا

کړی، ځکه چي رسول الله ﷺ دمومنانو لپاره زیری ورکوونکی او دکافرانو لپاره دالله تعالی دعذاب څخه بیروونکی دی که څوک رسول الله ﷺ په خوب کی په غصه ووینی نو ددی دلیل ښه نه دی. عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ویلی دی چي که څوك درسول الله ﷺ جنازه په خوب کی ووینی نو په هغه ملك کی به غمونه او تکلیفونه ډیر راځی، اوکه دجنازی څخه وروسته نبی ﷺ تلونکی ووینی نو دا دخواهش اوبدعت دلیل دی اوکه صرف درسول الله ﷺ زیارت وکړی نو دا دمال، نعمت او مرتبی دلیل دی او که ووینی چي نبی ﷺ پر ده افسوس کوی نو دا دده دکافر کیدو دلیل دی لکه څنګه چي دالله تعالی فرمان دی (قل اباللہ وایاته ورسوله کنتم تستهزئون لا تعذروا قد کفرتم بعد ایمانکم، سورة التوبة: ٦٥ – ٦٦) ترجمه: ووایه ورته چي ایا تاسو په الله ﷻ او دهغه په ایتونو او دهغه په رسول پوری مسخرې کوئ عذر مه کوئ تاسو دخپل ایمان څخه وروسته کفرکړیدی. جعفر صادق رحمه الله ویلی دي چي په خوب کی دپیغمبرانو لیدل په لسو ۱۰ وجهو سره وی ۱: رحمت ۲: نعمت ۳: عزت ۴: بزرګی ۵: دولت ۶: فتح ۷: سعادت ۸: جمعیت ۹: قوت ۱۰: ددواړو جهانونو خیر او دهغه ځای دخلکو بهتری په کومو ځایو کی چي خوب لیدل سوی وی.

## خلفاءراشدین رضی الله عنهم په خوب کی لیدل

### ابوبکر صدیق رضی الله عنه

اول خلیفه امیر المومنین ابوبکر صدیق رضی الله عنه دی، محمد بن سیرین رحمه الله ویلی دی چي که څوك خلیفه اول ابوبکر صدیق رضی الله عنه په خوب کی ووینی نو دا دخوشحالی او کرامت دلیل دی. کرمانی رحمه الله ویلی دی چي که څوك دوی په یوه ښار کی ژوندی ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي ددغه ملك او ښار خلک به ډیر زیات زکاة او صدقه ورکوی لیکن دا حکم هغه وخت دی کله چي دوی راضی او خوشحاله ووینی اوکه تروش تندی یې ووینی نو بیا داولنی خبری خلاف دی.

### عمر رضی الله عنه

دوهم خلیفه امیر المؤمنین عمر بن الخطاب رضی الله عنه دی. ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي که څوك دوی په خوب کی ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي دا سړی به عدل کوونکی او انصاف کوونکی وی اوکه دوی په یو ښار کی راضی او خوشحاله ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي په دغه ښار کی به عدل او انصاف ظاهریږی.

### عثمان بن عفان رضی الله عنه

دریم خلیفه امیر المومنین عثمان بن عفان رضی الله عنه دی ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي که څوك دوی په خوب کی ووینی نو ددی دلیل به دا وی چي دا سړی به طاعت، زهد او پرهیزګاری اختیار کړی، اوکه دوی په یو ښار کی خوشحاله او خنده رویه ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي ددغه ښار خلک به قران کریم او علم زده کولو ته توجه وکړی.

## علی المرتضی رضی الله عنه

څلورم خلیفه امیر المومنین علی المرتضی رضی الله عنه دی. ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي که څوك دوی په خوب کی خوشحاله او په خندا ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي دی به بزرگی، شجاعت او سرداری پیدا کړی، او چي په کوم ښار کی یي ووینی نو دهغه ښار به په عدل او انصاف سره صفت وسی لیکن کله کله به ددوی په خپلو کی جنګ جګړه او فساد کیږی.

## دنورو صحابه کرامو رضی الله عنهم په خوب کي لیدل

ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چي څوك صحابه کرام په خوب کی ووینی نو دلیل یې دادی چي دی به د دین اسلام په لاره کی بی مثاله وی او په مسلمانانو کی به ریښتونی او دیانت دار مشهور وی، دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دی (اصحابی کالنجوم بایهم اقتدیتم اهتدیتم) ترجمه: زما صحابه دستورو په ډول دی پس په هر یوه پسی چي مو تابعداری وکړه هدایت به پیدا کړی.

## امام حسن او امام حسین رضی الله عنهما

امیر المومنین امام حسن او حسین رضی الله عنهما چي څوك په خوب کی ووینی نو خیر او راحت به پیدا کړی او په اخر کی به دشهیدانو مرتبه پیدا کړی.

## جعفر طیار رضی الله عنه

که څوك جعفر طیار په خوب کی ووینی نو حج او جهاد به کوی.

## ابو هریره او انس بن مالک رضی الله عنهما

که څوك ابو هریره یا انس بن مالک رضی الله عنهما په خوب کی ووینی نودی به دسنتو طرفته شوق مند سی او علم او شریعت به خوښوی.

## حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه

که څوك سلمان فارسی رضی الله عنه په خوب کی ووینی نو ددی دلیل دادی چي الله جل جلاله به هغه ته دقران علم نصیب کړی او انجام به یې نیك وی.

## بلال رضی الله عنه

که څوك بلال حبشی رضی الله عنه په خوب کی ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي هغه به مشهور سی، او دموذنانو ثواب به پیدا کړی او د اهل سنت والجماعت پر لاره به تګ کوی، مقصد دا چي دنبی صلی الله علیه وسلم اصحاب رضی الله عنهم په خوب کی لیدل دخیر او دنفع دلیل دی.

## عالمان زاهدان او حاکمان په خوب کی لیدل

که څوك عالمان زاهدان یاحاکمان په خوب کی ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي دی به دخیر او طاعت په کارونوکی توفیق پیدا کړی او علم به حاصل کړی، ځکه چي علماء دنبی صلی الله علیه وسلم وارثان او دمسلمانانو لار ښودونکی دی که څوك په خوب کی دیوی محلی یا ښار علماء او حاکمان په یو ټولګی کی ووینی نو دلیل یې دادی چي ددغه ښار خلک به پر جاهلانو باندی په ګفتار، کردار اوامر ونهی سره کامیابی پیدا کړی.

**په راتلونکو پاڼو کي به دحروف معجم یعني د (الف بآء) په ترتیب سره تعبیرونه بیان کړل سي.**

# [ الف ]

## آبادي

ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ ویلی دی چي که څوك په خوب کی ووینی چي وران ځای ابادوی لکه جماعت، مدرسه، خانقاه او یا ددی په ډول یو بل ځای نو دا ددین، نیک عمل، اصلاح او داخرت دثواب دلیل دی او که ووینی چي ویرانه مځکه پخپله ابادوی لکه سرای یا دکان وغیره جوړوي نو دا ددی جهان دفائدی او دخیر دلیل دی اوکه اباد ځای ویران ووینی نو دلیل یې دادی چي په هغه ځای کی به بلا او مصیبت راځی. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ ویلی دی چي که څوك خپل ځان په یو آباد ځای کی مقیم ووینی نو دابادی په اندازه به خیر اونفع پیدا کړی او که ددی څخه خلاف ووینی نو شر، فساد، او نقصان به پیدا کړی. جعفر مغربی رَحِمَهُ اللهُ ویلی دی چي دابادی لیدل په څلورو وجهو دی ۱: ددی جهان دکارونو صلاح ۲: خیر اونفع ۳: مراد او کامرانی ۴: دبندو کارونو خلاصول.

## آب \ اوبه

دټولو شیانو ژوند داوبو په وجه دی دالله تعالی فرمان دی (وجعلنا من المآء کل شيء حي، سورة الانبیاء: ۳۰) ترجمه: موږ هر یو شی په اوبو سره ژوندی کړی دی. ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ ویلی دی چي که څوك په خوب کی ووینی چي اوبه لوړی داوبو په ډول روانی دی لکه ددریاب یا دنهر اوبه نو دا دهغه دپاك اعتقاد او دقوت ایمانی دلیل دی اوکه صفا او خوږی اوبه یې چیښلي وی نو هم یې دا تعبیر دی او که چیری بی مزه او بې خونده اوبه یې چښلی وی نو ددی تعبیر د اولنی څخه خلاف دی اوکه ددریاب څخه صفا او ښې اوبه یې په خوب کی چښلی وی نو دلیل یې دا دی چي دټولی دنیا پاچا به سی او بعضو ویلی دی چي څومره اوبه یې ددریاب څخه چښلی وی دهغې برابر به ورته بزرگی، مال او نعمت حاصل سی که اوبه پاکیزه او صفا وی، اوکه اوبه گنده وی نو ده ته به غم سختی او بیره ورسیږی. ابراهیم کرمانی رَحِمَهُ اللهُ ویلی دی چي که څوک په خوب کی ووینی چي گرمی اوبه چښی نو دا د ناجوړی او غم دلیل دی او که ووینی چي پر ده گرمی اوبه واچول سوی او ده ته معلومات نه وی نو دلیل یې دا دی چي ده ته به ناجوړی او سخت غم ورسیږی اوکه ووینی چي په اوبو کی لویدلی دی نو دلیل یې دادی چي په تکلیف او غم کی به گرفتار سی اوکه اوبه یی په پیاله کی را اخیستی وی نو دلیل یی دادی چي په مال او ژوند کی به دهوکه کیږی اوکه دښیښی په پیالی کی یې خپلی ښځی ته اوبه ورکړی نو هوښیار خلک دښیښی پیالی ته دښځی دجوهر سره نسبت ورکوی، او اوبه چي دښیښی په پیاله کی دي نو دې ته دزوی سره نسبت ورکوی کوم چي دمور په نس کی دی که پیاله ماته وی نو ښځه به یې مری او کوچنی به یې پاته کیږی اوکه اوبه توی سی او پیاله خالي پاته سی نو دلیل یې دادی چي کوچنی به مری او ښځه به پاته کیږی اوکه ووینی چي بی قیمته خلکو ته اوبه ورکوی نو په

دنیا او اخرت کی به خلکو ته دده څخه فائده ورسیږی او ویران ځای به اباد کړی او که په خوب کی ووینی چي په کوم کور کی اوبه اچول سوی دی هغی ته داخل سوی دی نو دلیل یې دادی چي غمناکه او فکرمند کیږی به اوکه ووینی چي په پیالی کی یې صفا اوبه دسپی په ډول چینبلی دی نو دلیل یې دادی چي په عیش عشرت سره به ژوند تیروی لیکن داسی کار به وکړی چي په بلا او فتنی کی به اخته سی او مال به لږ لږ خلکو ته بخښی او په خیرات کی به یې خرڅ کړی. جابر مغربی رحمه الله ویلی دی چي که چیری اوبه په وخت سره زیاتیدونکیووینی نو دلیل یې دادی چي په هغه کال کی به دنعمت فراخی وی او که اوبه ووینی چي په مځکه کی جذب کیږی نو دلیل یې دادی چي عامو خلکو ته به سلامتی او ارام حاصل سی دالله تعالی فرمان دی (وقیل یآ ارض ابلعی مآئك ویا سمآء اقلعی وغیض المآء، سورة هود: ٤٤) ترجمه: او وویل سوه چي ای ځمکی خپلی اوبه راوکاږه او ای اسمانه بس کړه او اوبه کښته ولاړې. اوکه ووینی چي اوبه دخلکو پر سرونو باندی ختلی وی نو دلیل یې دادی چي په هغه کال به په دغه ملك کی نعمت اوفراخی وی دالله تعالی فرمان دی (انا صببنا المآء صبا، سورة عبس: ٢٥) ترجمه: موږ اوبه په ښه رقم سره واورولی. که ووینی چي دهغه په کور کی صفا اوبه دی نو دلیل یې دادی چي نعمت او خوشحالی به پیدا کړی اوکه ووینی چي په کور کی یې خرابي اوبه ولاړي دی نو بیا ددی تعبیر داولنی خلاف دی. دانیال علیه السلام ویلی دی چي باغ او کښتو ته ددریاب او دولو اوبه ورکول دغم او دفکر څخه دخلاصی او دمال دلیل دی او خلکو ته اوبه ورکول ددین، ایمانداری او دنیکو کارونو دلیل دی اوکه په خوب کی ووینی چي په اوبو کی روان دی او په دغه وخت کی دده وجود مضبوط وی نو دلیل یې دا دی چي دحاکم دطرف څخه به په یو سخت کار کی مشغول سی اودده خبره به په دغه کار او نورو کارونو کی قبوله سی اوکه په صفا اوبو کی روان وی او دده وجود پکښی پمن سی نو دا ددین دقوت او پر خدای د توکل کولو او دثابت قدمی دلیل دی اوکه په خوب کی ووینی چي باغ ته اوبه ځی نو دا د ښځی یا دمنځی سره دملاویدو دلیل دی او که په خپل ځان باندی پاکی اوبه راتوی سی او وینی نو دا دخیر او نفع درسیدو دلیل دی اوکه ووینی چي پر ده خرابي اوبه راتوی سوی دی نو دا دنقصان پیژندلو دلیل دی. جعفر صادق رضی الله عنه ویلی دی چي په خوب کی په اوبو کی دګرځیدلو تعبیر په پنځه وجهو سره ښودل کیږی ١: یقین ٢: قوت ٣: مشکل کار ۴: مصاحبت ۵: دښار دمالدار سړی دطرف څخه ځه کار.

یاد ساتئ چي دباران تعبیر به په حرف (ب) کی بیانیږی او دچینی اوبه، د څاه اوبه او دولی اوبه به په حرف (ج) کی بیانیږی، او ددریاب اوبه به په حرف (د) کی او دولی اوبه به په حرف (ر) کی او د کاریز اوبه به په حرف (ك) کی او په دی ترتیب سره به نور خوبونه دهر یو شی په ترتیب سره په هغه ځای کی ذکر کیږی.

## آب بینی \ دپزی اوبه

دانیال علیه السلام ویلی دی چي په خوب کی دپزی څخه اوبه وتل لیدل دزوی تعبیر دی اوصرف دپزی

اوبه لیدل هم دزوی دلیل دی او دپزی څخه دسرکی وتلو لیدل هم دزوی دلیل دی. کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چي که په خوب کی څوك دپزی څخه اوبه وتونکی ووینی نو دا دقرض څخه دخلاصی او دغمونو او تکلیفونو څخه دخلاصی دلیل دی او که ناجوړه وی نو صحت به پیدا کړی. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی دپزی اوبه لیدل دزوی دلیل دی که پر بدن یې پریوزی نو هلك به وی اوکه پر مځکه پریوزی نو انجلی به وی او که پر ښځه یې پریوزی نو حامله به سی لیکن زوی به یې ضائع سی اوکه ووینی چي ښځی دپزی اوبه باندی راتوی کړی نو هلك به یې پیدا سی اوکه ووینی چي دپزی اوبه یې دهمسایه په کور کی واچولی نو دهمسایه ښځه به خیانت کوی او که ووینی چي دخپلی ښځي اوبه یې دیو سړی پر بستره اچولی دی نو بیا هم دغه تعبیر دخیانت دی. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك په خوب کی دخپلی پزی اوبه خوړل ووینی نو دلیل یې دادی چي خپل مال به پر خپل کور باندی خرچ کړی او که دخپلی ښځی دپزی اوبه خوړل ووینی نو دلیل یې دادی چي دهغې به زوی کیږی اوکه دپزي اوبه توری او خیرنی ووینی نو دلیل یې دا دی چي دهغه زوی ته به غمونه او تکلیفونه رسیږی او که ژړی یې ووینی نو زوی به یې ناجوړه سی.

## آب تاختن \ بولي کول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك بولی بی ځایه کول ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي دی به پخپله غمګین او قرض داره کیږی اوکه پر خپل ځای یې ووینی نو دقرض څخه به خلاصیږی او دغم څخه به خوشحالی ووینی او که خوب لیدونکی مالدار وی نو دمال نقصان به یی وسی. دانیال علیه السلام ویلی دی چي که څوك په نامعلومه ځای کی بولی کول ووینی نو دا ددی خبری دلیل دی چي خوب لیدونکی به دهغه ځای څخه ښځه کوی یا به مینځه ځنی اخلی. اوکه په خوب کی دبولو پر ځای وینه تلل ووینی نو دا دهغه دنقصان دلیل دی اوکه په بولو کی نو تلونکی ووینی نو دلیل یې دادی چي دهغه به ناجوړه کوچنی پیدا کیږی، بعض اهل تعبیر بیان کوی چي په خوب کی بولی کول دحرام مال دلیل دی اوکه په خوب کی بولی چښل ووینی نو دلیل یې دادی چي حرام مال به خوری. کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك په څاه کی بولی کول ووینی نو دلیل یی دادی چي دیو چا څخه به حلال مال حاصلوی او که بولی کول ووینی نو دلیل یې دادی چي حافظ قران او هوښیار زوی به یې پیداسی او که ووینی چي لږ بولی یې کړی دی او لږ یې پاته کړی دی نو دلیل یې دادی چي لږ مال به ځنی ولاړ سی او څه غم او تکلیفونه به ځنی جلا سی او که ووینی چي دده په بولو خلک مسح کوی نو دلیل یې دادی چي دده به عالم او هوښیار زوی پیدا کیږی اوخلک به دهغه تابعداره وی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك په جمات کی بولی کول ووینی نو دلیل یې دادی چي خپل مال به جمع کوی لیکن دخپل ځان لپاره نه، اوکه ووینی چي دبولو کولو سره دهغه کالی لانده سوی دی نو دلیل یې دادی چي خپل مال به دخپلو زامنو لپاره جمع کوی، جعفر صادق رضي الله عنه ویلی دی چي په خپل ځای کی بولی کول لیدل دمالداری دلیل دی دهغه چا لپاره چي فقیران وی غلام به ازادیږی

ناجوړه به شفاء حاصلوی قیدی به خلاصون پیدا کوی مسافر به وطن ته راځی حاکم به معزول کیږی خلیفه به مری قاضی به معزول کیږی او سوداګر به نقصان کوي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك په خوب کی په خپل کور کی دبولو په ځای کی بولی کول ووینی نو دلیل یې دادی چي خپل مال به دخپل اولاد لپاره جمع کوی لیکن ددی په بدل کی به نور پیدا کړی دالله تعالی فرمان دی (وما انفقتم من شيء فهو یخلفه وهو خیر الرازقین، سورة سبا: ۳۹) ترجمه: او کم شیان چي تاسو خرڅ کوی نو الله تعالی دهغه عوض درکوی اوهغه دټولو څخه زیات رزق ورکوونکی دی.

## آب خانه، بیت الخلاء \ لویي بولي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك په خوب کی بیت الخلاء جوړه کړی نو ددنیا پر مال به حریص او توجه کوونکی سی او دمال څخه به هیڅ هم نه خرڅ کوی، بعض اهل تعبیر بیان کوی چي ده ته به جادوګره ښځه ملاو سی او دغه ښځه به حرام خوره او بی دینه وی. اوکه په بیت الخلاء کی ځان په تشو بولو او لویو بولو کولو ووینی نو دلیل یې دادی چي مال به جمع کوی اوکه ووینی چي په لویو بولو کی یا دلویو بولو په کنده کی پریوتلی دی نو دلیل یې دادی چي په مال جمع کولو کی به ډوبیږی او که ووینی چي پخپله دلویو بولو په کوهی کی پریوتلی دی نو دلیل یې دادی چي دچا مال به اخلی او که ووینی چي دپریوتولو سره یې لاس او پښه مات سوی دی نو دلیل یې دادی چي په سخته بلا کی به ګرفتار کیږی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی لوی بولی لیدل پر پنځه قسمه دی ۱: حرام مال ۲: ددنیا ژوند ۳: خزانه ۴: په حرامو شروع ۵: خدمت ګاره او حرام خوره ښځه.

## آب دستان \ د کوزې او لوټې اوبه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی لوټه (کوزه) لیدونکی به خزانه دار اوخاوند دتدبیر وی او آمدنی او خرڅ به دده په لاس وی او که ووینی چي پاچا ورته کوزه ورکړی ده نو دلیل یې دادی چي خزانچی او د پاچا مشیر به سی او که دی لوټه چا ته ورکوی نو بیاهم دغه قیاس دی. کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی کوزه خادم وی دالله تعالی فرمان دی (یطوف علیهم ولدان مخلدون باکواب واباریق، سورة الواقعة: ۱۷ – ۱۸) ترجمه: په جنت کی به پر هغوی خادمان په کوزو اوخاورینو لوټو سره طواف کوی. اوکه ووینی چي دده کوزه ماته سوه یا ضائع سوه نو دلیل یې دادی چي دده ښځه به یا جلا کیږی او یا به مری. اوکه ووینی چي دکوزی څخه اوبه چښی نو دده به زوی پیدا کیږی خصوصا چي اوبه پاکی او خوندناکی ووینی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی دکوزی لیدل په پنځو وجهو وی. ۱: خادم ۲: خزانچی ۳: وزارت ۴: زوی ۵: دداسی ځای څخه لږ روزی پیدا کول دکوم ځای څخه چي یې امید نه وی.

## آبستی \ حمل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك په خوب کی خپل نس دحاملی ښځی په ډول غټ

ووينی نوهغه ته به دنس دغتې والی په اندازه ددنيا مال او نعمت حاصل سی. کرمانی رحمة الله عليه ويلی دی چي که نابالغ کوچنی په خوب کی خپل ځان حمل والا ووينی نوکه هلك وی نو د هغه پلار ته به نعمت او مال حاصل سی اوکه انجلی وی نو دهغی مورته به مال اونعمت ملاو سی.

## آب کامه \ تروې اوبه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کی تروی اوبه ليدل دغم او ناجوړي دليل دی او دهغی چښل دناجوړی دليل دی کرمانی رحمة الله عليه ويلی دی چي که تروې اوبه را ايله ووينی او دهغو څخه يې چښل نه وی کړی نو دليل يې دادی چي دغمونو او تکليفونو څخه به خلاصون پيدا کړی، اوکه ناجوړه وی نوشفا به پيدا کړی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کی تروی اوبه چښل په پنځو وجهو وی ۱: ناجوړی ۲: غم ۳: جنګ ۴: حاجت ۵: دعيال سره جنګ کول.

## آبګينه \ ښيښه

دانيال عليه السلام ويلی دی چي په خوب کی شيشه ليدل ښځه ده، اوکه ووينی چي په شيشه کی اوبه دی نو دليل دی چي ښځه او مال به ورته ملاويږی اوکه ووينی چي په شيشه کی يې چاته شربت ورکړی دی نو دليل دی چي دچا څخه به ورته ښځه ملاويږی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي که څوك په خوب کی ووينی چي دده سره شيشه وه چي ايله سوه او ماته سوه که دده ښځه وی نوطلاق به ورکړی اوکه نه وی په خپلوانو کی به يې ښځه مری، او شيشه جوړولو والا پر منزله دمالك او بادار وی او بعض تعبير بيانوونکی وايي چي په خوب کی شيشه جوړولو والا دښځو کار کوی او هميشه دښځو په ملګرتيا کی اوسی.

## آبله \ تناکه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کی تناکه ليدل د مال دزيات والی دليل دی که څوك په خوب کی ووينی چي دهغه پر بدن تناکه ده نو دليل يې دادی چي دهغی په اندازه به ورته مال رسيږی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کی پر بدن تناکه ليدل په پنځو وجهو سره وی. ۱: دمال زياتوالی ۲: ښځه به ورته ملاويږی ۳: کوچنی به يې پيدا سی ۴: مراد به يې پوره سی ۵: که تناکه سپينه وی نو دبيری څخه به ورته امن حاصل سی.

## آبنوس (يو ډول لرګی)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کی دابنوس درخته ليدلو والا به پخپل کار کی سخت مضبوط وی ليکن مالداره او بخيل به وی او دهغه څخه به چا ته فائده نه رسيږی. کرمانی رحمة الله عليه ويلی دی چي ابنوس په خوب کی ليدل دهغه صفت ښځه وی کوم چي لوړ دسړی په بيان کی ويل سوی دی، جعفر صادق رحمة الله عليه ويلی دی چي ابنوس په خوب کی ليدل تير سوی تعبير لری.

## آتش \ اور

دانيال عليه السلام ويلی دی که څوك په خوب کی بغير دلرګی څخه اور ووينی نو دليل يې دادی چي

پاچا تـه بـه نـزدی سـی او دده بنـد کاروـنـه بـه پـوره سـی او کـه ووينـی چـي دی چـا پـه اور کـی غورځولی او سـوزلی دی نـو دليـل دی چي پـر ده بـه پاچـا ظلـم کـوی لـيکن ژر تـر ژره بـه ځنـی خلاصون پيدا کړی او خوشحالی او نيکی به پيدا کړی دالله تعالی فرمان دی (قلنا يا نار کونی بردا وسلاما علی ابراهيم، سورة الانبياء: ۶۹) ترجمه: موږ اور ته حکم وکـی چي ای اوره! يخ سه پـر ابـراهيم ﷵ په سلامتی سره. که په خوب کی ووينی چي اور دی سوزلی نه دی نو دليـل يې دادی چي په تکليف سره به سفر کوی اوکه اور په لمبو سره ووينی نو دليل دی چي په تبه بـه نـاجوړه سـی اوکه ووينی چي اور دده بدن سوزلی دی نو دليل دی چي دسوزېدلو مطابق به ده ته غم اونقصان ورسوی او که ووينی چي دده پـه کـور کـی اور لګېدلی دی او دده ټول بدن يې سوزلی دی او لمبی وهی خو دده په زړه کی د اور څخه بيره نه ده راغلی نو دليل يې دادی چي ده ته به دمحنت او مصيبتونو په وجه ناجوړی او کمزوری راځی لکه وبا، طاعون، تنهاکی او سرخه وغيـره او کـه ووينی چي اور يې نيولی دی نو دليل يې دا دي چي دهغی برابر بـه ورتـه دپاچـا څخـه حـرام مـال رسيږی اوکه ووينی چي اور لوګی کوي نو دليل يي دا دي چي ده تـه بـه حرام مـال پـه محنت او تکليف سره رسيږی او ډير جنګونه به ووينی اوکه ووينـی چي ده تـه داور څخـه ګرمـی اوتـاو رسيدلی دی نو دليل يي دا دي چي يو سړی به دده غيبت کوي. کرمانی ﷬ ويلی دی چي کـه ثوك په خوب کی ووينی چي داور شغلی پر خلکو اچوی نو دليل يي دا دي چي په خلکو کي به عداوت او دښمنی اچوی او که سوداګر په خوب کی ووينـی چي دهغـه پـه سـامان او دکـان اور لګيدلي دی نو دا ددی خبری دليل دی چي دده سامان به بربادېږی او يا به ديو درهم شی په دری درهمه خرڅوی او پر چا به مهربانی نه کوي. اوکه ووينی چي دچا په کور کی اور لګيدلي دی نو دا ددي خبری دليل دی چي دغه سړی به په جنګ فتنه اودپاچا په ظلم کی ګرفتـاريږی اوکـه پـه خوب کی ووينی چي اور دده کالی سوزلی دی نو دليل يي دا دي چي دخپلوانو سره بـه جنـګ کوي او دمال په وجه به غمناکه کيږی اوکه پر مځکه ډير اور ووينی نو دليـل يـي دا دی چي پـه هغه ځای کی به جنګ او فتنه وی اوکه يو سوزل سوی شی ووينی نو دليل يي دا دي چي دښځو په وجه به دچا سره جنګ کوي اوکه ووينی چي په يو ښار يا محل يا سرای کی اور لګيدلي دی او ټوله شيان يې سوزلی دی او اور شغلی وهی او دبيری اواز کوي نو دليـل يـي دا دي چي پـه هغه ځای کی به جنګ يا سخته ناجوړی راځي. اوکه ووينی چي اور يوڅه شيان سوزلی دی اويو څه يي پاته کړی دی او دبيری اوازونه کوي نو دا ددي خبری دليل دی چي پـه هغـه ځـای کـی بـه جنګ کيږی او که شغلی يي نه وی نو سخته به ناجوړه سی اوکه اور ددود سره ووينـی نـو دليـل دی چي په خپلو کارونو کی به بيره ويني او که ووينی چي اور د آسمان څخه را ايله دی او هغـه ښار يا کلی يا سرای يې سوزلی دی نو دا ددي خبری دليل دی چي په هغه ښار ياځای کی به بلا او فتنه راځي او که ووينی چي دبيری اواز وو او اور شغلی وهلی لـيکن پـه کـوم ځـای کـی چي راځي هلته شغلی نه وهی نو دا ددي خبری دليل دی چي په هغه ځای کی به زبانی جنګ اوفساد

وی او که ووینی چي دزمکی څخه بیریدونکی اور راووتی او دآسمان طرفته تللی دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه ځای خلک به دالله دخوښو خلکو سره په درواغو او بهتان سره جنګ کوي دهغه اور دطاقت مطابق اوکه ووینی چي اور ډیر زیات او ځای پر ځای لګیدلي دی لیکن چاته څه تکلیف نه ورکوي نو دلیل یي دا دي چي خوب لیدونکی ته به فائده حاصله سی او که فقیر وی نو مالدار به سی. اشعث رحمه الله ویلی دی چي که څوك په خوب کی ووینی چي اور د آسمان څخه دباران په ډول اوریږی نو دلیل یي دا دي چي په هغه ځای کی به دپاچاهانو دطرفه جنګ او مصیبت راځي او که ووینې چي د آسمان څخه اور راغی او هغه دخوراك شیان وسوزل نو دلیل یی دا دي چي دهغه عبادت الله تعالی قبول کړی دی دالله تعالی فرمان دی (بقربان تاكله النار، سورة آل عمران: ۱۸۳) ترجمه: قرباني چي هغه اور خوری. اوکه ووینی چي د آسمان څخه اور راوریږی اوهیڅ شی هم نه سوزی نو دا دالله تعالی دبیری دلیل دی دالله تعالی فرمان دی (عذاب النار التي كنتم بها تكذبون، سورة سبا: ٤٢) ترجمه: داور عذاب کوم چي تاسو درواغ ګڼله. او ده ته به دپاچا څخه بیره وی او که ووینی چي ډیر اور ته ناست دی او ګرمیږی نو دا د دی دلیل دی چي یونیك پاچا ته به نژدی کیږی اوکه ووینی چي څه شی په اور پخوی نو دلیل یي دا دی چي ددین او دنیا کار به یي پوره کیږی. اوکه ووینی چي اور د آسمان څخه راکښته کیږی او دزمکی شین ګیاه سوزی نو دلیل یي دا دی چي پر دغه ملك به له طرفه دخدای ناڅاپه مرګ ډیر راځي او که ووینی چي ډیر اور ګنبده یا مینار سوزلی دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه ځای پاچا به مری بعض تعبیر بیانوونکی وایي چي که څوك ووینی چي اور د مځکی څخه راوتلی دی او روښانه سوی دی نودلیل یي دا دي چي په هغه ځای کی به خزانه وی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کی ووینی چي د اور سکروټی خوری نو دا ددي خبری دلیل دی چي دی دیتمانو مال خوری دالله تعالی فرمان دی (ان الذين ياكلون اموال اليتمى ظلما انما ياكلون في بطونهم نارا وسيصلون سعيرا، سورة النساء: ۱۰) ترجمه: کوم خلك چي دیتمانو مال په ظلم خوری هغه خپلو نسو ته اور اچوی او ژر به دوی دوږخ ته ولاړ سی. او که څوك په خوب کی ووینی چي دهغه دخولی څخه اور راوزی نو دا ددي خبری دلیل دی چي دی درواغ خبری اود درواغو الزامونه لګوی اوکه ووینی چي هر ځای اور بلیږی نو دلیل یي دا دي چي درعیت او پاچا په مینځ کی به دقاصد کار کوي او که ووینی چي دده په اړخ کی اور بلیږی او څه نقصان نه کوي نو دلیل یي دا دي چي ده ته به نیکی رسیږی دالله تعالی فرمان دی (افرايتم النار التي تورون، سورة الواقعة: ۷۱) ترجمه: ایا تاسی هغه اور لیدلی دی کوم چي تاسو بلوی، او که ووینی چي اور لرګی سوزی نودا دفتنی او جنګ دلیل دی د الله تعالی فرمان دی (كلما اوقدوا نارا للحرب، سورة المائدة: ٦٤) ترجمه: کله چي هغوی دجنګ لپاره اور پورته کوي که په خوب کی ووینی چي اور خلک سوزی

نو دلیل یي دا دي چي پر دښمنانو باندی به کامیابی حاصله کړی او که ووینی چي اور دی سوزی او په هغه کی رڼا نه وه نو دلیل یي دا دي چي د سرسام په مرض به اخته سی او که په هغی کی رڼا ووینی نو دلیل یي دا دي چي دهغه په خپلوانو یا زامنو کی به دچا زوی پیدا کیږی او خلک به دهغه تعریف کوي او دهغه اور دړنا برابر به ورته بزرګی او مال حاصل سی او که دجنګ په میدان کی اور ووینی نو دا دسختو ناجوړیو دلیل دی لکه تڼاکه، طاعون، سرسام او نابېره مرګ وغیره خدای مه کړه. او که اور ددود سره ووینی نو دا ددي خبری دلیل دی چي ده ته به دپاچا بیره وی او که په بازار کی اور ووینی نودا دبازار والاوو دبی دیني دلیل دی چي بازار والا په تجارت کی انصاف نه کوي یا په اخستل سوو شیانو کی درواغ وایي او که په ملك کی اور لګیدلي ووینی نو دلیل یي دا دي چي پر ده به مصیبت او بیره راسي او که په خوب کی ځان په اورکی ولاړ ووینی نودا ددی خبری دلیل دی چي ده ته به غم رسیږی.

## آتش افرو ختن \ اور بلول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کی داور بلول دپاچا دقوت دلیل دی او بغیر ددوده داور لیدل دړنا رونق زر ومال او سامان کوم چي دزړه دخواهش سبب وی دلیل دی، او د دود والا اور دپاچا په ظلم غم او تکلیف او په نقصان دلیل دی او که دګرمیدو لپاره اور بل کړی یا یو بل ځوك ګرم سی نو دلیل یي دا دي چي دڅه شی طلب به کوي او نفع به پیدا کوي او که ووینی چي بی فائدي یي اور بل کړی دی نو داد دی خبری دلیل دی چي بی وجی به جنګ کوي او که دڅه شیانو کبابولو لپاره اور بل کړی نو دلیل یي دا دي چي دخلکو دغیبت لپاره به څه کار کوي ددی وجی څخه به دچا حال معلوم سی، او که هغه وریت سوی شی وخوری نو دلیل یي دا دي چي ددغه برابره روزی به په غم او فکر سره ورته ملاو سی او که ووینی چي دریګ څخه لاندی اور بلوی او په هغه کی غوښه یا یو بل شی وی نو دلیل یي دا دي چي داسی یو کار به کوي چي په هغه سره به دکور مالک ته څه فائده رسیږی او که په هغه دیګ کی دخوراک څه شی نه وي نودا ددي خبری دلیل دی چي په دغه کارسره به غم او فکر وی او که اور یي دړنا لپاره بل کړی وی نودلیل یي دا دي چي کار به په حجت او دلیل سره کوي او که دحلوا جوړولو لپاره یي اور بل کړی وی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به نیکه خبره وویل سی. کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چي که ځوك ووینی چي دیو ځای دسوزلو لپاره یې اور بل کړی دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه ځای دخلکو بدی او غیبت به کوي او که اور یې بغیر داخلی پخلی په تنور نغری وغیره کی بل کړی نو دلیل یي دا دي چي هغه به دخپلو خپلوانو یا داهل بیتو سره جنګ کوي او که ووینی چي دخپلی فائدی لپاره اور بلول غواړی او اور بل سوی نه دی نو دلیل یي دا دي چي دخپل علم څخه به فائده اخلی او که پاچا وی نو عزت مرتبه او دولت به یي زیات سی او که ووینی چي اور بل سوی دی او بیا مړ سوی دی نو دا دده دهلاکت کیدو دلیل دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلی دی چي که ځوك په خوب کی ووینی چي په ځنګل کی یي اور بل کړی دی ددی وجی چي خلک ددی په رڼا کی خپلو ځایونو ته ولاړ سی نو دلیل یي دا دي چي دده دعلم څخه

به خلک فائده اخلی او پر سمه لار به ځی. اوکه وويني چي اور کمزوري کيږي او دهغي رڼا کميږي نو دليل يي دا دي چي دخوب ليدونکي حالات به بدل سي او ددنيا څخه به سفر وکړي. که څوك په خوب کی ووينی چي په ځنګل کی يي اور بل کړی دی ليکن سم نه دی بل سوی نو دليل يي دا دي چي خلک به دهغه دعلم په وجه ګمراه سي اوکه سوداګر په خوب کی ووينی چي هغه ديوځای دسوزلو لپاره اور بل کړی دی او اور هغه نه دی سوزلی نو دليل يي دا دی چي په بی دينۍ سره به اخستل خرڅول کوي او دهغه مال به حرام وی او که ووينی چي دهمسايه دکور څخه اور اخلی نو دليل يي دا دي چي ده ته به حرام مال ملاويږي.

## اتش روشنايي \ د اور رڼا

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي که څوك په خوب کی داور رڼا ووينی چي دهغه په رڼا کی پر لار تللی وی نو دا ددي خبری دليل دی چي دولت او تقوی به پيدا کوي اوکه رڼا ولاړه ووينی نو دليل يي دا دي چي دهغه ددولت ځای به هغه وی او که د اور سکروټی بربښېدونکی ووينی نو دليل يي دا دي چي دهغه ملك دپاچا سپرلی به ښکاره سی. اوکه په خپل کور کی سکروټي ووينی چي دهغه رڼا کور روښانه کړی دی نو دليل يي دا دي چي دهغه کار به پرترقی وی او دولت به يي زيات سی اوکه په خوب کی ووينی چي هغه سکروټه يي مړه کړی ده نو دا ددي خبری دليل دی چي دهغه په کورکی به جنګ کيږي.

## اتش پرستيدن \ داور عبادت کول

دانيال عليه السلام ويلی دی چي که څوك په خوب کی ووينی چي اور ته سجده کوي نو دا ددي خبری دليل دی چي ظالم پاچا ته به سجده کوي او دهغه په خدمت کی به مشغول سی اوهغه ته به په بدی کی صبر اوارام حاصل نه سی او که ووينی چي تنور يا اور يا چراغ ته سجده کوي نودليل يي دا دي چي دښځو په خدمت کی به مشغول سی او که ووينی چي داور عبادت کوي او ښکلوی يي نودليل يي دا دي چي دپاچا جاسوس به سی. که څوك په خوب کی ووينی چي په اور کی خوار ګرځی نو دليل يي دا دي چي دپاچا دسوداګری خواهش به کوي ليکن انجام به يي ښه نه وی خاصکر که داور څخه يي بدن ته نقصان ورسيږي او که داور څخه يي بدن ته نقصان ونه رسيږي نو دليل يي دا دي چي سلامتی او دزړه تسلی به دپاچا وخت نه پيدا کوي اوکه په خوب کی ووينی چي په اور کی دننه ولاړ دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به هغوندی فائدی اخلی. اوکه په خوب کی ووينی چي اور دده پر مخ يا جامو يا پر لاس رڼا غورځوی او خلک هغه رڼا ته حيران وی نودليل يي دا دي چي پر دښمن به کاميابی او ددواړو جهانو مراد به ورته حاصل سی دالله تعالی فرمان دی (وادخل يدك فی جيبک تخرج بيضاء من غير سوء، سورة طٰهٰ: ۲۲)

ترجمه: او خپل لاس په تخرګ کی دننه کړه سپين اوبی عيبه به راووزی. او دامعجزه دموسی عليه السلام دفرعون په مقابله کی وه. اسماعيل بن اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کی ووينی چي داور عبادت کوي نو دليل يی دا دي چي دپاچا ملازمت به کوي او که ووينی چي

اور دسکروټو په شکل کی دی نو دهغه غرض به په دین سره مال جمع کول وی او حرام مال به ورته ډیر حاصل سی.

## اتشین شراره \ د اور سکروټه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی سکروټه لیدل ډیره خرابه خبره ده کومه چي به ده ته رسیږی او که داور سکروټي باندی ډیری را ایله سی نودلیل یي دا دي چي په محنت او سخته بلا کی به ګرفتار سی کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوک په خوب کی ووینی چي په ښار یا محله کی داور سکروټي را ایله سی نو دلیل یي دا دي چي په هغه ځای کی به جنګ او فتنه پورته کیږی او که داور سکروټی ډیری غټی غټی ووینی نو دلیل یي دا دي چي دالله تعالی عذاب به ده ته یا دغه ځای ته رسیږی دالله تعالی فرمان دی (انها ترمی بشرر کالقصر کانه جمالة صفر، سورة المرسلات: ٣٢ – ٣٣) ترجمه: بی شکه هغه اور غورزوی لمبی دا لوړ ځای برابر ګویا چي هغه زیړ اوښان دی. او که ووینی چي داور سکروټی پر خلکو را ایله سی نو دلیل یي دا دي چي په هغه ځای کی به جنګ کیږی اور غورزول او داور سره بازی کول ډیر ښکنځل دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك ووینی چي په لاس کی یي داور سکروټه نیولی ده نو دلیل یي دا دي چي په پاچاهي کار کی به مشغول سی او که داور سره دود ووینی نو داپه کار کی دبیری دلیل دی. که څوك په خوب کی ووینی چي اور دهغه په لاس کی یخ سوی دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا په خدمت کی به ورته حرام مال حاصل سی او که ووینی چي دهغه اور څخه یوه ټکره نورو خلکو ته ورکوي نو دلیل یي دا دي چي دده دکار څخه به خلکو ته خفګان او نقصان وی او خلک به دده دښمنان سی اوکه په اور باندی دخوراك شیان نه پخوی او خوری یي نو دلیل یي دا دي دخلکو څخه به ښی ښی خبری واوری. جعفر صادق رحمة الله علیه علیه ویلی دی چي په خوب کی اور لیدل په پنځه ویشتو وجو دی: ١: فتنه ٢: جنګ ٣: فساد ۴: بیره ۵: جنګ جدل ٦: خرابی خبری ٧: دکار څخه منع ٨: دپاچا غصه ٩: عذاب ١٠: دښمنی ١١: بي دینی ١٢: حکمت اوعلم ١٣: دهدایت لار ١۴: مصیبت ١۵: ترس١٦: سوزیدل ١٧: دپاچا خدمت ١٨: طاعون ١٩: سرسام ٢٠: تناکه ٢١: د کار فراخی ٢٢: فضیلت ٢٣: حرام مال ٢۴: روزی ٢۵. نفع.

## اتش دان \ نغری \ انګیټۍ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی انګیټۍ ښځه ده چي دکور خدمت کوي که انګیټۍ داوسپنی وی نودلیل یي دا دي چي هغه ښځه دخپلوانو څخه ده او که دلرګی وی نو دلیل یي دا دي چي هغه ښځه منافقه ده او که انګیټۍ دخاورو وی نو دلیل یي دا دي چي هغه ښځه دتکبر کوونکو اومشرکانو څخه ده. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی انګیټۍ لیدل په دوو وجو ده ١: خادمه ښځه ٢: منځه.

### اتش زنه \ بکرۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې بکری او دانګیتمې کانې دواړه يو شی دی يو پکښې قوی او زړه ور دی او دوهم سخت زړی دی دا دواړه خلکو ته ترقي او غټ کارونو راوړی. کرماني رحمه الله ويلي دی چې كه څوك ووينی چې دبکری څخه يې اور را ايستلی دی او په هغه يې ډيوه بله کړی ده كه خوب ليدونکی پاچا وی نو دليل يې دادی چې رعيت به دهغه دعدل او انصاف څخه ارام پيداکوي او كه خوب ليدونکی عالم وی نودليل يې دا دي چې خلکو ته به دهغه څخه خير بخشش او احسان ورسوی او كه فقير وی نو خلک به دهغه دخوی او کردار څخه فائده پورته کړی. جعفر صادق رضي الله عنه ويلي دی چې كه څوك ووينی چې دبکرۍ څخه يې اور را ايستلی دی نو دليل يې دا دي چې دپاچا لپاره به حرام مال جمع کړی يا به دهغه په کار کی رشوت اخلی اوكه دبکرۍ دکانې څخه يې اور نه وی بل کړی نو دليل يې دا دي چې دمال طلب به کوي خو نه به ورته رسيږی.

### اتش کده \ د اتش پرستو عبادت خانه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب کی اتش کده ليدل خراب ځای دی کرماني رحمه الله ويلي دی چې اتش کده کم عقل خلق اوخالي ځای دی اوكه څوك په خوب کی ووينی چې اتش کدي ته تللي دی او هلته يې څه موندلی دی نودليل يې دا دي چې دهغه برابر ذلت اوخواری به ويني ليکن دبدی څخه به خلاصون پيداکوي او دانجام څخه به يې پښيمانه وی.

### ارد ګون \ د اوړو په رنګ ګل

اردګون يو ګل دی او دا په خوب کی ليدل دغم او ناجوړی دليل دی.

### ارد \ اوړه

اوړه په خوب کی ليدل دمال اوحلال نعمت دليل دی چې بغير دتکليف څخه به حاصل سی دانيال عليه السلام ويلي دی چې كه څوك ووينی چې اوړه دواوری په ډول را اوريږی نودا ددی خبری دليل دی چې خوب ليدونکی ته به دهغه هومره مال او حلال نعمت حاصل سي دکوم ځای څخه چې يې اميد نه وی. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې دوربشو داوړو تعبير ددين ددرستۍ دليل دی او دغنمو داوړو تعبير مال اودولت دی چې دتجارت څخه به حاصل سی اوډيره فائده به يې وسی اودباجری اوړه دلږ مال دليل دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چې په خوب کی خپل ځان داوړو خرڅوونکی ليدل خپل دين ددنيا په بدله کی دخرڅولو دليل دی.

### ارد پيز \ د اوړو غلبيل

کرماني رحمه الله ويلي دی چې داوړو چاڼولو غلبيل په خوب کی ليدل داسی سړی دی چې پخپلو انډيوالانو او خپلوانو کی ګرځی، ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب کی داوړو چاڼولو غلبيل يوه فضوله ښځه يايو خراب خادم وی. كه يوغټ داوړو چاڼولو غلبيل يې واخستی يا ورته چا ورکړی نو دليل يې دا دی چې يو ښځه يا خادم لکه څنګه چې مونږ بيان کړ دهغه به دوست وی. بعض تعبير بيانوونکي وايي چې نيك سړی دی چې دده په خدمت کی به مقيم

کیږی او دوست کیږی به یې، جعفر صادق رحمه الله ویلی دی چې داوړو چانولو غلبیل په خوب لیدل په څلورو وجو دی ۱: نیك سړی ۲: فضوله ښځه ۳: خادم ۴: لږه نفع.

## اروغ \ اربړمی کول

کرمانی رحمه الله ویلی دی چې که څوک په خوب کی اربړمی کول ووینی نو دلیل یې دا دي چې داسی خبره به کوي چې په هغه سره به ورته ملامتي حاصله سی او که ووینی چې داربړمی سره یې دمرئ څخه ډوډی راوتلی ده نو دلیل یې دا دي چې دده مرګ نزدی دی. ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چې که څوك په خوب کی، ووینی چې تروه اربړمی یې وکړه او خوب ورغلی نودلیل یې دا دي چې داسی خبره به کوي چې نقصان او خطره به ووینی او که اربړمی ددود په ډول ووینی نو دلیل یې دا دي چې بې وخته خبره به کوي او په هغه به یې خلک ملامتوي او دهغه عیب انجام به پښیمانی وی.

## ازاد شدن \ ازادیدل

دانیال علیه السلام ویلی دی چې څوك په خوب کی ووینی چې ازاد سو یا چا ازاد کړی نو دلیل یې دا دي چې که نا جوړه سو نو شفا به پیداکړی که قرضداره وی نو دقرض څخه به خلاص سی او که حج یې نه وی کړی نو حج به وکړی که غلام وی نو ازاد به سی که ګنهګاره وی نو توبه به وکاږی که غمګین وی نو خوشحاله به سی او دغم څخه به خلاصون پیداکړی که قید وی نو ازاد به سی غرض داچې ازادی په خوب کی لیدل ډیر ښه وی.

## آس تانه \ درشل، چار چوب

کرمانی رحمه الله ویلی دی چې په خوب کی لوړ درشل دکور مالك دی اولاندنی درشل دکور مالکه ده که څوك په خوب کی ووینی چې لوړ درشل را ایله سو اوخراب سو نو دلیل یې دا دي چې دکور مالك به مری او که کور والا ووینی چې لاندنی درشل را ایله سوی دی یا سوزلی دی نو دلیل یې دا دي چې دکور والا بی بی به مری. ابن سیرین رحمه الله ویلی دی چې دکور مالك په خوب کی ووینی چې لاندنی درشل یا لوړ یې نوی بدل کړی دی نو دلیل یې دا دي چې ښځی ته به طلاق ورکړی اوبله ښځه به وکړی او که لوړ درشل یې مچ کړی نو دلیل یې دا دي چې ځان به هلاک کړی او که ووینی چې لوړ او لاندنی دواړه درشلی یې را ایستلی دی نو دلیل یې دا دي چې دکور مالك او دواړه به مری.

## آسمان

دانیال علیه السلام ویلی دی چې څوك په خوب کی خپل ځان په اول آسمان کی ووینی نو دلیل یې دا دي چې دهغه مرګ نزدی سویدی او که په دوهم آسمان کي یې ووینې نودلیل یې دا دي چې علم او عقل به حاصل کړی او که په دریم آسمان کی ووینې نو دلیل یې دا دي چې په دنیا کې به عزت اومر تبه پیداکړی او که په څلورم آسمان کی خپل ځان ووینی نو دلیل یې دا دي چې دپاچا مقرب او دوست به سی او که خپل ځان په پنځم آسمان کی ووینې نو هیبت او بیره به

پيداکړی که ځان په شپږم آسمان کی ووينی نو دليل يې دا دي چي روزي، دولت او نيکي به پيدا کړی، اوکه خپل ځان په اول آسمان کی ووينې او دروازي بندي پيدا کړي نو دليل يې دا دي چي دهغه کارونه به ديو بزرگ سړی په وجه بند سي او که ووينې چي آسمان ته يې نظر نه دی کړي او سر يې کښته کړی دی نو دليل يې دا دي چي ديو بزرگ سړی ددیدار څخه به جلا سی او که ووينې چي فرشتې د آسمان څخه راکښته کيږي او دده پر خوا تيريږی نو دليل يې دا دي چي پر ده به دعلم او حکمت دروازي خلاصيږي. ابن سيرين رحمه الله ويلی دی چي که څوك خپل ځان په آسمان کی ووينی نو دليل يې دا دي چي سفر به کوي او په هغه کی به ورته ددنيا عزت حاصل سي او که ووينې چي د آسمان او دزمکی په مينځ کي الوزی نو دليل يې دا دي چي دنعمت اوبرکت سره به سفر کوي اوکه څوك ووينې چي سيده الوځی او روان دی چي آسمان ته ورسيږي نودليل يې دا دي چي نقصان اوغم به ووينې. که څوک ووينې چي آسمان ته پدي نيت تللي وی چي بيا به مځکې ته نه راځي نودليل يې دا دي چي بزرگي او پاچاهي به ورته حاصله سي اوغټ کار به کوي اوکه څوك ووينې چي د آسمان څخه داذان اواز اوري نو دا دخير اوسلامتی دليل دی اوکه څوك ووينې چي د آسمان څخه يوه مرغی دده سره خبري کوي نو دا ددي دليل دی چي دي به خوشحالي پيداکړی. کرماني رحمه الله ويلي دي چي که څوك په خوب کي ووينې چي په آسمان کي عمارت جوړوي لکه څنګه چي پر مځکه جوړوي نو دليل يې دادي چي دهغه مرگ نزدي دی او که ووينې چي ددنيا دبنيادونو په ډول دخښتو اوخاورو څخه په آسمان کی عمارت جوړوي نو دليل يې دا دي چي خوب ليدونکي به په دنيا کي مغرور وي او که ووينې چي گبين د آسمان څخه دباران په ډول وريږی نودليل يې دا دي چي خلکو ته به خير اوبرکت اومال دولت حاصل سي او که ووينې چي د آسمان څخه شگي يا خاوري اوريږي نوکه لږ اوريدلی وی نونيکي ده او که ډيري وي نوبدي ده. که څوك ووينې چي د آسمان څخه لړمان ماران يا کاڼي اوريږي نو دا ددي خبري دليل دی چي پر دغه ملك به دالله تعالی عذاب نازل سی اوکه ووينې چي ځان يې په آسمان پوري ځړولي دی نو دليل يې دا دي چي مرتبه به يې لوړه سي. جابر مغربی رحمه الله ويلی دی چي که خوب ووينې چي اووم آسمان ته تللی دی داسی ځاي چيري چي گمان هم نه سی تللی او کښته بيا ندي راغلي نو دا ددي خبري دليل دی چي دهغه مرگ نزدي دی اوانجام يې ښه دی او که خوب ليدونکی نيك وي او ووينې چي کښته را تاسوي دي نو دليل يې دادي چي ددين په لار کي به پرهيزگاره سي اوکه خوب ليدونکي نيك او پرهيز گاره نه وي نودليل يې دا دي چي دگناهونو څخه به توبه وکاږي يا به هلاک کيږي. که څوك ووينې چي د آسمان څخه مځکی ته راغلي دی نودليل يې دادي چي په غم او ناجوړي سره به هلاکت ته ورسيږي اوبيابه صحت او شفا پيداکړي. که څوك ووينې چي د آسمان او دزمکي په مينځ کي بنياد دقبې يا دمحل په ډول دی او دکاڼو يا دخښتو څخه دی نو دا ددي خبري دليل دي چي خوب ليدونکی په علم او عمل کي مغرور وي اوکه ووينې چي د آسمان دروازي خلاصي دي نو دليل يې دادي چي په دغه کال به دعا قبليږي او ډير باران به وسي او اوبه به

زياتي سي دالله تعالی فرمان دي (ففتحنا ابواب السما بما منهمر وفجرنا الارض عيونا فالتقى الماء علی امر قد قدر، سورة القمر: ۱۱ –۱۲) ترجمه: موږ د آسمان دروازي دېرلېسي باران لپاره خلاصي کړيدي او دزمکي چيني مو خلاصي کړيدي نو داندازي مطابق اوبه جمع سوي. که څوك ويني چي د آسمان يوه دروازه دده لپاره يا دملك دخلکو لپاره خلاصه ده نو دادخلکو پرخير اونعمت دليل دي خاصکر دده په دوستانو کي به دنيکي اثر ظاهر سي او که څوك په خوب کي ويني چي د آسمان څخه راپورته سوی دی نو دا دالله تعالی دغصي دليل دی. امام جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي که څوک په خوب کي آسمان شين ويني نو دليل يي دا دي چي په دغه ملك کی به نيکي ښه والي او امن وی او که سپين يي ويني نو دليل يي دا دي چي په دغه ځاي کي به تکليفونه او ناجوړی وي او که آسمان سور ويني نو دليل يي دادي چي په دغه ملک کي به جنګ او خونريزي کيږي. اوکه ويني چي آسمان تور دی نو دا ددي خبري دليل دی چي په دغه ملک کی به لوي فساد پيدا سی او که آسمان دمعمول څخه زيات روښانه ويني نو دليل يي دا دي چي دده ته به په دين کي زيا حاصله سي. که څوك ويني چي دده پر برابر د آسمان دروازي خلاصي سوي نو دليل يي دا دي چي پر ده به دخير او روزي دروازه خلاصه سي او عالم اوحکيم به سي او دده څخه به ډيرو خلکو ته روزي ورسيږي او که په آسمان کي سري نخښي دستنو په ډول ويني نو دليل يي دادي چي دهغه ځاي نيکو خلکو ته به نصرت حاصل سي او که ويني چي د آسمان عبادت کوي نو دليل يي دا دي چي بي دينه اوګمراه به سی. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي د آسمان څخه کاڼي دباران په شکل را وريږي نو دا ددي خبري دليل دی چي په دغه ځاي کي په سخت عذاب راځي دالله تعالی فرمان دي (وامطرنا عليهم حجارة من سجيل، سورة الحجر: ۷٤) ترجمه: او موږ په هغوی باندي دپخي خاوري کاڼي وورول او که څوك ويني چي د آسمان څخه غنم او وربشي وريږي نو دا ددي خبري دليل دي چي په دغه ملك کي به رنګا رنګ بي اندازي نعمت امن اومعاش خلکوته حاصل سي.

## آستانه \ چوکاټ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که يو سړي په خوب کي ويني چي دهغه دکور چوکاټ لوړ سوی دي نو داددي خبري دليل دي چي دهغه په اندازه مال نعمت اودمرتبی بزرګي به پيدا کي. اوکه څوک ويني چي دهغه دکور دچوکاټ را ايله سويدی نو دليل يي دا دي چي هغه به دخپل مرتبي څخه را ايله کيږي او په خلکو کی به ذليله سی او که ويني چي دده دکور چوکاټ دباران په ډول پاکي اوبه غورځوي نودليل يي دادي چي دهغه په اندازه مال اونعمت به پيدا کړي او که ويني چي دده دکور دچوکاټ څخه لړمان او ماران غورزيږي نو دليل يي دادي چي دپاچا يا حاکم څخه به ورته تکليف رسيږي. کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي دکور چوکاټ پرده را ايله دی اوپخپله دهغی څخه لاندي اخښلي دی نو دا دده دهلاکت دبيري

دلیل دي دالله تعالی فرمان دي (فخر علیهم السقف من فوقهم، سورة النحل: ۲۶) ترجمه: پر هغوی دلوړه څخه بام را ایله سو اوکه ووینی چې دهغه دکور چوکاټ په ډیرو رنګونو نقشدار دی نو دا ددي خبري دلیل دی چې په زینت او ښه ډول به په دنیا کی ژوند تیروي.

## آسیا \ ژرنده

دانیال علیه السلام ویلي دی چې که څوک په خوب کي ووینی چې په ژرنده غنم اوړه کوي نو ددي دلیل دا دي چې دژرندي د مالک څخه به ورته ډیره فائده رسیږي اوکه په خوب کي ووینی چې دژرندي کاڼي مات سوي اوبي کاره سویدی نو ددی خبري دلیل دادي چې دژرندي مالک به مري، اوکه ووینی چې دژرندي په کاڼي کی چاک پیدا سوي دي او په هغه کی خلل ظاهر سوي دي نو ددي دلیل دادي چې دژرندي دمالك په عیش کی به خلل پیدا سي او که ووینی چې دژرندي کاڼي چا پټ کړي دی نو دلیل یي دادي چې دژرندي مالك ته به نقصان رسیږي. ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چې ژرنده په خوب کی لیدل دجنګ اوفساد دلیل دی چې دهغه به دچا سره جنګ کیږي او که ووینی چې ژرنده دده ملکیت دی نو کار به یي سم سي او که په ژرنده کی غله نسته او وګوري چې څنګه ګرځي نو ددي خبري دلیل دا دي چې په سفر به ځي او که ووینی چې دژرندي کاڼی دتانبی یا دپیتلو یا داوسپني دی نو داټول دجنګ دلیل دی او که ووینی چې کاڼي دشیشي دی نو دلیل یي دا دي چې دهغه به دښځو سره جنګ کیږی او که ووینی چې ژرنده دغلي په ځاي کاڼي یا اوسپنه اوړه کوي نو دلیل یي دا دي چې دده سره به دچا جنګ کیږي لیکن که ووینی چې ژرنده پخپل لاس ګرځوي نو دلیل یي دا دي چې دده شریك به سخت زړی وي او دهغه په وجه به یي په کار کی ګټه نه وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چې دژرندي په خوب کی لیدل په پنځو وجو دي ۱: پاچا ۲: رئیس ۳ مالدار ۴: زر یا وروسته به مری ۵ دپاچا داشپزخاني مهتمم به وي، او د ژرندي ځاي لیدل دځاي مالداره اوبزرګ کیدل دی اوکه ژرنده خرابه ګرزیدونکی ووینی نو دلیل یي دا دي چې کوم شي په ژرنده کی وي هغه به خراب سی.

## آسیابان \ ژرنده ګړي \ آسیوان

ژرنده ګړي په خوب کی هغه سړي وي دچا په ذریعه چې دکور خلکو ته روزی حاصلیږی او روزی ګټی ددی وجی څخه چې دکور خلک ژوند باندی تیر کړی. ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چې دژرنده ګړي په خوب کی لیدل دداسی سړي لیدل دي دچا په لاس کي چې روزي وي که ژرنده ګړي ځوان وي نو تعبیر یي نیک دی اوکه په خوب کي ووینی چې ژرنده دخر یا اوښ اوړه را غورزوي نو دلیل یي دا دي چې ژرنده ګړي ته به دولت اومرتبه حاصله سی اوکه دژرندي دګرځیدو په وخت کی ژرنده ګړي دژرندي دکاڼی اواز اوري نو ددي دلیل دا دي چې دهغه په کار کی به قوت وي.

## اشتی کردن \ صلح کول

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چې څوك په خوب کی ووینی چې صلح کوي نو دلیل یي دا دي چې

دهغه عمر به زيات سی او كه ويني چي په صلح كی چاته ددين دفساد دعوت وركوي نو دليل يي دا دي چي هغه ته ددين دلاري اودصلاح او خير دعوت وركوي او كه ويني چي چاته په غصه سره ددين صلاح وركوي نو دليل يي دادي چي هغه ته دفساد او شر صلاح وركوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي صلح كول په درو وجو دی ۱: ډير عمر ۲: دقوت دليل دی ۳: ښه عقيده او ښه خوی دی.

## اغوش گرفتن \ په غيږ كي نيول

كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كی ويني چي هغه يو مشهور سړی په غيږ كی نيولي دی نو ددي دليل دا دي چي هغه سړی به نيك اوصالح وی او ددين خير به پيدا كړی او كه ويني چي ماشوم يي په غيږ كي نيولي دی نو دليل يي دا دي چي دي دښه زوي خواهشمند دی او كه ويني چي زمري يي په غيږ كي نيولي دی نودليل يي دادي چي ددښمن سره به صلح كوي.

## افتاب \ لمر

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب كي لمر پاچا يا خليفه بزرگوار وي كه څوك په خوب كي ويني چي د آسمان څخه يي لمر نيولي دی يا يي پخپل ملكيت كی كړيدی نو دليل يي دا دي چي پاچاهي يا بزرگي به پيدا كړي، او يا به دپاچا انډيوال اومقرب سي، اوكه ويني چي پخپله لمر سوي دی نودليل يي دا دي چي دلمر په اندازه به پاچا سي او كه دپاچاهي اهل نه وي نو دخپل همت برابر بزرگي او مرتبه به پيدا كړي، اوكه ويني چي دلمر سره جنگ كوي نو دليل يي دا دي چي پاچا به ورسره جنگ كوي، اوكه ويني چي دلمر په ځاي سپوږمی ولاړه ده نو دليل يي دا دي چي پاچا به سي او پاچاهي به يي برقراره وي او كه ويني چي دلمر څخه رڼا اخلي نو دليل يي دا دي چي دلوي پاچا څخه به ملك اخلي اوكه ويني چي لمر يي نيولي دی ليكن د آسمان څخه او دهغه شغلي او رڼا هم نسته او توره تياره ده نو دغم څخه به خلاصون پيدا كړي اوكه ويني چي لمر تک تور دی اوپخپل ځاي نه دی نو دليل يي دا دي چي پاچا به پخپلو كارونو كي محتاج سي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي لمر بزرگوار پاچا وي اوسپوږمي وزير، اوزهره ښځه او عطارد دپاچا منشي اومريخ شاهي پهلوان اوباقي ستوري د پاچا لښكر وي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي لمر پلار سپوږمی مور اوپاته ستوري ورونه دي الله تعالى په خپل كلام كی ديوسف په قصه كي بيان فرمايلي دی (اني رايت احد عشر كوكبا والشمس والقمر رايتهم لي ساجدين، سورة يوسف: ٤) ترجمه: ما په خوب كی يوولس ستوري وليدل او لمر او سپوږمی مي وليدل چي ماته يي سجده كوله اوچي څه زيات يا كم په لمر سپوږمی يا ستورو كی ويني نو داپر مور اوپلار او پر ورونو دليل دي او كه ويني چي لمر روښانه او پاك راختلي دی او دده په كور كی يي رڼا كړيده نودليل يي دادي چي په خپلوانو كي به ښځه كوي، او كه ويني چي وريځ او داسی نور دلمر رڼا پټه كړي ده نو دليل يي دادي

چي دپاچا حال به خطرناك وي او دهغه احوال خاصكر كله چي لمر روښانه ويني بدل به سي، اوكه ويني چي لمر دتياري څخه رڼا ته راغلی دی نو دليل يي دادي چي پاچا به ناجوړه سي او ژر به صحت پيدا كړي. اوكه ويني چي دلمر په جسم پوري رسی يا تار رازړيږي اوده لاس باندي ايښي دي نو دليل يي دادي چي ده ته به دپاچا څخه مدد او قوت حاصل سي اوكه ويني چي هغه رسی پري ده اودي را ايله دی نودليل يي دادي چي دبزرګی اومرتبي څخه به خلاص سي. اوكه ويني چي ده لمر يا سپوږمی پر سجده كړي ده نو دليل يي دادي چي دده څخه به ګناهونه او خطاګانی ښكاره سی اوكه ويني چي لمر يا سپوږمی يا ټول ستوري يو ځاي جمع سوي دي او دي دهغه څخه رڼا اخلي نو دليل يي دادي چي دجهان پاچاهي به حاصله كړي او دجهان ټول پاچاهان به دده فرمانبردار وي. او كه ويني چي لمر سپوږمی او ستوري يي نيولي دي او ټول تور دي نو دا ددي خبري دليل دی چي خوب ليدونكي به هلاک سي او خاصكر چي دي ظالم او ستمګر هم وي. كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوک ويني چي دلمر په مينځ كي توره نقطه ده نو دليل يي دا دي چي دپاچا زړه به په ملك كی مشغول سي او كه ويني چي دوه لمرونه جنګيږي نودليل يي دادي چي دوه پاچاهان به ديوبل سره جنګ كوي اوكه لمر پرمځكه را ايله سي بی رڼائي ويني نو دليل يي دا دي چي دهغه ملک پاچا به دپاچاهی څخه معزول سي او ملک به ځني ولاړ سي. او كه لمر پخپل لاس كی تور ويني نو دليل يي دا دي چي پاچا اوخوب ليدونكی دواړه به په غم كی مبتلا سي، اوكه ويني چي لمر په يو سايه كی ورك سوی دی نو دليل يي دا دي چي پاچا به مړ سي اوپر عامو خلكو باندی به غم او خفګان وي، او كه ويني چي لمر او ستوري څه شي پټ كړی دی نو دليل يي دا دي چي پاچا به دلښكر سره ددښمنانو څخه ماته وخوري، اوكه ويني چي دلمر عبادت كوي نو دليل يي دا دي چي ديو لوی پاچا مقرب به سي. اسماعيل رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوک په خوب كی ويني چي دهغه مخ دلمر طرفته دی او بيايي دلمر څخه مخ اړولی دی نو دليل يي دا دي چي اول كافر وو بيا مسلمان سو او په اخر كی به بيا كافر سي، اوكه په خوب كی ويني چي لمر يي بيا ليدلی دی نو دليل يي دا دي چي دهغه ملک پاچا به ديو نا اميده شي څخه غم پيدا كوي اوكه لمر دځان سره په خبرو كولو ويني نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به مرتبه، دبدبه اوبزرګي پيدا كوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دلمر دليدلو تدبير په اتو وجو دی. ۱: خليفه ۲: عزتمند پاچا ۳: مشر ۴: عزتمند حاكم ۵: عادل پاچا ۶: درعيت فائده ۷: دسړي لپاره ښځه دښځي لپاره سړي ۸: نيك او صفا كار. او دا هم دوی ويلي دی چي كه څوك ويني چي دی لمر ته سجده كوي نو دليل يي دا دي چي پاچا به پرده مهرباني كوي او خپل انديوال به يي جوړوي، مرتبه به يي لويه وي دملک رئيس او مالداران به عدل كوي، او صرف دلمر شغلي ليدل ددي خلاف حكم لري.

## افتابه \ كوزه

ابن سيرين رحمة الله علمه ويلي دی چي په خوب كی كوزه خادمه ښځه يا مينځه ده دكومي پر

ذمه چي ډیوه بلول وي. بعض تعبیر بیانوونکي وایي چي کوزه قوي خادم دی چي قوم دهغه طاعت کوي او دګناه څخه ځان ساتي اوکه څوك ویني چي دهغه سره نوي کوزه ده یا ورته چا ورکړیده نو دلیل یي دا دي چي هغه ته به خادمه یامینځه حاصله سي دهغه صفت کوم چي بیان سو، او که ویني چي کوزه ماته سوي ده نو دلیل یي دا دي چي خادمه یا مینځه به یي ناجوړه سي یا به مړه سي او که ویني چي کوزه ضائع سوي ده نو دلیل یي دا دي چي خادمه یا مینځه به یي وتښتي یا به جلا سی، جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دکوزي لیدل په نهو وجو دي. ۱: ښځه ۲: خادم ۳: مینځه ۴: انصاف ۵: بدن ۶: ډیر عمر ۷: مال او نعمت ۸: خیر او برکت ۹: دښځو دطرف څخه راحت او خوشحالي.

### الج \ یوه میوه یا واښه

الج چی په عربی کي زعر ورته وایي که څوك په خوب کي ویني چي الج خوري نو دا دتکلیف او ناجوړی دلیل دي کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي دهغه سره الج دی یا یي چا ته ورکړي دی یا یي دکور څخه دباندي غورزولي دی اوخوړلي یی نه دی نو ددي دلیل دا دی چي دغم او ناجوړی څخه به په امن وي، غرض دا چي په خوب کي دالج خوړل خیر اوفائده نه ورکوي.

### اماس \ پړسیدل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کي پړسیدل مال دی او که ویني چي پربدن یي پړسوب ښکاره سوي دي نو دلیل یي دا دي چي دهغه برابر مال به ورته حاصل سي که په پړسوب کي ډیر نَو هم ویني. کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي پر بدن یي پړسوب دی او ورته تکلیف نه وي نو دلیل یي دا دي چي حرام مال به ورته حاصل سي جعفر صادق (رح) ویلي دی چي په خوب کي پر بدن پړسوب لیدل په پنځو وجو دی: ۱: مال به یي زیات سي۲: فائده منده ښځه ۳: هلک به یي کیږي ۴: مراد به یي پوره سي ۵: دغمونو څخه به په امان سي او که ټول بدن پړسیدلی ویني نوهغه ته به داپنځه سره شیان حاصل سي.

### اهک \ چونه

دانیال علیه السلام ویلی دی چي که څوك په خوب کی وویني چي په چونی سره یي دبدن څخه وریښته خریلی دی که مالدار نه وي نو دهغه هومره مال به یې وسي که غمګین وي نو دغم څخه به خلاصون پیدا کړي، که قرض داره وي نو قرض به ادا کړي. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي په چوني سره وریښته لیري کول که مالدار وي نو مال به یي نور هم ډیر زیات سي که فقیر وي نو قرض به ادا کړي او دکافر انو لپاره داسلام نښه ده. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي چونه په درو وجو ده ۱: خیر دی ۲: خرابي اوناخوښي خبري دی ۳: مشکل کار، او دچوني عمارت وغیره جوړول خراب تعبیر لري.

### اهن \ اوسپنه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي دمعمولي اوسپني په خوب کي لیدل خادم دی ورنه په قدر د

اوسپني به ورته دنياوي مال حاصل سي، اوکه ويني چي چا ورته په خوب کي اوسپنه ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي دهغي اوسپني هومره به ورته څوك دنياوي مال ورکړي. کرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي د اوسپني ليدل دصلاحيت او پاچا سره نسبت لري الله تعالی په قران کي ارشاد فرمايلي دی (وانزلنا الحديد فيه بأس شديد ومنافع للناس، سورة الحديد: ۲۵) ترجمه: موږ اوسپنه پيدا کړيده پدي کي سخت جنګ او دخلکو لپاره فائده ده او که ويني چي اوسپنه يي دکاڼي څخه ايستلي ده نو دليل يي دا دي چي هغه ته به سختي راځي دالله تعالی فرمان دی (قل کونوا حجارة او حديدا او خلقا مما يكبر فى صدوركم، سورة الاسراء: ۵۰ –۵۱) ترجمه: ووايه چي تاسو کاڼي يا اوسپنه سي يا ددي څخه هم زيات داسی مخلوق کوم چي ستاسو په خيال کي راځي. جابر مغربي رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي اهنګري کوي حالانکه هغه اهنګر نه وي نو ددي خبري دليل دادي چي دچا سره به جنګ کوي او که دي پخپله اهنګر وي نو بيا داخوب دخير او نفعي دليل دی او بعض تعبير کوونکي وايي چي داهنګر تعبير پاچا او بزرګ دی کوم چي عادل او انصاف کوونکی وي. ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي داهنګر په خوب کي ليدل دکوم سره چي يي پيژندګلوی وي دپاچاهي دليل دی اوکه پيژندګلوی والا ونه ويني نو چي څه يي ليدلي وي دهغي نيك اوبد تعبير به داهنګر طرفته بيرته کيږي اوکه په خوب کي ويني چي اوسپنه يا پيتل ويلي کوي نو دليل يي دادي چي دغه سړي دخلکو غيبت کوي او بد به يي وايي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي څه شيان په خوب کي داوسپني ويني که څه هم ستن وي نو دليل يي نفع، قوت، ولايت همت او پر دښمن دبري پيدا کول دی.

## اهو \ هوسۍ

کرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي هوسۍ يي نيولي ده نو دليل يي دا دي چي ښائسته منځه به حاصله کړي. که ده ليدلي وي چي دهوسۍ مري يي پري کړيده نو دليل يي دا دي چي دپيغلي انجلۍ پيغلتوب به ماته وي او که ويني چي دهوسۍ دښا څخه يي مری پري کړيده نو دليل يي دادي چي دمنځي سره به خلاف شرع جماع کوي او که ويني چي دهوسۍ څخه يي پوست ايستلی دی نو دليل يي دا دي چي دغريبي ښځي سره به زنا کوي، اوکه ويني چي دهوسۍ پوست يي خوړلی دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به ښائسته ښځه ملاو سي او که وينی چي دهوسۍ پوست يا غوښه او يا وازګه يي خوړلی ده يا دده وخواته بيرته راغلي ده نو دليل يي دا دي چي ده ته به مالداره ښځه ملاو سي، او که ويني چي ده هوسۍ وهلي ده نودليل يي دا دي چي دښځي دطرف څخه به غمګين سي. ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کی ويني چي په هوسۍ پسي ولاړي او هغه يي را وپرزوله نو دليل يي دادي چي ځوانه ښځه يا مينځه به حاصله کړي او که ويني چي هوسۍ يي دښکار په وخت کي را غورزولي ده نو دليل يي دا دي چي دغنيمت مال به حاصل کړي او که ويني چي هوسۍ په کور کي مړه سويده نو دليل يي دا دي چي دښځي دطرف څخه به ورته غم او تکليف

ورسيږي او كه وويني چي هوسۍ يي په كانړو يا په غشو ويشتلي ده نو دليل يي دا دي چي نالائقه خبره به يوي ښځي ته كوي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دي چي كه څوك په خوب كي وويني چي په لاسو يي هوسی نيولي ده يا چا وركړيده نو ددي خبري دليل دا دي چي ده ته به دمنځي ښځه زوي حاصل سي. جعفر صادق ويلي دي چي هوسی ليدل په څلورو وجو وي ۱: ښځه ۲ : مينځه ۳: زوي ۴: دښځو څخه فائده حاصلول.

## اواز

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي كه دسړي اواز په خوب كي لوړ وي نودليل يي دا دي چي په خلكو كي به عزت پيدا كړي او كه څوك وويني چي دده اواز لوړ سوي وو نو دا دده دقدر دلوړوالي دليل دی چي دده نوم او اواز به لوړ سي او كه وويني چي دده اواز كمزوری سوی وو نو دليل يي دا دي چي د ده نوم او اواز به ضعيف سي او څوك به دي نه پيژني. كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي داواز لوړوالي دسړيو لپاره دبزرگی او دنوم دلوړوالي دليل دی او دښځو لپاره په خوب كي لوړ اواز ليدل ښه نه دی.

## اويختن \ پانسي كيدل

دانيال عليه السلام ويلي دی چي كه څوک په خوب كي وويني چي پاچا دده دپانسي حكم وركړيدی نو دليل يي دا دي چي دپاچا دبدبه او عزت به بيا پيدا كوي ليكن دده په دين كي به خلل راسي. او كه وويني چي دی پانسی دی او خلک ورته گوري نو دا ددی خبري دليل دی چي پر دغه قوم به حكومت او سرداري پيدا كوي او كه وويني چي خلک جمع دی او دي يي پانسي كړيدی نو دليل يي دا دي چي ددغه قوم سردار او فرمانروا به سي او كه وويني چي يونامعلوم بوډا دی پانسي كړيدي او خلک دده نظاره كوي نو دليل يي دا دي چي پر خلكو به حاكم سي، خاصكر كه خپلوان هم په دغه نظاره كي شامل وويني او كه وويني چي ځان يي پانسي كړيدی او چا دده نظاره نه وي كړي بلكه ځان يي پخپله پانسي ليدلي وي نو ددي خبري دليل دا دي چي پر خپلوانو به حكومت كول غواړي ليكن څوك به دده تابعدار نه وي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي وويني چي دي خلكو پانسي كړيدي او رسی پري سويده او دی را ايله سويدی نو دا دلوی عزت او دمرتبي څخه درا ايله كيدو دليل دی.

## ائينه \ شيشه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي شيشه ليدل ولايت او مرتبه ده، او كه وويني چي شيشه ورسره ده يا چا وركړيده نو دليل يي دا دي چي دشيشي دلوی والي په اندازه به مرتبه ولايت اونعمت حاصل كړي. او كه وويني چي چا ته يي شيشه وركړيده نو دليل يي دا دي چي خپل مال او اسباب به دچا مخ ته حاضر كړي اوكه وويني چي داوسپنی په شيشه كي گوري نو دليل يي دا دي چي خپله مرتبه او عزت ته به دنفرت په نظر گوري ځكه چي تعبير بيانوونكی داوسپنی شيشه بده بولي. كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوک په خوب كي داوسپني په شيشه كي گوري نو دليل يي دا دي چي كه دهغه ښځه حامله وي نو هلک به يي پيدا سی اوپه

ټولو خبرو کي به دپلار په ډول وي او که دمخه رقم خوب حامله ښځه ویني نو انجلی به یي پیدا سي چي په هرڅه کي به دمور په ډول وي او که ښځه حامله نه وی نو دلیل یي دادي چي خاوند به ورته طلاق ورکړي بلکه ښځه به وکړي او دغه ښځه به بل خاوند وکړي، او که هلک په خوب کي شیشه ویني نو دلیل یي دا دي چي دهغه به ورور پیدا سی او که انجلۍ شیشه ویني نو دلیل یي دا دي چي ددي به بله خور پیدا سی، او که حاکم یا پاچا شیشه ویني نو دلیل یي دا دي چي معزول به سي او حکومت به دهغه دلاسه څخه ولاړ سي اوبل چا ته به ملاو سي او دده پر ځاي به پر تخت کښیني. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که چا په خوب کي په شیشه کي ښایسته معلوم مخ لیدلي وي نو پاچا به سي او که نامعلوم یي لیدلی وي نو چي څنګه یي لیدلي وی نو دهغه تعبیر به نیك او بد دشیشه لیدونکی خواته رجوع کوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شیشه لیدل په شپږو وجو دی. ۱: ښځه ۲: زوی ۳: رتبه او فرمان ۴: یار او انډیوال ۵: شریک ۶: ښکاره کار. او داهم دوی ویلي دی چي که غریب سړی په خوب کي شیشه ویني نو ددي خبري دلیل دا دي چي ښځه او عزت به پیدا کوي که انجلی یي ویني نو واده به سي اوخاوند ته به نژدي او قدرمنه وي، اوکه په خوب کي ویني چي ده ته چا نامعلومه سړی شیشه ورکړیده نو ددي خبري دلیل دا دي چي ورك سوي انډیوال به ویني او خوشحاله به سي.

## ابر \ وریځ

دانیال علیه السلام ویلي دی چي وریځ په خوب کي لیدل په شپږو وجو ده. ۱: سپینه وریځ ۲: توره وریځ ۳: ژړه وریځ ۴: سره وریځ ۵: دباران اورولو وریځ ۶: باران نه ورولو والا وریځ او دهر یو تعبیر جلا دی. که څوك خپل ځان په سپیني اوریدونکي وریځ کي ویني نو دلیل یي دا دي چي الله تعالی ورته علم او حکمت ورکړی او خلکو ته به دده دعلم او حکمت څخه فائده وي. او که ویني چي په ژړه وریځ کي ولاړ دی نودلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي او بعض تعبیر بیانوونکي وایي چي ښځه به پیدا کړي چي دهغه څخه به ورته غم اوتکلیف وي. اوکه په سره وریځ کي ویني نو دلیل یي دا دي چي په محنت او بلا کي به ګرفتار سي ځکه چي الله تعالی چي پرکوم قوم باندي عذاب نازل کړي دی اول یي په هغوی سره وریځ ښکاره کړیده او که ویني چي وریځ جګه دده پرسر دریدلي ده نودا ددي خبري دلیل دی چي حکومت به پیدا کړي او که ویني چي وریځ دده پرسر تیره سوي ده نو دلیل یي دا دي چي دده ناسته به دنیک سړی او دمرتبی دخاوند سره وی او دهغه څخه به ورته مراد حاصل سي. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي وریځ په هوا کي چلوي نو دلیل یي دا دي چي دده ناسته به دعالمانو او حاکمانو سره وي اوکه داخوب پاچا ویني نو دلیل یي دا دي چي په خپل ولایت کي به باخبر قاصدان لیږي اوکه په خوب کي ویني چي وریځ یي دهوا څخه نیولي ده او مځکي ته یي راوړي ده نو دلیل یي دا دي چي نیکي بزرګي او علم به حاصل کړي او که ویني چي وریځ دده په سر سایه کوي نو دلیل یی دا دي چي په دغه کال به خیر او نعمت ډیر پیدا کړي دالله تعالی

فرمان دی (وظللنا عليكم الغمام وانزلنا عليكم المن والسلوى كلوا من طيبات مارزقنكم، سورة البقرة: ۵۷) ترجمه :
او موږ پر تاسو دوريځ سايه وکړه او پر تاسو مو ترنجبين او مرزان راوليږل او موږ پاك شيان تاسو ته درکړه چی هغه خوری. اوکه ووينې چې په وريځ سره يې کالې تور سوي وي اوده اغوستي وه نو دليل يي دا دي چي دومره علم به ورته حاصل سی چي چا ته به نه وي حاصل سوي او که ووينې چي وريځ ټول جهان پټ کړيدی او باران ځني نه دي اوريدلي نو دا خراب دليل دی. کرماني رحمه الله ويلي دی که چا په خوب کي ليدلی وي چي وريځ يي جمع کړيده يا يي لوړه کړيده يا يي خوړلي ده نو ددي خبري دليل دا دي چي هغه به پرحکيمانو باندي په عقل سره لوړ سي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي وريځ خوري نو دليل يي دا دي چي دهغه ژوند به په حکمت سره وي، اوکه ووينې چي توره وريځ پر يو ځاي را ايله سويده نو دا پر دغه ملك دالله تعالی دعذاب دليل دی ځوک چي دوريځ سره نزدی ووينې هغه به دالله تعالی عذاب ته نزدي وي او که دوريځ سره باران ووينې نو دا دخير او درحمت دليل دی. او که ووينې چي دوريځي څخه باران را اوريږي نو دليل يي دا دي چي هغومره رحمت اونيکي به ووينې او که دوريځي سره باران او سخته برېښنا ووينې نو دا دمور او پلار او دمسلمانانو دشر او دبيريدو دليل دی، اوکه دبرېښنا سره بجلي ووينې نو دادسختو عذابونو دليل دی، اوکه پخپل کور او ځاي باندي وريځ راتلونکي ووينې نو دليل يي دا دي چي دده زوي او کور والاوو ته دوريځي دتياري په اندازه عقل اوحکمت حاصليږي.
جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي وريځ ليدل په نهو وجو دي. ۱: حکمت ۲: رياست ۳ : پاچاهي ۴: رحمت ۵: پرهيزګاري ۶: عذاب ۷: قحطی ۸: بلا ۹: فتنه.

## اب سفنج \ وريځ

اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي توره وريځ د بيري او سختی دليل دی او اوريدونکي وريځ دخير اوبرکت او فراخی دليل دی او که غم او فکر هم وي ليکن هغه وريځ کومه چي ددرياب دغاړي څخه پورته کيږي هغه ته په عربي ژبه کي اسفنج وايي دا په خوب کي ليدل ددي خبري دليل دي چي په څومره اندازه يي ليدلي وي په هغه اندازه به ورته مال غنيمت حاصل سي.

## ابروها \ وريزي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي دورزو په خوب کي ليدلی دين دي، که څوك په خوب کي ووينې چي دده وريزي پوره بي نقصانه دی نو دليل يي دا دي چي دده ښائست پوره او کامل دی اوکه ووينې چي دده وريزي را ايله دی نو ددي تعبير داولنی خلاف دی. کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي دده وريزي نسته يا يي وريښتان را ايله سوی دي نو ددی خبري دليل دا دي چي ديو شي اراده به کوي چي دهغه سره به دده په دين کي بدنامی اوفساد وي او که ددي خلاف ووينې نو دليل يي دادي چي دڅه شي قصد به کوي چي دهغه سره به يي نيك نامی

او ددین اصلاح وسي او که ویني چي دده وریزي سپیني سوي دي نو دلیل یي دا دي چي دده علم او صبر به زیات سي لیکن دمال نقصان به یي وسي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوک ویني چي یوه وریزه یي را ایله سویده اوبله یي سمه نو دلیل یي دا دي چي دهغه په مال او مرتبه کي به نقصان راسي او بعضي وایي چي ددین دزینت په نقصان دوریزي را ایله کېدل او وتل دلیل دی.

## ابریشم \ ریښم

په خوب کي دریښمو دلیدلو دتعبیر ذکر به په حرف "ق" کي راسي.

## ابلیس \ شیطان

دانیال علیه السلام ویلي دی چي دشیطان په خوب کي لیدل ددشمنۍ بی دینۍ درواغو دهوکو بي شرمۍ دنیکۍ څخه دنا امیدی خلکو ته دبدی ښولو او دشر او فساد دلیل دی او که په خوب کي ویني چي پر شیطان غالب سوي دی په جنګ کي نو دلیل یي دا دی چي دده توجه دصلاح او خیر طرفته ده او که ویني چي شیطان پر ده غالب سوي دی نو دلیل یی دا دي چي دشر او فساد طرفته به مائل سي او که په خوب کي ویني چي شیطان دده سره خبري کوي نو دلیل یي دا دي چي شیطان به یي دلاري څخه واړوي او دبندګی څخه به یي منع کړي او که ویني چي شیطان ده ته نصیحت کوي او ده ته ښه معلومیږي نو دلیل یي دا دي چي دده مال او بدن ته به نقصان ورسیږي او که ویني چي شیطان دده لاس نیولي دی او یو ځاي ته یي بیولي دی او ده (لا حول ولا قوة الا بالله العلي العظیم) ترجمه: نسته دګناه څخه دبچ کیدو او دنیکۍ طاقت مګر دالله تعالی سره دی چي لوی او لوړ دی. ووایه نو دلیل یي دا دي چي په غټه او لویه ګناه کي به اخته سي او بیا به دچا په نصیحت ددي څخه بچ سي او که ویني چي ده دشیطان په مری کي پړي اچولی دی نو دلیل یي دا دي چي دیندارو او ښو خلکو ته به خوشحالی ورسیږي او که ویني چي شیطان ضعیف او عاجز دی نو دلیل یي دا دي چي په اصلاح کوونکو عالمانو او نیکو خلکو کي به طاقت پیدا سي. کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي دشیطان فرمانبردار سویدی نو دلیل یي دا دي چي په نفسیه خواهشاتو کي به مبتلا سي. او که ویني چي شیطان ورته څه ورکړیدي نو که هغه ښه شي وي نو حرام مال به حاصل کړي او که هغه شي خراب وي نو دلیل دا دي چي دهغه په دین کي به فساد وي. او که څوك ویني چي شیطان خوشحاله او رضا دی نو دلیل یي دا دي دخلکو په کارونو کي به ډیر فساد راسي او که ویني چي شیطان په توره مړ کول غواړي او هغه تښتیدلي دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به یو هلك ملاویږي اودي به عدل اوانصاف کوي اوکه ویني چي شیطان یي مړ کړیدي نو دلیل یي دا دي چي پرخپل نفس باندي به غالب سي اونفس به مغلوب کړي او پر نیکه لاره به ځي.

## ارزیز \ تانبه \ کلایي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي دده سره کلایی ده نو دلیل یي

دا دي چي هغومره ددنیا سامان به حاصل کړي کوم چي دلوښو څخه لاندي وي لکه پیالي او تالي او داسی نور او که پوهیږي چي دده ملك دی نو دلیل یي دا دي چي هغونده نوکران به پیدا کړي. کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي کلایی ویلي کوي نو دلیل یي دا دي چي خلک به د ده بدي بیانوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي کلایی په خوب کي لیدل په درو وجو وي. ۱: نفع ۲: خدمتګار ۳: دکور سامان.

## اره

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي په اری سره یي درخته پریکړه نو دلیل یي دا دي چي ددی سړي به ددرختی دمالك سره جدایي راسي او هغه به تنګوي، او دهري یوي درختي تعبیر به په حرف (د) کي راځي اوکه په خوب کي ووینې چي خپل زوي یا ورور یا خور یي په اره دوه ټکړي کړیده نودلیل یي دا دي چي دهغه په ډول زوي یا ورور یا خور به یي پیدا سی. کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي هغه ته اره ملاو سوه یا یي واخسته یا چا ته یې ورکړه نو ددي خبري دلیل دا دي چي که دهغه زوي وي نو بل زوی به یي پیدا سی اوکه لور یي وي نو بله لور به یي پیدا سی او که زوي یي نه وي او حیوانان یي وي نو ددي خبري دلیل دا دي چي دهغه په ډول نور حیوانان به ورسره پیدا سی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي اره لیدل په درو وجو وي. ۱: زوي ۲: ورور یا خور ۳: شریك.

## ازار \ لنګ، پرتوګ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي لنګ او پرتوګ ښځه ده او که څوك په خوب کي ووینې چي لنګ یي تړلي دی نودلیل یي دا دي چي ښځه به راولي یابه مینځه اخلي اوکه ووینې چي یې لنګ ضائع سوي دي نو دلیل یي دادي چي هغه به دښځي څخه جلا سي او که ووینې چي پرتوګ یي شلیدلي دی نو دا دښځی دعیب او نقصان دلیل دی او که ووینې چي پرتوګ یي په اور کي سوزلي دی نودا دښځي دافت او دناجوړي دلیل دي، جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي دهغه لنګ دسونی، دریښمو یا دپشمیني دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه ښځه به جنګ ماره اودینداره وي او که ووینې چي دده پرتوګ پخوانی او خیرن دی نو ددی تعبیر د اولنی خلاف دی او که ووینې چي دده پرتوګ دریښمو دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه ښځه به عیش کوونکی اومغروره وي.

## ادعای پیغمبري \ د پیغمبرۍ دعوې کول

دانیال علیه السلام ویلي دي چي که څوک په خوب کي ووینې چي هغه دنبیانو څخه نبي سوي دي او خلک خداي تعالي او د هغه دتوحید طرفته رابولي نو دلیل یي دا دي چي اول به په غم او تکلیف کي ګرفتار سي او بیا به پردښمن کامیابي پیدا کړي او که خپل ځان پرهیزګار اونیک کاره ووینې نو بیا یي هم دغه دلیل دی لیکن دهغه غم اوتکلیف به په دنیا کي کم وي او که ووینې چي دی دبدبې والا او مالدار سوی دی نودلیل یي دا دي چي ددنیا نعمت به باندي فراخ

سي ليکن دين به يي تباه سي. کرماني رحمة الله عليه ويلي دي چي که څوك په خوب کي ويني چي دده نوم بدل سوي دي چي په ښو نومونو مثلا محمد سعد سعيد صالح اوعلي او داسی نورو باندي بلل کيږي سي نو دليل يي دا دي چي دی به په ذکر خير اوپه نيکی سره ياد کړي او که ددي خلاف ويني نو دی به په بدۍ سره ياد کړي. اوکه ويني چي دی پاچا يا امير ياقاضی سويدی نو دليل يي دا دي چي دی به پخپل کاروبار کي عدل او انصاف کوي او که ددي خلاف ويني نو دبدۍ دليل دی. جابر مغربي رحمة الله عليه فرمايلي دی که ويني چي دده حال دښه والي څخه دفساد طرفته بدل سويدی نو دا دبد بختۍ او بي نصيبۍ دليل دی، اوکه ددی خلاف ويني نو دا د دين او دنيا دسعادت او دمالداره کيدو دليل دی.

## اژدها \ غټ مار

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دغټ مار په خوب کي ليدل دغټ دښمن ليدل دی کوم چي ورسره قوي دښمني ساتی. اوکه ويني چي غټ مار ورسره دی نو دليل يي دا دي چي دبزرګانو سره به ملاو سي او که ويني چي د غټ مار سره يي جنګ کړيدي اوغالب سوي دی باندي نو دليل يي دا دي چي ددښمنانو سره به جنګ کوي او اخر کار به دښمنان ختموي او که ويني چي مار يي مړ کړ نو دهغه مال به اخلي او دغه مال به پخپل کور خرڅ کوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي مار وچيچی نو دليل يي دا دي چي ددښمن څخه به ورته بيره وي او دښمن به دی هلاک کړي، اوکه ويني چي دغټ مار پر ملا سپور سويدي او غټ مار دده تابع فرمان دی نو ددي خبري دليل دا دي چي غټ دښمن به يي تابعدار سي ا و دده ټول کارونه به په انتظار سره وي.

## آسپندان \ توره د سپيلنۍ دانه

کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي دآسپندان په خوب کي ليدل دغم دليل دی اوکه ويني چي چا ورته سپيلني ورکړي دی نو ددي خبري دليل دادي چي هغوندي غم اوتکليف به ورته رسيږي اوکه ويني چي چا بل چا ته سپيلنۍ ورکړيدی نو دليل يي دا دي چي دهغه څخه به ورته غم رسيږي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي څوک په خوب کي ويني چي سپيلني ورسره وي او خوړلي يي نه دی يا يي چا ته ورکړيدي يا يي دکور څخه دباندي اچولي دی نو دليل يي دا دی چي ده ته به غم او فکر کم وي.

## اسپ \ آس

دانيال عليه السلام ويلي دی چي دعربي آس په خوب کي دليدلو دليل بزرګي عزت او مرتبه ده او که ويني چي په عربي آس ناست دی اوآس فرمانبردار دی نو دا دعزت او بزرګي دليل دی ليکن ددومره اندازي مطابق څومره چي آس ښه عمده وي اوکه څوك په خوب کي ويني چي آس يې اخستي دی ليکن عربي آس نه دی يا چا ورته ورکړيدي اوپر هغه ناست دی نو شرف او بزرګي به دآس په نسبت کمه پيدا کړي اوکه ويني چي دآس په سامان کي کمی دی مثلا چي زين يا لمسي يا واګي يي نه وي نودليل يي دا دي چي هغونده به يي په بزرګي کي نقصان وي. او که

ووينې چې دآس لکۍ غټه او اوږده ده نو دليل يې دا دی چې هغوندې به يې نوکران وي او که لکۍ پريکړل سوي ووينې نو دليل يې دا دی چې نوکران اوخادمان به يې نه وي او که ووينې چې څه شيان دده دآس په اندامونو يعني بدن کې ناقص وو نودليل يې دا دی چې هغونده به يې په عزت اوشرافت کې نقصان وي اوکه ووينې چې دآس سره يې جنګ کړيدی او آس باندي غالب سويدی او فرمانبردار سوي نه دی نودا دګناه او نافرمانۍ دليل دی. محمد ابن سيرين رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دي چې که څوک په خوب کې ووينې چې پر لڅ آس باندې سپور وي نو دليل يې دا دی چې دهغه مصيبتونه او ګناهونه به زيات سي او که هغه آس دبل چاوي نو دآس دمالک به دغه حال وي کوم چې موږ بيان کړيدی. اوکه وواييې چې آس لڅ دی ليکن دده تابعدار نه دی نو دا دشرف او دبزرګۍ دليل دی اوکه يې ليدلی وي چې پر آس سپور وي او آس پر چت يا پر ديوال ولاړ دی نو دليل يې دا دی چې ګناه او نافرماني به ډيره کوي اوکه پر آس سپور وي او آس والوزي او يا ووينې چې دآس دمرغيو په ډول وزري دی او دمرغيو په ډول الوزي نو دليل يې دا دی چې سفر به کوي او په دين او دنيا کې به شرافت او بزرګۍ حاصله کړي. کرماني رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دي چې که څوک خپل ځان پر برګ آس باندې سپور ووينې نو دليل يې دا دی چې داسې کار به کوي چې پر هغه به خلک ګواهي ورکوي او که ځان پر تور آس سپور ووينې نو دليل يې دا دی چې داسې کار به کوي چې په هغه سره به مال او سرداري پيدا کړي او که ځان پر کميت (سور مائل توروالي ته وي) آس سپور ووينې نو دليل يې دا دی چې دپاچا څخه به قوت اوبزرګۍ پيداکړي اوکه ځان پر وريت (ژړ بخون) آس سپور ووينې نو دا ددين ددرستۍ دليل دی او دپاچا څخه به عزت پيدا کړي او که ځان پر تک ژړ آس سپور ووينې نو دليل يې دا دی چې لږ به ناجوړه سي او دسپين آس هم دغه دليل دی او که پر تور شين آس باندې خپل ځان سپور ووينې نو دا دخير او دصلاح دليل دی او که پر سليس آس باندې ځان سپور ووينې نو دليل يې دا دی چې ښځه به ورته ملاو سي. اوکه ووينې چې دآس څخه راکښته سويدی نو دليل يې دا دی چې دعزت او دمرتبې څخه به کښته سي او که ووينې چې دلڅ آس څخه را کښته سي نو دليل يې دا دی چې دګناه او دنافرمانۍ څخه به بچ سي او که ووينې چې دوسلې سره پر آس سپور سويدی نو دليل يې دا دی چې بې مشکله به ورته شرافت او مرتبه حاصله سي او پر دښمن به کامياب سي، اوکه ووينې چې دجنګ لپاره آس زغلوي نو دليل يې دا دی چې دهغه څخه به ګناه وسي او دآس زغلولو په قدر به بيره ووينې اوکه ووينې چې پر آس باندې سپور دی او دجماعت خواته تللې دی نو په دې کې څه خير نسته ليکن که آس دهغه ځاي څخه دباندې راوباسي نو دخير دليل دی او که ووينې چې آس ورسره مينه کوي نودليل يې دا دی چې مال اودولت به ورته ملاو سي اوکه آس دځان سره په خبرو کولو ووينې نو دليل يې دا دی چې داسې کار به وکړي چې خلک به ورته حيران سي او که ووينې چې پردی آس دده کور يا کوټې ته راغلې دی نو دليل يې دا دی چې يو شريف سړی به دده کور يا کوټې ته راسي او داسې دقدر او قيمت مطابق مقام به حاصل کړي او که ووينې چې آس دهغه دکوټې څخه تللې

دی نو دلیل یي دا دي چي یو شریف سړي به دده دکوڅي څخه ولاړ سي یابه مړ سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي اسپه یي اخیستي ده یا چا ورکړیده نو دلیل یي دا دي چي برکتی ښځه به ورته ملاو سي او که توره اسپه یي لیدلي وي نو دلیل یي دا دي چي هغه ښځه به شریفه او نامداره نه وي. او که ووینی چي برګه اسپه ده نو دلیل یي دا دي چي دښځی مور اوپلار په دیو نسل څخه نه وي او که ووینی چي اسپه توره شنه ده نو دلیل یي دا دي چي هغه ښځه به دین داره او پرهیزګاره وي او که وریت رنګه اسپه ووینی نو دلیل یي دا دي چي هغه ښځه به عزیزه او دمرتبي خاونده وي او که تورچکی سره اسپه ووینی نو دلیل یی دا دي چي هغه ښځه به عیش پسنده او خوش باشه وي او که ووینی چي هغه اسپه کوچنی والا ده نو دلیل یي دا دي چي دهغي ښځي به زوی هم پیدا سي اوکه داسپي سره بچی هم ووینی نو دلیل یي دا دي چي هغه ښځه به انجلی والا وي. او که ووینی چي په خوب کي دآس غوښه خوري نودلیل یي دا دي چي پاچا به دهغه غوښتونکي وي او خپل ملګري به یي جوړکړي او که ووینی چي دچا څخه شاته پر آس سپور دی یا دده څخه شاته څوك ناست دی نو چي شاته څوك سپور وي هغه به دمخکني دفرمان تابع وي. اوکه ووینی چي ډیر آسونه دده په کور یا کوڅه کي جمع دی نو دلیل یي دا دي چي پر هغه ځاي به باران ډیر کیږي او سیلاب به راځي. اشعث رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي په تیز رفتاراو خوش رفتار آس باندي ناست دی نو دلیل یي دا دي چي دمالداري او صالح ښځي سره به نکاح وکړي او که هغه ددي اهل نه دی نو دداسي ښځي سره به مصاحبت کوي دکومي څخه چي به ورته نفع او نیکي حاصله سي. او که ووینی چي دآس غوږ پرې سویدی نودلیل یي دا دي چي دسردارانو پیغام به دده څخه پرې سي، او که ووینی چي آس دسر څخه را ایله سو او بیا راپورته سو نو دلیل یي دا دي چي اول به یي په کار کي خلل راځي او بیابه سم سي. اوکه ووینی چي لکی پریکړل سوی آس یي اخستي دی او پر هغه سپور دی نودلیل یي دا دي چي دبي اصله ښځي خاوند به سي ا و که ووینی چي آس لغته ورکړیده نو دلیل یي دا دي چي دده اولاد به په فضولیاتو کي مشغول سي او که ووینی چي پرآس باندي په هوا کي تللي دی اوبیا دهوا څخه را ایله سویدی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا دلاس څخه به هلاک سي. او که ووینی چي دده آس چا پټ کړیدی نو دا بیره ده چي دده اولاد به هلاک سي او که ووینی چي دده آس ورك سویدی نو دلیل یي دا دي چي خپلي ښځي ته به طلاق ورکړي. اوکه یي لیدلي وي چي خپل آس یي خرڅ کړیدی نو دلیل یي دا دي چي دده مرتبه او عزت به کم سي یا به دده څخه اولاد جلا سي او که ووینی چي پر آس چپه ناست دی نو دلیل یي دا دي چي کار به یي خراب سي او ده ته به نقصان او ملامتیا ورسیږي. جابر رحمة الله علیه ویلي دی چي دآس په خوب کي لیدل دخپل نفس خواهشات لیدل دی او که سرکښه آس ووینی نو دلیل یي دا دي چي دده دنفس خواهشات به سرکښه وي او که ووینی چي آس یي مطیع او فرمانبردار دی نو دلیل یي دا دي چي دده دنفس خواهشات به دده په بدی کي ډیر سخت وي. که ووینی چي دآس دبدن په هر اندام دپاچاهي

نخښه وه يا پر آس دپاچا وينه وويني نو دا دعزت او رفعت دليل يي دى او دعـامو خلـک پـه خوب کي آس ليدل عزت اودبخت دليل دى اوکه وويني چي نـا معلوم آس دمحلي څخـه وتلي دى نودليل يي دا دي چي دمحلي په بزرگانوکي به يو سړي ددنيا څخه ولاړ سي. خالد اصفهانى رحمه الله ويلي دى چي گډى والا آس دسړي نصيب دى څومره چي گډى والا آس مطيع او فرمـان بردار وي هغونده به يـي نـصيب مطيع او فرمـانبردار وي او کـه وويـني چـي گـډى والا آس ښـار کلي يا سراى ته تللي دى نو دليل يي دا دي چي يو مسافر عجمي به دغه ځاي تـه راسـي. او کـه وويني چي په اوږدي لکى والا آس باندي سپوردى نودليل يي دادي چي دآس دلکى داوږدوالي برابر به دده تابعدار وي او که ددي خلاف وويني نو دليل يي دا دى چي دهغه حال بـه بـد وي او ژوند به باندي تنگ سي. جعفر صـادق رحمه الله ويلي دى چي پـه خوب کي دآس ليـدل پـه پنځـو وجودى. ۱: عزت ۲: مرتبه ۳: حکومت ۴: بزرگي ۵: خير اوبرکت.

حضور ﷺ ويلي دى (الخير معقـودفى نـواصي الخيـل والبرکـة الى يـوم القيامـة والـذل فى ادبـار البقـر) ترجمـه: تـر قيامة پوري دآسـونو پـه تنـديو کـي خيـر اوبرکـت دى او ذلـت دغوايـانو پـه لکـى کـي دى او کـه وويني چي دده پر آس باندي بيزو سپور دى نو دليل يي دا دي چي يهـودي بـه دده دښـځي سـره فساد کوي او که وويني چي سپى دده پر آس سپور دى نو دليـل يـي دا دي چـي يـو څـوک اتـش پرست به دده دښځي سره فساد کوي.

## آستر \ غاتره

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي که څوك په خوب کي قچر وويني نو که تابعدار وي نو نيـك دى کنى بد دى او که وويني چي پر بي زينه غاتره باندي سپور دى او معلومه ورته نه ده چي داقچر دکوم ملك دى نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي او که وويني چي پرخپله غاتره سپور دى نو که سفر وکړي نو فائده اونفع به ورته ورسيږي او کـه وويـني چـي پـر غـاتره يـې کـډي يـا کجـاوه اينبي ده نو دليل يي دا دي چي دده ښځه به شنډه وي خاصکر که غاتره دده ملکيت وي يا ورته چا بخښلي وي. کرماني رحمه الله ويلي دى چي کـه څـوك پـه خـوب کـي وويـني چـي پرتـوره غـاتره سپور دى اولوړ دى نو دليل يي دا دي چي داسى ښځه به غواړي چي دعـزت خاونـده بـه وي او که غاتره سپينه وي نو ښائسته او ښه ښځه به ورته ملاوسي او که شنه غـاتره وويـني نـو دليل يي دا دي چي هغه ښځه به پرهيزگاره او ديندارە وي ا وکـه غـاتره سـره وي نـو دليـل يـي دا دي چـي هغه ښځه به ډمه او عـيش پرسته وي اوکه غاتره وريتـه يـا ژړه وي نـو دليـل يـي دا دي چـي هغـه ښځه به ناجوړه او ژړه وي او که غاتره تابعداره وويني نو دليـل يـي دا دي چـي سـړي بـه ضـعيفه سي. جابرمغربي رحمه الله ويلي دى چي په خوب کـي غـاتره دمالـك اولاد دى کـه غـاتره وويـني نـو سفر به کوي او ددى علم بعضو استاذانو ويلـي دى چـي غـاتر سـړي دى او غـاتره ښـځه ده اوکـه وويني چي دچا څخه يي غاتره اخيستي ده نو دليل يي دا دي چي مينځه به اخلي او کـه وويـني چي غـاتره يي خرڅه کړيده نودليل يي دا دي چي مينځه به خرڅوي يا به ځني مينځـه جلا کيـږي

او که ویني چي پر غاتره سپور دی نو دلیل یي دا دي چي شنډه ښځه به کوي او که ویني چي پر غاتره سپور دی نو دلیل یي دا دي چي عمر به یي زیات سي او مراد به یي حاصل سي او که ویني چي غاتره دده څخه شاته ځغلي نو دلیل یي دا دي چي ده ته به غنم ورسیږي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوک په خوب کي ویني چي غاتره ژاړي نو دا دښځو دخوا څخه دمال دزیاتوالي دلیل دی او که ویني چي قچره دده سره خبري کوي نو دلیل یي دا دي چي داسي عجیبه کار به کوي چي خلک به ورته حیران سي او که ویني چي غاتره یي مړه کړیده نو دلیل یي دا دي چي مال به پیدا کړي او که ویني چي غاتره مړ سویده یا ضائع سویده نو ددي خبري دلیل دی چي ښځه به یي مړه سي یا به مینځه ځني جلا سي او که غاتره نر وي نو دیو سړي دصحبت څخه به جلا سي. یاد ولري چي په خوب کي دغاتري غوښه او پوستکي مال او دولت دی اوبعض تعبر بیانوونکي وایي چي د غاتري غوښه ناجوړي ده او که په خوب کي ویني چي دغاتري شیدی چیښي نو دشیدو داندازي مطابق دبیري او خوف او غم دلیل دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي دغاتري په خوب کي لیدل په پنځو وجودی. ۱: سفر ۲: ډیر عمر ۳: پر دښمن کامیابي پیدا کول ۴: جمال او ارائش ۵: احمق سړي، غاتره شنډه ښځه او دغاتري کوچني دفایدي او مراد پیدا کولو دلیل دی.

## استخوان \ هډوکي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي هډوکي مال او دولت دی په کومو چي خلک ګزاره کوي که څوک په خوب کي ویني چي هډوکي یي پیدا کړیدی او پر هغو غوښه هم ده نو دلیل یي دا دي چي دغوښي داندازی مطابق خیر اومال به پیدا کوي او که ویني چي هډوکي بغیر دغوښي څخه دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به ښیګړه لږ ورسیږي او که ویني چي چا ته یي هډوکي ورکړیدی نودلیل یي دا دي چي دچا سره به ښه کوي. کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي دچا مات سوي هډوکي یي تړلي دی نو دلیل یي دا دي چي بزرګي او قسما قسم نعمتونه به حاصل کړي او نیك کار به کوي بعض تعبیر کوونکي بیان کړیدی چي دده تنګي او محتاجي به ختمه سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دهډوکي لیدل په اوه وجو دي ۱: دمال امید ۲: خپلوان ۳: بچی ۴: داوسیدو کور ۵: مالل ۲: ورونه ۷: انډیوال.

## استغفار \ بخښنه غوښتل

داستغفار معني ده دګناهونو څخه معافي غو ښتل (استغفر الله) ویل دالله تعالی څخه بخښنه غوښتل دی. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کی استغفر الله ووایي نو دلیل یي دا دي چي الله تعالی به ورته مال او روزي ورکړي دالله تعالی فرمان دی (استغفروا ربکم انه کان غفارا یرسل السمآء علیکم مدرارا ویمددکم باموال وبنین، سورة نوح: ۱۰ – ۱۲) ترجمه: دالله تعالی څخه بخښنه غواړۍ ځکه چي هغه بخښونکي دی پر تاسو به په شیبو شیبو باران وکړي او په مالل او

اولاد سره به ستاسو مدد وکړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي استغفار ویل په ځلورو وجو وي. ۱ مال ۲ زوی ۳ دالله تعالی څخه بخښنه ۴ دګناهونو څخه توبه کښل.

## اسطر لاب \ د علم نجوم یوه آله

کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي د اسطرلاب لیدلو تعبیر دپاچا ملګري او اسردار دی که څوك په خوب کي ووینې چي دهغه سره اسطرلاب دی یا یي اخستي دی یا چا ورکړیدی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا د ملګرو څخه به وي او دقوم سردار به وي او که ووینې چي اسطرلاب ورك سويدی یا مات سويدی نو دلیل یي دا دي چي دده په مرتبه کي به نقصان وي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینې چي په اسطرلاب سره لمر ته ګوري نو دلیل یي دا دي چي دپاچا یا دهغه دسرادرانو په کار کي به مشغول سي او دهغوئ څخه به خیر اونفع پیدا کړي او بعض اهل تعبیر بیان کوي چي په خوب کي اسطرلاب داسي سړي وی کوم ته چي ثبات او صبر نه وي او په کار کي پائیداره نه وي.

## اسفاناح \ د پالک بلګ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي پالك لیدل د فکر او غم دلیل دی او د دی خوړل ضرر او دمال نقصان دی او که په غوښو کي یي پوخ کړي ووینې او ویي خوري او غوړي پکښي هم وي نو څومره چي یي وخوري دخیر اودنفعي دلیل دی.

## اشتر \ اوښ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي خپل ځان پر نامعلوم اوښ ووینې چي هغه ځغلي نو دسفر دلیل دی او که ووینې چي اوښ غورځي نو دا دغم او دفکر دلیل دی اوکه ووینې چي په اوښ سپور دی اولار ځني ورکه سویده او دا ورته نه وي معلومه چي لار کوم طرفته ده نو دلیل یي دا دي چي په خپله لاره کي به عاجز سي او هیڅ تدبیر به نسي کولاي او که اوښه پیدا کړي نو ښځه به پیدا کړي او که اوښه حامله وي نو زوي والا ښځه به کوي او که ووینې چي داوښ شا ته ځغلي نو دا دغم دلیل دی او که ووینې چي اوښ ځني مخ اړولي دی او فرمانبردار نه دی نو دلیل یی دا دي چي غمناکه به سي. دانیال علیه السلام ویلی دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي پر مست اوغضبناکه اوښ باندی ناست دی نو دلیل یي دا دي چي پر ده به یو لوي سړي قبضه وکړي او که ووینې چي داوښ سره جنګ کوي نو دلیل یي دا دي چي دیو عجمي سړي سره به یي دښمني جوړه سي او دهغه سره به یي جنګ کیږي او که ووینې چي اوښان خروي او دا پیژني چي اوښان دده خپل دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به ملک ملاو سي او ددغه ملک پر خلکو به حکومت کوي. او که ووینې چي چا اوښه ورته بخښلي ده یا یي پخپله اخیستي ده نو دلیل یي دا دي چي ښځه به کوي یا به مینځه اخلي. او که په خوب کي ووینې چي دده اوښه تښتیدلي ده یا چا پټه کړیده نو دلیل یي دا دي چي دښځي څخه به جلا سي یا به یي پخپلو کي جنګ وسي. او که ووینې چي دده اوښه مړه سویده نو دلیل یي دا دي چي دده ښځه به مري او که ووینې چي داوښي بچي یي سویدی نو دلیل یي دا دي چي دده به

زوي پیدا سي او مال به يي زیات سي او که په خوب کي اوښه ويني نو دلیل يي دا دي چي مراد به يي پوره سي او که په خوب کي ويني چي داوښ غوښه خوري نو دلیل يي دا دي چي ناجوړه به سي. کرماني رحمه الله ویلي دی چي که ځوك په خوب کي ويني چي چا ورته ډيره داوښ غوښه ورکړيده نو دليل يي دا دي چي هغونده مال به پیدا کړي او که ويني چي داوښ سره خبري کوي نو دليل يي دا دي چي خیر اونیکي به ورته ورسیږي. او که ويني چي دوه اوښان يي پيدا کړيدی نو دليل يي داد چي دهغي دقدرو قیمت هومره به نفع پیدا کړي. او که ويني چي يو قوم اوښ ذبح کړيدی او دهغه غوښه يي تقسیم کړيده نو دليل يی دا دي چي دهغه ځاي سردار به مري او دهغه مال به تقسیموي. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دی چي که ځوك په خوب کي ويني چي ډير اوښان ورسره دی اوټول دده ملکیت دی که اوښان عربي وي نو دعربو په ملک کي به پاچا سي او که اوښان عجمي وي نو دعجمیانو په ملك کي به پاچا سي او که ښځه په خوب کي ويني چي اوښ يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي مال اونعمت به پیدا کړي او داوښ دپوست هم دغه دليل دی. بعض تعبیر کوونکو بیان کړيدی چي دغه ښځي ته به وارث ملاو سي او که ويني چي داوښ سره خبري کوي نو دليل يي دا دي چي خیر او نیکي به ورته ورسيږي. **جعفر صادق** رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي داوښ لیدل په لسو وجو دی. **۱ عجمي پاچا ۲ مالداره سړي ۳ مومن سړي ۴ سيل ۵ فتنه ۶ ابادي ۷ ښځه ۸ نعمت ۹ نعمت ۱۰ مال** او دعربي او دعجمي اوښ پر عربی او عجمی سړي دلیل دی او دشتر بانی دليل دصاحب تدبير ولايت او په کارونو کي دسم والی او دښه والی دی.

## اشترمرغ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شتر مرغ ځنګلي سړی دی او شتر ښځه ځنګلی ښځه ده او که ويني چي ښځه شتر مرغ يي نیولي دی یا چا ورکړيدی نو دليل يي دا دي چي د دا دمخه صفت ښځه به کوي یا به مینځه اخلي اوکه ويني چي په شتر مرغ ناست دی نو دليل يي دا دي چي دځنګل سفر به وکړی او بعضي اهل تعبير بيان کړيدی چي پر ځنګلي سړی به غالب راځي او مراد ته به رسيږي. کرماني رحمه الله ویلي دی چي که ځوك په خوب کي ويني چي شتر مرغ يي ويشتلي دی نو دليل يي دا دي چي پر ځنګلي سړي به غالب سي او هغه به مغلوب راځي او که ويني چي دده سره دشتر مرغ کوچني زوی دی نو دلیل يي دا دي چي دځنګلي سړی زوی به ورته ملاو سي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که ځوک په خوب کي ويني چي پر شتر مرغ ناست دی او هغه دده فرمانبردار دی او دی يي په هوا کړي دی اوبيا يي مځکی ته راوستي دی نو دليل يي دا دي چي دځنګلي سړی سره به سفر کوي او وروسته به راځي او ډيره نفع به پیدا کړي او که ددی خلاف ويني نو بيا ددي تعبير خراب دی.

## اشتر خار \ ازغي داره بوټی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي اشتر خار لیدل دغم او فکر دلیل دی او که ويني چي ده په خوب کي اشترخار راختستی دی یا چا ورکړي دی او ده خوړلی دی نو دلیل يي دا دي

چي ده ته به غم او فكر رسيږي اوكه ويني چي چا ته يي وركړي دی يا يي خرڅ كړيدی نو دليل يي دا دي چي دغم او فكر څخه به خلاصون پيدا كړي او كه ويني چي ده اشتر خار ساتلی دی او اوښ ته يي وركړي دی نو دليل يي دا دي چي دغه سړي ته به داوښ لپاره غمناك سي.

## اشک \ اوښكي

كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي دستر ګو څخه يي يخي اوښكي بهيږي نو ددي دليل دا دي چي دغه سړي به ښادی او خوشحالي ويني او كه معمولي اوښكي بهيدونكی ويني نو دليل يي دا دي چي غمګين او درد مند به سي او كه ويني چي بغير دژړا څخه يې پر مخ اوښكي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به په خبرو سره خلک پيغور وركوي او كه ويني چي په ستر ګو كي يي داوښكي پر ځای دوړي او خاوري جمع دی نو دليل يي دا دي چي دهغي برابر حرام مال به ورته بغير دڅه تكليف څخه ورسيږي او كه ويني چي دده دمخ څخه اوښكي بهيږي نو دليل يي دا دي چي هغه به خپل مال دخپل كور په خرچه كي راولي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دستر ګو اوښكي ليدل په درو وجو دی: ۱ ښادي او خوشحالي ۲ غم اوفكر ۳ نعمت.

## اشنان \ زومې

زومې يعني هغه واښه چي كالي باندي پريولل كيږي، ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي داشنان ليدل دغم او فكر دليل دی او ددی خوړل دناجوړي دليل دی.

## اصلع \ د سر داغ

اصلع په فارسي ژبه كی دسرداغ ته ويل كيږي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه يوڅوك دسر داغونو والا په خوب كي ويني چي دسر وريښته يي راختلي دی نو دليل يي دا دي چي لږ مال به ورته حاصل سي او كه ويني چي پر سر يي داغ لګيدلي دی نودليل يي دا دي چي دغم او فكر څخه به خلاصون پيدا كړي ليكن كه ښځه ويني چي پرسر يي داغ لګيدلي دی نو دليل يي دا دي چي دهغي په زينت اوښه والي كي به نقصان راسي . ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب كي دسر داغ ليدل دسوداګر لپاره فائده مند دی او دكار كوونكي لپاره كسب او صناعت دی او دپاچا لپاره فكر دی او دښځي لپاره په زينت كي دنقصان باعث دی.

## افروشته \ يو قسم خوشبوداره حلوا

محمد ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي افروشته هغه غوره وي په كوم كي چي زعفران نه وي كه لږ يي ويني نو ښه او غوره ده او كه ډير يي ويني نو مال دی كوم چي به ورته په غم او سختی سره حاصل سي او كه ويني چي چا ورته لږ افروشته وركړي ده او ده خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي دهغه څخه به ښي خبري اوري چي دطبيعت سره به موافق وي او كه ويني چي دده سره ډيره افروشته ده نو دليل يي دا دي چي هغونده مال به ورته په سختی او تكليف سره حاصل سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دافروشتي ليدل په درو وجو ده ۱ ښه خبره ۲ مال ۳ دزړه مراد حاصلول.

## افسرده \ مړشی

کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي مړ شی خوړل غم او فکر دی که څوك ووينې چي مړ شي خوری نو دليل يي دا دي چي هغونده به ورته غم اوفکر وي او که ووينې چي چا ورته مړ شي ورکړيدی او ده خوړلي دی نو ددي خبری دليل دا دي چي دهغه سره به يي جنګ کيږي او که خوړلي يي نه وي نو دا دغم څخه د ساتل کيدو دليل دی. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دمړ شي خوړل دليل دی چي هغه به جنګ کوي مقصد داچي په خوب کي دمړشي په خوړلو کي هيڅ فائده نسته.

## افسون \ جادو، منتر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي جادو منتر کول دخلکو سره دهوکه کول دی ليکن که دالله تعالی په نومونو او دقران په ايتونو سره وي نو صحيح دی، که داسي جادو منتر په خوب کي ووينې چي په هغه سره ده ته يابل چا ته شفا او راحت رسيدلي دی نو دليل يي دا دي چي دغم څخه به راحت پيدا کړي او دزړه مراد به يي پوره سي او که ددي خلاف ووينې نو دا دغم او فکر دليل دی. کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په جادو منتر کي دالله تعالی ذکرونه کوي نو هغه جادو منتر کول باطل دی او که جادو منتر په قران کريم او دالله تعالی په نومونو سره وکړي نو دليل يي دا دي چي هغه حق او ښه کار کړيدی او په دی سره به ورته ددواړو جهانونو خير اوصلاح حاصل سي.

## افيون \ افيم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دافيم په خوب کي ليدل دغم او فکر دليل دی او په خوب کي دافيمو خوړل دغم فکر مصيبت او دتکليف دليل دی.

## الو \ ګونګي

الو يو ښکاري مارغه دی دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي ګونګي يو ظالم او خوفناکه پاچا دی چي هر څوك څني بيريږي او که ووينې چي په خوب کي يي ګونګي نيولي دی يا ورته چا ورکړيدی اوفرمانبر دار او مطيع دی نو دليل يي دا دي چي پاچا ته به خاص مقرب سي او که ووينې چي ګونګي دی نيولي دی او په هوا کړي يي دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا په حکم به سفر کوي اوبزرګي او نوم به پيداکوي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي ګونګي په يو کوڅه کي را کښته سويدی نو دليل يي دا دي چي پاچا به دغه کوڅي ته راځي او که ووينې چي خلکو عقاب وژلي دی نو دليل يي دا دي چي پاچا به مري يا به معزول کيږي او که ووينې چي ګونګي دي نيولي دی نودليل يي دا دي چي پاچا به پناه ورکړي او که ووينې چي عقاب دخولي څخه شي را ايستلي دی او ده ته يي ورکړيدی نو دليل يي دا دي چي هغونده به دپاچا څخه بخشش پيدا کړي او که ووينې چي عقاب دده دلاس څخه والوتي او تار يا څه بل شي دده په لاس کي پاته سويدی نو دليل يي دا دي چي پاچا به غصه ورباندي وکړي او دځان څخه به يي ليري کړي او دده څخه مال به واخلي. کرماني رحمة الله عليه ويلي

دی چي که څوك په خوب کي ويني چي په عقاب سره يي ښکار نيولي دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا مال او خزانه به دده په قبضه کي راسي او که ويني چي عقاب دی په مښوکه يا په پنجو سره وهلي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به دپاچا دطرف څخه تکليف اومصيبت ورسيږي او دده مال به ضبط سي او که ويني چي دعقاب سره جنګ کوي نو دليل يي دا دي چي دپاچا سره به جنګ کوي اوکه ويني چي عقاب يي خوړلي دی او دهغه وزري يي را ايستلي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه برابر به دپاچا څخه مال اونعمت حاصل کړي او که ويني چي عقاب دده په سر يا په مخ ناست دی نو دليل يي دا دي چي زوی به يي پيدا سي او پاچا به سي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دعقاب په خوب کي ليدل په دوو وجو وي ۱: ظالم ستمګر اوخونخوار پاچا ۲: بي دينه او مکار عالم، بعضو ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي عقاب ورسره دی نو دليل يي دا دي چي عمر به يي زيات سي.

## الوئي \ آلوبخارا \ الوچه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کي سره ياتوره الوبخارا په خپل وخت ويني نو دا دمال اومراد دليل دی او ژړه الو بخارا دناجوړي دليل دی او که ويني چي الو بخارا ژړه سره يا توره ده او خوږه ده او پخپله يي واخلي يا يې څوك ورکړي او ويې خوري نو دليل يي دا دي چي مال اومراد به پيدا کړي او که په خوب کي ژړه الو بخارا بي موسمه وخوري نو دا دغم فکر مصيبت او دجنګ دليل دی او که تروه وي نو ښه دی.

## امامت کردن \ امامت کول

که څوك په خوب کي ويني چي دقوم امام دی اوحالانکي امام نه وو نو دليل يي دا دي چي دهغه قوم سردار به سي او ټول خلک به يي فرمانبرداره سي لکه څنګه چي مقتديان په لمونځ کي دامام تابعداره وي اوکه ويني چي يو ټولګي دلمونځ لپاره تيار دی او ده ته يي وويل چي زموږ امام سه او پاچا دده دامام کيدو حکم ورکړو او دی مخکي سو او امامتي يي وکړه نو دليل يي دا دي چي ددغه ملك حاکم او امير به سي او دهغوي سره به په هغه اندازه عدل او انصاف کوي څومره چي دقبلي صحيح والي او په لمونځ کي درکوع او سجدو باقاعدګي ده او که ويني چي په لمونځ سره يي دڅه شي نقصان کړيدی نو دليل يي دا دي چي په قدر دنقصان دلمونځ به پر ده ظلم او داسي نور کوي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي په ناستي امامتي کوي نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي او که په اړخ وي او دلمونځ څه شي يي ووايه نو دليل يي دا دي چي ژر به مړسي او خلک به يي دجنازی لمونځ کوي او که امام په خوب کي ويني نو دليل يي دا دي چي دامام دقدر اومرتبي برابر عزت او شرف به پيدا کوي او که ويني چي امام ته يي ولايت ورکړيدی يا دامام سره کورته تللي دی يا ورته امام څه بخششي کړيده يا يي دامام سره ډوډۍ خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي هغه قدر غم او فکر به ورته رسيږي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دامام سره په جهاد کي وو نو دليل يي دا دي چي په دولت او ولايت کي به دهغه سره شريك

سي اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دی چي کوم شیان دامام څخه پخپل ځان کي زیات ووینی نو ولایت او بزرګي به یي زیاته سي او څه چي پخپل امام کي کمي ووینی نو دهغه برابر به یي په مال او نعمت کي نقصان وسي، جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي امامتي کول په شپږو وجو وي. ۱: حکومت ۲: په عدل او انصاف سره پاچاهي ۳: علم ۴: نیك کار او اراده ۵: نفع ۶: ددښمن څخه امن. اوکه څوك په خوب کي ووینی چي دښځو امامتي کوي نو دلیل یي دا دي چي پر ضعیفه خلکو به حاکم سي او که ووینی چي امام دآسمان څخه راکښته سویدی او دجماعت امام سویدی نو دلیل یي دا دي چي پر دغه ځمکه دالله تعالی رحمت نازل سویدی او که دمړي جنازه وکړي نو دلیل یي دا دي چي دپاچا څخه به حکومت پیدا کړي.

## امرود \ امروت

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي دامرود په خپل وخت کي خوړل چي شین او خوږ وي دحلال مال دپیدا کولو دلیل دی او که امرود ژړ وي نو ناجوړه به سي او که موسمي نه وي او امروت ژړ یا سور وي اوخوږ وي نو ددي خبري دلیل دا دي چي حلال مال به حاصلوي او که تریو اوبي خونده وي نو دغم دلیل دی. کرماني رحمه الله ویلي دی چي شین اوخوږ امروت په موسم کي لیدل مراد حاصلول دی او که یي خوري نوبیا هم دنفعي دلیل دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي امروت خوړل په پنځو وجو دی ۱: حلال ۲: مالداري ۳: ښځه ۴: مراد حاصلول ۵: نفع، او که څوك ووینی چي پاچا امروت خوري نو دلیل یي دا دي چي څونده یي چي خوړلي وي نو دهغي مطابق به دیو بزرګ سړي څخه نفع حاصلوي.

## انار

دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي دانار لیدل مال دی لیکن دسړي پر همت باندي دی خاصکر کله چي یي پر وخت خوړلي وي یایي بي وخته خوړلي وي او که ووینی چي انار یي ددرختي څخه وشکوله او ویي خوړل نو دلیل یي دا دي چي دښائسته ښځي څخه به نفع پیدا کړي. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي خوږ انار مال جمع کول دی بعض اهل تعبیر ویلي دی چي په خوب کي یوخوږ انار خوړل په یو زر درهمه دی چي بیا به یي حاصلوي او تریو انار غم او فکر دی او که دانار تریو والي یا خوږوالي نه پیژني نو دهغي تعبیر دخوږ انار په ډول دی. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي خوږ انار دهغه په موسم کي خوري نو دلیل یي دا دي چي زر درهمه به پیدا کړي یا کم از کم پنځوس درهمه به پیدا کړي یا ممکنه ده چي ددرهم پر ځاي به دینار حاصلوي تعبیر بیانوونکي ته پکارده چي دخوب لیدونکي دهمت او قدر مطابق تعبیر بیان کړي. او که ووینی چي په باران کي انار خوري که په وخت وي او که بي وخته وي خراب دی او دخوږ انار حکم په درمیانه درجي دی. کرماني رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دانارو په موسم کي انار خوري که هغه مسافروي نو سفر به یي مبارك سي او که سوداګروي نو دهغه سامان او اسباب به خرڅ سي او ښه ګټه به یي وسي اوکه ووینی چي دخوږ انار داني یي پیدا کړي یا ورته چا ورکړیدی نو دلیل

يي دا دي چي هغونده به ورته غم ورسيږي که دانارو وخت وي او که نه وي او که خوږ انار يا يي پوستکي او يا يي مغز وخوري نو دليل يي دا دي چي دتهولو شيانو څخه به فائده پورته کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خوږ انار خوړل په دريو وجو وي ۱: مال به جمع کړي ۲: پرهيزګاره ښځه ۳: ښار به اباد سي ليکن تريو انار خوړل دغم سبب دی. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي که پاچا ويني چي انار ورسره دي نو دليل يي دا دي چي ښار يا ولايت به بيا حاصلوي او دغه حال درئيس هم دی او سوداګر ته به لس زره درهمه اوبازاري ته زر درهمه او فقير ته به لس درهمه يا يو درهم ملاوسي.

## انجير \ انځر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دانځر خوړل په موسم کي وي او که بي موسمه وي ښه نه دی او که ويني چي انځر يي خوړلي دی يا يي جمع کړي دی يا ده ته چا ورکړيدی نو دليل يي دا دي چي غم او فکر به حاصلوي او ممکنه ده چي داسي کار به وکړي چي په هغه سره به پښيمانه سي. کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ژړ انځر خوړل يا ليدل دناجوړي دليل دی اوتور انځر غم او فکر دی اوشين انځر پخپل وخت خوړل چي خوږ وي هيڅ نقصان نه ورکوي.

## انجيل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي څوك انجيل وايي نو دليل يي دا دي چي پخپله به دالله دلاري څخه په باطله روان سي اوکه څوك په انجيل ويلو سره ويني نو دليل يي دا دي چي هغه پر عيسائي مذهب دی لږ خير به ويني او که زباني يي وايي نو دليل يي دا دي چي دالله جل جلاله څخه به باطل طرفته واوړي او دعيسايانو دوست به سي.

## انداختن مردم \ د سړو غورزول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده څوك راغورزولي دی نودليل يي دا دي چي پر دښمن به زړه ور اوبيباکه سي او که ويني چي څوك يي په کاڼو ويشتلي دی نو دليل يي دا دي چي چا ته به سخته خبره کوي بعض اهل تعبيرو بيان کړيدی چي ددي دليل دا دي چي خلک به پر ده د زنا يا دګناه تهمت لګوي او که څوك ويني چي په ټکر کي يي اچولي دی نو ددي هم دا دليل دی چي چا ته به سخته خبره کوي. او اهل تعبير ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي پر ده چا شکر بادام يا چيني اچولي دی که غورزولو والا معلوم وي نو دهغه څخه به هغونده بخشش حاصلوي او که نامعلوم وي نو هغونده به دچا څخه فائده حاصله کړي او که ده هم دخوراك شيان څارويو ته اچولي وي نو دليل يي دا دي چي خپل مال به جاهلانو ته ورکړي.

## اندامها \ اندامونه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دقوم اندامونه زيات سويدی نو دليل يي دا دي چي دده خپلوان اواهل بيت به زيات سي او که ويني چي اندامونه يي کتې

سویدی یا دبدن ځخه را ایله سویدی نو دلیل یي دا دي چي سفر به کوي او دده خپل به خوابدي سي او که ووینی چي خپل بدن یي پریکړی دی یا خراب سوي دی نو دلیل یي دا دي چي خپل اهل بیت او خپلوان به یې په ښارونو کي پراته وي. کرماني رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي داسي ووینی چي دهغه دبدن څخه دغوښي ټکړه پري سوي وي نو دلیل یي دا دي چي خیر اونفع به ورته ورسیږي اوکه ووینی چي دده یواندام دبدن څخه جلا سویدی نو دلیل یي دا دي چي دده دمال څخه به څوك په زور څه واخلي او که ووینی چي دخپل بدن څخه غوښه پري کوي او چرګ ته یي اچوي نو دلیل یي دا دي چي دخپل مال څخه به چاته یوڅه وبخښي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کی ووینی چي دده دبدن یواندام دده سره خبري کوي نو دلیل یي دا دي چي په خلکو کي به رسوا سي. دالله تعالی فرمان دی (قالوا انطقنا الله الذي انطق کل شيء، سورة حٰم السجدة: ۲۱) ترجمه: هغوی به وایي چي هغه ذات موږ ته ګویائي راکړیده چا چي هر شي ته ګویائی ورکړیده. او که ووینی چي دده دبدن یو اندام پر لاره ځي نو دلیل یي دا دي چي داسي کار به وکړي چي په هغه به یي بروسه وي او که ووینی چي دده دبدن څخه څه جلا سویدی نو دلیل یي دا دي چي دده په خپلوانو کي به څوك په سفر ځي او که ووینی چي دده اندامونه درد کوي نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي او که ووینی چي مرغی دده دبدن څخه دغوښي ټکړه وړي ده نو دلیل یي دا دي چي څوک به دده مال په زور واخلي او که ووینی چي د خپلي غوښي ټکړه یي مرغی ته اچولي ده نو دلیل یي دا دي چي دخپل مال څخه به چا ته څه ورکړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي دده په اندامونو کي یواندام تباه سویدی نو دلیل یي دا دي چي دی پر سمه لاره نه دی. فضیل رضي الله عنه ویلي دی چي ما د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت اقدس کي عرض وکړ چي اي دالله رسوله مایو ډیر خراب خوب لیدلي دی حضور صلی الله علیه وسلم وویل چي څه دي لیدلي دي ما عرض وکړي چي ما په خوب کي لیدلي دی چي خلکو ستاسو دبدن څخه یوه ټکره پریکړه او زما په غیږه کي یي ایښولي ده حضور صلی الله علیه وسلم وویل چي دفاطمي رضي الله عنها به زوي پیدا سي چي ستا په غیږ کي به لوي سي بیا یي بچي پیدا سو یعني حسین رضي الله عنه او هغه دفضیل رضي الله عنه په پرورش کي لوی سو.

## انګبین \ شهد، شات

کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ګبین په مالونو کي غنیمت او په کارونو کي نیکي ده ځکه چي په دی کي د دردونو لپاره شفا او ګبین غټ رزق دی دالله تعالی فرمان دی (فیه شفاء للناس، سورة النحل: ٦٩) ترجمه: پدی کي دخلکو لپاره شفا ده. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي دګبین خوړل په دریو وجو دی ۱: حلال رزق ۲: نفع ۳: دواړه مراد حاصلول. او ګبین رزق دی چي بي منته رسیږي دالله تعالی فرمان دی (وانزلنا علیکم المن والسلوی، سورة البقرة: ۵۷) ترجمه: او موږ تاسوته من او سلوی را لیږلي دی.

## انګشتان \ ګوتې

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي دراسته لاس پنځه ګوتی پنځه لمونځونه دی او دچپه لاس پنځه ګوتي زامن او وروڼه دی. بعض اهل تعبيرو بيان کړيدی چي بټه ګوته دسهار دلمونځ دليل دی او دشهادت ګوته دماپښين لمونځ او دمينځ ګوته دمازيګر لمونځ او ددي سره ګوته دماښام لمونځ او کوچني ګوته دماخستن دلمونځ دليل دی. او که څوك په خوب کي ويني چي د راسته لاس ګوته يي نسته نو دليل يي دا دي چي دهغه زوي يا ورور به مري او بعضي وا يي چي دهغه پر زوي يا ورور به سخت مصيبت راسي. کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دلاس ګوتي يي ديو بل سره يو ځاي نه دی نو دا دتنګ دستی دليل دی او که ديو بل سره يو ځای وي نو دليل يي دا دي چي دهغه دزامنو او د ورور کار به سم سي او که ګوتی دمتي په ډول بندي کړل سوي ويني نو دليل يي دا دي چي دده اودکور والو کار به يي درست سي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دهغه ګوته پرې سويده نو ددي خبري دليل دا دي چي دمال قوت به يي وي او که ويني چي دشهادت ګوته يي پري کړيده نو دليل يي دا دي چي په فرض لمونځو کي کوتاهي کوي او که ويني چي دمينځ ګوته يي پريکړې ده نو ددي خبري دليل دا دي چي ددغه ښار پاچا يا رئيس به مري. او که ويني چي دمينځ ذګوتی سره خواته ګوته يي پري سويده نو دليل يي دا دي چي په مالې کي به يي نقصان وسي او که ويني چي کوچني ګوته يي پري سويده نو ددي خبري دليل دا دي چي لمسی به يي پيداسي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي دپښو ګوتي په خوب کي ليدل د زينت او ارائش دليل دی او که دپښو ګوتي سختي اوقوي ويني نو دليل يي دا دي چي واده به يي وسي او که ددي خلاف ويني نو دده کار به اوس نه کيږي او که ويني چي دپښو ګوتو ته يي تاوان رسيدلي دی چي ګرځيدلي نه سي نو دليل يي د ادی چي دمال په تلو باندي به ورته سخت غم ورسيږي او که دپښو ګوتي پري سوي ويني نو دليل يي دا دي چي کار به يي خراب سی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دګوتو ليدل په شپږو وجو دي ۱: زوي ۲: وراره ۳: مزدور ۴: انډيوال ۵: طاقت ۶: پنځه لمونځونه، که څوك په خوب کي ويني چي ګوتي يي را ايله سويدی يا پري سويدی نو دليل يي دا دي چي دخپلوانو او دکوروالاوو څخه به جلا سي او پخپله به هم پريشانه سي او که ويني چي ګوته يي پري سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده په کور والاوو کي به څوك مري خالد اصفهانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دهغه دغتي ګوتي څخه شيدي راوزي يا يي دشهادت دګوتي څخه وينه راوزي نو دليل يي دا دي چي دغه سړي به دخپلي خواښي سره جنګ کوي او که په خوب کي ويني چي دګوتي څخه يي اواز راوزي نو ددي خبري دليل دا دي چي دهغه په خپلوانو کي به خير کيږي.

## انګشتري \ ګوتمۍ

دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك په خوب کي دګوتي صفت او نقش ويني نو دليل يي دا دي

چي دمالك څخه به ورته خير او نيكي ورسيږي او كه ويني چي چا ورته دمهر لپاره انگشتري وركړيده نو دليل يي دا دي چي څه دده لائق وي ډير به پيداكړي يعني دانگشتري دقدر قيمت مطابق كه دپاچاهي لائق وي نو پاچا به سي او كه نه مال او دولت به پيدا كړي او كه ويني چي په جماعت كي يا په لمونځ كي ياپه جهاد كي ورته چا انگشتري وركړيده نو دليل يي دا دي چي دغه سړی به عبادت كوونكي او پرهيزگاره سي كه سوداگر وي نو په تجارت كي به نفع پيدا كړي وعلى هذالقياس اوكه ويني چي پاچا ورته انگشتري وركړيده نو دليل يي دا دي چي په ملك كي به ورته پاچا څه وركړي يا دپاچا په ملك كي به ده ته يا دده خپلوانو ته بدي رسيږي. ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي دده انگشتري ضائع سوي ده يا چا پټه كړيده او وړي يي ده نو دليل يي دا دي چي دده په كارونو كي به تكليف او گراني ښكاره سي، اوكه ويني چي دده انگشتري ماته سوه او غمي يي پاته سو نو دليل يي دا دي چي بزرگي به يي ښه سي او دده عزت دبدبه او رعب به قائم پاته سي.

او كه ويني چي خپله انگشتري يي چا ته بخښلي ده نو دليل يي دا دي چي په خپل ملكيت كي څومره مال او دولت لري دهغي څخه به څه چا ته وبخښي او كه ويني چي خپله انگشتري يي خرڅه كړيده او دهغه قيمت يي اخستي دی نودليل يي دا دي چي څه ورسره وي خرڅ به يي كړي اوكه قيمت يي نه وي اخستي نو دجائيداد څخه به يي څه حصه خرڅه كړي. كرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي دده دانگشتري جوړښت ښه نه دی نو دليل يي دا دي چي دده په مال كي به څه وسي او پاچا به ورباندي په غصه سي او كه داوسپني انگشتري ويني نو دليل يي دا دي چي دده مال حلال دی او كه دسرو زرو انگشتري ويني نو دليل يي دا دي چي دده مال مكروه اوحرام دی اوكه داوسپني انگشتري ويني نو څه چي دده سره دی لږ اوذليل دی اوكه انگشتري داوه سيكو يا داوسپيني دكلايي وه نو دا دمال لږ كيدو دليل دی او كه ويني چي دده انگشتري دسرو زرو ده نو ددي خوب تعبير دټولو څخه خراب دی. جابر مغربي رحمه الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي دده انگشتري د اوسپني ده نو دليل يي دا دي چي قوت او طاقت به پيدا كړي او كه دتانبي يا دسيكي وي نو دليل يي دا دي چي دبي اصله خلكو څخه به فائده پورته كړي او كه دشيشي انگشتري ويني نو دليل يي دا دي چي دعامو خلكو څخه به ورته څه ملاو سي اوكه دچاندي انگشتري ويني نو ديوخوا څخه به ورته ملاو سي. او كه ويني چي ده خپله انگشتري دچا سره امانت ايښي ده يا يي بخښلي ده او هغه ورته هم انگشتري واپس وركړيده نو دليل يي دا دي چي دنكاح لپاره به ښځه غواړي اوهغه به يي قبول نه كړي او نه به يي وركړي او كه ويني چي خپله انگشتري يي ماته كړيده نو دليل يي دا دي چي دهغه په عيال كي به جدائي راځي. اوكه ويني چي دده دانگشتري دوه غميان دی چي ده ته چا وركړيدی او دواړه غميان ديو بل مطابق دی نوددي خبري دليل دا دي چي خوب ليدونكي د غلام زوی دی او كه ويني چي ددوو غميو نه يو را ا يله سويدی نو ددی خبري دليل دا دي چي په دوو گناهونو كي يي ديوه څخه توبه كړيده اوكه ويني چي پر ليكل

سوي خط يي په انگشترى سره مهر لګوي نو دليل يې دا دي چي پټ شي به ورته ملاو سي اوکه ووينې چې پر خلاص خط يي مهر لګوى نو دليل يي دا دي چي ښکاره شي به ورته حاصل سي جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي داوسپنې انگشتري ليدل په څلورو وجو وي. ١: سلطنت ٢: ښځه ٣: زوي ۴: مال او دولت، او دسرو زرو انگشتري ښه ده، که ښځه ووينې چې انگشتري دغمي سره ضائع سويده نو ددي خبري دليل دا دي چي دهغې عزت او مرتبه به ختمه سي يا به زوي مړ سي يا به يې مال ضائع سي که حاکم وي نو معزول به سي او که ښځه داسي خوب ووينې نو دهغې خاوند يا زوي به مړ سي.

## انګور

دانيال عليه السلام ويلي دي چي پخپل موسم کي په خوب کي تور انګور خوړل دغم اوفکر دليل دی اوبي وخته خوف اوبيره ده اهل تعبير بيان کوي چي دتورو انګورو دهري خوړل سوي دانې په شمار به دی په لرګو وهل کيږي او دسپينو انګورو پخپل وخت خوړل دامید څخه زيات ددنيا خير او مال دی او دبي موسمه خوړلو دليل دا دي چي دخوب ليدونکي دخولي څخه به څه شي راوزي ددي دليل مال خرخول دی او دسرو انګورو خوړل هم دغه دليل دی. ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب دسپينو انګورو په موسم کي خوړل دمال او دولت دليل دی ليکن په محنت سره به ورته ملاويږي او سور انګور په موسم کي خوړل دلږ نفع دليل دی دکومو انګورو پوستکي چي سخت وي دهغه په خوب کي خوړل دمال دليل دی چي په مشکله به ورته ملاويږي اودبزي پوستکي والا انګور دحلال مال دليل دی او دکوم انګور اوبه چي توري وي دهغه خوړل دحرام مال دليل دی اوکوم انګور چي په ليدوکي سره وي دعزت او دمرتبې دليل دی او کوم انګور چي په ليدو کي تور وي دغم اوفکر دليل دی او کوم انګور چي خوږ او پاك وي دمالې مرتبې او دزيات عزت دليل دی. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کي ووينې چي انګور دلرګي په مشين نښتيځل سوي وي نو دليل يې دا دي چي دظالم پاچا خدمت به کوي اوکه په خښته ياخټه يي نښتيځلی وي نودليل يي دادي چي ددينداره پاچا خدمت به کوي اوکه په پخي خښتي ياپه شيشه اوکاڼي اوچوني سره يي نښتيځلی وي نو ددبدبې او رعب والا پاچا خدمت به کوي. او که ووينې چي انګور په تالي کي نښتيځلی وي نو ددي خبري دليل دا دي چي دمالداري ښځي خدمت به کوي اوکه ووينې چي په پيالـه کي انګور نښتيځلي وي نو دليل يي دا دي چي دبد اخلاقه سړي خدمت به کوي. او که شيره نښتيځلی وي او په چاټيو کي يې جمع کوي نو دليل يي دا دي چي دپاچا په ذريعه به دځان لپاره ډير مال جمع کړي او که دکوروالاو سره انګور نښتيځلي وي نو دليل يې دا دي چي ده ته او دده عيال ته به دپاچا دخدمت څخه فايده حاصله سي او که خوب ليدونکي دپاچا دخدمت لائق نه وی نو بيا به ورته دبل امير يا حاکم څخه فائده حاصله سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي دتورو انګورو او سپينو په وخت او بي وخته په خوب کي ليدل په درو وجو دي ١: نيک زوي ٢: دفرائضو علم (علم ميراث) ٣: حلال مال. دايي هم ويلي دی چي دانګورو نښتيځل هم په دريو وجو دي ١:

مال يا خير او برکت ۲: دنعمت فراخي ۳: دقحط څخه امان حاصلول دالله تعالی فرمان دی (عام فيه يغاث الناس وفيه يعصرون، سورة يوسف: ٤٩) ترجمه: کال دی چي په دي کي به خلک فرياد ته رسيږي او په دی کي به ښنتيځل وي.

## افتادن \ را ايله کيدل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينی چي پر خله رايله سويدی نو دا دپريشاني دليل دی خاصکر که هغه په جنګ کي وي او که ووينی چي ديوځای څخه را ايله سويدی مثلا دغره يا بالا خاني يا ديوال څخه نو دليل يي دا دي چي ارمان اومراد به يي پوره نه سي. کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينی چي ديو ځاي څخه را ايله سويدی نو دليل يي دا دي چي اميد به يي پوره نه سي او که دغر څخه کښته را ايله سوي وی نو دليل يي دا دي چي درا ايله کيدو مطابق به بدحاله سي او بدن ته به يي تکليف ورسيږي او که ووينی چي سخت زخم ورته رسيدلي دی او ديو اندام څخه يي وينه راوتلي ده نو دليل يي دا دي چي دزخم مطابق به ورته نقصان ورسيږي. او که ووينی چي پښه يي وښويده او را ايله سو نو دليل يي دا دي چي غم او تکليف به ورته ورسيږي او که ووينی چي را ايله سوی دی او تکليف ورته ندي رسيدلي نو دا دآساني او دسهولت دليل دی. او که خوب ليدونکي ووينی چي دکور د درشل څخه مار يا لړم يا څه بل يو خوړونکي حيوان را ايله سي نوددي خبري دليل دی چي هغه ته به دپاچا څخه يا دحاکم څخه غم او تکليف رسيږي. او که ووينی چي بالا خانه يا ديوال پر ده را ايله سويدی نو دليل يي دا دي چي ده ته به مال دداسي ځاي څخه ملاو سي دکوم ځاي څخه چي يي اميد نه وي او پدي وجه به ډير خوشحاله سي او کار به يي روان سي او الله تعالی ښه پوهيږي.

## [ ب - پ ]

## بادام

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي بادام ليدل نعمت او روزي ده ليکن په جنګ سره به حاصله سي او که په خوب کي يي بادام حاصل کړه نودهغه په اندازه نعمت او روزي به ورته په محنت سره ملاو سي. او اهل تعبير بيان کوي چي په خوب کي دبادام تعبير علم دی او دناجوړي څخه شفا ده او دبادام مغز ليدل غوره دی. کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينی چي دپوستکي سره بادام ورسره دی يا چا ورکړيدي نو دليل يي دا دي چي دبخيل سړی څخه به يو شي په سختی سره پيداکړي اوکه ووينی چي دبادام دمغز څخه يي ترخه تيل را ايستلي دی نودليل يي دادي چي دکنجوس سړی څخه به ورته دهغه تيلو داندازي مطابق فائده ورسيږي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي بادام ليدل مال او نعمت دی ليکن که بادام دپوستکي سره ووينی نو دليل يي دا دي چي مال او دولت به ورته په آساني سره ملاو سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي بادام ليدل په دوو وجو دي ۱: پټ

مال به ورته حاصل سي ۲: دناجوړي ځخه به شفا حاصل کړي.

## پاچا

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي په دولسو شیانو کي یو شي لیدل دپاچاهي دلیل دی اول که ووینې چي حضور ﷺ دی امام کړیدی دوهم که و وینې چي علم شریعت یي قبول کړي وي دریم چي پیغمبر ﷺ مبارك دځان سره ووینې چي داقامت او لمونځ په انتظار کي دی ځلورم چي د حضور ﷺ پر منبر یي خطبه ویلي وي پنځم چي دنبی ﷺ کالي یي په خوب کي اغوستي وي شپږم چي ګوته په لاس کي ووینې اووم که ووینې چي لمر او سپوږمي سوي دی اتم که ووینې چي بدن یي دریاب سویدی نهم که ووینې چي سترګي یي دښار دیوالل سوي دی لسم که ووینې چي سترګي یي دجامع مسجد محراب سویده یولسم چي مړ سوي پاچا ګوتمۍ ورکړیده دولسم ګوتمۍ په خوب کي لیدل دپاچاهي اودسلطنت دلیل دی. دانیال علیه السلام ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي پاچا ورته کالي او ټوپۍ ورکړیده نو دلیل یي دا دی چي پرخپلو خلکو به حاکم اورئیس سي او که ووینې چي دپاچا پرسر پاك تاج دی نو دا دپاچا دشرافت مرتبي او دډیر عمر دلیل دی او که ووینې چي د پاچا پر سر خیرین او ځیري تاج دی نو دا دپاچا دخراب حالت دلیل دی او که څوك په خوب کي ووینې چي د پاچاه سر پټو دي لکه څنګه چي به دنبی ﷺ په زمانه مبارکه کي داصحابو کرامو پر سر و نو دلیل یي دا دي چي پاچا به عادل او منصف وي او که ووینې چي پاچا هوا نیولي ده اوهوایي فرمانبرداره سویده نو دلیل یي دا دي چي ملکونه به فتح کړي او په ارام به سي او که څوک په خوب کي ووینې چي پاچا سویدی نو دلیل یي دا دي چي مالدار به سي او که په خوب کي ووینې چي پاچا کوځي یا سراي ته راغلي دی او دهغه راتلل په زاری او انکار سره وي نو دلیل یي دا دي چي دهغه ځای خلکو ته به دپاچا دطرف ځخه غم اوفکر رسیږي. دالله تعالی فرمان دی (ان الملوك اذا دخلوا قریة افسدوها وجعلوا اعزة اهلها اذلة، سورة النمل: ۳٤) ترجمه: کله چي پاچا یوکلي ته داخلیږي نوهغه خرابوي اودهغه ځاي مشران ذلیله کوي. اوکه ووینې چي دپاچا په تللو سره څه خرابي نه ده سوي نو دلیل یي دا دي چي دهغه ځاي خلکو ته به هیڅ قسم نقصان نه وي. کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي پاچا مړ سو اوچا دفن نه کړي اونه ورپسي چا وژړل او نه یي کفن او جنازه ورته ورکړه نو دلیل یي دا دي چي دده کور به خراب سي او زړه به یي فکرمند اوناجوړه سي. او که پاچا په خوب کی ووینې چي کعبه دده کور دی یا دده کور کعبه ده نو دلیل یي دا دي چي هغه پاچا ته به زوال نه وي او ددښمن ځخه به په امن وي او که ووینې چي ده چا ته سلام وکړو یا ده ته چا سلام وکړو نو دغم اوفکر ځخه دپه امن کیدو دلیل دی اومراد ته به ورسیږي دالله تعالی فرمان دي (سلام علیکم طبتم فادخلوها خالدین، سورة حٰم السجدة: ۷۳) ترجمه: پر تاسو دي سلام وي اودي ته داخل سی او همیشه خوشحاله اوسی او که پاچا په خوب کي ووینې چي دده لاس رسی ده یا دده په لاس کي رسی تړلي ده نو ددي دلیل دا دي چي

پر صحيح لار به ځي او دعدل او انصاف په طريقه به قائم سي. دالله تعالى فرمان دی (واعتصموا بحبل الله جميعا، سورة آل عمران: ۱۰۳) ترجمه: تاسو ټول دالله رسی ونيسي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي خپل ځان دباچا سره نزدي بزرگ ووينې نودليل يي دا دي چي مقرب پاچابه سي او که پاچا په ښه جامو کی په داسي کور يا کوټه کي ووينې چي دده طرفته منسوب وي نو دا دپاچا دملاقات بزرگي ولايت عزت مرتبه دبدبي او ډيرو نوکرانو او فالل او خزانو دليل دی او که پاچا نقصان ووينې نو ددي تعبير داولنی خلاف دی. کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که پاچا نسکور پروت وی نودليل يي دا دي چي پاچاهي به يي ختمه سي او که پاچا ووينې چي په مځکه کي ننوتلي دی نو دليل يي دا دي چي ديو سړي څخه به دپاچا عزت او حرمت زيات سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي که خوک پاچا ورين تندی او خوشحاله ووينې نو دليل يي دا دي چي کار به يي فراخ سي او که څوک دپاچا وزير په خوب کي ووينې نو دليل يي دا دي چي داسي کار به کوي چي ژر به درست سي او که شاهي دربار ووينې نو دليل يي دا دي چي دکارونو څخه به منع سي او اخر به مراد ته ورسيږی او که دپاچا ملک ووينې نو دليل يي دا دي چي دچا څخه به ورته ملامتيا ورسيږی او که شاهی ملازمان ووينې نو دليل يي دا دي چي دده شغل او عمل به سم سي او که دپاچا مددگاران او ملگري ووينې نو دليل يي دا دي چي دي به څوك ملامت کړي او دده ضائع سوی مال به بيا ورته ملاو سي او که دوکيل نوکران ووينې نو دليل يي داد چي څوك به يي ملا کړي او دبدو کارونو څخه به عاجز سي. او که دپاچا پرده ووينې نو دليل يي دا دي چي دده بند کارونه به خلاص سي او که دپاچا دښځي برقعه ووينې نو دليل يي دا دي چي څوک به ورسره ددرواغو وعده کوي او که دپاچا قيديان ووينې نو دليل يي دا دي چي مراد به ورته ژر حاصل سي او که دپاچا منشي ووينې نو دليل يي دا دي چي په يوشی پسي به گرځي هغه به بيا حاصل کړي او که دپاچا اسلحه ووينې نو دليل يي دا دي چي دښځي څخه به نفع پيدا کړي او که شاهی نوکر ووينې نو دليل يي دا دي چي سخت درواغ اوبي فائدي خبره به واوري او که شاهي دربار ووينې نو دليل يي دا دي چي غم اوفکربه ورته ورسيږي. اوکه شاهی لباس والا ووينې نو دليل يي دا دي چي دهغه کار به په ښه شان سره وسي او که شاهي ليکونکي ووينې نو دليل يي دادي چي دغه سړي ته به دښځو څخه فايده حاصله سي او که شاهی فوجي مشر ووينې نو دليل يي دا دي چي خوشحاله به سي اومال به ورته حاصل سي، اسماعيل بن اشعث رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي پاچا ښارته راغلي دی او پرښار يي غلبه کړيده نو دليل يي دا دي چي پر دي ښار به آفت راسي او که په خوب کي پاچا په خپل کور کي بيده سوي ووينې نو دليل يي دا دي چي پاچا ته به ضرورت وي او دي به په يو کار لگوي.

## پاتيله \ پتيله

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي پتيله ليدل دکور ښځه ده او که ووينې چي نوي

پتیله یې اخیستې ده یا چا ورکړیده نو دلیل یې داد چې کورودانې ته به یې افت ورسیږي.
ابراهیم رحمة الله علیه ویلې دی چې که څوك په خوب کې ویني چې په پتیله کې دخوراك یو شی دی نو دلیل یې دا دې چې ده ته به دکور دبیګم څخه خیر اونفع ورسیږي او که ویني چې په پتیله کې دخوراك یو خراب شی دی نو دلیل یې دا دې چې دکور ودانې څخه به ورته ضرر رسیږي.
ابن سیرین رحمة الله علیه ویلې دی چې په خوب کی پتیله لیدل دتوجه قابل شی نه دی.

## باد \ هوا

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلې دی چې که څوك په خوب کې ویني چې سخته هوا چلیږي نو دلیل یې دا دې چې ملك والاوو ته به خوف او بیره وي او که هوا دونه ویني چې درختې دبیخه څخه باسې او خرابه وي نو دلیل یې دا دې چې دغه ملک والاوو ته به دطاعون مرض او په سرخې مرض سره بلا او مصیبت راسې. کرمانی رحمة الله علیه ویلې دی چې په خوب کې ګرمه هوا لیدل دسختو ناجوړیو دلیل دی او معتدله او برابره هوا په خوب کې لیدل په دغه ملك کې دسختو ناجوړیو راتلو دلیل دی او معتدله هوا ددغه ملک دخلکو د صحت تندرستې اوپر ښه کسب دلیل دی. او که ویني چې هوا یې دیو ځاي څخه بل ځاي ته وړې نو دلیل یې دا دې چې دلیرې ځاي سفر به کوي او په دغه سفر کې به دهوا اخوا دیخوا والا مطابق مرتبه او بزرګی پیدا کړي او که ویني چې هوا د دوړي اوتیارې سره ده نو پر دغه قوم دبیرې راتلو ګمان دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلې دی چې که څوك ویني چې سختې دهوا آسمان طرفته وړې دی نو دلیل یې دا دې چې دهغه مرګ نزدی دی او که ویني چې هوا دآسمان څخه مځکې ته راوړې دی نودلیل یې دا دې چې ناجوړه به سي اوپه اخر کې به صحت او شفا پیدا کړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلې دی چې هوا په خوب کې لیدل په نهو وجو وي.۱: زیری۲: حکومت ۳: مال او دولت ۴: مرګ ۵: عذاب ۶: وهل ۷: ناجوړي ۸: شفاء ۹: راحت. او که څوك په خوب کې ویني چې په هوا ناست دی نو ددې خبرې دلیل دا دې چې بزرګې او حکومت به پیدا کوي، اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلې دی چې که څوک په خوب کې ویني چې دمغرب هوا نرمه نرمه چلیږي نو دلیل یې دا دې چې ددغه ملك خلکو ته به مال او نعمت زیات حاصل سي او که دشمال دطرف څخه هوا نرمه نرمه چلیږي نو دا د دغه ملك پر شفا اوراحت دلیل دی او که ددې خلاف ویني نو ښه نه دی که په خوب کې ویني چې دهوا اواز اورې نو دلیل یې دا دې چې په دغه ملك کې به دپاچا او دسردار خبر ښکاره سي اوکه ویني چې هوا ددغه ملك خلک پورته وړې دی نو دلیل یې دا دې چې دغه خلک به شرف او بزرګې حاصله کړي.

## بادرها کردن \ باد اچول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلې دی چې که څوك په خوب کې ویني چې دخلکو په جمع کې یې باد اچولې دی اوخلکو یې اواز اوریدلې دی نو دلیل یې دا دې چې داسې خرابه خبره به کوي چې خلک به افسوس باندې کوي اوپه دی وجه به په خلکو کې رسوا سي. او که ویني چې باد یې واچوې خو خلکو یې اواز نه دی اوریدلې نو ددې تعبیر داولنې خلاف دی او که دا خوب سړی

ويني نو دليل يي دا دي چي خوشحالي به ورته حاصله سي. كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ځوك په خوب كي ويني چي باد يي پري سويدی او دهغه تيز اواز او بوی ولاړي نو دليل يي دا دي چي داسي كار به وكړي چي خلک به يي ملامتوي او په درد به ورته وايي او كه ويني چي اواز يي سته ليكن بوی يي نسته نو دليل يي دا دي چي بي فايدي كاربه كوي ليكن په دی كي به يي خير وي او كه ويني چي پخپله ارادي سره يي باد اچولي دی اوخلكو وريوري وخندل او دي شرمنده سو نو دليل يي دا دي چي په بي كاره كار سره به يي ژوند جوړ سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي باد اچول په څلورو وجو دی ۱: خرابه خبره ۲: ملامتيا او پيغور ۳: دملامتيا كار ۴: رسوايي، او كه ځوك ويني په خوب كي چي هوايي دنس څخه په ارادي سره را وايستله نودليل يي دادي چي هغه سړي به بي دينه اوبي مذهبه وی.

## بادروک \ بادرنګ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ځوك په خوب كي ويني چي بادرنګ خوري نو دليل يي دا دي چي دهغه كار به پوره سي او مراد به يي حاصل سي حضور صلى الله عليه وسلم ويلي دی چي (ما اطيك وما اطيب ريحتك) ترجمه: ته څومره پاك يي او ستا خوشبويي څومره ښه ده. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دبادرنګ په خوب كي خوړل په درو وجو وي ۱: حاجت پوره كيدل ۲: مراد پيدا كول ۳: دغائب زيارت كول.

## بادريسه \ د څرخي پركی

كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ښځه وويني چي دڅرخي پركی يي حاصل كړيدی ياچا وركړيدی نو دليل يي دا دي چي مينځه يا خادمه به ورته ملاو سي او كه ښځه وويني چي دهغه دڅرخي دتكلي څخه پركی را ايله سويدی نو دليل يي دا دي چي دهغې محبت به دخاوند څخه ختم سي.

## باذنجان \ تور بانجڼ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي تور بانجڼ خوړل كه په موسم كي وي او كه بي موسمه او كه پوخ كړي يي وخوري او كه اوم يي وخوري تازه وي او كه وچ څومره چي يي وخوري هغونده غم اوفكر به لوړ كړي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ځوك په خوب كي ويني چي دده سره ډير توربانجڼ دی ليكن ټول يي خرڅ كړيدی يا يي چاته بخښلي دی يا يي دخپل كور څخه دباندي اچولي دی او خوړلي يي نه دی نو ددی خبري دليل دا دي چي دغم او تكليف څخه به خلاصون حاصل كړي.

## بار كشيدن \ بار پورته كول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ځوك په خوب كي ويني چي دده پر ملا سپك بوج دی نو دليل يي دا دي چي دهغه مطابق به ورته فائده وی او كه پر ملا يي دروند بوج وی نو دليل يي دا دي چي دده ګناهونه ډير زيات دی دالله تعالي فرمان (ليحملوا اوزارهم كاملة يوم القيامة، سورة

النحل: ٢٥) ترجمه: هغوی به دخپلو گناهونو بوج پوره دقيامت په ورځ لوړوي. کرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي ډير بوج لري او په دي پوهيږي چي دا دده ملکيت دی نو دليل يي دا دي چي دبوج دجنس مطابق به ورته فائده يا نقصان يا بدي رسيږي. او که ووينې چي دبوج پخپله مالك نه دی نو بيا به هم ددغه نيکي اوبدی دخوب ليدونکي طرفته رجوع کوي.

## باران

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي باران دالله تعالى دطرف څخه پر بندگانو رحمت اوبرکت دی کله چي عام باران وي او هرځاي ته ورسيږي دالله تعالى فرمان دی (وهو الذي ينزل الغيث من بعد ما قنطوا وينشر رحمته، سورة الشورى: ٢٨) ترجمه: او الله هغه ذات دی چي دنا اميدي څخه وروسته هم باران اوروي او خپل رحمت خپروي. او باران پر وخت ليدل ډير ښه دی او خاصکر کله چي خلک باران غواړي نو ډير ښه دی ليکن که سخت باران صرف پخپله کوڅه کي ووينې چي ددي ځاي څخه علاوه بل ځاي نه وي سوي نو دا ددغه ځاي پر خلکو باندي دخير او برکت دليل دی او که ووينې چي په اول کال يا په اوله مياشت باران اوريږي نو دليل يي دا دي چي په دغه کال او په دغه مياشت به دنعمت فراخي زياته وي او که ووينې چي باران سخت او تور دی نو دا دناجوړي دليل دی چي په هغه کي به هلاک سي. ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي سخت باران ووينې چي پرخپل وخت اوريدلي وي نو دليل يي دا دي چي په دغو ورځو کي به دغم اومصيبت لښکر راځي. او که ووينې چي دباران په اوبو مسح کوي نو دليل يي دا دي چي دبيري او غم څخه به په امن کي سي او که په خوب کي ووينې چي باران دده پر سر اوريږي نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي او دخير اونفعي سره به بيرته راځي. او که څوك ووينې چي باران دخلکو پر سرونو دطوفان په ډول اوريږي نو ددي خبري دليل دا دي چي په دغه ملك کي به خداي دی نه کړي ناڅاپي مرگ راځي او که ووينې چي دباران دهر څاڅکي څخه اواز راځي نو دليل يي دا دي چي دده دمرتبي او عزت اواز به زيات سي او که څوك په خوب کي ووينې چي ډير زيات باران اوريږي او ټول نهرونه جاري سويدی او ده ته ځني څه نقصان نه دی رسيدلي نو دليل يي دا دي چي پاچا به سختي کوي او خوب ليدونکي به دهغه دشر څخه محفوظ وي او که ووينې چي دنهرونو څخه نسي تيريدلاي نو دليل يي دا دي چي دپاچا شرارت به دځان څخه ليري کړي. او که ووينې چي اوبه دهوا څخه دباران په ډول راځي نو دليل يي دا دي چي دالله تعالى عذاب او ناجوړي به په دغه ځاي کي ښکاره سي. کرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي که دباران پرځاي گبين اوريدونکي ووينې نو دليل يي دا دي چي نعمت اوغنيمت به په دغه ملك کي زيات وي او چي څه شي دآسمان څخه اوريدونکي ووينې نو دهغه تعبير دهغه شی دجنس څخه دی اوکه ووينې چي دباران اوبه چينې او درختي پاکي دی اورني وي نو دليل يي دا دي چي ده ته به دهغونه خير او راحت رسيږي او که ووينې چي دباران اوبه توري او

بي خونده دی نودليل يي دادي چي هغونده اندازه غم اوناجوړي به ورته رسيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي باران ليدل په دوولسو وجو دی ۱: رحمت ۲: برکت ۳: فرياد کول ۴: غم اوناجوړي ۵: بلا جنګ ۷: قتل کول ۸: فتنه ۹: قحطی ۱۰: امن حاصلول ۱۱: کفر ۱۲: درواغ.

## باراني \ برساتي کوټ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده پر بدن کوټ دی او دي دپاچا په خدمت کي دی نو دليل يي دا دي چي دده نيک کار اوثنا او صفت به په خلکو کي ښکاره سي او که کوټ يي دجامو پر ځاي په بدن وي نودليل يي دا دي چي ده ته به په دين او دنيا کي فائده حاصله سي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کي ويني چي کوټ دوړی يا دپمبي دی او شين رنګ يي دی نو دا دښه والي دليل دی ليکن ژړ کوټ دغم او ناجوړي دليل دی او که کوټ آسماني رنګه وي نوبيا دګناه او دنافرماني دليل دي او که سپين وي نو ده ته به ديوځاي څخه خير اونفع رسيږي.

## باروئی \ د فصيل مناري

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دښار قلعي اودکلي دفصيل مناري پر پاچا يا پر والي دليل دی او اهل تعبير بيان کړيدي چي دښار مناري پر پاچا او دکلي مناري دکلي پر مالك دليل دی که دښار مناري مضبوطی او لوړی ويني نو دا دپاچا پر قوت اونيکی دليل دی او که ويني چي دښار مناري خرابي سويدی که ټولي را ايله وي نو دا دپاچاهي دهلاک کيدو دليل دي اوکه لږ را ايله وي نو دښار حاکم به مري او که نوي جوړ سوي ويني نودليل يي دا دي چي نوي پاچا به په ښار کي مقيم سي او که بعضي جوړي سوي وي نو نوي حاکم به په ښارکي مقيم سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي کومي مناري ښار ته نزدي وي دهغه ليدل دعيش او امن دليل دی او کومي چي دښار دشا طرف ته وي نوهغه چي څنګه ويني دهغه ښه او بد اثر به پر ليدونکو راسي.

## باز

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که چا په خوب کي وليدل چي باز يي نيولي دی يا چا ورکړي دی او باز تابعدار دی يعني پر لاس يي ناست دی نو دادعزت د رتبي اودقدر دزياتوالي دليل دی. او که ويني چي سپين باز دده پر لاس ناست دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به عزت او مرتبه پيدا کړي او که ويني چي باز دده دلاس څخه ايله سو او مړ سو نو دليل يي دا دي چي دمرتبي څخه به را ايله سي او تنګ دسته به سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي سپين باز پيدا کړي او دي دپاچا په نوکرانو کي وي نو دپاچا څخه به ولايت او مرتبه پيدا کړي او که په رعاياوو کي وو نو ډير مال به پيدا کړي او که ويني چي چا ورته باز بخښلي دی نو دليل يي دا دي چي دده به دپاچا سره ملګرتيا جوړه سي او خير اونفع به څني حاصله کړي او که ويني چي باز وتښتيدي او کورته ولاړي او دښځي ترلمني لاندي پټ

سو نو دليل يي دا دي چي ددغه ښځي به ښائسته هلك پيدا سي او كه ويني چي دباز په پښو كي دسرو او سپينو زرو جهانجير دی نو دليل يي دا دي چي ددغه ښځي به انجلی پيدا سي.
جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي باز يي پيدا كړيدی او مړ دی نو دليل يي دا دي چي كه دی دپاچا دنوكرانو څخه وی نو دخپلو كارو څخه به معزول سي او كه دپاچا نوكر نه وي نود كوروالاو څخه به ورته غم او تكليف ورسيږي او كه ويني چي باز دده دلاس څخه والوتي او بيرته رانغلي كه داخوب پاچا ويني نو دليل يي دا دي چي دده دلاس څخه به پاچاهي ولاړه سي اوكه باز بيرته راغلي اودده پر لاس كښېنستي نو دليل يي دا دي چي ملك اوقدر به پيدا كړی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي باز دده تابع دی نوددي تعبير په پنځو وجو دي. تابعداري ۲: خوشحالی ۳: زيري ۴: فرمان ۵: مراد حاصلول او مال په قدر دقيمت دباز حاصلول، كه چيري باز سپين اوتابع وي نو دوه زره درهمه به ورته حاصل سي او كه تابع نه وی نو ددي تعبير په څلورو وجو دی ۱: ظالم پاچا ۲: حاكم چي دبدی طرفته به مائل وي ۳: خيانت كوونكی فقيه ۴: زوی چي دمور او پلار نافرمانه وي.

## بازو \ مټی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي ورور يا زوی يا اعتبار دوست يا شريك دی كه په خوب كي ويني چي مټي مضبوطی دی نو ده ته به دهغوی څخه قوت اوفائده ورسيږي او كه ددي خلاف ويني نو ده ته به دهغوی څخه هيڅ قسم فايده نه وي او كه ويني چي دده مټ را ايله سويدی يا چا څني پري كړي دی نو دليل يي دا دي چي دده ورور يا ملګري يا شريك به ددنيا څخه رحلت وكړي يا به دده څخه جدائی تلاش كړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي مټ ليدل په شپږو وجو دي ۱: ورور ۲: زوی ۳: شريك ۴: لاس ۵: دتره زوي ۷: همسايه.

## بازوبند \ د لاسونو پټی

ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ويني چي دده په لاس دسروزرو بازو بند دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به دورونو څخه يا دبل چا څخه نفرت او غم رسيږي او كه بازوبند داوسپنی وي نو دليل يي دا دي چي دده دلور يا دخورزي واده به كيږي. او كه داخوب ښځه ويني نو دا دمال نعمت او زينت دليل دي او كه ويني چي بازو بند دچاندئ يا داوسپني دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به دورونو څخه قوت او مدد حاصل سي او كه ويني چي بازو بند مات سو يا ضائع سويدی نوددي تعبير د اولني خلاف دی.

## پاسداشتن \ چوكيداري كول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي پيره كول په دوو وجو ده. كه ويني چي دنيكو خلكو پيره ده نو دا ددواړو جهانونو په خير او نفع دليل دی او كه ويني چي دپاچا دمحل چوكيداري كوي نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به خير او فايده حاصلوي او كه دا خوب سوداګر ويني نو په تجارت كي به ورته ډيره فائده وي او كه ويني چي دنيكو او پرهيزګارو

خلکو حفاظت کوي نو دليل يي دا دي چي دهغوی څخه به ددنيا نفع او خير ويني او په خوب کي محافظ ليدل دقدر مرتبي او دولايت خاوند کيدل دی او کارونه به درست کړي او خلک به دده په انتظام کي وي.

## پاشنه بائي \ د پتوګيتي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دپښو ګيتي ليدل دکار وبار په انتظام او دسړي په ګټه دليل دی او که ويني چي ګيتي يي ماته سويده نو دليل يي دا دي چي په داسي کار به مشغول سي چي په هغه سره به ورته پښيماني وي او که ويني چي دده ګيتي زخمي سويده نو ددي هم دغه تعبير دي ليکن د اولني په نسبت به ورته پښيماني کمه وي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دپښي ګيتي يي پري کړيده او درنده ګانو ته يي ورکړه او ويي خوړل نو دليل يي دا دي چي ګټه به کوي او خپله به يي هم خوري او دښمنانو ته به يي هم ورکوي اوکه ويني چي دده ګيتي را ايله سويده نو دليل يي دا دي چي بي کاره او فقير به سي.

## باغ

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي باغ ليدل ښځه ده او که ويني چي باغ ته اوبه ورکوي نو دليل يي دا دي چي دخپلي ښځي سره به جماع کوي اوکه ويني چي باغ ته اوبه ورکوي خوباغ اوبه سوي نه دی نو دليل يي دا دي چي دده ښځه دجماع خواهشمنده ده او که څوك په خوب کي ويني چي په باغ کي ګل ريحان کري نودليل يي دا دي چي صالح زوی به يي پيداسي او که ويني چي دشفتالو په باغ کي ګرځي نو دليل يي دا دي چي زوی به يي پيداسي چي ډير ژر به علم او ادب زده کړي او که ويني چي په باغ کي دګل ريحان ګلدسته ده او ده پورته کړه اوبوی يي کړه نو دليل يي دا دي چي دده زوی به زړور هوښيار او عقل مند وي او دريحان بوی دزوی دليل دی. او که څوك خپل باغ شين اباد اوبه پکي رواني او محل والا ويني او دهغه څخه څه ميوي وخوري او څه ورسره وي او دخپلي ښځي سره نظاره کوي نودليل يي دا دي چي دي جنتي دی او که ويني چي په ترو تازه شين اواباد باغ کي دی او ددرختو څخه ميوي خوري نو دليل يي دادي چي مالداره ښځه به ورته حاصله سي او دهغي څخه به مال او دولت حاصل کړي. او که ويني چي دخزان په موسم کي نامعلومه باغ ته تللي دی او ددرختو بلګونه غورزيږي نو دليل يي دا دي چي غم اوفکر به ورته راځي. او که ويني چي په باغ کي محل شينګي اواوبه رواني دی اوښائسته ښځه دی را بولي نو دليل يي دا دي چي په اخرت کي به ورته جنت او حور العين حاصلي سي او دليل دی چي دشهادت درجه به حاصله کړي او که ويني چي دده باغ يا چا ورکړيدی او دهغه باغ ميوي خوري نودليل يي دا دي چي مالداره ښځه به ورته حاصله سي او دهغي مال به خوري او که ويني چي دی په باغ کي وي او دلوړو درختو ميوي پرده را غورزيږي نودليل يي دا دي چي دشريف سړی سره به جنګ کوي او پر هغه به غالب کيږي او که ويني چي په باغ کي ددرختي په سر کي بيده سويدی نو دليل يي دا دي

چي دده نسل اوزامن به ډير وي. ابراهيم کرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي باغ ليدل عزتمند مالدار اوښه سړی دی او که ويني چي دپسرلي يا دګرمی په موسم کي يي يوښه باغ لګولي دی او په هغه کي ميوي او ګل ريحان را زرغون سوي دی او اوبه پکښي دي اودي پکښي ناست دی نودليل يي دا دي چي دي به شهيد کيږي ځکه چي داټول دجنت صفات دی او که دګرمي په ورځو کي نامعلوم باغ ويني او دهغه ميوي خوري وي اوددرختو بلګونه را ايله سوي وی نو دليل يي دا دي چي دی به دپاچا ملګري وي په داسي حال کي چي پاچا به دنوکرانو اولښکر څخه جلا وي. اوکه په ګرمي کي شين باغ دميوو څخه ډك او اوبه پکښي بهيدونکي ويني اوده باغ دريښو څخه ايستلي او خراب کړيدی نودليل يي دا دي چي ددغه ملك پاچا ته به د هلاك کيدو بيره وي او يو بل غټ پاچا به حمله کوي اويا به معزول سي. او که ويني چي اور راغلي دی اودباغ ټولي ميوي يي سوزلي دی نو دليل يي دا دي چي دهغونه به ورته خير اونفع حاصله سي او که ويني چي په باغ کي هر څه جمع کوي نودليل يي دا دي چي دپاچا څخه به په سختی سره نفع حاصله کړي. جابر مغربي رحمه الله عليه ويلي دی چي اصل خبره داده چي په خوب کي باغ ليدل دخلکو دهمت مطابق دکاروبار شغل دی او که په باغ کي شينګيا ويني نو دليل يي دا دي چي دده شغل به نيک وي اوکار به يي ښه وي او که باغ دشينګيا اوميوو څخه خالي ويني نو دليل يي دا دي چي دده کاربه ښه نه وي او که باغ ښه ويني او ده ته څوك ووايي چي دادفلانکي ملکيت دی او ده ددغه باغ څخه ميوي خوړلي وی نو دليل يي دا دي چي دباغ دمالك څخه به هغونده اندازه فائده حاصله کړي او که دپسرلي او دګرمي په ورځو کي باغ وران ويني او په هغه کي يي شينګيا اودرختي نه وي ليدلي نو دليل يي دا دي چي پاچا به پر رعايا ظلم اوزياتي کوي. او که ويني چي پخپل لاس يي باغ لګولي دی او درختي يي پکي لګولي دی اوميوي پکي لګيدلي دی نو دليل يي دا دي چي دمالداري ښځي سره به نکاح کوي اومال نعمت او زامن به ځني ورته حاصل سي او که په دغه باغ کي موسمي انګور ويني نوددي دليل دا دي چي هغه به دخپل همت مطابق مال او مرتبه حاصلوي.

## حكايت

بيان کوي چي يو سړي سليمان عليه السلام ته راغلي اوعرض يي وکي چي اي دخداي پيغمبره يو ښه باغ مي په خوب کي ليدلي دی او په هغه کي ډيري ميوي دي اوما وليدل چي په دغه باغ کي يو ډير غټ خنزير ناست دی او ما ته خلکو وويل چي داباغ ددي خنزير ملکيت دی زه په دي خبره حيران يم او په باغ کي مي ډير خنزيران په ميوي خوړلو وليدل اوخلکو وويل چي دا ټول خنزيران ددي لوي خنزير په حکم سره ميوي خوري. سليمان عليه السلام وويل چي دغه لوی خنزير ظالم او جابر پاچا دی اودانور خنزيران عقلمند حرام خواره دی کوم چي دظالم پاچا مطيع او فرمان برداره دي اودين ددنيا په بدله خرڅوي او دالله تعالی دعذاب څخه نه بيريږي.

جعفر صادق رضي الله عنه ويلي دی چي باغ په خوب کي ليدل په اوو وجو دی ١: ښائسته ښځه ٢: زوی او نيکه ښځه ٣: ښه ژوند ۴: مال ۵: لوړوالي ٦: واده ۵: مينځه اوباغ په خوب کي ليدونکي

ښځو قائمولو والا دی او که ويني چي باغواني کوي نودليل يي دا دي چي مالداره ښځه به کوي او دهغه په شغل کي به مشغول سي او هر قسم خوشحالي به وي اوبعض اهل تعبير بيان کوي چي دباغ ليدل په درو وجو دی ۱: دکور مالك ۲: پر ښځه اختيارمند ۳: زوی چي دهغه ښځه سترگو ته يخوالي وي.

## بافتن جامها \ جامي جوړول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کالي اودل سفر دی او اودولو والا به مسافر وی او که ويني چي کالي يا يو بل شي ودي نو دا دسفر دليل دی بيان کوي چي په خوب کي کالي اودل جنگ دی او که ويني چي کالي يي جوړ کړی اوبيا يي څيري کړل نو دليل يي دا دي چي دغه کار به په جنگونو ختميږي او ددي څيرل هم دسفر سبب دی او که ويني چي رسی ته غوټه ورکوي نو دليل يي دا دي چي سفر به کوي. کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك دوريښمو پر ځاي رسی ته غوټي ورکوي نو دليل يي خراب دی ځکه چي دا دخيانت نښه ده او که ويني چي ټوله کالي يي جوړ کړه او بيايي پريکړه نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي او کار به پوره کوي او که ويني چي ټوله کالي يي نه دی اودلي نو دليل يي دا دي چي دده کار به نيمگړي پاته سي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي دجولاگانو کار کوي نو دليل يي دا دي چي دده به دخلکو سره جنگ وي او دده مال به نيك وي ليکن خلک به يي ملامتوي.

## باقلا \ لوبيا \ کرخي \ باغلي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي لوبيا ليدل که پخپل وخت وي او که بي وخته وي که پخه سوي وخوري او که کچه يي وخوري دغم دليل دی او دلوند او وچ دتعبير حکم برابر دی او که ويني چي لوبيا يي خوړلي نه ده نو بيا هم لږ غم اوفکر به وي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي چا ورته لوبيا ورکړيده او خوړلي يي نه ده نو دليل يي دا دي چي غمناکه به سي اوممکنه ده چي دغه سړي به جنگ هم کوي. او بعض اهل تعبير بيان کړيدی چي که څوك ويني چي دده سره لوبيا ده يا چا ورکړيده يا يي دکور څخه دباندي غورځولي ده او دهغي څخه يي څه خوړلي نه ده نو دليل يي دا دي چي ده ته به نقصان نه وي خاصکر چي لوبيا يي دهغه په موسم کي ليدلي وي.

## بالا رفتن \ پورته تلل

محمد ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي پر غر ناست دی يا په بالاخانه يا په ډيران يا په محل او يا ددي په ډول په بل شي کي ناست دی نو دليل يي دا دي چي ديو شي په تلاش کي دی هغه به پيداکړي او دهغه مراد به پوره سي. اوبعض تعبير بيانوونکي بيان کوي چي که څوك ويني چي په مشکله پورته تللی دی نو دليل يي دا دي چي ديو شي په تلاش کي تللي دی هغه به په غم او تکليف سره حاصل کړي او که ويني چي پر ځينو پورته ختلي دی نو دليل يي دا دي چي په دين کي به عزت او مرتبه پيدا کړي خاص کار که ځينه دخاورو وي او که ويني چي ځينه دچوني يا دډبري وي نو دليل يي دا دي چي دده په دين کي به خلل راسي.

ابراهيم كرمانى رحمه الله ويلي دى چي كومه ځينه دچوني يا دډبري وى پر هغه دپورته ختلو دليل دا دي چي په دي جهان كي به شرف او عزت پيدا كړي او كه ويني چي ځينه دكچه خښتو يا دخاورو جوړه سوي ده نو دليل يي دا دي چي هغه به په اخرت كي قدر اومنزله پيدا كوي او كه ويني چي آسمان ته تللى دى اوبيا واپس راغى نو دليل يي دا دي چي سخت ناجوړه به سي او په اخر كي به شفا حاصله كړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي پورته تلل په پنځو وجو دى. ۱: دحاجت پوره كيدل ۲: ښځه غوښتل ۳: قرب اوبزرگي ۴: مراد حاصلول ۵: كاروبار.

## پالانه \ كته د حيوان

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي پالانه ليدل ښځه ده كه څوك په خوب كي ويني چي دده سره كته ده يا يي دچا څخه اخيستي ده نودليل يي دا دي چي ښځه به كوي يا به مينځه اخلي او كه ويني چي كته دده پرملا ده نو دليل يي دا دي چي دښځي فرمانبرداره به وي او هغه به پر غالبه وي او كه ويني چي كته دده څخه ضائع سويده نو دليل يي دا دي چي ښځه به ځني جلا كيږي يا به دى هغي ته طلاق وركړي جابر مغربى رحمه الله ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ويني چي دي خپله كته پاكه اونوي ساتي نو دا ددي خبري دليل دي چي ده ته به ښائسته اونيك سيرته ښځه ملاو سي او دهغه څخه به خير او نفع پيداكړي او كه ويني چي كته سخته اوگنده ده نو دا ددي خبري دليل دى چي دي به جنگ ماره اوخرابه ښځه كوي او دهغه څخه به نقصان اوتكليف پيدا كوي.

## بالش \ بالښت

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي دليدلو والا لپاره بالښت خادم دى كه څوك په خوب كي ويني چي دده سره نوي اوښين بالښت دى يا چا وركړيدى نودليل يي دا دي چي نيك او پرهيزگاره خادم به ورته حاصل سي او كه په خوب كي ويني چي دده بالښت پخوانى او خيرين دي يا ژړ يا تور دى نو ددي تعبير داولني خلاف دى او كه ويني چي په خوب كي دده بالښت څيري سويدى يا سوزلي دى يا ورك سويدى نو دليل يي دا دي چي دده نوكران به ضائع سي يا به وتښتي يا به خوب ليدونكي په غم اومصيبت كي اخته سي چي دهغه په وجه به دده نوكران دده څخه جلا سي ابراهيم كرمانى رحمه الله ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ويني چي چا دده دكور څخه بالښت پټ كړيدى نوددي دليل دا دي چي څوك دده په ښځه پسي لگيدلي دي يا دده په مينځه پسي لگيدلي دى ددي لپاره چي دهوكه ورته وركړي اهل تعبير بيان كړيدى چي دبالښت په كوركي ليدل ددي خبري دليل دي چي څوك به دده دكور څخه مري او كه څوك سړي په خوب كي ويني چي ده ډير بالښتونه پيدا كړيدى نودليل يي دا دى چي په هغونه اندازه به ورته خادمان اومنځي حاصلى سي او كه په خوب كي ويني چي اور دده بالښت وسوزي نو دليل يي دا دي چي دده خادمان او مينځي به مړي سي يا به وتښتي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي دبالښت ليدل په پنځو وجو دي ۱: خادم ۲: مينځه ۳

رياست ۴ نيك دين ۵: پرهيزګاري او عدل او انصاف.

## بالاخانه \ بام

که څوک په خوب کي ويني چي پر نامعلومه بالاخانه باندي دی نو دليل يې دا دي چي دهغه دلوړوالي مطابق به عزت او مرتبه والا ښځه پيدا کوي او که دنامعلومه کور په بالاخانه کي وو نو دليل يي دا دي چي شرف اوبزرګي به حاصله کړي او کاروبار به يې په انتظام سره وي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک ويني چي پر بالاخانه باندي پاچا دي نو دليل يې دا دي چي بزرګي اومرتبه به پيدا کړي او که ويني چي پخپله دبالاخاني څخه را ايله سو نو دليل يې دا دي چي دعزت او مرتبي څخه به را ايله سي او علم اوفکربه ورته ورسيږي.

## بانګ داشتن جانوران \ د حيوانانو اوازونه اوريدل

محمد ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دخلکو اوحيوانانو اوازونه په خوب کي اوريدل دهغه ځاي لپاره دغم اومصيبت دليل دی او که ويني چي ده ته دليري ځاي څخه اوازونه ورکوي نو دليل يې دا دي چي ناجوړه به سي او که ويني چي دژړا اوازونه کوي که ده جواب ورکړی وي نودليل يې دا دي چي ژر به مري او که ويني چي جواب يې نه دي ورکړي نو دليل يې دا دي چي ناجوړه به سي او که ويني چي دژړا اوازونه راځي نودليل يي دا دي چي خوشحاله به سي او که ويني چي ده فرياد اوريدلي دی نودليل يي دا دي چي ناخوښه خبره به اوري او که ويني چي دزاری کولو اواز يې اوريدلي دي نو دليل يې دا دي چي مرادبه يې پوره سي او پردښمن به کاميابه سي او که دښکنځلو اواز واوري نو ده ته به مکروه خبره رسيږي او ژر به زائله سي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك داسي اواز په خوب کي واوري نو دليل يې دا دي چي هغونده خوشخبري به اوري. اوبعض اهل تعبير بيان کوي چي ضرور به ده ته تکليف رسيږي ځکه چي حيوانان درواغ نه وايي او که په خوب کي دخره اواز واوري نو دليل يې دا دي چي ددښمن او جاهل څخه به فولاد واوري دالله تعالی فرمان دی (ان انکر الاصوات لصوت الحمير، سورة لقمان: ۱۹) ترجمه: په ټولو اوازونو کي خراب اواز دخره دي. اوکه اوښ په اواز کولو ويني نو دليل يي دا دي چي حج ته به ځي يابه په تجارت کي فائده پيدا کړي. او که ويني چي چيلی خبري کوي نو دليل يې دا دي چي دبزرګي څخه به ورته خير اونفع رسيږي او که چيلی دکوچني اواز واوري نو دا دخوشحالی واده او دنعمت دليل دی او که ويني چي اوسی اواز کوي نو دليل يي دا دي چي مينځه به ورته حاصله سي او که په خوب کي دزمري غړمبيدل واوري نودليل يي دا دي چي دپاچا څخه به بيره او ترس حاصل کړي او که دشرمښ اواز واوري نو دليل يي دا دي چي ده ته به جنګ راسي او که ويني چي هوسۍ په ښنښتيدلو کي اوازونه کول نو دليل يي دا دي چي څوك به غصه باندي کوي او خپله لويي به باندي ښکاره کوي. اوکه ويني چي ليوه اوازونه کوي نودليل يي دا دي چي پر دښمن باندي به کاميابي حاصله کړي او که ويني چي ګيدړه اواز کوي نو دښځو دطرف څخه به ورته غم اوفکر رسيږی او که ګيدړه په

اواز کولو ووینی نو دلیل یې دا دی چې درواغجن سړي به ورسره حیله او دهوکه کوي او که دېشي اواز واوري نو دلیل یې دا دي چې دغله څخه به ورته بیره وي او که دشترمرغ اواز واوري نودلیل یې دا دي چې دپټ سړي خبر به واوري او که دچرګ اواز واوري نو دلیل یې دا دي چې دپټ سړي خبر به واوري اوکه کوچني ګونګي اواز واوري نودلیل یې دا دي چې دغم او مصیبت خبره به واوري او که دغټ ګونګي اواز واوري نو دهغي هم دغه دلیل دی اوکه دګوګوشتو اواز واوري نودلیل یې دا دي چې یوه ددرواغو خبره به اوري او که دزرکي اواز واوري نو دلیل یې دا دي چې دښایسته ښځي خبر به اوري او که دطاوس اواز واوري نودلیل یې دا دي چې دعجمي پاچا خبر به واوري او که دزانې اواز واوري نودلیل یې دا دي چې دنیکي ښځي خبر به اوري او که دکوړکوړي اواز واوري نودلیل یې دا دی چې دکلي والی سړي خبر به اوري اود هغه څخه به خوشحاله سي. او که دغریز تیتر اواز واوري نو دلیل یې دا دي چې دنیکي ښځي اواز به اوري او که د ډیرو زرکو اوازونه واوري نو دلیل یې دا دي چې دپرده داري ښځي خبر به واوري او که دکارغه اواز واوري نودلیل یې دا دي چې دحرام خور سړي خبر به واوري او که دمرغی اوازونه واوري نو خوشخبري به واوري او که دبلبل اواز واوري نو دساز ږغونکي یا دنوحګر خبر به واوري او که دمرغابی اواز واوري نودلیل یې دا دي چې هغه ته به غم او تکلیف ورسیږی او که دبطي اواز واوري نو دهغه په اهل کي به پر چا مصیبت راځي او که دچرګي دکوچنیانو اواز واوري نو ماتم اومصیبت به ورته ورسیږي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چې دټولو مارغانو اوازونه په خوب کي اوریدل ښه دی لیکن هغه مارغه چې دهغه اواز بد فال شمیرل کیږي ځکه چې دغه اواز دغم اومصیبت دلیل دي. او دمار اواز ددښمن څخه ترس اوبیره ده دمچمچۍ اودملخ اواز بیره اوخوف دی او دچرمښکی اواز دلیل دی چې دي به چیري کښته کیږي. جابر مغربي رحمه الله علیه او کرماني رحمه الله علیه ویلي دی چې څوك په خوب کي ووینی چې دآسمان څخه یا دزمکي څخه یا دهوا څخه خوفناك اواز راځي نوداپرپاچا دغم تکلیف او مصیبت دلیل دی او دهر څنګه خیر او شر تعبیر ورکوونکي دی.

## حکایت

یو سړي محمد ابن سیرین رحمه الله علیه ته راغلي اوورته یې وویل چې ما خوب لیدلي چې یو حیوان زما سره خبري کوي هغوی وویل چې ستا مرګ نزدي دی ځکه چې الله تعالی ویلي دی (واذا وقع القول علیهم اخرجنا لهم دابة من الارض تکلفهم، سورة النمل: ۸۲) ترجمه: اوکله چې پر دوی حکم واقع سي نو موږ به ددوی لپاره دزمکي څخه چارپایان را وباسو چې ددوی سره به خبري کوي او کله چې یوه هفته پوره سوه نو هغه سړی ددنیا څخه رخصت سو.

## بانګ نماز \ اذان

محمد ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چې مصلح مومن اوپرهیزګاره بنده په خوب کي ووینی چې دیو معلوم ځاي څخه داذان اواز اوری یا پخپله دلمونځ لپاره اذان کوي نو دلیل یې دا دي چې

دبیت الله شریف حج بـه کـوي دالله تعـالی فرمـان دی (واذن فی النـاس بـالحج یـاتوك رجـالا، سـورة الحـج: ۲۷)
ترجمه: او په خلکو کي دحج اعلان وکړه ستا طرف تـه بـه لـځي پـښي راسـي. اوکـه پـر نـامعلوم ځای باندي اذان کوي نو دلیل یي دا دي چي مکروه او ناخوښه خبره به ورته وسي او که دا خبره ځوك بدکار ویني نو دلیل یي دا دي چي په غلا کي به گرفتار سي او کـه وینـي چـي دلمونځ لپاره دجماعت یا دمناري څخه اذان کوي نـو دلیـل یـي دا دي چـي خلـک بـه دالله تعـالی طرفتـه راوبولي. او که ویني چي پر بستره بیده دی اواذان کوي نو دلیل یي دا دي چي دخپلي ښـځي سره به مینه ساتی او که ویني چي پخپل کورکي اذان کـوي نـو دلیـل یـي دا دي چـي مفلس او نادار به سي اوبیان کوي چي دده په کوروالاوو کي به مړی وسي. اوکه ویني چي په کوځه کـي اذان کوي نو دا ددي خبري دلیل دی چي جاسوسي بـه کـوي او کـه وینـي چـي پـه کـوهي یـا پـه برف خانه کي اذان کوي نودلیل یي دادی چي دغه سړی به زندیق یا منافق وي. ابراهیم کرمـانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ځوك ویني چي دخپلي ښـځي سـره اذان کـوي نـو دلیـل یـي دا دي چـي ددنیا څخه به رخصت سي او که داذان په کلمو کي زیاتي یا کمي ویني نو دلیل یي دا دي چي پر خلکو به ظلم اوزیاتی کوي. او که ویني چي یو ځوك معصوم اذان کوي نو دلیـل یـي دا دي چي دهغه موراو پلار به درواغ وایي او که ویني چي په حمام کي اذان کوي نو داپه دین اودنیا کي دهغه دبدحالی دلیل دی او که وینـي چـي پـه قافلـه یـا پـه لـښکرګاه کـي اذان کـوي نـو ددي تعبیر ښه نه دی او که ویني چي مجوسي په قیدخانه کي اذان کوي او تکبیر یـی ویلـي دی نـو دلیل یي دا دي چي دقیدخاني څخه به خلاصون پیدا کړي او که ویني چي دبازي په ځـاي کـی اذان کوي نو دا دهلاکیدو دلیل دی او که ویني چي دغره پر ځوکه اذان کوي نـو دلیـل یـي دا دي چي پاچا به رښتیا خبره کوي او دی به الله تعالی ځان ته را وبولي. اوکه ویني چي پر مینار اذان کوي نودلیل یي دا دي چي بزرګي او حکومت بـه پیـدا کـوي او کـه وینـي چـي دکـور پـه کونج کي اذان کوي نو دلیل یي دا دي چي دحق په کار کي به خیانت کوي او که ویني چي پـه تیه خانه کي اذان کوي نو دلیل یي دا دي چي ژر به په سفر ځي او په هغـه کـي بـه غـم اوتکلیـف پورته کوي اوډیر وخت به پکښي وي او که ویني چي پر غر اذان کوي نو دلیل یـي دا دی چـي په ظالم قوم کي به ګرفتار سي او دهغو سره به خیانت کوي او کـه وینـي چـي پـر یـو شـي یـا پـر سړی یا پر تختي ناست یا ولاړ دی او په خندا اوبازیو اذان کوي نو دلیل یـي دا دي چـي لیـونی به سي او که دبـل چـا اذان واوري نـو دلیـل یـي دا دي چـي دعبـادت او اطاعـت پـه کـارو کـي بـه سست وي او ځوك به یي دالله تعالی طرفتـه را وبـولي او کـه وینـي چـي دتکبیـر اواز اوري نـو دلیل یي دا دي چي دالله تعالی په کارونو کي به توفیق پیدا کړي. جعفر صـادق رحمة الله علیه ویلـي دی چي په خوب کي اذان په دولسو وجو وي ۱: حج ۲: خبري ۳: حکومت ۴: بزرګي ۵: ریاست ۶: سفر ۷: مرګ ۸: غریبي ۹: خیانت ۱۰: جاسوسي ۱۱: نفاق او بي دیني ۱۲: لاس پریکول.

## پایند \ د پښو کړی

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دپښو کړی لیدل ښي خبري زوی او عیال یا انډیوال

مچول دی او که ډیري دپښو کړی، ويني نو دا دهغومره مال نعمت او حلال رزق دليل دی او که ويني چي ده ته بوډی ښځه دپښو کړی بخښلي وی نو دليل يي دا دي چي هغونه به ورته په انتظام سره ددنيا مال اونعمت ملاو سي او که ويني چي دده سره ډيري دپښو کړی دي او ټولي يي بخشش کړي دی يا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي که نعمت ورسره وي نو ټول به خرچ کړي يا به يي ورکي کړي.

## پائی \ پښې

دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك په خوب کي يوه پښه پريکړه سوي يا ماته سوي ويني نو دليل يي دا دي چي دهغه به نيم مال ورك سي او که دواړي پښي پريکړل سوي يا ماتي سوي ويني نو دليل يي دا دي چي دهغه به ټول مال ورك سي يا به پخپله مړ سي او بعض اهل تعبير وايي چي که څوك دواړي پښي ماتي يا پريکړل سوي ويني نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي او که ويني چي دده پښي داوسپني يا تانبي دی نو دليل يي دا دي چي عمر به يي زيات وي او مال به يي باقي وي او که ويني چي دده پښي دشيشي دی نو دليل يي دا دي چي دده عمر به ژر ختم سي او مال به يي پاته نه سي ځکه چي دشيشي بقا او طاقت نه وي او که ويني چي دده پښي شلي دی نو دا دده دکمزوری او سستي دليل دی په هر حال کي که خير وي او که شر وي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که نيک سړی په خوب کي ويني چي دده پښي شلي سويدی نو دا ددين دزياتوالي دليل دی دالله تعالی فرمان دی (ولا على الاعرج حرج، سورة النور: ٦١)
ترجمه: اوپر شل باندي هيڅ ګناه نسته. او که ويني چي دده پښي په رسی تړل سويدی نو دليل يي دادی چي ده ته به دچا څخه فائده رسيږي او که ويني چي دده پښي نسته او دلرګي په ډانګو ګرځي نو دليل يي دا دي چي پرچا به بهروسه کوي او دهغه څخه به وفاداري نه ويني. او که څوك شاهي حاکم ويني چي دواړي پښي يي پري سويدی نو دليل يي دا دي چي له کار څخه به معزوله سي اومال به يي ورك سي اوکه ويني چي دده پښي داوسپني دی نو دليل يي دا دي چي مال به يي زيات سي او که ويني چي دده پښي دچاندي دی اوګيټي يي دسرو زرو دی نوبيا يي هم دغه تير سوي دليل دی او که ويني چي دده پښي درد کوي نودليل يي دا دي چي نقصان به وړي. او که ويني چي دده پښه دستني سره تړل سويده نو ددي تعبير ښه نه دی ځکه چي درخته دسړي په ډول ده او ستن دچړې په ډول ده او که ويني چي دده پښه په جال کي ده يا په مځکه کي نغښتي ده نو دليل يي دا دي چي څونه يې پښه ښخه سويده په هغونه اندازه به په مکر اوفريب کي ګرفتار سي او که ويني چي پښه يي په يو ځاي يا غر کي ښويبدلي ده نودليل يي دا دي چي ددين او دنيا دکارڅخه به منع سي يا به څوك داسي خبره ورته کوي چي ناجوړه به سي او که ويني چي پښي يې غزولي دی نودليل يي دا دي چي دکار په لټون کي به وي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده پښه داوښ يا دغوائي دنوک په ډول ده نو دليل يې دا دي چي طاقت او مال به يي زيات سي او که ويني چي

دده پښه دآس يا دخره په ډول ده نودليل يي دا دي چي طاقت او مرتبه به يي زياته سي. او كه خپله پښه ددرنده دپنجي په ډول ووينې نو دليل يي دا دي چي حرام مال به حاصل كړي او كه خپله پښه دچرګانو دپښو په ډول سره ووينې نودا دده دكسب او دژوند دقوت دليل دى او پر دښمن به كاميابي حاصله كړي. جعفر صادق رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي دپښي په خوب كي ليدل په اوو وجو دي ۱: ژوند ۲: عمر ۳: كوشش كول ۴: دمال طلب ۵: طاقت ۶: سفر ۷: ښځه او په خوب كي دپښو وهل ليدل مصيبت اوغم دى.

## پائي اورنجن \ پايزيب

ابن سيرين رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي كه سړى په خوب كي ووينې چي دده په پښو پايزيب دى نودا دده دغم دليل دى او كه دچاندي پايزيب ووينې نو سختي به باندي كمه سي. ابراهيم كرماني رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي دښځي پايزيب ليدل خوند دى اوليدل يي ښه دى او دسروزرو ليدل دښځو لپاره ملكيت دى او دسړو لپاره حرام دى او كه ووينې چي پايزيب يي دپښي څخه ايستلي دى يا ځني ورك سويدى نودليل يي دا دي چي دغه سړى به د زړه دغم څخه خلاص سي.

## بندنهادن \ دام ايښودل

ابن سيرين رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي كه څوك په خپله پښه كي دام ووينې نو دادخوف اوبيري دليل دى او كه ووينې چي دده په پښه كي دوه دامونه دى اودى په جماعت كي دى نودليل يي دا دي چي دا سړى به په دين كي يا په لمونځ كي يا په جهاد كي يا كوم كار چي ددين په اصلاح كي كوي ثابت قدم به وي. ابراهيم كرماني رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ووينې چي دده په پښه كي دام ايښول سويدى او دده دسفر اراده ده نو دليل يي دا دي چي په سفر كي به مقيم سي اوډير وخت به وي او څونه چي دام په پښه كي قوي او محكمه ووينې په هغونه اندازه به سفر زيات وي او دتنګ دام په نسبت دفراخو دام ليدل غوره دى او كه دتانبې يا داوسپني دام وي نو بيايي دغه تير سوي دليل دى او كه ووينې چي دام درسى دى نو دا دده داقامت دين لپاره دى او كه دام دلرګي په ډول وي نو دده اقامت به ددين دفساد لپاره وي. جابر مغربي رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي كه ناجوړه ووينې چي دده په پښه كي دام دى نو دليل يي دا دي چي دناجوړي څخه به خلاص سي او كه پاچا ووينې چي دده په پښه كي دام دي نودليل يي دا دي چي پاچاهي به يي پائيداره وي. جعفر صادق رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي دام ايښول په خوب كي ليدل په دريو وجو دي. ۱: په دين كي ثابت قدمي ۲: نكاح كول ۳: دسفر څخه وروسته راتلل مقصد داچي كوم سړي داسي خوب ووينې نو كه نيك وي نو په نيكى كي اوكه بد وي نو په بدي كي به پائيدار وي.

## پائي تابه \ جرابي

ابن سيرين رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ ويلي دى چي كه څوك په خوب كي جرابي ايښول سوي ووينې نو مال دى او كه اغوستي ووينې نو سفر دى او كه په خوب كي جرابي اغوستل سوي ووينې لكه څنګه چي مسافر دبيابان اراده كوي او ورسره څوك ملګري اودلاري خرڅ نه وي نو دليل يي دا دي چي ژر

به ددنیا څخه رخصت سي. او که ويني چي خپلي جرابي يي خرڅي کړيدی يا يي چاته ورکړيدی نو دليل يي دا دي چي دده مال به ورك سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي جرابي ليدل په دريو وجو دی ۱: مال او دولت ۲: سفر ۳: مرګ دهغه لپاره ځوك چي يواځي دسفر اراده وکړي او ځنګل ته لاړ سي.

## پاچه \ د سرلې يا داسي بل حيوان پښې

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ويني چي دسرلی پښي خوري نو دليل يي دا دي چي څونه يي خوړلي وي په هغونه اندازه به ورته نعمت حاصل سي او که ويني چي دغوا پښي يي خوړلي دی نودليل يي دا دي چي دخوراك مطابق به دده لپاره په دغه کال کي دنعمت فراخي وي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دسرلی پښبي خوړل څومره چي يي خوړلي وي خاصکر دکچه خوړلو په حالت کي ديتيمانو دمال خوړلو دليل دی.

## پابنداني کردن \ قيد کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ځوک په خوب کي ويني چي چا قيد کړيدی نودليل يي دا دي چي په کار کي به يي پائيداري وي اودهغه څخه به جلا نه سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي قيد کول په دريو وجو ده ۱: کوم سړی چي قيد سوي وي دهغه مقيم کيدل ۲: په هغه بخشش کول ۳: هغه ته به خير اونفع رسيږي او که ويني چي دقيديانو څخه ځوک دباندي راوتلي دی يعني دهغه دقيد څخه يې خلاصون پيدا کړي نو ددي تعبير د اول څخه خلاف دی.

## ببر \ زمری

ببر يو قسم زمری دی ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي ببر يو درنده ځناور د زمری دښمن دی او دي په خوب کي ليدل مضبوط او زړه ور دښمن دی ليکن کريم اومهربانه دی او که ويني چي دزمري سره يي جنګ کړيدی اوهغه يي مغلوب کړيدی نو دليل يي دا دي چي پر دښمن به غالبه سي او که دهغه څخه مغلوب سوي وي نو دښمن به پر ده کاميابي حاصله کړي او که ويني چي زمری دده څخه بيريدلي دی او تښتيدلي دی نودليل يي دا دي چي ددښمن څخه به په امن وي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي دزمري هډوکي او ويښته او پوست په خوب کي ليدل مال او نفع ده چي دليدونکي دقدر مطابق به ورته ددښمن څخه حاصل سي او که ويني چي پر زمري سپور دی او دده مطيع دی نو دليل يي دا دي چي دښمن به دده تابعدار سي.

## بت

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ويني چي دبت عبادت کوي نو دليل يي دا دي چي په الله تعالى به درواغ وايي اوپر باطله لاره به ځي او که دلرګي دبت عبادت کوي نو دا په دين کي دنفاق پيدا کولو دليل دی او که ويني چي بت دسپينو زرو دی نو ديوي خواهشمندي ښځي سره به جماع کوي او که ويني چي دسروزرو بت دی نو دده ميلان به دمکروه کار او مال جمع کولو طرفته وي او که ويني چي بت داوسپني يا دتانبي يا دسکي دی

نو دليل يي دا دي چي دده مقصدددين ځخه ددنيا جوړول اودنيا طلبي ده. ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دى چي كه څوك په خوب كي دجواهراتو بت ويني نودليل يي دا دي چي ددين ځخه دده غرض پاچاهي نوكران اودبدبه حاصلول دى. كه په خوب كي ويني چي هغه دجواهرو بت ليري سويدى نو دليل يي دا دي چي دده غرض ددين ځخه حرام جمع كول دى او كه ويني چي بت په كوركي دى نو دخپل عقل او هوښيارتيا ځخه به عاجزه اوحيران سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي بت په خوب كي ليدل په دريو وجودى ۱: بي فايدي درواغ ۲: مكار منافق ۳: دهوكه وركوونكي مفسده ښځه.

## بخشش كردن \ مال چاته بخښل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ويني چي خپل مال په كار خيركي بخشش كوي نو دليل يي دا دي چي دخپل زوى لپاره به ښځه كوي يا به په خپلوانو كي دچا واده كوي او خپل مال به پر تقسيموي او كه ويني چي خپل مال يي په ناجائزه طريقه بخشش كړي دى نو دليل يي دا دي چي دحرام اوفساد طرفته به مائله سي او كه ويني چي خپل مال يي پردو ته بخښلي دى نودليل يي دا دي چي دده دمرګ اوژوند حال به خراب سي. ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دى چي كه څوك ويني چي دچا مال دهغه په رضا سره بخشش كوي نودليل يي دا دي چي دهغه دنيكى اوبدي اثر به صاحب مال ته رسيږي.

## بخور كردن \ دود كول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي دود دبزرګ سړى ځخه پيسي اخستل دى او كه ويني چي خوشبوداره شيان دودكوي نودليل يي دا دي چي په هغونده اندازه به ورته دچا ځخه مال حاصلوى. جابر مغربى رحمه الله ويلي دى چي كوم دود ډير خوشبوداره وي دليدونكي لپاره ډير زيات خير اونفع ده اوكه دود خوشبوداره نه وي نو دخوب ليدونكي لپاره ددي تعبير خلاف دى، جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي دلوګي كولو تعبير په دريو وجو دى ۱: ډير مال ۲: ښه ژوند ۳: نيك نوم.

## پر \ وزر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ويني چي په وزرو الوزي يعني دمرغيو په ډول وزري يي دى نو دليل يي دا دي چي دوزرو په اندازه به ورته عزت او سرداري ملاو سي اوبعض اهل تعبير ويلي دى چي په خوب كي وزر ليدل قوت او پنا ده. ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ويني چي په وزرو الوزي نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي او كار به يي ښه وي او كه ويني چي دده سره دمرغى وزري دي نو دليل يي دا دي چي په هغونه اندازه به ورته خير اونفع حاصله سي او كه ويني چي دده وزري را ايله سويدى نو دليل يي دا دي چي دعزت او مرتبي ځخه به خلاص سي او دمال نقصان به يي وسي.

## پريهن \ ورخاړي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي ورخاړي ليدل داندېښني اودغم دليل دي او ساتل

يي نقصان دي.

## بربط\ سرينده

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي سرينده ددنيا لهو سخت درواغ او ناممکنه شي دی که په خوب کي ځان سرينده ږغونکي ويني نو دليل يي دا دي چي بي فائدي اودرواغ خبري به کوي اودچا څخه به ددرواغو صفت اوتعريف کوي او که ويني چي ثوك دده مخ تـه سرينده ږغوي نودليل يي دا دي چي بي فائدي او درواغ خبري به اوري او که ويني چي دسريندي سره رباب اوشپيلی وهي نو داتول پر دغه ځاي دغم اومصيبت دليل دی. او کـه وينـي چي دده سرينده ماته سويده يا را ايله سويده نودليل يي دا دي چي ددرواغو او بي فائدي کارونو څخه به توبه کوي او که ثوك په خوب کي ويني چي ناجوړه اوسرينده ږغوي نو دا دده دمرگ دليـل دي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ثوك په خوب کي ويني چي سرينده پـه سرينده باندي دېوه سړي په شان ږغوي حالانکه دی سرينده نه سي ږغولي که خوب ليدونکي عالم وي نو دليل يي دا دي چي خلکو ته به علم اوبيان په ښه طريقه ورکوي او دا دري علمونه تفسير فقه او قـصص بـه پيژني او کـه ثـوك جاهل سړي يـي ويـني نوداسي کاربـه وکړي چي خلک بـه ملامتيا وايي او که ويني چي دسريندي اواز اوري نودليل يي دا دي چي دخرابي ښـځي خبر به اوري او دهغي سره به يي محبت وي.

## برجستن\ ټوپ وهل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ثوك په خوب کي وينـي چي ځاي پرځاي ټوپونـه وهي او گرځي نودا ددي خبري دليل دي چي دده حال به بدل سي. او که ويني چي په ليري ځاي کي يي ټوپ وهلي دی نو دليل يي دا دي چي په ليري سفر به ځي او که ويني چي دټوپ وهلو پـه وخت کي يي په لاس کي کوټك دی نودليـل يـي دا دي چي دده اعتمـاد بـه پـر قـوي سړي بانـدي وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ثوك ويني چي دځاي څخه يي دباندي ټوپ وهلي دی نو دليل يي دا دي چي دبدحالی څخه به نيك حاله سي او که ويني چي چيري غـواړي نـو هلتـه ټوپ وهي نو دا دده پر قوت او هوښيارتيا دليل دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي کـه ثـوك ويني چي دپاك ځاي څخه يي ټوپ وهلي دی نو دليل يي دا دی چي دخراب حالت څخه به نيك حاله سي او که ددي خلاف ويني نو دښه حاله څخه به بدحاله سي.

## بردار کون\ په سولۍ کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي يوه ورځ يو سړي ماته راغلی اوهغـه وويـل چي ماپـه خـوب کـي ليدلي دی چي ديو سړي دواړه لاسونه پري سويدی اوبل په سولی خيژولاي سي ما ورتـه وويـل چي که ته داخبره رښتيا وايي نو نن به دښار امير معزول سي اود هغه پر ځاي به بل امير کښيني بيا په هغه ورځ دغه شان وسوه اوبل امير کښينول سو. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي کـه ثوك ويني چي ثوك يي په سولی کړيدی اوخلک يي تماشـه کوي نودليـل يـي دا دي چي پـر دونه خلکو به سردار سي اوکه ويني چي ثوك يي تماشه نه کوي نودليل يي دا دي چي شرافت

اوعزت به پيداکړي ليکن ددين په لاره کي به بي نصيبه او فاسق وي، او که څوک په خوب کي وويني چي دپه سولی سوي سړی غوښي خوري نودليل يي دا دي چي په مصيبت کي دګرفتاره سړي مال به خوري خاصکر که دهغه اثر هم ووينـي اوکه ووينـي چي دي پـه سولی سويدی او وينه څني وبهيږي نودليـل يـي دا دي چي دخلکو غيبت به کوي او دده څخه به ډير ګناهونه کيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي په سولی کيدل پـه څلورو وجو دی. ۱: سرداري او حکومت ۲: مال اودولت ۳: دخلکو غيبت.

## برد \ پټو \ څادر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دټولو کپړو څخه غوره پټو دی که څوك په خوب کي ووينـي چي پټو يي دسوترو دی او شين يا سپين دی يا يي نوي کالي اغوستي دی نودليـل يـي دا دي چي دکالو دښه والي په اندازه به دنعمت فراخي حاصلوي او که ووينـي چي کالي يـي تنګ دی او توري يا اودي دی نو ددي تعبير د اولني خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي پټو خرڅونکي داسي سړی دی چي دين ددنيا په بدله کي اختياروي خاصکر که دسوترو پټو وي او که دريښمو پټو ووينـي نو دليل يي دا دي چي ددين اودنيا دواړو غوښتونکي دی.

## پرده

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي څوك په خوب کي پرده ووينـي چي دده پر دروازه زړيږي که تنګه او غټه وي نودغم اوفکر دليل دی او خوف اوبيره ده اوپه اخر کي امن دی او کـه پـه خوب کـي ووينـي چي دسراي په دروازه يا دجماعت په دروازه يا په بازار کي پـرده پرتـه ده نـودا دغـم فکر اوډيري غټي خطري دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينـي چي پرده ورکه سويده نو خوب ليدونکي بـه دغـم اوفکر څخه خوشحالي پيداکوي اودخوف اوبيري څخه به په امن وي اوکه پرده ووينـي اونامعلومه وي نوډير سخت غم اوفکر به وي اوکه هغه معلومه وي نوزيات آسان به وي، جابر مغربی رحمة الله عليه ويلـي دی چي نوې پـرده ليـدل دپاچا لپاره ښه دی او درعايا لپاره ښه نه دی اوزړه پرده ليدل په هيڅ حال کي هم ښه نه ده.

## پرده داري \ پر چاپرده اچول

محمد ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينـي چي پـرده داري کـوي نـودا ددي خبري دليل دی چي دده مراد به پوره سي اوعـزت اومرتبـه بـه يـي زياتـه سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك پـه خـوب کـي ووينـي چي دمـصلح اوعـادل پاچا پـرده داری کـوي نودليل يي دا دي چي دنيکی اوخير طرفته به مائل سي اوحلال مال بـه پاچا پيـدا کـړي. اوکـه دمفسد اوظالم پاچا پرده داری کوي نو دليل يي دا دي چي دفساد طرفته بـه مائـل سي اوحرام مال به حاصل کړي.

## پرستو \ توته

حضرب ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کي ووينـي چي دده سره توته دی يا ده ته چا ورکړيدی نو دليل يي دا دي چي دچا څخه به جلا وو دهغه سره بر بيا ملاو سي اوقرار بـه

ورسره سي. اوکه ويني چي توته يي مړ کړي يا يي په لاس راغورزولي دی نو دليل يي دا دي چي دچا سره محبت لري دهغه څخه به جلا سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي توته په خوب کي ليدل مالدار او عزتمند سړی دی او ماده توته عقلمنده او مالداره ښځه ده اوکه ويني چي توته کرکي دده څخه الوتي ده نو دليل يي دا دي چي دسړی څخه به مال جلا سي او که ويني چي توته کرکي دده په لاس کي مړ سويدی نودليل يي دا دي چي دده ملګري به مري او غم اوفکر به ويني. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده توته نيولي ده نو ددي خبري دليل دا دي چي دغمونو څخه به خلاصون پيدا کړي او دخوف او بيري څخه به په امن وي.

## برف \ واوره

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي واوره ليدل غم فکر اوعذاب دی که لږه ويني نو خير دی که ديخني په موسم کي واوره ويني يا يي په داسي ځاي کي ويني چيري چي هميشه کيږي نو دليل يي دا دي چي هغه ځاي والاوته به غم اوفکر رسيږی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي واوره ليدل لښکر ته ماتي ورکول دی جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي واوره ليدل په شپږو وجوده ۱: روزي ۲: ژوند ۳: ډير مال ۴: ډير لښکر ۵: ناجوړي ۶: غم اوفکر او که ويني چي دګرمي په ورځو کي واوره جمع کوي نودليل يي دا دي چي حلال مال به جمع کوي او خوشحاله ژوند به تيروی اوډيره نفع به حاصلوي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په يخ ملک کي واوره په خوب کي ليدل دخير اونيکي دليل دی او په ګرم ملك کي ليدل دقحط غم اوفکر دليل دی او که ويني چي واوره پخپل موسم کي خوري نو دبي موسمه څخه غوره ده.

## برق \ بجلي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي بجلي ليدل دپاچا خزانچي دی او بعض اهل تعبير بيان کوي چي برق دپاچاهي دبدی لپاره لالچي سړی ته دلالچ په وجه وعده ورکول دی او که ويني چي بجلي يي دهوا څخه يا دوريځي څخه نيولي ده نودليل يي دا دي چي داسي کار به وکړي چي په هغه سره به حيران سي او که برق په رپيدو سره ويني نودليل يي دا دي چي په دغه کال به دنعمت فراخي وي خاصکر که دبرق سره نرمه هوا هم وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي برق ليدل په پنځو وجو دی. ۱: دپاچا خزانچي ۲: بده وعده ۳: ملامتيا ۴: رحمت ۵: صحيح لار.

## برګستوان \ زغره \ جنګي کالي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي زغره په خوب کي پائيداري اومضبوطي ده او که ويني چي دجنګي کالو سره پر آس سپور دی نودليل يي دا دي چي دده کار به سم سي او پر دښمن به کاميابي حاصله کړي اوهغه به مغلوب کړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ځان پر آس سپور دجنګي کالو سره په ميدان جنګ کي ويني نو دليل يي دا دي چي کار به يي دمراد

سره وسي اوبخت او دولت به يي نصيب سي او که ويني چي زغره داس څخه را ايله سويده يا ورکه سويده نودليل يي دا دي چي دنامرادۍ او ددښمنانو دلاسه به قيد سي.

## برنج پلاو \ وريجي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پلاو ليدل مال دی چي په قدر دپلاو ليدلو به ورته حاصل سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي پوخ سوي پلاو خوري نودليل يي دا دي چي مراد به يي پوره سي اوخير اونيکي به ورته ورسيږي او که ويني چي پلاو يي خوړلي دی نو دا دغم اوفکر دليل دی جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي پلاو په خوب کي ليدل په درو وجو دی ۱: مال اودولت ۲: مراد حاصلول ۳: خير اونفع چي ده ته به ورسيږي.

## پرنده \ مرغۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي مرغی دده دلاس څخه الوتلي ده اوبيا دده لاس ته راغلي ده نو دليل يي دا دي چي مراد به يي پوره سي او که ويني چي مرغی دده دلاسه څخه الوتلي ده نو دليل يي دا دي چي دده دمال نقصان به وسي.

## پرنيان \ ريښم

پرنيان (ديبا) يوقسم کپړه ده ددي تفصيل به په حرف دال کي راځي.

## بره \ د بزې بچی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دبزې بچي ليدل که څه هم ښځه وي تعبير يي زوی دی. اوکه په خوب کي ويني چي دبزې بچي يي نيولي دی يا چا ورکړيدی نودليل يي دا دي چي زوی به يي کيږي او دده په ډول به وي اوکه ويني چي دبزې بچي يي مړ کړيدی نو دليل يي دا دي چي دده زوی به مړ سي او که ويني چي دبزې دبچي غوښه يي خوړلي ده نو ددي خبري دليل دا دي چي ده ته به دزوی دطرف څخه غم اوفکر رسيږي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي دبزې بچي په خوب کي ليدل خير اونفع ده او دده دلوي والي اوکوچنيوالي مطابق نيکي او حلال مال هم دی او که ويني چي دده سره دبزې بچي دی نو په هغه قدر دمال اوغنيمت رسيدلو دليل دی او که ويني چي دبزې بچي يي مړ کړی او ويي خوړي ليکن دغوښي لپاره يي نه دي ذبح کړي نو دليل يي دا دي چي ده ته به دزوی دطرف څخه مصيبت رسيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دبزې بچي په خوب کي ليدل په څلورو وجو دي ۱: زوی ۲: حلال مال ۳: ژوند ۴: غم او فکر.

## برهنگي \ لڅيدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك خپل ځان په خوب کي لڅ ويني اوددنيا طلب کوونکي وي نو دا پرغم اوفکر دليل دی اوکه ويني چي لنګ يي تړلي دی نو دليل يي دا دي چي په اطاعت اوعبادت کي به کوشش کوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي لڅيدل دمحنت او رسوايی دليل دی او که په خوب کي ښځه کالي اغوستونکي وي نودنيك

سړی لپاره ښه اودبدکار لپاره بدي ده جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي به خوب کي لڅیدل دنیک سړي لپاره خیر اونیکي ده او دمفسد سړی لپاره بدي او رسوایي او بي حرمتي ده.

## پروانه\ ګوډی

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي ګوډی په خوب کي لیدل کمزوري اوکم عقل سړی دی چي خپل ځان په کم عقل توب سره هلاکت ته غورزوي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي چا په خوب کي ولیدل چي دده دشا څخه ګوډي والوتي او ده ونیوي نو دلیل یي دا دي چي دپیغلي مینځي څخه به یې زوی کیږي او که په خوب کي ویني چي ګوډی یي څیري کړي یا دده دلاسه څخه ولاړي نو دلیل یي دادي چي دده زوی به مری.

## بروت\ بریت

په خوب کي بریت لیدل دهیبتناکه سړی دلیل دی او که ویني چي دده بریت چا په غځچي سره برابر کړیدی نو ددي تعبیر نیك دی او ده ته به نقصان نه وي او که ویني چي دده دبریت دبرابر کولو په وخت کي دبدن څخه را ایله دی نودسړی دنقصان اوهیبت دلیل دی ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي دده بریت لوی سویدی نودا دطاقت دلیل دی اوکه څوك په خوب کي ویني چی چا دده بریت را ایستلي دی نو دلیل یي دا دي چي دچا سره به جنګ کوي او که په خوب کي ویني چي دده بریت سپین سوي دی نودلیل یي دا دي چي دنه کولو کار څخه به منع سي او که ویني چي دده بریت دی نو که اوږده وي نودلیل یي دغم اوفکر دی او که کوچني وي نو دعزت مرتبي او دمراد حاصلولو دلیل دی.

## برج\ دولس برجونه

دانیال علیه السلام ویلي دی چي حمل اسد او قوس لیدل دپاچا لښکر دی اوثور سنبله اوجدي لیدل شهزاده اودین دی او جوزا میزان اودلو لیدل قاضي پاچا او وزیران دی او سرطان عقرب او حوت لیدل خاوند دشرط او پاچا شرابدار دی، ابن سیرین ویلي دی چي که څوك په خوب کي برج حمل ویني نو دده کار به دمرتبي والا سړي سره سي او مراد به یي پوره سي او که برج ثور ویني نو دده کار به دجاهل او کم عقل سړی سره کیږی او مرادبه یي پوره سي او که برج جوزا ویني نو دده کار به دزبان دان اوفصیح سړی سره سي او مراد به یي پوره سي او که برج سرطان ویني نو دده کار به د بي اصله سړی سره سي او حاجت به یي پوره سي اوبزرګي او مرتبه به پیدا کړي اوکه برج سنبله ویني نودده کار به د بي وفا زمینداره سړی سره سي اومراد به یي پوره نسي اوکه برج میزان ویني نو دده کار به دقاضي سره سي او کومه وعده چي وکړي هغه به پوره کوي او که برج عقرب ویني نو دمفسد سړي یا دبد کاره ښځي سره به یي کار وي او ده ته به زحمت اوغم رسیږی اوکه برج قوس ویني نودده کار به دسردار او عزتمند سړی سره وسي او دده ضرورت به پوره سي اوخلک به دده سره مینه او محبت کوي او که برج حوت ویني نو دده کار به دغریب سړی ساده زړه نیك خیاله مهربانه او کم خبري کوونکي سړی سره وسي او دده مراد به پوره سي.

## پرى \ ښاپيرۍ

په اهل تعبير كي اختلاف دى بعض دوي ته دښمن وايي اوبعض وايي چي په بخت او فكرونو كي كاروايي ده، ابو هريره رضي الله عنه ويلي دى چي نبى صلى الله عليه وسلم ويلي دى چي په خوب كي ښاپيرى ليدل دولت اوبزرگي ده اودهغه په لاس كي لاس وركول او دهغه سره خبري كول دخوشحالۍ دليل دى. محمد ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دى چي ښاپيرۍ په خوب كي ليدل كه ښائسته او خوشحاله وي ددى دليل چي عزت اودولت به پيدا كړي او كه بد شكله اوغمگينه ښاپيرى ووينى نو دغم او فكر دليل دى اوكه ښائسته ښاپيرى مړه ووينى نو دده كار به بي خونده وي اوكه دښاپيرى سره جنگ وكړي نو ددي خبري دليل دا دي چي دده كار به دخفگان وي. ابراهيم كرمانى رحمة الله عليه ويلي دى چي بعضي ښاپيرى مسلماني وي دهغو په خوب كي ليدل ددوست بخت او دولت ديدار دى اوكوم چي كافري دى دهغو په خوب كي ليدل ددښمني بدبختي او دغم دليل دى. دانيال عليه السلام ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ځان ووينى چي دښاپيرۍ په منځ كي دى نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي اودغه سفر به يي مبارك سي. او كه ووينې چي ښاپيرۍ يې تر څټ نيولي ده او وړي يې ده نو دا دعزت مرتبي او بزرگي دليل دى او كه ووينې چي ښاپيرۍ پر څټ را غورزيدلي ده نودليل يي دا دي چي دعزت او مرتبي څخه به را ايله سي اوكه ووينې چي ښاپيرۍ په مهرباني سره خبري كوي نو دليل يي دا دي چي دده كاربه نيك وي او كه ښاپيرۍ په ښه كالو كي ووينې نو حال به يي نيك وي او كه په خرابو كالو كي يي ووينې نو حال به يي بد وي او كه ووينې چي ښاپيرۍ ورته دسروزو يا دسپينو زرو څه شي وركړيدى نودليل يي دا دي چي دولت اومرتبه به يي زياته سي. جابر مغربى رحمة الله عليه ويلي دى چي كه ښاپيرۍ ناجوړه يا مړه ووينې نودا دبد حالى دليل دى او كه ووينې چي دښاپيريو پاچا مهرباني باندي كړيده نودليل يي دادى چي دولت به پيدا كړي او پاچا ته به مقرب سي اوكه ووينې چي ښاپيرۍ ورته خپل كور ښوولي دى اوكله ورته ښكاره سي اوكله ځني پټه سي نو دليل يي دادي چي ښځه به ورسره خيانت اومكر كوي اوكه ووينې چي دښاپيريو كورته تللى دى اوهغه يي پيژندلي دى نودليل يې دا دي چي سفر به كوي اوډير ښارونه به ووينې. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دى چي د ښاپيرۍ ليدل په پنځو وجو دى ۱: خوږ ملگري ۲: بخت اودولت ۳: مراد پوره كيدل ۴: عزت او دبدبه ۵: درواغ خبره او بي فائدي كار.

## پرواز كردن \ الوتل

دانيال عليه السلام ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ووينې چي دمرغيو په ډول ځاي په ځاي الوزي نو دليل يي دا دي چي دلوړوالى مطابق به په سفر ځي او دزمكي څخه الوتل مرتبه اوشرافت پيدا كول دى او كه ووينې چي سيده آسمان ته ځي نودا نقصان دى اوكه ووينې چي دونه الوتلى دى چي آسمان ته رسيدلي دى اوپه هغه كي ورك سويدى اوبيا مځكه ته نه دى راغلي نودليل يي دا دي چي ددنيا څخه به ژر رخصت سي يعني مړ به سي. محمد ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دى چي كه څوك ووينې چي دقبلي دطرف څخه الوتلى دى اوبيا خپل ځاي ته راغلي دى

نو دلیل یي دا دي چي دسفر څخه به ژر واپس راسي اوډیره نفع به راوړي ا و خاصکر که وزري یي هم وي او که بغیر دوزورو الوزي نودلیل یي دا دي چي حال به یي بدل سي او که ووینې چي خپلې بالاخانې ته الوتې دی نودلیل یي دا دي چي ښځې ته به طلاق ورکوي اوبله ښځه به کوي یا به مینځه اخلي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي هوا تـه لوړ الـوتلي دی نو دا دحج دلیل دي اوکه ووینې چي دخپل کور څخه یونامعلوم کورته الوتې دی نودلیل یي دا دي چي دده مرګ نژدي سویدی ده ته پکار ده چي دګناهونو څخه توبـه وکاړي اوکه ووینې چي دده وزري ستـه لیکن دمرغیو دوزرو په ډول نه دي نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي او هلاکت ته به نژدي سي اوپه اخر کي به شفا پیدا کړي او که ووینې چي دیوځاي څخه بل ځاي ته الوزي نو دلیل یي دا دي چي نژدي ده چي سفر بـه وکړي جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي پـه خوب کي الوتل په پنځو وجو وي ۱: سفر ۲: حج ۳: بزرګي ۴: دحال بدلیدل ۵: دمرګ مرض دخدای پناه.

## بریان \ وریت سوی شی \ کباب

محمد ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي وریت سوي شی لیدل ددي خبري دلیـل دی چي خوب لیدونکي دفراخ روزي په تلاش کي دی او دیخ سوي غوبي تعبیر دکچه غوښو څخه غوره دی. کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوک ووینې چي ده دبوزي غوښه وریته سوي خوړلي ده نو دلیل یي دا دی چي هغونه مال به په تکلیف اوسختي سره حاصل کړي او که دغـوا غوښـه وریته سوي وخوري نو دلیل یي دا دي چي دخوف اوبیري څخه به په امن وي اوکـه ووینـې چي دبزې بچی وریت سوی خوري نو دلیل یي دا دي چي ده تـه بـه څه مال ملاو سي اوبعض اهل تعبیر بیان کوي چي په خوب کي دبزي بچی وریت سوي خوړل دزوی دپیدا کیدو دلیـل دی. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي وریت سوي سر خوري نو دلیـل یـي دا دي چي ده ته به دبزرګي څخه فایده ملاو سي اوکه ووینې چي وریت سوي چرګ خوري نو دلیل یي دا دي چي دښځي دطرف څخه به په مکر او فریب سره مال حاصل کړي اوکه وریت سوی ماهي وخوري نو دلیل یي دا دي چي دعلم دطلب دباره به سفر کوي اودیو بزرګ سره به ملاو سي کـه خوب لیدونکي نیك سړی وي نـو دا ورتـه دتکلیـف غـم فکـر او دښمن دلیـل دی اوتـازه وریت سوي ماهي تر زاړه غوره دی اوغټ تر وړوکي څخه غوره دی. او په خوب کي وریت سوي شیان خرڅولو والا داسي سړی دی دچا په وجه چي دنورو خلکو روزي فراخه وي.

## بزاز \ کالي خر څونکی

په خوب کي دکالو سوداګر لیدل ډیر خطرناکه سړی لیدل دی ځکه چي دکالو قیمت دینار او درهم وي چي ورکوي اواخلي یي او ددینار او درهم تعبیر مکروه او خطرناکه دی پـه کـوم کي چي خیر نسته اوکه دکالو په قیمت کي ددرهم اودینار څخه علاوه څه بل شي واخلي نو بیا پـه هغه شي سره ددی خوب دښه والي اوبدوالي تعبیر دی. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي کـه څوک په خوب کي ووینې چي دکالو سوداګري کوي او دکالو قیمت روپی او پیسي نه اخلي نو

دليل يي دا دي چي ده ته به غم اونقصان ورسيږي اوکه ويني چي دسامان په بدله کي سامان اخلي نو دليل يي دا دي چي مراد به ورته حاصل سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کي دکالو سوداګري ليدل ددنيا زينت دی.

## بز \ بوزه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي سرلی سړی دی او سرلۍ ښځه ده او که په خوب کي ويني چي نامعلومه بزه يي مړه کړيده نو دليل يي دا دي چي پر لوی سړی به فتح حاصله کړي او که ويني چي د بزې څخه يي پوست ايستلي دی نو دليل يي دا دي چي ډير مال به ورته حاصل سي اوهغه به جمع کوي اوکه ويني چي بزې غوښه خوري نو دليل يي دا دي چي مال به خوري اوکه ويني چي پر هغه سپور دی او ګرځي باندي نو دليل يي دا دي چي دلوی سړی سره به مکر اوفريب کوي اوچيري چي غواړي ګرځي به اوکه ويني چي بزې دخپلي شاڅخه را غورزولی دی نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي به دمرتبي اودبدبي څخه معزول کيږی اوکه ويني چي ده دبزې دواړه ښکرونه مات کړيدی نو دليل يي دا دي چي دغه سړی به دعمل څخه منع سي. اوکه ويني چي دبوزی ښکرونه غټ سوي او مضبوط سويدی يا په حساب کي زيات سوي دي نو دليل يي دا دي چي پخپل عمل اودسردار په عمل کي به قوي سي او په کارونو کي به کامياب سي اوکه په خوب کي ويني چي دبوزي ويښته زيات سويدی نودليل يي دا دي چي دده مال به زيات سي اوکه ويني چي هغه پشم يي اخيستي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په قدر به دخپل زوی مال اخلي اوکه په خوب کي ويني چي بوزه يي پيدا کړيده يا چا ورکړيده نو دليل يي دا دي چي ښځه به کوي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که ثوك په خوب کي ويني چي دبوزي څخه يي شيدي واخيستلي اوويي چيښلي نو دليل يې دا دي چي دښځي څخه به ورته مال حاصل سي. اوکه ويني چي بوزه يي حلاله کړيده او دهغه غوښه يي خوړلي ده نودليل يی دا دي چي دغه ښځي څخه به دهغه ضرورت پوره سي اوکه ويني چي بوزه يي دغوښي لپاره نه ده حلاله کړي نو دليل يي دا دي چي دښځي سره به نکاح کوي او دهغه څخه به فائده ونه ويني اوکه ويني چي بوزه يي دکور څخه ايستلي ده نو دليل يي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکړي اوکه ويني چي دبوزي ګنډك په کور کي ساتي يا په بل ځاي کي دی او په دي پوهيږي چي دا دده ملکيت دی نو دليل يی دا دي چي دهغو نه به ورته مال نعمت او غنيمت حاصل سي. اوکه ويني چي دبوزو کنډك يا رمې په ځنګل کي پيايي اوکوم ځاي ته چي يي وغواړي ځي نودليل يي دادي چي پرعربو ياپرعجمو به حاکم سي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که ثوك په خوب کي ويني چي دبوزي غوښه يي خوړلي ده نو دليل يی دا دي چي ناجوړه به سي او ژر به شفا حاصله کړي. دبوزو پوست پشم اوشيدي په خوب کي ليدل خير اوبرکت اومال دی چي ده ته به حاصل سي اوکه ويني چي دبوزو پچي چا ورته ورکړي دی يا يي پيدا کړي دی يا يي پخپله اخيستي دی نو دليل يي دا دي چي دده به مبارك زوی پيدا سي اوکه دبوزو بچي يي مړ کړيدی نودليل يي دا دي چي دده زوی به هلاک

سي او که وويني چي دبوزو دبچي غوښه يي خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي دزوی دمال څخه به څه خوري. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي سرلي په خوب کي دلښکر مقدمه ده او که سرلي يي پيدا کړي وي اوپر سپور وي نو دليل يي دا دي چي دا سړی به دلښکر مقدمه وی او که سرلي يي پيدا کړي وي او پر هغه سپور وي نو دليل يي دا دي چي دا سړی به دلښکر سردار سي او که خوب ليدونکي دعامو خلکو څخه وی نو دليل يي دا دي چي دده به دلښکر دسردار سره ملګرتيا جوړه سي او مالدار به سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي بوزه په خوب کي ليدل او دهغي غوښه خوړل مال جمع کول دی او بعض اهل تعبير بيان کړيدی چي ده ته به جمع سوي مال حاصل سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي بوزه په خوب کي ليدل او خوړل که خوندوره اوصحيح وي نو دخير اوفائدي دليل دی او که بي خونده وه نو دغم اوفکر دليل دی.

## بزر قطونا \ اسپيغول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي اسپيغول په خوب کي ليدل دغم اوفکر دليل دی او خوړل يې دخوړلو مطابق دمال نقصان او دغم دليل دی.

## بساط \ فرش

فرش په خوب کي ليدل خوشحالی اوراحت دی او که وويني چي فرش يي غوړولي دی او پر هغه ناست دی نو دليل يي دا دي چي روزي به يي فراخه سي اوعمر به يي ډير سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي وويني چي فرش پاك نوي غټ اوفراخ دي نو دليل يي دا دي چي دهغه نعمت او دولت به ډير سي خاصکر چي اوار وي او که وويني چي خپل فرش يي خرڅ کړي يا يي چاته بخښلي دی نو دليل يي دا دي چي دده په مال کي به نقصان وسي او که وويني چي دده فرش سوزلي دی نودليل يي دا دي چي پر ده به روزي تنګه سي اوحال به يي بد سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دفرش په خوب ليدل که غټ او نوي وي نو په شپږو وجو دی. ۱: عزت اومرتبه ۲: بزرګي او لوړوالي ۳: عهده ۴: مال ۵: ډير عمر ۶: دبزرګی مطابق تعريف او که دفرش قيمت واخلي نو تعبير يي ددي خلاف دی.

## بستر \ بستره

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي بستره په خوب کي ليدل ښځه ده اوددي دښه والي اوبدوالي تعلق دښځي سره دی که خوب وويني چي بستره يي په بلي بستري بدله کړيده يا ديوي بستري څخه بلي بستري ته تللي دی نو دليل يي دا دي چي دوهمه ښځه به کوي او اولنی ته به طلاق ورکړي او که وويني چي دده دبستري حالت بدل سويدی نودليل يي دا دي چي دهغي ښځي حالت به بدليږي او که وويني چي دده بستره دبل چا بستره سويده اودبل هغه دده بستره سويده او ددي څخه ښه يا خرابه ده، ددې دليل دی چي ښځه به کوي او اولني ته به طلاق ورکړي او که وويني چي خپله بستره يي خرڅه کړي يا راټوله کړيده نو دليل يي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکړي يا به غايبه سي يا به پدي دواړو کي يو مري. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي خپل ځان پر نامعلومه بستره وويني نو دليل يي دا دي چي دهغي دقدر او

قيمت مطابق به ده ته نقصان رسيږي او که ويني چي دده بستره پر نامعلومه کښ غوړيدلي ده او دي پر ناست دی نو دليل يي دا دي چي بزرګي اونفع به پيدا کړي اودښمن به مغلوب کړي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي بستره په خوب کي ليدل ولايت او اساني ده دالله تعالی فرمان دی (متكئين على فرش بطائنها من استبرق، سورة الرحمٰن: ٥٤) ترجمه: پر فرشونو باندي تکيه لګونکي وي چي په هغه کي دننه ريښم وي اوکه ويني چي بستره يي دکور څخه دباندي اچولي ده اوبيا يي کورته راوړي ده نو دليل يي دا دي چي خپلي ښځي ته به طلاق رجعي ورکوي. اوکه ځان په درو يا څلورو بسترو بيده سوي ويني نو دليل يي دا دي چي دبسترو په حساب به ښځي کوي يا به مينځي اخلي. او که خپله بستره په کورکي ويني يا يي په غارکي ويني چي دکوم ځاي څخه يي دباندي نه سي ايستلي نو دليل يي دا دي چي ښځه به يي ناجوړه سي او ددي دتکليف څخه به خلاصون پيداکړي او که ځان پر نرمه بستره بيده ويني نو دليل يي دا دي چي دغه کال به دده لپاره مبارك سي اوکه ويني چي دده بستره دپشم څخه ډکه ده نو دليل يي دا دي چي هغه به پائداره ښځه کوي. اوکه ويني چي دده بستره خيري سوي ده يا سوزلي ده نو دليل يي دا دي چي دده مرګ نژدي سويدی او دده اولاد ته به دين او ديانت او شرم نه وي. اوکه ويني چي دده دريښمو بستره په سوترو سره بدله سويده نو دليل يي دا دي چي بدکاره ښځه به ليري کړي اونيکه ښځه به وکړي اوکه ويني چي دده په بستره کي موږك بيده سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده ښځه به دچا سره نالائقه معامله وکړي اوهغه به په خرابی راضي سي او که دده بستره په هوا کي را زړيږي نو دليل يي دا دي چي دده بستره به پر لوړ ځاي اواره سي اودده شغل به لوړ سي اودولت به حاصل کړي اوکه ويني چي دده بستره دهوا څخه پر مځکه را ايله سويده نو دليل يي دا دي چي دده ښځه به ناجوړه سي او په اخر کي به شفا حاصله کړي. دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك خپله بستره شنه ويني نودليل يي دا دي چي ديندار او پرهيزګاره ښځه به کوي اوکه په خوب کي خپله بستره سره ويني نو دليل يي دا دي چي دده ښځه به ناموافقه اوبد خويه وي اوکه ويني چي دده بستره پخواني وه اونوي بستره پخواني سويده نودليل يي دا دي چي دده نيک خويه ښځه به بدخويه سي. اوکه ويني چي دده شنه بستره سره سويده نودليل يي دا دي چي دده ښځه به داصلاح څخه دفساد ته طرفته مائله سي اوکه ددي خلاف ويني نو ښځه به يي دفساد څخه داصلاح طرفته راسي. اوکه ويني چي دده سره بستره سپينه سوي ده يا ژړه سويده نو دليل يي دا دي چي دده ښځه به دګناه څخه توبه وکړي او ناجوړه به سي او ددي وجي څخه به ورته دمرګ بيره وي. اوکه ويني چي خپله بستره يي غوړولي ده او بالښت يي باندي ايښي دی نو دليل يي دا دي چي ښځه به کوي يا به خادمان او مينځي اخلي اوکه پرخپله بستره بالښتونه لګيدلي ويني نودا پر خادمانو دليل دی دالله تعالی فرمان دی (ونمارق مصفوفة، سورة الغاشية: ١٥) ترجمه او غالي قطار په قطار لګيدل سوي اوکه پر نامعلومه ځاي بستره ويني نو دليل يي دا دي چي مځکه به اخلي او يوه به پکښي کوي اواهل تعبير

بيان کوي چي وراثت به حاصل کړي. اوکه ويني چي پر بستره بيده سوي دي نودليل يې دا دي چي ارام او اسانتيا به حاصل کړي اوکه ويني چي په هوا کي يې بستره غوړولي ده اوبيده سويدی پکښي نودليل يې دا دي چي دښځي په وجه به مرتبه او بزرګي ويني اوکه ويني چي دده بستره ځيره سويده نو دليل يې دا دي چي دده ښځه به ناکاره وي او اهل تعبير بيان کوي چي ښځه به يې مړه سي. اوکه ويني چي پر بستره يې اور لګيدلي اوهغه سوزلي دی نودليل يې دا دي چي ښځه به يې مري يا به ورته طلاق ورکړي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي بستره ليدل په څلورو وجو ده ۱: ښځه ۲: مينځه ۳: ولايت ۴: ژوند نفع او دتن اساني.

## پست \ ستوان

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که څوک په خوب کي ويني چي ستوان خوري نودليل يې دا دي چي په هغونه اندازه غم اوفکر به لوړوي او که ويني چي چا ته يې ستوان ورکړي دی يايې خرڅ کړي دی نو دليل يې دا دي چي غم اوفکر به ځني ليري سي. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده سره ستوان دي اوهغه يې دکور څخه دباندي اچولي دي يا يې چاته بخښلي وي او دهغه څخه يې خوړلي نه ده نو دليل يې دا دي چي دغم څخه به خلاصون پيدا کړي.

## بستان افروز \ سره ګر دي ګلونه \ دګلونو بوټي

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي دګلونو بوټي ليدل واده دی ليکن په دين کي به وي اوکه په خوب کي ويني چي ګلونه يې اخستي دي يا چا ورکړيدی نو دليل يې دا دي چي هغه به خوشحاله کړي. ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي څوك په خوب کي دګلونو بوټي په خپل موسم کي ويني نو سرداري ده اوبعض اهل تعبير ويلي دی چي دګلونو بوټي سوداګره خوش طبعيته مالداره او ښائسته ښځه ده اوکه څوك په خوب کي ويني چي دګلونو بوټي په يو ځاي کي لګوي نو دليل يې دا دي چي دده ملګرتيا به دسوداګر سره وي اوکه څوك په خوب کي ويني چي دګلونو بوټي ديو ځاي څخه راباسي نودليل يې دا دي چي خوب ليدونکي به ديو سړی دملګرتيا څخه جلا سي.

## پستان \ تيونه

تي په خوب کي انجلۍ ده اوڅه چي په تيو کي کم يا زيات اصلاح اوفساد ويني هغه ټول پر انجليانو وارد کيږی اوکه په خوب کي ويني چي دده دتيو څخه شيدي جاري دی نو دليل يې دا دي چي دده پر انجليانو به نعمت اوروزي فراخ وي اوحلال مال به پيدا کړي. اوکه په خوب کي ويني چي دشيدو پر ځاي وينه بهيږي نو دليل يې دا دي چي حرام مال به پيدا کوي اوکه ويني چي تي يې تراندازي زيات را ځړيدلي دی نودليل يې دا دي چي لور به يې پيدا سي که سړي ويني چي دهغه په تيو کي شيدي جمع سويدی نوکه ښځه يې نه وي نونکاح به وکړي اوکه ښځه يې وي نومالدار به سي اوکه داسي خوب بوډي ويني نو دا دهغي دتنګ دستی دليل دی او که داسي خوب ځوانه ښځه ويني نو دليل يې دا دي چي په هغونه اندازه دهغي

عمر زيات سي اوكه انجلى يي ويني نودليل يي دا دي چي په كوچنيوالي كي به مړه سي. ابراهيم كرماني رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دى چي كه يو سړى په خوب كي ويني چي دبل سړي تيان روي نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي اوكه دهغه ښځه حامله وه نو زوى به يي پيداسي اوكه ښځه داخوب ويني چي دتيو څخه به شيدي چيښي نو دليل يي دا دي چي ددنيا كار به باندي بند سي. جابر مغربى رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دى چي په خوب كي دسړي تي دهغه ښځه ده او دښځي تيان دهغه انجلى ده اوكه ښځه په خوب كي ويني چي دهغه دتيو څخه لاندي بل تي پيدا سويدى نودليل يي دا دي چي لور به يي پيداسي اوكه سړي ويني چي دده دواړه تيان لوي سويدى نو دليل يي دا دي چي دهغه دزامنو حال به ښه سي يابه يي دلور واده سي. اوكه ويني چي ددواړو تيو څخه شيدي چيښي نودليل يي دا دي چي غم اوملامتيا به ورته حاصله سي اوكه ويني چي دتيو څخه يې شيدي نس ته ځي نو دليل يي دا دي چي نقصان به ورته وسي. اوكه ويني چي يو تي يي په اور كي سوزل سويدى نو دليل يي دا دي چي دهغه لور ته به دپاچاهى كار پيښ سي اوكه ويني چي دهغه پر تهول بدن تيان دي نودليل يي دا دي چي دهغه اهل او زامن به ډير سي اوكه زامن يي نه وي نو مال به يي زيات سي ليكن دخلكو څخه به ملامتيا ورته وسي او كه ښځه په خوب كي ويني چي هغه دتيو څخه را ايله سويده نودليل يي دا دي چي دهغي به حرامي زوى پيدا سي جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دى چي په خوب كي تيان ليدل په پنځو وجو دى. ۱: كوچني زامن ۲: لوني ۳: خادمان ۴: ملګري ۵: وروڼه.

## پستان بند \ سينه بند

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دى چي دښځي په خوب كي سينه بند ليدل عزت مرتبه اوكامراني ده او دسړو لپاره زخم غم اواندیښنه ده اوكه ښځه ويني چي تازه اونوى سينه بند ورسره دي نو دليل يي دا دي چي عزت مرتبه اومراد به حاصل كړي. اوكه ښځه ويني چي سينه بند ورسره دي نو دليل يي دا دي چي مال اونعمت به حاصل كړي اوخوشحاله به وي اوكه سړي ويني چي سينه بند ورسره دي نو دليل يي دا دي چي دبرابر والاوو څخه به رسوايي اونامردي ويني.

## پشت \ شا \ ملا

ابن سير ين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دى چي په خوب كي ملا ليدل دسړي طاقت، پناه اومدد طلب كول دى اوكه په خوب كي ويني چي دده ملا ماته سويده نو دليل يي دا دي چي كوم سړي دده پټ دښمن وو هغه به ددنيا څخه رخصت سي او كه ويني چي دده ملا ته زخم رسيدلي دي نو دليل يي دا دي چي دده معاون اومددګار ته به غم اوتكليف رسيږى ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دى چي دملا هډوكي طاقت اوزامن دي اوكوم صحيح والي اوخراب والي چي دملا په هډوكي كي وي دهغه تعبير دخوب ليدونكي زامن دي اوكه په خوب كي ويني چي دده ملا كلكه اوقوي ده نو دليل يي دا دي چي دده دزامنو بدنونه به قوي وي اوهوښياربه وي. اوكه په خوب كي ويني چي څه شي يي په شا كړيدى نو دليل يي دا دي چي دمړي دخلكو څخه به ده ته سخت محنت ملاويږي اوكه ويني چي دده ملا پيچل سويده نودليل يي دا دي چي دي به بدحاله سي. جابر

مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ددښمن ملا لیدل ددښمن دشر څخه امن دی او دښځي ملا لیدل ددنیا دګرځیدو دلیل دی. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ملا لیدل ورور دی اوکه ووینی چي ملا یي ماته سویده نودلیل یي دا دي چي دده ورور به مري اوکه ووینی چي ملا یي درد کوي نود لیل یي دا دي چي ده ته به دورور یا بزرګ دطرف څخه غم او فکر رسیږي اوکه په خوب کي په څه وجه دده پرملا داغ لګیدلي وي نو دا ددین اودنیا داصلاح دلیل دی اوکه ووینی چي ملا یي ددیوال طرف ته لګولي ده نو دلیل یي دا دي چي په سفر به ځي اومال او دولت به حاصل کړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کي ملا لیدل په دوولسو وجو ده ۱: قوت ۲: ورورولي ۳: ملګري ۴: پاچا ۵: وزیر ۶: صحبت ۷: پلار ۸: ورور ۹: هلك ۱۰: مال اودولت ۱۱: مدد کول ۱۲: نیکه. او اهل تعبیر بیان کوي چي دکافرانو لپاره ملا لیدل ایمان دی او دبد کارو لپاره توبه ده او دمنافق لپاره اخلاص دی.

## پشته \ غونډۍ \ ډیران

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي دي دځنګل پر غونډۍ یا دغره پر غونډۍ ناست دی نو دلیل یي دا دي چي دبزرګ سړی څخه به شرف اومرتبه حاصله کړي او ددغه بزرګ شرافت اومرتبه به ددونه مځکي برابره وي څونه چي دده خوا اوشاته ده اوکه ووینی چي پرغونډۍ ولاړدی نودلیل یي دا دي چي داسي سړی ته به نزدی سي دچا څخه چي به ورته مال اوعزت حاصل سي. اوکه ووینی چي دغه غونډۍ دچا ملکیت اوځاي دي نو دلیل یي دا دي چي یو لوی سړی به یي مغلوب کړي اودده مال اونعمت به واخلي او دده پر ځاي به مقیم سي اوکه ووینی چي ددغه غونډۍ څه حصه دده ملکیت دي نو دلیل یي دا دي چي په هغونه اندازه نعمت او بزرګي به حاصله کړي اوکه ووینی چي دغونډۍ څخه کښته را ایله سوی دی یا چا غورزولي دی نو دلیل یي دا دي چي دعزتمند سړی څخه به عزت اونقصان ووینی اوکه ووینی چي غونډۍ ته په مشکل اوتکلیف سره تللي دی نو دلیل یي دا دي چي غم اوفکر به ورته رسیږي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي غونډۍ لیدل په څلورو وجو ده ۱: لوړوالي ۲: مال ۳: قوت ۴: طاقت.

## پشم \ وړۍ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي پشم لیدل په ټولو وجو سره حلال مال او روزي ده او کومه وړۍ چي رنګ سوي نه وي هغه غوره اوښه ده اوکه ووینی چي وړۍ دده سره ده یا چا ورکړیده یا یي اخستي ده یا یي خپل ځاي ته راوړي وي نو دلیل یي دا دي چي په هغونه اندازه به ورته مال ملاو سي دالله تعالی فرمان دی (ومن اصوافها واوبارها واشعارها اثاثا ومتاعا الی حین، سورة النحل: ۸۰) ترجمه: وړئ اوویښتان سامان دی اوتر یو وخته پوري فائده ده. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي وړۍ دځان څخه لیري کوي نو دلیل یي دا دي چي خپل مال به ضائع کوي اوکه ووینی چي وړۍ سوزي نودلیل یي دا دي چي خپل مال به

تباه کوي. اوکه ويني چې دده پر بدن دوړې کالي دی نو دليل يې دا دي چې دښځو څخه به ورته مال ملاو سي اوکه ويني چې دوړيو يا دپمبوو کالي يې اخيستي دی يا دده سره دوړئې بستره ده نو دليل يې دا دي چې مالداره ښځه به کوي.

جابرمغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کي داوښ وړی مال دی چې دپاچا څخه به ورته ملاو سي اواهل تعبير وائي چې دوراثت مال دی.

## پشه \ غوماشه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چې غوماشه په خوب کی ليدل يو ذليل اوخوار سړی دی چې وران او ذليل کار کوي. اوکه ويني چې دغوماشي سره جنګ کوي نو دليل يې دا دي چې دکمزوري سړی سره به جنګ کوي اوکه ويني چې غوماشه يې تيره کړيده نو دليل يې دا دي چې د ذليل سړی سره به په ذليل کار کي مشغول سي اودهغه څخه به ورته لږ شي حاصل سي. اوکه په خوب کي ويني چې ډيري غوماشي دده پر بدن جمع سويدی اودي چيچي نودليل يې دا دي چې دعامو خلکو پر ژبه به ورخيږي او دهغوی څخه به ورته نقصان وسي او ده ته به ضرر اوسخت نقصان رسيږي څکه چې غوماشي دسړی وينه چيښي. اوکه په خوب کي ويني چې غوماشي دده په غوږ يا پوزه کي ننوتلي ده او ددي څخه ورته تکليف رسيدلي دي نو دليل يې دا دي چې ده ته به دکمزوري سړی څخه غم او تکليف اوضرر رسيږي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك په خوب کی ويني چې ډيري غوماشي دده کورته راغلي دی نو دليل يې دا دي چې ده ته به غم اوفکر ورسيږي اوکه ويني چې غوماشي زياتي سوي دی او دده په کورکي جمع سوي دی نودليل يې دا دي چې پرکمزوري دښمن به فتح حاصله کړي. اوکه څوك په خوب کي ويني چې غوماشي دده پوزي ته ورننوتلي ده او د دباندي څخه راوتلي ده نودليل يې دا دي چې په محنت اوبلا کي به ګرفتار سي.

## بطه \ هيلۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې بطه په خوب کي ليدل دمال اونعمت دليل دی خاصکر که دخپل کور او خپل ملکيت سره يې ويني نو دهغه په قدر به فراخي حاصله کړي اوکه ويني چې ډيري بطی دده په کور يا کوڅه کي جمع کيږي اوخبري کوي نودليل يې دا دي چې په دغه ځاي کي به افت اومصيبت راسي اوکه ويني چې بطي دده سره خبري کوي نودليل يې دا دي چې دمالداري ښځي په وجه به سفر کوي او په هغه کي به عزت اوفائده پيدا کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کي بطه ليدل دکور والاو څخه يو عزتمند مالدار اودبدبي والا سړی دی اوکه ويني چې دهغه څخه يې څه حاصل کړي دی نو دليل يې دا دي چې ددغه صفت والا سړی څخه به څه حاصلوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کي سپينه بطه ليدل مال وي يا مالداره ښځه وي او توره بطه په خوب کي ليدل مينځه وي او که په خوب کي ويني چې بطه يې مړه کړيده او دهغه غوښه يې خوړلي ده نودليل يې دا دي چې دښځي مال به په وراثت کي حاصل کړي اوضائع به يې کړي.

## بغل \ تخرګ

ابن سيرينؒ ويلي دی چي په خوب کي تخرګ ليدل ملامتيا اوبدي ده چي ده ته به ورسيږي او دتخرګ وينته په خوب کي ليدل دمراد حاصلولو اوپر دښمن دغلبي حاصلولو دليل دی. ابراهيم کرمانی ؒ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده دتخرګ څخه بد بوی راځي نو ددي خبري دليل دا دي چي خوب ليدونکي به حرام مال حاصلوي. او بدي ده چي ده ته به ورسيږي او دتخرګ وينته په خوب کي ليدل دمراد حاصلولو او پردښمن دغلبي دليل دی. ابراهيم کرمانی ؒ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده دتخرګ څخه بدبوی راځي نو ددي خبري دليل دا دي چي خوب ليدونکي به حرام مال حاصلوي. محمد ابن سيرين ؒ ويلي دی چي په خوب کي تخرګ ليدل ملامتيا اوبدي ده چي ده ته به ورسيږي او دتخرګ وينته په خوب کي ليدل دمراد حاصلولو او پر دښمن دغلبي حاصلولو دليل دی. ابراهيم کرمانی ؒ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده دتخرګ څخه بدبوی راځي نو ددي خبري دليل دا دي چي خوب ليدونکي به حرام مال حاصلوي. جابر مغربی ؒ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده دتخرګ څخه ډيره بدبويي راځي نو دليل يي دا دي چي حرام مال به پيدا کوي. اوکه ويني چي ترتخرګ لاندي لاسونه ساتي نو دليل يي دا دي چي دښمن به مغلوب کړي اومال به حاصل کړي دالله تعالی فرمان دی (واضمم يدك الى جناحك تخرج بيضاء، سورة طٰهٰ: ۲۲) ترجمه: خپل لاس په تخرګ کي ننباسه سپين به را ووزي اوبعض اهل تعبير بيان کوي چي دمروت اودځوان مردۍ دليل دی اوکه ويني چي دده په تخرګ کي څه نقصان نسته نودليل يي دا دي چي ده ته به په مشکله مال ملاو سي. اوکه ويني چي دتخرګ څخه يي خولې بهيږي نو دليل يي دا دي چي دخولو داندازې مطابق به يي نقصان وسي.

## بقالي کردن \ سبزي خر څول

ابن سيرين ؒ ويلي دی چي په خوب کی سبزي خرڅول په کارونو کي کوشش او دژوند لپاره شيان حاصلول دی اوکه ويني چي سبزي خرڅوي نو دليل يي دا دي چي ددنيا په کاروبار او کسب کي به مشغول سی اوڅه چي لري په هغونه اندازه به ددنيا سامان حاصلوي. ابراهيم کرمانی ؒ ويلي دی چي که ويني چي سبزي په روپۍ سره خرڅوي نو دا دغم اوفکر دليل دی ځکه چي دروپۍ تعبير دغم اوفکر دی. جعفر صادق ؒ ويلي دی چي په خوب کي سبزي خرڅول په دريو وجو وي ۱: کسب کول ۲: نفع ۳: غم اوفکر که چيري سامان دروپۍ په بدله کي خرڅوي.

## پلانګيني \ لينده

ابن سيرين ؒ ويلي دی چي په خوب کي په لاس کي دليندی لرلو دليل دا دي چي ده ته به دچا څخه قوت اومدد نه وي اوکه په خوب کي ويني چي لينده يي دنرم لرګي څخه تراش کړيده نو ددي تعبير داولني تعبير څخه خلاف دی.

## پلاس \ غټه ډبله کپړه

په خوب کي ډبله کپړه ليدل مصلح فقير پرهيزګار دچا کاروبار چي ددينداری وي اوامانت داره سړی دی اوکه په خوب کي ويني چي پنډي کپړي يي اغوستي دي نو دليل يي دا دي چي دده به دپرهيزګار سړی سره دملګرتيا اتفاق کيږي او دهغه څخه به داخرت خير او نفع حاصله کړي اوکه ويني چي دده سره ډيري پنډي کپړي دي نو حلال مال دی اوکه په خوب کي ويني چي دده سره نوي پنډي کپړي دی نو دليل يي دا دي چي پرهيزګاره او مالداره ښځه به وي او دهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي اوکه ويني چي نوي کالي يي اغوستي دی نودليل يي دا دي چي پرهيزګاره مينځه به اخلي اودهغه څخه به ورته خير اونفع حاصل سي.

## بلبل ديدن \ بلبل ليدل

ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي بلبل ليدل عقلمند زوی اوغلام دی او په خوب کي دده اواز دخوشحالی خبري وي اوکه په خوب کي ويني چي بلبل الوتي دی نو دليل يي دا دي چي دده زوی يا غلام به ضائع سي اوکه په خوب کي ويني چي بلبل دده په لاس کي مړ سوي دی نودليل يې دا دي چي دده زوی يا غلام مري جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده سره ډير بلبلان وي نو دليل يي دا دي چي هغونه غلامان به اخلي اوکه په خوب کي ويني چي بلبلان يي مړه کړيدی او دهغه غوښه يي اخيستي ده نودليل يي دا دي چي په وراثت کي به ورته ډير غلامان ملاو سي.

## بلبله \ کوزه

ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کوزه ليدل مينځه ده. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کوزه دهغه ښځه ده اوکه په خوب کي وينی چي کوزه يي واخسته يا چا ورکړيده نو دليل يي دا دي چي مينځه به اخلي يا به ښځه کوي اوکه ويني چي ددغه کوزي څخه اوبه چيښي نو دليل يي دا دي چي دښځي سره به جماع کوي او که په خوب کي ويني چي کوزه ماته سويده نو دليل يي دا دي چي دده ښځه يا مينځه به مري.

## حکايت

دابو خلده څخه روايت دی، دی وايي چي زه دمحمد ابن سيرين رحمة الله عليه په خدمت کي حاضر وم چي هغه ته يو سړی راغلي اوبيان يي وکړي چي ماخوب ليدلي دی چي دکوزي څخه اوبه چيښم اودهغه دوې خلي دی ديوي خوا څخه يي خوږي اوبه چيښم اودبلي خوا څخه ترخي دوی ددي په تعبير کي ارشاد وفرمايي چي ستا سره ښځه اودهغه خور دواړه دی اوته ددواړو سره جماع کوي توبه وباسه اودخداي څخه وبيرېږه هغه سړی وويل چي ستا حکم پر ځاي دی ما توبه وايسته او دالله تعالی طرف ته يي رجوع وکړه.

## بلغم ديدن \ بلغم ليدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي بلغم په خوب کي ليدل مال دی اودده په ښه والي کي به مال خرڅوي اوکه څوك په خوب کي ويني چي ځاي پر ځاي بلغم غورزوي نو ددي تعبير داولنی

خلاف دی اوکه ووينې چې دمرۍ څخه يې بلغم پرپاك ځاى غورزولى دى نو دليل يې دا دى چې په صحيح ځاى به مال خرچوي. ابراهيم كرمانى رحمه الله ويلي دي چې كه ناجوړه ووينې چې ده بلغم غورزولى دى نو دليل يې دا دى چې دناجوړۍ څخه به شفا حاصله كړي اوكه ووينې چې تور بلغم يې غورزولى دى نو دا دغم اوفكر دليل دى اوكه په بلغم كې وينه ووينې نودليل يې دا دي چې دده دمال دڅه حصې نقصان به وسي اوكه ووينې چې بلغم يې پخپل كوركې دننه غورزولى دى نو دليل يې دا دي چې مال به خرچ كوي.

## برگ \ پاڼه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب كې ددرختو پاڼې ليدل ددرختو مطابق دهغه اخلاقو دليل دى خاصكر كه پخپل موسم كې ووينې اوكه ووينې چې ددرختو پاڼې يې په موټې كې نيولې دي نودليل يې دا دي چې خوب ليدونكې خوش اخلاقه اونيك دى. ابراهيم كرمانى رحمه الله ويلي دي چې كه څوك په خوب كې ووينې چې ددرختې تازه پاڼې يې اخيستې دي نودليل يې دا دي چې په هغونه اندازه به ورته درهم ملاو سي. جابر مغربى رحمه الله ويلي دي چې په خوب كې دهغه درختې پاڼې ليدل دكومې ميوې چې خوړې وي دنيك خوئى دليل دى اودتروو ميوو والا درختې پاڼې په خوب كې ليدل دبدخويى دليل دى اود هغو درختو پاڼې ليدل كومې چې ميوې نه نسي پر درهم اودينار دليل لري اواهل تعبير بيان كوي چې كه دميوه داره درختو پاڼې په خوب كې ووينې نو ددرهم او دينار ملاويدو دليل دى.

## پلنگ \ پړانگ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب كې پړانگ قوي اومضبوط دښمن دى اوكه څوك په خوب كې ووينې چې دپړانگ سره جنگ كوي نو دخپل دښمن سره به جنگ كوي او دښمن ته به غلبه او فتح وي. يعني كه پړانگ پرده غالب سو نو دښمن به باندې غالبه سي اوكه دى پر پړانگ غالب سو نو دى به پر دښمن كاميابى حاصله كړي اوكه په خوب كې ووينې چې دپړانگ غوښه خوري نو دليل يې دا دي چې په جنگ كې به راسي او په اخر كې به فتح حاصله كړي او شرافت اوبزرگي به حاصله كړي. اوكه په خوب كې ووينې چې زمرى پړانگ خوري نودليل يې دا دي چې ددښمن څخه به ورته بيره ورسيږي اونتيجه به يې امن وي اوكه په خوب كې ووينې چې دپړانگ پوست يا هډوكې يا ويښته ده اخيستې وي يا بل چا وركړيدى نو دليل يې دا دي چې په هغونه اندازه كې به ددښمن مال حاصل كړي اوكه څوك په خوب كې ووينې چې پړانگ يې مړ كړيدى نو دليل يې دا دي چې داسلام څخه به مخ اړوي او ده ته به څه خير نه وي جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چې په خوب كې پړانگ ليدل په دريو وجو دى ۱: قوي دښمن ۲: ددښمن څخه مال حاصلول ۳: دپاچا بيره.

## بلور \ د شيشي كاڼي

دشيشي كاڼي په خوب كې بې اصله ښځه ده اوكه ووينې چې دده سره دشيشي كاڼي دى يا چا وركړيدى نودليل يې دا دي چې بې اصله ښځه به كوي. اوكه څوك به خوب كې ووينې چې دده

سره دشیشي کاڼي دي یا ورك سویدی نودلیل یي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکړي یا به دده ښځه پخپله غائبه سي اوکه څوك په خوب کي ووینی چي دده سره ډیر دشیشي کاڼي دي نودلیل یي دا دي چي دښځو په وجه به مال حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دشیشي کاڼي خرڅوي اوپه بعضوکي سوري دی اوپه بعض کي سوري نسته نو دلیل یي دا دي چي دکونډو ښځو او دبي اصله پیغلو انجلیو دلالي به کوي.

## بلوط \ د څیړۍ درخته

بلوط یوه غرنۍ درخته ده ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دڅیړۍ درخته لیدل حلاله روزي ده هرڅونه چي وخوړل سي هغومره. اوکه څوك په خوب کي ووینی چي دده په کور کي دڅیړۍ ددرختو غونډۍ لګیدلي دی نودلیل یي دا دي چي په دغه کال به ډیر مال اونعمت حاصل کړي اوکه ووینی چي دڅیړۍ درختي دده ملکیت دی اودبل چا په کور کي دی نودلیل یي دا دي چي خلک به خپل مال دده سره دامانت په طور ږدي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دڅیړۍ درخته لیدل په درو وجو ده ۱: حلاله روزي ۲: نفع ۳: ښه کار.

## پلیته \ بتۍ

حضر ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي بتۍ بلوونکي حاکم دی چي خلک پر ګیرچاپیره وی اودده خدمت به کوي اوکه بتۍ بله نه وي نوددي تعبیر داولني خلاف دی.

## بناګوش \ د غوږ پوستکی

دغوږ پوستکی په خوب کي لیدل ښائسته اومبارك هلک دی او دوه پوستکي دوه هلکان دی ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي دغوږ پوستکی په خوب کي لیدل دقدر او مرتبي دلیل دی او دغوږ په پوستکي کي کمي اوزیاتي لیدل دخوب لیدونکی پر قدر اومرتبي دلیل دی جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دغوږ پوستکی لیدل په څلورو وجو دی ۱: ښائسته هلك ۲: قدر اومرتبه ۳: سموالی ددین ۴: دزوی په وجه نفع.

## پنبه \ مالوچ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي څونه پنبه ووینی هغونه حلال مال دی او په خوب کي دپنداني لیدل هم پر مال اودولت دلیل دی کوم چي به خوب لیدونکي ته په اسانی سره بغیر دتکلیف اومحنت څخه حاصل سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي پمبه لیدل په درو وجو ده ۱: حلال مال ۲: فائده ۳: دپردي کیدل.

## پنبه دانه \ د پمبي تخم

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دپمبي تخم جنګ کوونکي اوبیهوده سړي دی.

## بنجشک \ مرغۍ

دانیال علیه السلام ویلي دي چي په خوب کي مرغۍ لیدل قدرمن او مرتبي والا سړی دی که پرهیزګاره وي اوکه نه وي او که ووینی چي مرغۍ یي په دام اوحیلي سره نیولې ده نو دلیل یي دا دي چي د بي قدره سړی سره به مکر اوچم کوي اوهغه به مغلوبه کوي. اوکه ووینی چي مرغۍ یي نیولي

ده نودليل يي دا دي چي قدر منه ښځه به پر ده کامیابه سي اوکه ويني چي ددي غوښه يي خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي دخوړل سوي غوښي مطابق به دي سړی ته مال ملاو سي او که ويني چي مرغی يي دهغه دځالي څخه را ايستلي ده نو دليل يي دا دي چي غم اوملامتیا به ورته حاصله سي. محمد بن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دمرغۍ بچي يي ښکاره کړيدی او دهغه ستونه يي مات کړيدی او په جولۍ کي يي اچولي دی نو دليل يي دا دي چي دماشومانو معلم به سي اوهغوی ته به په لښتو سزا ورکوي. او که ويني چي سره مرغۍ يي ښکار کړيده نو دليل يي دا دي چي ژړ رقمه ناجوړه ښځه به کوي. او اهل تعبير بيان کوي چي په خوب کي مرغۍ پيداکول زوی یاغلام دی او که ويني چي دده سره ړنده مرغی ده نودليل يي دادي چي دخراب اوحريص سړی سره به محبت کوي او وايي چي په خوب کي مرغی پيداکول دفقير سړی لپاره ښيږ درهمه دی او دمالدار سړي لپاره شپږ زره درهمه دی چي اوبه يي حاصلي کړي دی او په خوب کي دمرغی ځالګي ليدل خير نرمي او امن دی اوکه ويني چي دمرغۍ بچي يي دکور څخه را ايستلي دی نودليل يي دا دي چي دده به حلال اوحرام زامن وسي. اوکه په خوب کي ويني چي مرغی اواز کوي او دهغه اواز يي اوريدلي دی نو دليل يي دادي چي دحيرانتيا خبری به واوري اواهل تعبير بيان کوي چي په خوب کي دمرغيو اواز تسبيح دی اوکه ويني چي ده ته ډيری مرغۍ حاصلي سوي دی نودليل يی دا دي چي ديو قوم سردار به سي اوډير مال به حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي يوه مرغی ويني نو زوی دی اوکه ويني چي ډيري مرغی خبري کوي نو دليل يي دا دي چي دشور کونکو خلکو سره به يي کار وسي اوکه څوك په خوب کي ويني چي په خوله کي يي مرغی نيولي ده اوتيره کړي يي ده نودليل يي دا دي چي زوی به يي وسي اوکه په خوب کي ويني چي چا ورته ډيري مرغی بخښلي دی نو دليل يي دا دي چي په هغونه اندازه مال به حاصل کړي اوکه ويني چي مرغی يي مړه کړيده يا دده په لاس کي مړه سويده نودليل يي دا دي چي نقصان به ورته ورسيږي اوزوی به يي مړ سي اوکه ويني چي دمرغی ځالګي يي اخيستي ده نودليل يي دا دي چي دده زوی به په ځنګل کي پيداسي او دغټ وجود والا به وي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي مرغی په خوب کي ليدل په نهو وجو ده ۱: پاچا ۲: مال ۳: بزرګ ۴: ښائسته غلام ۵: قاضي ۶: سوداګر ۷: غل ۸: جنګ مار سړی ۹: دجماع لپاره حرص ناکه سړی.

## حکايت

ابوخلده بيان کوي چي يو واري زه دمحمد بن سيرين رحمة الله عليه په خدمت کي حاضر وم چي يو سړی راغلي اوهغه خپل خوب بيان کړي چي ما ليدلي دی چي زما په لستوڼي کي ډيری مرغی دی او زه دهغو څخه يوه يوه راباسم او حلالوم يي اوکلمۀ شهادت وايم او دوي ځاه ته اچوم ددي خوب تعبير څه دی؟ ابن سيرين رحمة الله عليه پوښتنه ځني وکړه چي ستا کور په کوم ځاي کي دی هغه په جواب کي وويل چي په فلانکي محله اوفلانکي کوڅي کي دی دوی وويل چي زما

ترراتلو پوري ته دلته يو ساعت کښينه دوي ولاړه اودوخت پاچا تـه ورغلـه اوهغـه تـه يـي ټول حالات وويل چي يو سړی دخلکو په نقصان کي لګيا دی بيا دوي دپاچا عسکر دهغه کورتـه بوتلل او دهغه دکور تلاشي يي واخيسته دوی وليدل چي تقريبا پنځوس کسان يي مړه کړيدی او ځاه ته يي اچولي دی معلومه سوه چي دغه سړی به خلک به يوه بهانه کورته بوتلل او دهغـه ځخه به يي مال واخيستي مړ به يي کړي او ځاه ته به يي وغورځوي پاچا وويل چي داسړی دی قصاص سي او خلک ددي خوب په تعبير ډير حيران سوه. په خوب کي دمرغـی تعبير ورکوټي بچي دی اوددي نيك او بد تعبير به پر ورکوټي بچي واقع کيږی.

## پند دادن \ نصيحت کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوک په خوب کي ويني چي نيک سړی تـه نصيحت کوي په کوم کي چي ددين اودهغه داخرت خلاصون دی نو دا پر زيري دليل دی چي په دي کي ددين او دنيا خير دی اوکه ددي خلاف ويني نو ددين او ددنيا دفساد اوتباهی دليل دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي چاته نصيحت کوي په کوم کي چي دده ددين اصلاح ده ښه دي او نصيحت کونکي مقربه فرښته ده چي ده ته دخيرات زيري ورکوي چي ده ته به حاصل سي ددي لپاره چي شکريه ادا کړي او داسي نصيحت چي په هغه کي ددين فسادوي داسي نصيحت کوونکي شيطان ترټل سوي وي چي ده ته دفساد اوتباهی خبر ورکوي په داسي موقع باندي توبه او الله تعالی ته رجوع کول پکار وي ددي لپاره چي دهغه دشر اوفساد ځخه يي الله تعالی حفاظت وکړي او دالله تعالی دعذاب ځخه خلاصون حاصل کړي.

## بندنهادن \ بيړۍ اچول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي په پښو کي دبيړئ ليدل دليل دا دي چي دده په دين کي خلل دی اودي داسلام په درواغو دعوه کوونکي دی او بخيل دی چي چا تـه دده ځخه فائده نسته اوبعضي اهل تعبير بيان کړيدی چي که نيك سړی پخپل لاس کي هتکړۍ ويني نو دليل يي دا دي چي دخراب اوناکاره کار ځخه به منع سي او که هتکړۍ دلرګي ويني نو ځه چي بيان سوي دی کم او اسان به وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوک پـه خوب کي پخپله مرۍ کي دلرګي بيړئ ويني نودليل يي دا دي چي دده پـر ذمـه امانت دی چي ده نـه دي ادا کړي اوکه دلرګي بيړي پخپله پښه کي ويني نو دليل يې دا دي چي د اطاعت دحق ځخه بـه منع سي اوکه په سفر کي وي نو په سلامتی سره به بيرته راسي. اوکه پخپله مرئ کي دسپينو زرو هتکړي ويني نودليل يي دا دي چي ده تـه بـه دښځي پـه وجه غم اوتکليف رسيږي اوکه ويني چي دده هتکړي دسروزرو ده نو دده غم اوتکليف بـه دمال پـه وجه وي اوکه داوسپنی هتکړي ويني نو دده دغم وجه به کار او ژوند وي او که ويني چي ده هتکړي ماته کړيده نو دا دده په دين کي دخلل وجه ده او خاص به يې دلاس هتکړي ماتـه کـړي وی اوکـه وينـي چي دده دپښو ځخه چا بيړی وړي ده نو دليل يي دا دي چي دپاچا دنوکري ځخه به خلاص سي اوکه پـه خپلو پښو کي بيړي ويني نو دليل يي دا دي چي دده ملګرتيا بـه دمنافق سړي سره وي اوکه

خپلي پښي په رسی. سره تړل سوي ووینی نودلیل یې دا دي چې ده ته به دچا څخه فائده وي. دانیال علیه السلام ویلي دی چې که مالدار سړی ووینی چې دده په پښو کي بیړۍ پرتي دی نو دلیل یې دا دي چې دخپل وطن څخه به په سفر ځي او په هغه کي به اوسیږي اوکه څوك ووینی چې دده په دواړو پښو کي بیړۍ پرتي دی نو دلیل یې دادي چې ولایت به حاصلوي او که ووینی چې په پښو کي یې څلور بیړی پرتي دی نو دلیل یې دا دي چې دده به څلور زامن وسي اوکه ووینی چې دپښو څخه یې بیړي ایستلي دی نودلیل یې دا دي چې دغمونو څخه به خلاصون حاصل کړي او که مالدار ووینی چې دده پښي په بیړیو او زنجیرونو کي دی نودلیل یې دا دي چې ده ته به دعیسایانو څخه نفع وي. اوبعضي اهل تعبیر بیان کوي چې دده کار به اسانه سي او که ووینی چې دده هتکړي داوسپنی دي نودلیل یې داد ی چې دښځي سره به نکاح کوي یا به پر ښځه عاشق سي اوکه ووینی چې دده هتکړي دسروزرو دي نو دلیل یې دا دي چې په سفر به ځي یا به ناجوړه سي اوکه ووینی چې هتکړي یې داوسپني دی نو دلیل یې دا دي چې په لیري سفر به ځي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کي بیړۍ لیدل ددین دثابت والي دلیل دی ځکه چې حضور صلی الله علیه وسلم ویلي دی (احب القید فی النوم ولا احب الغل لان القید ثبات فی الدین) ترجمه: زه په خوب کي دپښو قید غوره کوم او دځټ قید نه غوره کوم ځکه چې دپښو بند په دین کي ثابت قدمي ده. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې دبیړۍ په خوب کي لیدل په څلورو وجو دی. ۱: کفر ۲: نفاق ۳: بخل ۴: په لاس سره ګناه منع کول. اوبعضو اهل تعبیر بیان کړیدی چې په خوب کي په لاسونو کي هتکړي لیدل ددي خبري دلیل دي چې دظالم پاچا لاس به دظلم څخه منع کوي.

## بنده \ غلام

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك په خوب کي ووینی چې نابالغ غلام دی چې هغه بالغ سوي دی نو دلیل یې دا دي چې ازاد به سي اوکه ووینی چې خپل غلام یې ازاد کړي دی نو دلیل یې دا دي چې ژر به ددنیا څخه رخصت سي. اوکه غلام ووینی چې خپل سردار یې خرڅ کړي دی نو دلیل یې دا دي چې محتاج اوغمناکه به سي اوکه سردار ووینی چې غلام یې اخیستي دی نو دلیل یې دا دي چې خوشحاله به سي.

## بنفشه \ یو قسم ګل دي

محمد بن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کي پر موسم بنفشه لیدل ددې دلیل دي چې دښځي یا دمینځي څخه به ورته څه ملاو سي یا به یې هلک وسي او که دا دخپلي درختي څخه جلا ووینی نو دلیل یې دا دي چې دغه سړی به غمناکه او فکرمند سي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چې که ښځه ووینی چې بنفشه یې ایستلي ده اوخپل خاوند ته یې ورکړیده نو دلیل یې دا دي چې خاوند به ورته طلاق ورکړي اوکه ووینی چې چاورته دبنفشه دسته ورکړي ده نو دلیل یې دا دي چې په هغو کي به جدایي راسي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کي دبنفشي درخته بدخویه او ناموافقه ښځه ده.

## بنیاد نهادن \ بنیاد ایښودل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي کـه څوک پـه خوب کـي ووینـي چي ده نـوي بنیـاد ایـښي دی نودلیل یي دا دي چي هغونه به دخاصو اوعـامو څخه فائده ووینـي اوکـه پرنامعلومـه ځـاي یـي بنیاد ایښي وي اومعلوم ورته نه وی چي دچا ملکیت دی نودلیـل یـي دا دي چي ددیـن اودنیـا کار به یي بي فائدي وي اوکه ووینـي چي بنیاد یي په خپل ملکیت کي ایښي دی نو دلیل یي دا دي چي دحلال رزق فائده به لوړوي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي کـه څوك ووینـي چي بنیاد یي دپخو خښتو او چوني څخه ایښي دی نو دلیل یي دا دي چي ددیـن پـه کـار کـي بـه دده مرتبه لوړوالي سي اوکه ووینـي چي دپخو خښتو بنیاد یي ایښي دی اولوړ کړي یي دی نو دلیل یي دا دي چي ددنیا پـه کارونو کي به مشغول سي. اوکه خوب لیدونکي پخپله بنیـاد ایـږدي او مزدوري اخلي نو دلیل یي دا دي چي نفع به حاصله کړي اوکه ووینـي چي دپخو خښتو بنیاد یي ایښي دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا څخه به فائده اخلي اوکـه ووینـي چي بنیـاد یـي دکچـي خښتو اوختو څخه جوړ کړي او لوړ کړي دی نودلیل یي دا دي چي دعامو خلکو څخه بـه فائـده حاصله کړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینـي چي ده ښار جوړ کړیـدی نودلیـل یي دا دي چي دخلکو ټولګي به په خپله پناه ګیري کي واخلي اوکه ووینـي چي قلعـه یـي جـوړه کړیده نو دلیل یي دا دي چي ددنیا په کار کي بـه مـشغول سـي اوکـه ووینـي چي کـور یـي جـوړ کړیدی او پـه هغه کي ناست دی نو دلیل یي دا دي چي دفائدي شي به ووینـي. اوکه ووینـي چي جماعت یي جوړ کړیدی نو دلیل یي دا دي چي خلک به داصلاح په کار کي راولي اوکه ووینـي چي دمناري بنیاد یي ایښي دی نودلیل یي دا دي چي دده نوم به په خیرات کي ښکاره سي اوکه ووینـي چي نقشي شي یي جوړ کړي دی نودلیـل یـي دا دي چي ښـځه بـه کـوي اوکـه ووینـي چي حمام یي جوړ کړیدی نودلیل یي دا دي چي په تکلیف اوغم کي به راسي. او که ووینـي چي بـاغ یي جوړ کړیـدی نـو دلیـل یـي دا دي چي پرهیزګـاره اومالداره ښـځه بـه کـوي اوکـه ووینـي چي قبرستان یي جوړ کړیدی نو دلیل یي دا دي چي داخرت پـه کارکي به مـشغول سـي اوکـه ووینـي چي قبه یي جوړه کړیده نودلیل یـي دادي چي دقـدر اومنزلـت تـلاش بـه کـوي اوکـوم بنیـاد چي ووینـي چي تیار کړي یي دی نو دلیل یـي دا دي چي ددنیـا اودیـن کـار بـه پـوره کـړي اوکـه هغـه نیمګړي پریږدي نو دده کار به نیمګړي وي.

## پنیر

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي وچ پنیر لږ مال دی چي دسفر څخه به حاصل سي او تازه پنیر ډیر مال دي چي په سفر کي به ورته حاصل سي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي تـازه پنیر مال اونعمت دی چي په اساني سره به ورته حاصل سي اوخشك پنیر لږ مال دی چي دسفر څخه به ورته حاصل سي اوکه څوك په خوب کي ووینـي چي پنیر دډوډئ سره خوري نو دلیل یي دا دي چي ده ته به په سفر کي لږ مال غم اوفکر حاصـل سي. اوبعـضي اهـل تعبیـر بیـان کړیـدی چي ده ته به ناجوړي ورسیږي اوډیر ژر به خلاصون ځني پیداکړي.

## بهی \ بهی (يو ډول ميوه)

دبهي تخم بهيدانه ده په خوب کي دبهي په تعبير کي داستادانو دفن اختلاف دي بعضو ويلي دی چي دبزرګ سردار سره به ملاوسي او دهغه څخه به خير اونفع ويني اونيك تعريف به اوري او بعضو ويلي دی چي دبهي ليدل زوی دی اوبعضو ويلي دی چي نا جوړه به سي او چاچي ددي تعبير ناجوړي ښوولي ده دارنګه وايي چي دده ژړ رنګ دناجوړي دليل دی اوڅوك چي وايي چي اوږد سفر به يي دجسماني تکليف سره وي دهغوئ دليل دادی چي جبرئيل عليه السلام ادم عليه السلام ته دجنت څخه دوتلو په وخت کي بهی ورکړي وو ددي وجي څخه داوږد سفر تکليف دفکر اوغم حکم لري ځکه چي دادم عليه السلام سفر دجنت څخه دنيا طرف ته دقسماقسم غمونو اوفکرونو سره وو چي ده ته حاصل سو. او چاچي دبهي تعبير په زوي سره کړيدی ددي وجه داده چي کله ادم عليه السلام دنيا ته راغلي نو دبهي په خوړلو سره دهغه مني زيات سويدی نو ددي وجي څخه دونه اولاد ځيني پيدا سو. اوکومو خلکو چي ويلي دی چي دبزرګ سردار څخه به نيك تعريف خير اونفع پيداکړي دهغوئ دليل دا دي چي بهي ورکوونکي جبرائيل عليه السلام وو اودهغه اخستونکي ادم عليه السلام وو په دي وجه يي نيك تعريف اونفع هم پيدا کړله او استاذانو دهر خوب تعبير داسي سرسري نه دي بيان کړي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي په خپل موسم شنه بهي ليدل زوی دی اوکه بي موسمه او ژړه يي ويني نو ناجوړي ده.

## بهار \ پسرلی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي دپسرلي تعبير په پسرلي کي پاچا دی که څوك په خوب کي ويني چي دپسرلي موسم دی او هوا معتدله نه ده بلکي يخه ده يا ګرمه ده او خلکو ته ضرر او نقصان رسيږي نو دليل يي دا دي چي ددغه ملك خلکو ته به دپاچا څخه غم او ضرر رسيږي او دي به هم ويني اوکه په خوب کي ويني چي هوا معتدله ده ګلونه را ټوکيدلي دی اوخلکو ته هيڅ قسم تکليف نسته نو دليل يي دا دي چي دملك خلکو ته به دپاچا څخه خير اونفع ورسيږئ اوکه پسرلي پخپل وخت په اعتدال سره ويني نو دليل يي دا دي چي عزت اومرتبه به حاصله کړي او عامو خلکو ته به دپاچا څخه قوت اومدد وي او پاچا بـه عدل او انصاف کوونکي وی دپسرلي دموسم دا تعبير دی.

## بهشت \ جنت

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي جنت ليدل داالله تعالی دطرف څخه خوشحالي او خوشخبري ده داالله تعالی فرمان دی (ادخلوها بسلام امنين، سورة الحجر: ٤٦) ترجمه: په هغه کي په سلامتي او امن سره داخل سي. اوکه ويني چي دجنت ميوي ورسره دی يا چا ورکړيدی او ده خوړلي دی نودليل يي دا دي چي څونه چي ميوي يي خوړلي وي په هغونه اندازه به علم عقل او ددين خويونه زده کړي ليکن فائده به ځني لوړه وي. او که څوك په خوب کي جنت ويني نو دليل يي دا دي چي زکندن به باندي اسانه سي او که ويني چي په جنت کي مقيم دي ليکن غمناک دی نو دليل يي دا دي چي دفساد اوګناه طرف ته به مائل سي او که په خوب کي ويني

چي دجنت دروازي باندي بندی کړل سویدی نو دلیل یي دا دي چي مور اوپلار به دده څخه ناراضه سي اوکه ویني چي جنت ته ولاړی او بیرته راغلي نو دلیل یي دا دي چي دمرګ په ناجوړۍ کي به ګرفتار سي لیکن شفا به حاصله کړي. اوکه ویني چي فرښتو دده لاس نیولي دی اوجنت ته یي بیولي دی او په دغه وخت کي دي دطوبي په سایي کی ناست دي نودلیل یي دا دي چي ددواړو جهانونو مراد به یي پوره سي دالله تعالی فرمان دی (طوبی لهم وحسن ماب، سورة الرعد: ۲۹) ترجمه: ددوي لپاره خوشخبري او ښه ځاي دی. اوکه ویني چي دي دشرابو او شیدو دچینښلو څخه منع دی نو دا دده ددین دتباهی دلیل دی دالله تعالی فرمان دی (ومن یشرك بالله فقد حرم الله علیه الجنة، سورة المائدة: ۷۲) ترجمه: او که څوك دالله سره شریك ونیسي نو اللهﷻ به پرهغه جنت حرام کړی. او که ویني چي چا دجنت میوه ورته ورکړیده نو دلیل یی دا دي چي ده ته به علم حاصل سي او که ویني چي په جنت کي یي اور اچولي دی نو دلیل یي دا دي چي دچا دباغ څخه به حرام شیان خوري او که ویني چي دحوض کوثر څخه یي اوبه چینښلي دی نو دلیل یي دا دي چي پر دښمن به کامیابي حاصلوي اوکه ویني چي دجنت محل ورته ملاو سویدی نودلیل یي دا دي چي خوږه معشوقه یا مینځه به ورته ملاوسي اونکاح به ورسره وکړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي دجنت داروغه رضوان دده مخي ته خوشحاله او ترو تازه دی نو دلیل یي دا دي چي دچا څخه به خوشحاله سي دالله تعالی فرمان دی: (سلم علیکم طبتم فادخلوها خلدین، سورة الزمر: ۷۳) ترجمه: سلام دی وي په تاسو په دي کي دهمیشه لپاره په خوشحالی سره داخل سي اوکه ویني چي دجنت په ډول پر ښه او لوړ ځاي باندي دی او په دي پوهیږی چي داجنت دي نو دلیل یي دا دي چي دعادل پاچا سره یا دامیر سره یا دبزرګ عالم سره به ملګرتیا کوي او که ویني چي دجنت طرفته ځي نو دلیل یی دا دي چي پرحقه لاره به وي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي جنت لیدل په نهو وجو وي. ۱: علم ۲: پرهیزګاري ۳: احسان ۴: خوشحالی ۵: زیري ۶: امن ۷: خیر او برکت ۸: نعمت ۹: نیك بختی. اوکه څوك په خوب کي ویني چي دي په جنت کي دی نو دلیل یي دا دي چي ددواړو جهانونو مراد به یي حاصل سي او دده دلاسه به ډیر خیراتونه کیږي او که مصلح یي ویني نو دلیل یي دا دي چي په ناجوړی یا مصیبت کي به اخته سي ددي وجي څخه دجنتیانو ثواب به وي او عالم به سي اوخلک به دده دعلم څخه فائده اخلي.

## پهلو \ اړخ \ ډډه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي اړخ ښځه ده اوکه ویني چي دده اړخ پړسیدلي دی نو دلیل یي دا دي چي دده ښځه اومینځه دواړه به حامله سي او که په خوب کي ویني چي اړخ یي سور دی اود غوښو یوه ټکړه په وینبو لړلي دده داړخ څخه را ایله ده نو دلیل یي دا دي چي دده دښځي حمل به بي وخته ساقط سي او که ویني چي دواړه لاسونه یي پر اړخ ایښي دی نو

دلیل یي دا دي چي سخت غم به ورته ورسیږي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دي چي که څوك په خوب کي ووینې چي دده داږخ هډوکي مات سویدی نودلیل یي دا دي چي ده ته به دپلار یا مور یا اولاد څخه غم اوفکر ورسیږي. اوکه څوك په خوب کي ووینې چي دده داږخ پوست جلا سویدی اورا ایله سوي دی نو دلیل یي دا دي چي مال او اولاد دواړه به برباد سي او که په خوب کي ووینې چي دده دواړه اړخونه ژړ سویدی نو دلیل یي دا دي چي دده اولاد به ناجوړه سي اوکه ووینې چي دده په اړخ کي سور سري دی اودهغه څخه جواهرات را لوېږي نو دلیل یي دا دي چي دده به پرهیز ګاره اوعالم زوی پیدا سي او که څوك په خوب کي ووینې چي دده اړخ قوي اومضبوط سویدی نو دا ددین دصحیح والي او داولاد دطاقت دلیل دی اوکه ووینې چي دده اړخ کوچني او کمزوري دی نو ددي تعبیرد اولني خوب خلاف دی. جابر مغربي رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي اړخ پرښځو دلیل دی ځکه چي ښځه دسړیو داړخ څخه پیدا سویده ددي وجي څخه کوم خراب والي او ښه والي چي په اړخ کي ووینې نو دهغي تعبیر به پرښځو راسي او که ووینې چي دده ډیر اړخونه دی نودلیل یی دا دي چي په هغونه اندازه به ورته ښځي او مینځي حاصلي سي اوکه ووینې چي دده د اړخ څخه مار راوتلي دي نودلیل یي دادی چي دده زوی به پیدا کیږي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي اړخ په خوب کي لیدل په پنځو وجو دی.

۱: ښځه ۲: انجلی ۳: مینځه ۴: خادم ۵: بوډئ ښځه کومه چي په کورکي وي.

## بوتیمار \ بګله \ د اوبو یو مرغه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي بګله روزي او حلال مال وي چي دښځي څخه ملاویږي او که ووینې چي بګله یي نیولي ده یا چا ورکړیده نو دلیل یي دا دي چي په هغونه اندازه به دښځي دطرف څخه مال حاصلوي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دي چي که څوك په خوب کي ووینې چي بګله یي مړه کړیده او دهغي غوښه یي خوړلي ده نو دلیل یي دا دي چي په هغونه اندازه به دښځي مال خوري او دبګله په خوب کي لیدل په بزرګي دلیل دی اوکه ووینې چي بګله یي نیولي ده او کورته یي راوړي ده نو دلیل یي دا دي چي په خپلوانو کي به ښځه کوي اومال اونفع به حاصله کړي.

## بوریا \ بوزي \ چټایي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي بوزي یا چټائي لیدل یو کمینه سړی دی اوبي اصل اوضعیفه ښځه ده اولیدونکي به یي دخلکو څخه مال حاصلوي ا وکه ووینې چي بوزي یي جوړه کړي ده اوفارغ سویدی ځني نودلیل یي دا دي چي خپل کار به ختم کړي او که ووینې چي دکور لپاره بوزي جوړوي نودلیل یي دا دي چي په ښځه کولو کي به مشغول سي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دي چي که څوک په خوب کي ووینې چي دده سره بوزي ده یا چاورکړیده نو دلیل یي دا دي چي دښځي څخه به ورته دبوزي دغټوالي او کوچنیوالي مطابق فائده ورسیږي جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي بوزي په دریو وجو ده ۱: فائده ۲: نکاح کول ۳: په خپله خانه ابادي کي مشغول کیدل.

## بوزينه \ شادو \ بيزو

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي بيزو په خوب کي ددهوکه کونکو اوملعون دښمن دليل دی اوکه وويني چي دشادو سره ناست دی او هغه دده تابع ده نو دليل يي دا دي چي پر دښمن به غالب سي او هغه به فرمانبردار کړي اوکه په خوب کي ويني چي دشادو سره يي جنګ کړيدي او دهغي څخه بيريدلي دي نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي او شفا به حاصله کړي يا به دده پر بدن عيب وي او دهغي څخه به خلاصون حاصل نه کړي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ووينې چي شادو يي مړه کړي ده نو دليل يي دا دي چي دښمن به مغلوب کړي اوکه وويني چي دهغه غوښه يي خوړلي ده نودليل يي دا دي چي څوك به ورسره دښمني ښکاره کړي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کي وويني چي شادو يي مړه کړيده نو دليل يي دا دي چي دی به ناجوړه سي او ژر به شفا حاصله کړي او که وويني چي شادو پر آس ناسته ده نو دليل يي دا دي چي يهودي به دده دښځي سره فساد کوي اوښځه شادو په خوب کي فسادي او جادوګره ښځه وي اوکه وويني چي شادو دده سره خبري کوي نو دليل يي دا دي چي دهغه په کور کي به جادو کوي اوکه وويني چي شادو دده سره خبري کوي نودليل يي دا دي چي ښځه به دده نقصان کوي. اوکه څوك په خوب کي وويني چي دي شادو خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي دی به ناجوړه سي يابه دخپل اولاد څخه بد رد واوري او که په خوب کي وويني چي شادو ده ته څه شي ورکړيدی يا يي دهغه څخه اخيستي اوخوړلي دی نو دليل يي دا دي چي خپل مال به برباد کړي.

## پوست \ پوستکي \ څرمن

دانيال عليه السلام ويلي دی چي دسړي پوستکي په خوب کي داوسيدو ځاي او دخلکو خانه ابادي ده. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دسړي پوستکي ستر مال اوبرکت دی او که څوک خپل پوستکي پورته سوي اورا ايله سوي ووينې نو دليل يي دا دي چي دهغه ستر اوراز به ښکاره سي اومال به يي ضائع سي اوکه خپل پوستکي تور يا شين وويني نو دليل يي دا دي چي ده ته به غم او فکر ورسيږي اوکه وويني چي دده دپښي پوستکي روښانه دی نودليل يي دا دي چي ددغه سړي مرادبه پوره سي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي د ټولو چارپايانو پوست په خوب کي ليدل مال دی او داوښ پوست دلوی سړي وراثت دی او دبوزي پوست دخوب ليدونکي لپاره روزي ده اوکه دشني درختي پوستکي وويني نوددي ليدونکي روژه دار دی اوکه وويني چي دځناورو څخه يي پوست کښلي دی نودليل يي دا دي چي دکوم سړی سره يي نسبت دی دهغه څخه به مال حاصلوي او که وويني چي دپوست ايستلو لپاره يي کور جوړ کړيدی که قصاب وي نو دهغه په کور کي به ديوال جوړ سي اوکه معلم وي نو په هلکانو به ظلم کوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي وويني چي پخواني پوستکي بدلوي نو دليل يي دا دي چي دپخواني شيانو په صحيح کولو کي به وخت خرچ کړي او دپاچا قاصد به جوړ سي کله چي به امير اودشاهي لښکر سرداران په ډيرو کارونو کی دپاچا خلاف کوي.

## پوستین

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي کـه څوك پـه خوب کـي ووینـي چي دیخنـي پـه موسـم کـي یـي پوستین اغوستي دی نو دلیل یي دا دي چي دده دژوند یو شي به ده ته ملاو سي او که دګرمي موسم وي نوبیا یي هم دغه تعبیر دی لیکن ددي نتیجه به پـه اخره کـی غـم وي ابـراهیم کرمـانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي دبوزی یا دمیږي دبچي پـوستین لـري نـو دلیـل یـي دا دي چـي مالـداره ښـځه بـه کـوي اودهغـه ځخـه بـه مال حاصـلوي اوکـه ووینـي چـي دسمساري پوستین یي اغوستي دی نو دلیل یي دا دي چي مالداره ښځه به کوي او کـه ووینـي چي دوړي نوي پوستین یي اغوستي دي نودلیل یـي دا دي چـي مالـداره او پرهیزګـاره ښـځه بـه کوي لیکن هغه به فریب کوونکي اومکاره وي اوکه ووینـي چي دهوسی پـوستین یـي اغوسـتلي دی نو دلیل یي دا دي چي ناکاره اوبد فعله ښځه به کوي او دهغـي ځخـه بـه زحمـت وینـي اوکـه ووینـي چي دسنجاب پوستین یي اغوستی دی نودلیل یي دا دي چي دنـاموافقی ښـځي سـره بـه واده وکړي اوکه ووینـي چي دپشي پوستین یي اغوستي دی نـو دلیـل یـي دا دي چي دبدخویـه ښـځي سـره بـه واده وکـړي چي غلـه اوبـد دیانتـه بـه وي اوکـه ووینـي چي دوشـق پوسـتین یـي اغوستي دی نو دلیل یي دا دي چي ددینداري اواصـیلي ښـځی سره بـه واده کـوي اوکـه ووینـي چي دموږك پوستین یي اغوستي دي نو دلیل یي دا دي چي دناپاکي ښځي سره بـه نکـاح کـوي اوکه ووینـي چي پوستین یې ځیري سوي دی یا سوزلي یا ورك سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دمال نقصان به یي وسي اوغم اوفکر به حاصل کړي.

## بوسه \ مچه \ ښکلول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینـي چي ده څـوك مـچ کـړي دی نودلیـل یي دا دي چي هغه به دده ملګري اوخوښوونکي وی او که هغه نـامعلوم وي نو دلیـل یـي دا دي چي دنا امیده ځاي ځخه به فائده پورته کړی او که معلوم سړی یي مچ کړي نو دلیـل یـي دا دي چي دهغه ځخه به خیر اونفع حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ووینـي چي یو سړی په شهوت سره مچ کړي دی نو دلیل یي دا دي چي دمړي لپاره به خیرات کوي اوهغه به په دعاء خیر سره یادوي اوکه ووینـي چي مړي دی مچ کړیدي نو دلیـل یـي دا دي چي دده انـدیوال او طالب به وي اوکه ددي خلاف ووینـي نودلیل یي دا دی چي مراد اومقصود به حاصل نه کړي. جعفر صـادق رحمة الله علیه ویلـي دی چي پـه خوب کـي مچـول پـه څلـورو وجـو دی. ۱: خیـر اونفـع ۲: حاجت پوره کیدل ۳: پر دښمن کامیابي حاصلول ۴: ښې خبري اوریدل.

## بوق زدن \ ښکر ږغول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینـي چي ښکر ږغوي او په ږغولو یي نه پوهیږي نو دلیل یي دا دي چي خلکو ته به خپل راز ښکاره کړي اوکه ووینـي چي ښکر ږغوي نو دلیل یي دا دي چي په سردارانو به درواغ وایي اودهغه تاکید به په قسم سره کوي او په اخر کي به هغه درواغ ښکاره سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي پـه خـوب کـي دښـکر ږغـولـو تعبیـر

دسرو لپاره مصیبت دی اودښځو لپاره رسوائي ده او ددوی رازونه ښکاره کیدل دي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ښکر ږغول په څلورو وجو باندي دی ۱: درواغ خبر ۲: خرابه خبره ۳: دراز ښکاره کیدل ۴: گناه.

## پل ساختن \ پل جوړول

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي پل په خوب کي پاچا یا لوئ سړی دی دچا په وجه چي خلک مراد ته رسیږي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي دپل تعبیر په خوب کي نیك دی اوکه په خوب کي ووینې چي پر پل باندي تیر سویدی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به دپاچا څخه عزت او مرتبه حاصله سي اودهغه څخه به نفع ووینې اوکه ووینې چي پر پل باندي یي بنیاد ایښول سوي دی اوکور یي باندي جوړ کړي دی نودلیل یي دا دي چي ولایت اوپاچاهی به حاصله کړي او دده سره به ډیر مال جمع سي دالله تعالی فرمان دي (والقناطیر المقنطرة من الذهب، سورة آل عمران: ۱٤) ترجمه: او دسروزرو ډیران لگوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي پل لیدل په څلورو وجو دی. ۱: سړی دی چي دهر چا په کار راځي اودهر چا حاجتونه پوره کوي ۲: پاچا ۳: ډیر مال حاصلول ۴: نیکي اومطلب حاصلول اوکه ووینې چي پل خراب سو او را ایله سو نودا دپاچا دحالت او دهغه دملك دتباهي اوبربادي دلیل دی.

## بوم \ گونگی

گونگي په خوب کي لیدل ناکاره مفسد اوحسد کوونکي غل دی اوکه ووینې چي دگونگي سره جنگ کوي نو دلیل یي دا دي چي دده به دیو سړي سره جنگ کیږي ا و په نورو ټولو حالاتو کي دگونگي لیدل فائده مند دي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي دده سره گونگي دی یا ده ته چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي غل به مغلوب کړي اوکه ووینې چي دگونگي غوښه خوري نو دلیل یي دا دي چي په هغونه اندازه به دغله سړی مال خوري اوکه دگونگي غوښه په خوب کي خوري نو دلیل یي دا دي چي غل کوچني غلام یا دهغه شاگرد به ده ته ملاو سي.

## بوی خوش \ خوشبوئي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دخوشبوئي اوبد بوئي تعبیر نیکي بدي او نالائقه خبره ده اوکه په خوب کي ووینې چي خوشبوئي بویوي نو دلیل یي دا دي چي دهغه به تعریف کیږي اوکه په خوب کي ډیري خوشبویاني بویوي نو دادمرگ دلیل دی ځکه چي دمړي لپاره خوشبویي اوحنوط ضروري وي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینې چي دي خوشبویه کړي سوي دي نو دلیل یي دا دي چي دده به تعریف اوثنا وکړي اوکه ددي خلاف ووینې نو په خلکو کي به دده بدي اومذمت وسي اودده بدنامي به وسي.

## پي \ پله \ پلې

ابن سیرین رحمه الله چي پله په خوب کي مال او ددي جمع کوونکي دی اوکه څوك په خوب کي

ويني چي پله دده پر بدن وچه سويده يا څيري ده نودليل يي دا دي چي دده دکار وکيل به دده څخه جلا سي يا به ددنيا څخه رخصت سي. اوکه څوك په خوب کي ووينې چي دده دبدن پلې وچي سوي دی نو دليل يي دا دي چي د ملګرو څخه به جلا سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي دبدن پلی پر خپلو اواهل بيتو دليل دی اوکه په خوب کي ووينې چي دده دبدن پلی سختي اومضبوطی دي نو دليل يي دا دي چي دده خپلوان اواهل بيت به بد حاله اوضعيفه سي.

## بيابان \ ځنګل \ دښت \ ډاګ \ ميدان

دانيال عليه السلام ويلي دی چي ځنګل په خوب کي دخپلي فراخي اوپلنوالي مطابق قسمت اورزق دی اوکه په خوب کي ووينې چي په ځنګل کي ګرځي نودليل دا دي چي دسفر څخه به ډير مال جمع کړي. او که څوك په خوب کي ووينې چي ديو ټولګي سره په ځنګل کي ګرځي نو دليل يي دا دي چي دسفر څخه به ډير مال اونعمت حاصل کړي اوروزي به باندي فراخه سي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي دځنګل څخه دباندي راغلي دی نو دليل يي دا دي چي دغم اوفکر څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه ووينې چي ځنګل ته تللي دی نو دليل يي دا دي چي غمګين اومحتاج به سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ځنګل ليدل په څلورو وجو دی ۱: روزي اوقسمت ۲: حيرانتيا او پريشاني ۳: دښمني اوغم ۴: بيره اودهلاکت خطره ليکن ددي څخه به ډيز ژر خلاصون حاصل کړي.

## پياز

ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پياز ليدل حرام مال بدي او ناخوښه خبره ده او که خوب ليدونکي نيك او پرهيزګاره وي او په کوشش سره ځان دپياز دخوړلو څخه منع کړي نو خير دی اوکه پرهيز ګار نه وي نو حرام مال به جمع کوي او په دي کي به هميشه خرابي خبري اوري که خاصکر سور پياز يي ليدلي وي او که پوخ سوي پياز ووينې چي خوړلي يي دی نو دليل يي دا دي چي په اخيره کي به دحرامو خوړلو څخه توبه وکړي او دالله تعالی طرف ته به رجوع وکړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پياز ليدل په درو وجو باندي وي ۱: حرام مال ۲: غيبت چغلي اوخرابي خبري ۳: په کارونو کي خرابي اوپښيماني.

## پياله

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي پياله په خوب کي مينځه ده چي دهغه سره به عيش او خوشحالی کوي اوکه ووينې چي دپيالي څخه اوبه ياګلاب چښي نودليل يي دادي چي دمينځي سره به خوشحاله وي او دهغي څخه به ورته نيك زوی حاصل سي او که ووينې چي هغه اوبه يي دپيالي يا ګلاس څخه توي کړيدی نو دليل يي دا دی چي زوی به يي مړسي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي پياله په خوب کي ليدل په دوو وجو باندي ده ۱: مينځه ۲: خادم.

## پيراهن \ قميص

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي سپين قميص ليدل سړی دی او بعض اهل تعبير بيان کړيدی چي قميص ليدل دهغه پر حلال کار کسب او ژوند دليل دی او که څوك په خوب کي

ويني چي نوي اوفراخ قميص يي اغوستي دی نو دا دکار پر صحيح والي دليل دی اوکه دقميص يوه ټکړه څيري سويده نو ددي تعبير دنيک اودبد په مينځ کي دی او که ويني چي دده قميص پخواني اوخيرن دی نو دليل يي دا دي چي فقيري غم اوتکليف به ده ته ورسيږی ځونه چي قميص زيات پخوانی خيرن او زيات څيري سويدی نو دبلا مصيبت او خوف به زيات وي چي خوب ليدونکي به هلاک سي اوکه ويني چي پاچا ده ته قميص ورکړيدی يا يي ورته اغوستي دي نو دليل يي دا دي چي دهغه څخه به پاچاهي اخلي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي نوي قميص يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي په ظاهره نيك او په باطن کي بد دی اوکه ويني چي دده قميص او پرتوگ دواړه خيرن اوزاړه دی نودليل يي دا دي چي که مالداروي نوفقير به سي اوپه غم اوفکرکي به گرفتار سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده نوي اوفراخ قميص اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي ژوند به باندي فراخ سي اوکه تنگ قميص ويني نو دليل يي دا دي چي ژوند به باندي تنگ سي اوکه ويني چي دده قميص څيري سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده راز به ښکاره سي اوکه څوک په خوب کي ويني چي دده دقميص گريوان نسته او يو درز دی پکښي او ده بي لستوڼي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دده مرگ نژدي سويدی اوکه ويني چي دده قميص غټ دی نو دليل يي دا دي چي کار به يي ښه سي اومراد به يي پوره سي. او که څوك په خوب کي ويني چي دده گريوان دشاڅخه څيري سويدی نودليل يي دا دي چي پر ده به ددرواغو تهمت ولگيږي دالله تعالی فرمان دی (وان کان قميصه قد من دبر فکذبت، سورة يوسف: ۲۷) ترجمه: او که دده قميص دشا څخه څيري سوي وی نو هغه درواغجنه ده. او که په خوب کي ويني چي ده قميص چاته ورکړي دی اوهغه دغه قميص پخپله هم اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي بي غمه به سي او ديو ځاي څخه به ورته زيري راسي دالله تعالی فرمان دی (اذهبوا بقميصي هذا فالقوه علی وجه ابي يات بصيرا، سورة يوسف: ۹۳) ترجمه: زما دا قميص يوسي او زما دپلار پر مخ يي واچوي هغه به بينا سي. اوکه ويني چي دده په لاس کي په وينو لړلي قميص دی نو دليل يي دا دي چي ډير وخت به په غم اوفکر کي وي اوکه په خوب کي ويني چي ده څيري قميص اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دده کار به خراب وي او راز به يي ښکاره سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دنوي اوفراخ قميص ليدلو تعبير په شپږو وجو دی ۱: دخلکو ديدار ۲: ستر ۳: خوشحاله ژوند ۴: رياست ۵: آرام او خوشحالي ۶: زيري.

## بيت المعمور

بيت المعمور دخانه کعبي پر برابر څلورم اسمان کي يو کور دی چيري چي فرشتي حج کوي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي بيت المعمورته تللي دی نو دليل يي دا دي چي په خلکو کي به په علم او امانت سره ښکاره سي اودبيت الله شريف حج به وکړي او ددښمنانو څخه به محفوظ وي. اوکه بيت المعمور په مځکه کي ويني نو دليل يي دا دي

چي دعالم اوعادل پاچا ملګري به سي اوکه ویني چي په بیت المعمور کي یي کور جوړ کړیدی او په هغه کي بیده سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دده مرګ نزدي سویدی اوکه څوك په خوب کي ویني چي دبیت المعمور څخه چاپیره طواف کوي نوبیا یي هم دغه تعبیر دی چي ددنیا څخه به رخصت سي اوکه چا بیت المعمور دجماعت په ډول ولیدی او په هغه کي یي لمونځ وکړي نو دلیل یي دا دي چي دده ټول مرادونه به پوره سي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك په خوب کی ویني چي د مځکي څخه تربیت المعمور پوري لار خلاصه سویده نو دلیل یي دا دي چي په دغه کال به ډیر خلک حج اوعمره کوي اوکه ویني چي بیت المعمور ښائسته کړه سویدی اوفرشتي دهغه طواف کوي نو دلیل یي دا دي چي عالمان اواهل دین به په انتظام سره وي او عزت اومرتبه به حاصل کړي.

## پیروزه \ فیروزه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي فیروزه لیدل دفتحي قوت او دمراد حاصلولو دلیل دی اوکه څوك په خوب کي ویني چي دده څخه فیروزه ورکه سویده نو دلیل یي دا دي چي دده مرادبه پوره نه سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي که چا ولیدل چي دده سره ډیري فیروزی دی نو ددي دلیل دا دي چي په هغونه اندازه به مال ورته حاصل سي او شرافت او بزرګي به حاصله کړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي فیروزه لیدل په څلورو وجو باندي ده ۱: کامیابی ۲: حاجت پوره کیدل ۳: قوت ۴: ملك اوولایت.

## پیر \ بوډا

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك په خوب کي ویني چي بوډا سویدی او ویښته یي سپین سوي دی نو دلیل یي دا دي چي عزت اومرتبه به حاصله کړي اوکه نامعلومه بوډا ویني. چي خوشحاله دی نودلیل یي دا دي چي دیو ملګري څخه به دده مرادونه پوره سی اودغم څخه به خلاصون پیدا کړی اوکه معلوم بوډا په خوب کي ویني چي خوشحاله دی نودلیل یي دا دي چي دهغه څخه به ده ته څه شي ملاوسي اوکه هغه په خفګان سره ویني نو د دي تعبیر د اولني خلاف دی. جابرمغربی رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك په خوب کي ویني چي بوډا ځوان سویدی نو دلیل یی دا دي چي د ده په عزت اومرتبه کي به نقصان وي او په دنیا کي به مغرور وي او که ځوان یا معصوم ویني چي هغه بوډا سویدی نودلیل یي دا دي چي عزت اومرتبه به پیدا کړي او داخرت په کارکي به مشغول سي.

## پیس \ برګي مرض

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي برګي په خوب کي مالداره کیدل دی اوکه ویني چي دده پر بدن برګي دی نودلیل یي دا دي چي په هغونه اندازه مال اونعمت به حاصل کړي او بعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چي برګي په خوب کي لیدل وراثت دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي دبرګي مرض په خوب کی لیدل په څلورو وجو دی ۱: مال ۲: وراثت ۳: نفع ۴: دشغل کار ښکاره کیدل. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوک په خوب کي ویني چي دده ملګرتیا

دبرګي مرض والا سړی سره ده نوکه پرهيزګار اومصلح وي نو ده ته به داخرت نفع حاصله سي او که مفسيد اوبخيل وی نو ده ته به دحرامو څخه نفع ورسيږي.

## پيشاني \ تندی

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تندي ليدل دسړي عزت اومرتبه ده ځکه چي دا الله تعالی ته دسجدي ځاي دی اوبعض وايی چي دتندي ليدل پر زوي دليل دی چي دده په اهل بيتو کي به مالداره وي اوکه څوك په خوب کي ويني چي پر تندي يي نښه ده نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي به په دينداري اوپرهيزګاري کي مشهور سي. اوکه څوك ويني چي چا دي په تندي وهلي دی اووينه ځني بهيدلي ده نو دليل يي دا دي چي دده عزت اومرتبه به زياتـه سي او که ويني چي دده تندی کوچني سويدی اوتنګ سويدی نو ددي تعبير د اولني خلاف دی اوکه څوك په خوب کي ويني چي دده تندي دخپل ځاني حال څخه بدل سويدی نودليل يي دا دي چي ده تـه بـه نقصان رسيږي اوکـه څوك پـه خوب کي ويني چي دده پـر تنـدي ويـښته راختلي دی نو دليل يي دا دي چي قرضداره به سي اوکه ويني چي ويښته باندي سره يا سپين دی نودليل يي دا دي چي هغه قرضه به داولاد په وجه وي اوکه څوك پـه خوب کي ويـني چي دده په تندي پړسوب دی نو دا دمال دزياتيدو دليل دي اوکه ويني چي دده دتندي څخه مار يا لړم يا څه بل شي وتلي دی نو دليل يي داد ی چي دهغه په قدر به غم اوتکليف ورتـه ددښمنانو څخه ورسيږی. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلی دی چي که څوك په خوب کي ويـني چي دده پـر تنـدي باندي يوه سترګه ده نو دليل يي دا دي چي دخپل کور پرکار باندي غور لـري اوکـه ويـني چي پرتندي يي ډيري سترګي دی نوبيا يي هم دغه دليل دی چي دخپل مصلحت په کارونو کـي ډيـر غور کوي اوکه ويني چي دده په تندي شين خط ليکل سويدی نو دليـل يـي دا دي چي دده بـه عالم او پرهيز ګاره زوی وسي. او که ويني چي دده پـه تنـدي درحمت ايت ليکـل سـويدی نو دليل يي دا دي چي دده انجام به ښه وي اومرګ به يي په شهادت سره وي اوکه ويـني چي دده په تندی دعذاب ايت ليکل سويدی نودليل يي دا دي چي دده انجام به ښه نه وي اوتعبير يـي د اولني خلاف دی. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي تندي په خوب کي ليدل په شپږو وجو باندي دی ۱: مرتبـه او عـزت ۲: عظمـت اوبزرګـي ۳: زوی مالـداره ۴: ژونـد ۵: رياسـت ۶: سـخا اوبخشش.

## پيشي ګرفتن \ مخکي کيدل

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي په يو کار ددين کي لکه حج عبادتونه جهاد وغيره کي مخکي او پيش سويدی نودليل يي دا دي چي په اخرت کي به خلاصون حاصل کړي او دالله تعالی په نزد به ورته ثواب ملاو سي اوکه څوك ددنيا په کارکي مخکي والي وکړي نو دليل يي دا دي چي عزت اومرتبه به حاصله کړي.

## پيشه \ کسب \ هنر

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کـي خپـل کـسب پريـږدي اوپـه بـل کـسب کـي

مشغول سي چي دهغه څخه ښه وي نو دليل يي دا دي چي دده کار اوحال به ښه سي اوپه کارو او کسب به يي ترقي وسي. اوکه څوك په خوب كي ويني چي قسما قسم هنرونه كوي كه دغه هنرونه ښه وي نو دخير اونيکی دليل دی اوکه خراب وي نو دشر او بدئ دليل دی اوکه ويني چي بعضي هنرونه خراب کوي اوبعضي ښه نوکوم چي ډير وي دهغه مطابق به يي تعبير وي.

## بيشه \ ځنګل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي د درختو ځنګل ځنګلي ښځه ده اوکه ويني چي ځنګل ته تللي دي اوهغه دميوه دارو درختو څخه ډك دی اوپر موسم يي وليدل اوميوي يي څني وخوړلي نودليل يي دا دي چي دځنګل اصله ښځه به كوي يا به مينځه اخلي چي دهغه پرورش به په ځنګل كي سوي وي او ددغه ښځي څخه به ورته خير او نفع حاصله سي اوكه ځنګل ددي شيانو څخه خالي ويني نو داپه شر اونقصان دليل دی اوكه ويني چي په دغه ځنګل كي ددرختو پرځاي غني دی اوددغه غنو څخه ورته تكليف رسيدلي وي نودليل يي دا دي چي ده ته به دښځو دخوا څخه غم اوفكر رسيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي ځنګل ليدل په څلورو وجووي ۱: ځنګلي ښځه ۲: مينځه ۳: نفع ۴: غم اوفكر.

## بيع \ اخيستل \ خرڅول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي قران كريم خرڅول ددي خبري دليل دی چي دده دين دده په نزد سپك دی او ده خپل ځان ذليل اوسپك كړي. اوكه څوك په خوب كي ويني چي ده خپل غلام خرڅ كړي دی نودليل يي دا دي چي كاربه باندي تنګ سي او دي به ظالم وي اوكه ويني چي خپله ښځه يي خرڅه كړيده نو دليل يي دا دي چي دده حرمت اوعزت به زايل سي او دي به بدنامه سي ليكن كه ددي ښځي څخه ماسوا كومه چي يي خرڅه كړيده دده بله ښځه وي نو دليل يي دا دي چي دي به بيا ښه سي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كوم شي په دين كي ښه دی په خوب كي دهغه خرڅول بد دی اواخستل يي ښه دي.

## پيكان \ د غشي سوكه

دغشي سوكه په خوب كي ليدل بزرګ سړی اوډير خطر ناك دی اوكه ويني چي ډيره ليره دغشي سوكه يي پيدا كړيده يا چا وركړيده نودليل يي دا دي چي ده ته به كار په صحيح ډول سره حاصل سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دغشي سوكه ليدل په خبرو كي طاقت دی چي مخالف ته به يي وايي خاصكر دفولادو كه يي ويني چي ماته يا زنګ سوي وي نو ددي تعبير د اولني خلاف دی.

## پيغمبر

ددي تعبير په شپاړسم فصل كي بيان سويدی هلته يي وګوري.

## پيكر \ عكس

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي عكس په خوب كي ښځه ده اوكه څوك په خوب كي ويني چي دده سره عكس دی نو دليل يي دا دي چي ښځه به كوي اوكه ويني چي دچا څخه يي عكس

اخيستي دی نو دليل يي دا دي چي مينځه به اخلي اوکه ووينې چي دده څخه تصوير ورك سوي دی يا يي دلاسه څخه ايله سويدی اومات سويدی نو دليل يي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکړي يابه دده ښځه ددنيا څخه رخصت سی اوکه دخپل عکس مخ په بل مخ ووينې نودليل يي دا دي چي کومه ښځه يي ليدلي وي دهغه مطابق به يي احوال بدل سي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که خپل عکس په خراب شکل سره بدل سوي ووينې نو دليل يي دا دي چي دده حال به بدل سي اوکه ووينې چي پخپل حال اوشکل سوي دی نو دليل يي دا دي چي پر خپل حال باندي به دالله تعالی طرفته رجوع کوي اوکه خپل عکس په خفګان ووينې نو دليل يي دا دي چي خلک به مخ ځني واړوي او پرده به ظلم کوي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوک ووينې چي دسړی عکس دحيوان په عکس بدل سوي دی نودليل يي دا دي چي دغه سړی به بي مذهبه يا درواغجن وی يا به دالله په صفاتو کي ناجائزه خبره کوي اوکه ووينې چي دچا عکس دهغه دجنس څخه نه دی نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي ته به څه مشکل کار پيښ سي او په هغه کي به حيران سي او په خوب کي عکس جوړونکي داسي سړی دی چي په الله تعالی پوري بهتان تړي.

## پيل \ فيل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي تعبير بيانوونکي ويلي دی چي دشپي اوورځي په خوب کي سوا دفيل څخه هيڅ فرق نسته که څوك په خوب کي ووينې چي پر فيل سپور دی نو دليل يي دا دي چي ناکاره ښځه به کوي اوکه داخوب دورځي ووينې نو دليل يي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکړي يابه مينځه خرڅوي اوکه ووينې چي فيل يي مړ کړيدی نو دليل يي دا دي چي دده دلاسه به کوم پاچا مري يا به يوه مضبوطه قلعه فتح کوي. اوکه ووينې چي فيل خپله پښه دده پر سر ايښي ده اودي يي مړ کړيدی نو دليل يي دا دي چي دده مرګ نزدی دی اوحال به يي بدل وي اوکه ووينې چي دفيل پر سر ناست دی نودليل يي دا دي چي دخپل پاچا دخدمت څخه به دبل پاچا خدمت ته ولاړ سي. اوکه څوك ووينې چي دفيل غوښه خوري نو دليل يي دا دي چي په هغونه اندازه به دعجمو دپاچا څخه مال اونعمت حاصلوي اوکه ووينې چي دفيل هډوکي يا پوست دده سره دی نو بيا يي هم دغه تعبير دی چي دباچا څخه ورته مال اودولت ملاو سي اوکه ووينې چي دجنګ په وخت کي پر فيل ناست دی نو دليل يي دا دي چي غټ دښمن به مغلوب کړي او په دی قول کي يي داصحابو فيل قيصه په دليل کي راوړيده اوکه څوك په خوب کي ووينې چي دفيل دملا څخه را ايله سويدی نو دليل يي دا دي چي په سخت مصيبت کي به ګرفتار سي اوکه ووينې چي دفيل څخه را ايله سويدی اومړ سويدی نو دليل يي دا دي چي ددغه ملک پاچا به مري جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي دتماشي لپاره پرفيل ناست دی اوهغه فيل پر ده زورور دی نو دليل يي دا دي چي دعجمي ښځي سره به نکاح کوي اودهغه په وس کي به وي او که ددي خلاف فيل ووينې نو دي به پخپله پر ښځي قادر وي. اوکه ووينې چي پر فيل وسله پرته ده اوهغه ښار په ښار ګر ځوي نو

دليل يي دا دي چي ددغه ملك پر سلطنت به دبل سلطنت پاچا حمله كوي او ددي ملك پاچا به هلاک کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي فيل ليدل په شپږو وجو دی. ١: دعجمو پاچا ٢: غلام سړی ٣: مکار سړی ۴: بارعبه او قوت والا سړی ۵: حاسد سړی ٦: خونخوار ظالم.

## پيل گوش \ رسوت بوټی \ يو تريخ بوټی \ دوايي والا تريخ بوټی

پيل گوش يو سم وانښه دی چي دهغي پاڼي غټي او پلني دي اوددي غوټۍ اوگل ژړ وي دا په خوب كي ليدل بي اصله او بده خادمه ښځه ده اوكه څوك په خوب كي ووينې چي دده سره رسوت بوټي دی يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دده به دداسي ښځي سره صحبت وي چي دهغي څخه به ورته نفع حاصليږي.

## پيله ور \ طبيب \ دوا فروش

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دپيله ور مثال دطبيب اوفقيه دی ځكه چي طبيب دناجوړی علاج كوي اوفقيه خلكو ته ددين لار ښيي اوكه ووينې چي پيله ور دوائي خر څوي او خلكو ته خير اوراحت رسوي نو دا دخير اوسعادت دليل دی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ووينې چي طبيبي كوي نو دليل يي دا دي چي دده به هرچاته خير او نفع رسيږي او دده ښه نوم به په ملك كي روښانه سي.

## بيل \ كداله

ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي كداله يو داسي خادم دی چي په نفاق سره كار كوي اوبعض اهل تعبير وايي چي كداله په خوب كي داسي كار دی په كوم سره چي غم او تكليف وي اوكه څوك په خوب كي ووينې چي دده سره كداله ده اوڅه كار باندي كوي نودليل يي دا دي چي دده كار به پوره سي اوكه په هغه څه كار نه كوي نو دليل يي دا دي چي دده كاربه پوره نه سي.

## بيماري \ ناجوړي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ووينې چي ناجوړه دی نودليل يي دا دي چي دده په دين كي فساد دی او دخلكو سره دنفاق خبري كوي. اوبعض اهل تعبير بيان كړيدی چي په دغه كال به مري اوكه ووينې چي دناجوړتيا څخه ښه سويدی او په كور كي نه دی او دچا سره خبري نه كوي نو دليل يي دا دي چي دده ناجوړتيا به اوږده سي او ددي څخه به مړسی اوكه ووينې چي دخلكو سره ناست دی اوخبري كوي نو دليل يي دا دي چي دناجوړتيا څخه په ژر ښه سي اوصحت به حاصل كړي. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ووينې چي دناجوړتيا په وجه لڅ دی نو دليل يي دا دي چي ژر به مري اواهل تعبير بيان كوي چي په خوب كي ناجوړتيا دفسق اوفجور دليل دی اوده ته به غم اوفكر دپاچا يا داولاد دطرف څخه رسيږي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دقسما قسم ناجوړي ليدو دليل دا دي چي دده فرائض اوسنت بي قاعدي دی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي

ويني چي ناجوړه دی اودناجوړتيا په وجه ژاړي نودليل يي دا دي چي دغم څخه به په امن کي سي اوکه په ناجوړتيا صبرکوونکي راضي اوشکر کوونکي دی نوددي تعبير نيک او پر صحت دی اوکه ويني چي ناجوړه اولڅ دی نو دليل يي دا دي چي دده مرګ نږدي سويدی دالله تعالی فرمان دی (ولقد جئتمونا فرادی کما خلقنکم، سورة الانعام: ٩٤) ترجمه: تاسو به ماته يو يو راځي څنګه چي ما تاسو په اول واري پيدا کړي واست.

## پيمانه \ د ناپ کولو لوښی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي پيمانه په خوب کي ليدل قاصد دی اوکه څوک په خوب کي ويني چي پيمانه ورسره ده يا چا ورکړيده نودليل يي دادی چي انصاف به کوي اوکه څوک په خوب کي ويني چي پيمانه ماته سويده يا سوزلي ده نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي ته دمرګ بيره ده اوکه څوك په خوب کي ويني چي په پيمانه څه ناپ کوي نو که اهل علم وي نو دقاضي کيدو دليل دی اوکه اهل علم نه وي نو دليل يي دا دي چي دانصاف لپاره به دقاضي محتاج سي او دبلي وينا مطابق په خوب کي پيمانه ربنتيا ويونکي اوانصاف کوونکي سړي دی چي دخلکو سره انصاف کوي.

## بيني \ پوزه

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي پوزه ليدل دعزت اومرتبي دليل دی او څونه چي پکښي زيات اونقصان ويني هغه دخوب ليدونکي په قدر اومرتبي دليل دی اوکه څوك په خوب کي ويني چي پوزه يې کوچني سويده نو دده دقدر اومرتبي دکميدو دليل دی اوکه ويني چي دده پوزه را ايله سويده نو دليل يي دا دي چي ددغه قدر اومرتبي څخه به را ايله سي اوکه ويني چي دده دپوزي سريان غټ سويدی نو دليل يي دا دي چي ژوند به باندي فراخ سي اوکه ويني چي سريان يي تنګ سوي دي نو دليل يي دا دي چي ژوند به باندي تنګ سي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده دپوزی څخه ماغزه راوتلي دی نو دليل يي دا دي چي دسردار څخه به نفع حاصله کړي اوکه ويني چي دده دپوزي څخه چينجي يا مچ يا يو حيوان راوتلي دی نو دليل يي دا دي چي زوی به يي پيداسي اوکه ويني چي دده په پوزه کي سريان دی اوپه هغه کي يې رسی اچولي دی نو دليل يي دا دي چي دخلکو ميلمستيا به کوي يا به يي دعزتمندي ښځي سره ملګرتيا کيږي اودهغه څخه به مال اونعمت حاصلوي اوکه څوک په خوب کي ويني چي دده دپوزي سر تړل سويدی اوساه نه سي کښلاي نو دليل يي دا دي چي دده کاربه بند کړل سي اوکه ويني چي په پوزي کي خبري کوي نو دليل يي دا دي چي دده دولت په برباد سي اوکه ويني چي دده دپوزي يو سری پورته سويدی نودليل يي دا دي چي ده ته به نقصان حاصل سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دده دپوزي څخه وينه راوزي او تعبير ښودونکي ته ووايي چي زما دپوزي څخه وينه راوتلي ده نودليل يي دا دي چي ډير مال به حاصل کړي اوکه ويني او ووايي چي وينه زما پوزي ته ننوتلي دننه ځي نو دليل يي دا دي چي مال به ولاړ سي تعبير بيانوونکي ته پکار ده چي دخوب ليدونکي په

وینا تعبیر بیان کړي او په دي خبره کي مال په نظر کي ساتي اوکه ویني چي دده دپوزی دواړه سریان یو سویدی نو دلیل یي دا دی چي دعقلمندي ښځي سره به صحبت کوي اوکه ویني چي دده دپوزي سر پري سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دده زوی به سنت وي اوبعض خلک وایي چي دده په عزت اومرتبه کي به نقصان راسي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي څه شي په زور دده په پوزه کي ننوتلي دی نو دغصي اونیکي دلیل دي اوکه ویني چي دپوزي څخه یي وینه راوتلي ده او دده ټول بدن باندي لړل سوي دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به حرام مال ملاو سي. اوکه ویني چي لږ شنه وینه دده دپوزي څخه راوتلي ده نو دلیل یي دا دي چي دده دښځي حمل به ساقط سي او بعضو اهل تعبیر ویلي دی چي دغه سړی به فقیر سي اوکه ویني چي دده دپوزي څخه وینه راوتلي ده او دي باندي پخپله نه دی ګنده سوي نو دلیل یي دا دي چي زوی یاښځي به یې دکوره وباسي یا به ورته تکلیف ورکړي اوکه ویني چي دده پوزه پر مځکه را ایله ده نودلیل یي دا دي چي دده به لور پیداسي اوکه ویني چي دي خپله پوزه مینځي نو دلیل یي دا دي چي څوك به دده ښځي ته دهوکه ورکړي او که ویني چي دده دپوزي څخه چرګ راوتلي دی نو دلیل یي دا دي چي دده حیوان به بچي راوړي اوبعض اهل تعبیر وایي چي دپوزي څخه دویني وتل مال دی چي دهغه ملك دپاچا څخه به ورته ملاو سي. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي دده پوزه دفیل دشونډک په ډول غټه یا تردي لږه غټه ده نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه عزت اومرتبه به یي زیاته سي او دده خپلوان به هم عزت حاصل کړي. اوکه ویني چي دده پوزي ته خوشبویي تللي ده نو دلیل یي دا دي چي دده به نیک زوی پیدا سي اوکه ویني چي دده پوزي ته بدبویي تللي ده نو ددي تعبیر ددي اول خلاف دی. جاحظ رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي پوزه یي نسته نو دلیل یي دا دي چي په خپلوانو کي به یي څوك مري اوکه خپلي دوي پوزي ویني نو دلیل یي دا دي چي دده داولاد په مینځ کي به اختلاف پیداسي اوکه ویني چي چا خوشبویي باندي بوي کړیده نو دلیل یي دا دي چي نیك عمله زوی به یي پیداسي اوکه ویني چي چا بدبویي دده دپوزي لاندي ایښي ده نودلیل یي دا دي چي ده ته به پر دغه سړی غصه راځي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي پوزه په خوب کي لیدل په پنځو وجو ده ١: عزت ٢: مال ٣: بزرګي ۴: زوی **۵**: خوشحاله ژوند.

## پیه \ چربي \ وازګه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي چربي خوري نو دلیل یي دا دي چي خیر نعمت اوفراخي به حاصله کړي اوکه ویني چي دده سره دپوزي چربي ده اوهغه خوري نو دلیل یي دا دي چي دهغه په قدر به حلال مال حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي چربي لیدل په دروو وجو ده ١: نعمت او فراخي ٢: مال اونفع ٣: دبندو کارونو خلاصول اوفراخي.

## بي هوشي

ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي بي هوښه سويدی اوعقل ځني تللي دی نودليل يي دا دي چي ده ته به داسي كار پيښ سي چي دي به پكښي حيران او پريشان سي ليكن په اخير كي به يي نتيجه ښه وي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي بي هوښي په دوه ۲ تعبيرونو ده ۱: په كارونو كي سختي ۲: حيراني پريشاني عاجزي او لا چاري.

## [ ت ]

### تاب دادن \ تاو وركول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوک په خوب كي ويني چي رسی ته تاو وركوي نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي. اودسفر اوږدوالي او كموالي به درسی داوږدوالي اوكموالي مطابق وي كه رسی اوږده وي نو سفر به يي اوږدوي او كه لنډه وي نو سفر به يي هم لنډ وي او كه څوك ويني چي دڅه شي دګنډلو لپاره تار ته تاو وركوي نودليل يي دا دي چي دمصلحت لپاره به كار كوي او يا به دخپلي خوشحالی لپاره كوشش كوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي تار يا رسی ته تاو وركول په درو وجو باندی دی. ۱: سفر اوواپسي ۲: رياضت نفس۳: دكارونو خلاصول اوفراخي.

### تابستان \ دوبی \ دګرمي موسم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي ګرمي په خوب كي ليدل سخت پاچا دی كه په خوب كي دګرمي موسم ويني چي خلكو ته نقصان ځني رسيږي نو دليل يي دا دي چي دملك خلكو ته به دپاچا څخه خير اونښيګړه وي دګرمي موسم پخپل وخت ليدل ډير ښه دی. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك دګرمي موسم پر وخت اوداسي ويني چي خلک خوشحاله دی او درختي دميو څخه ډكي دی نودليل يي دادي چي دده عزت اودولت به زيات سي ا و دده كار به مراد ته ورسيږي اودعام سړي په خوب كي پاچا ليدل دپاچا څخه قوت اومدد حاصلول دی اوكه څوك دګرمي موسم بي وخته ويني نو ددي تعبير داولني خلاف دی.

### تاج

محمد بن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دپاچاهانو لپاره په خوب كي تاج ليدل ملك او ولايت دي او دښځو لپاره خاوند دی او دعامو خلكو لپاره ښه حال دی. كه په خوب كي ويني چي دده پر سر دسروزرو پيبيل سوی تاج دی نو دليل يي دا دي چي لويه اولوړه مرتبه به حاصله كړي ليكن ددين اوشريعت په لار كي به كمزوري وي اوكه داخوب ښځه ويني نو دليل لي دا دي چي ددي خاوند به ددنيا په كارونو كي مرتبه والا وي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي پاچا دچا پر سر تاج ايښي دی نو دليل يي دا دي چي هغه ته به دپاچا څخه عزت اومراد حاصل سي اوكه ويني چي پاچا ده ته تاج وركړيدی اوده پر سر يې ايښي دی نو

دليل يې دا دي چې مالداره او ښايسته ښځه به کوي او دهغې څخه به دزړه مراد او انصاف حاصلوي او که څوك په خوب کې ووينې چې تاج دده دسر څخه را ايله سو او مات سو نو دليل يې دا دي چې خپلې ښځې ته به طلاق ورکوي او که څوك په خوب کې ووينې چې تاج دده دسر څخه واخيسته سو نو دليل يې دا دي چې ښځه به ځني جلا سي او که ووينې چې تاج دده دسر څخه را ايله سو او خراب سو نو دليل يې دا دي چې دده ښځه به مري يا به دده په اهل خانه کې څوک مري. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې که بې خاونده ښځه ووينې چې ددې پر سرتاج دی نو دليل يې دادي چې خاوند به کوي او که خاوند والا ښځه يې ووينې نو دليل يې دا دي چې پر ښځو به مشره سي او که ووينې چې ددې دسر څخه تاج واخستل سو نو دليل يې دا دي چې خاوند به يې بله ښځه کوي يا به دې ته طلاق ورکوي. او که څوك ووينې چې دپاچا پرسر دملغلرو پېيل سوي تاج دي نو دليل يې دا دي چې عزت او مرتبه حاصله کړي.

## تاراج \ لوټ \ يرغل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك په خوب کې ووينې چې دچا مال او نعمت لوټ کوي نو دليل يې دا دي چې څونه يې لوټ کړي وي دهغه په اندازه غم او فکر به ورته ورسيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې دلوټ کولو دليل په څلور وجو دي ۱: شور ۲: نقصان ۳: غم او فکر ۴: ارزاني دنرخ شايد چې دغنيمت څخه وي.

## تاريکي \ تاريکه \ تِياره

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې تاريکه ددين په لاره کې گمراهي ده او که ووينې چې پخپله يې تاريکه کړيده يا ورته چا تياره کړيده نو دليل يې دا دي چې په هغونه اندازه به گمراهي حاصله کړي او که ووينې چې په تاريکه کې وو او بيا په رڼا بدله سوه نو دليل يې دا دي چې توبه به کوي او ددين لاربه ورته خلاصه سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوک په خوب کې ووينې چې په تاريکه کې وو او بيا باندې رڼا سوه او بيا تاريکي ته تللی دی نو دليل يې دا دي چې دغه سړی منافق دی دالله تعالی فرمان دی (واذا اظلم عليهم قاموا ولو شاء الله لذهب بسمعهم، سورة البقرة: ۲۰) ترجمه: او کله چې تاريکه سي نو هغوئ ودريږي او که الله تعالی وغواړي نو تله به وکړي په اوريدلو دغوږونو ددوئ. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې تاريکه غم او فکر دی او که ووينې چې هوا توره تاريکه سويده نو دليل يې دا دي چې دغه ملک والاو ته به غم او فکر رسيږي او ددوي په کاروبار کې به تباهي راسي او که ووينې چې هوا روښانه وه او ناڅاپه توره وريځ راغله نو دليل يې دا دي چې په دغه ملك کې به ناڅاپه مرگ ښکاره سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې تاريکه په پنځو وجو ده ۱: کفر ۲: حيرانتيا او خفگان ۳: دکار رکاوټ ۴: بدعت ۵: په گمراهی کې پريوتل. ابراهيم اشعث ويلي دی چې که څوک په خوب کې ووينې چې دتاريکي څخه رڼا ته راغلی دی نو دليل يې دا دي چې دغريبي څخه به مالداری ته راسي او دغمونو څخه به خلاصون حاصل کړي او کار به باندې

فراخ سي او دګمراهی څخه به ليري سي.

## تازيانه\ کوړه \دُره

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي تراشل سوي کوړه ليدل دليل دی چي کار به يي پوره او په انتظام سره وي اوکه ويني چي دده کوړه تراشل سوي نه ده نو ددغه کوړي په اندازه به شرف او بزرګي حاصله کړي. اوبعضي خلک وايي چي په خوب کي کوړه ليدل دمال دليل دی څونه چي دخوب ليدونکي قدر وي اوکه ويني چي دده دکوړي پوست څيري سويدی نو دليل يي دا دي چي دده څخه به څوك بزرګ يا مال جلاسي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي ده په خوب کي څوك په کوړي وهلي دی نو دليل يي دا دي چي يوځای به په کار کي مشغول سي او دهغه څخه به ورته فائده نه وي او که ويني چي کوړه يي دلاس څخه را ايله سويده نو دليل يي دادي چي کوم کار کوي هغه به ځني ونه سي او که ويني چي کله يي په کوړه وهلي دی نو دهغه څخه وينه بهيدلي ده نو دليل يي دا دي چي دغم خبري به اوري اوکه ويني چي وينه ځني نه ده بهيدلي نو دليل يي دا دي چي دهري کوړي په وهلو به يو يو درهم حاصل کړي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي په کوړو وهل سوي دی نو دليل يي دا دي چي دکوړو وهونکی څخه به حرام مال حاصل کړي اوکه ويني چي دکوړو دزخم څخه وينه بهيدلي ده نو دليل يي دا دي چي مال به حاصل کړي اوکه ويني چي د کوړي زخم دده پر بدن دی نو دليل يي دا دي چي دغم خبري به اوري اوکه ويني چي دي په کوړو وهل سويدی او وهونکي معلوم نه دی نودليل يي دا دي چي نابېره به مال پيداکړي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده په لاس کي ډيره ښه کوړه ده يا دهغه رسی دوريښمو ده نودليل يي دا دي چي زوی به يي پيداسي اوکه ويني چي کوړه دلرګي ده نو دا دقوي حال دليل دی اوکه ويني چي دده کوړه دپوست ده يايي تسمه دپوست ده نو دليل يي دا دي چي خير اونفع به حاصله کړي. او که څوك په خوب کي ويني چي کوړه دده په لاس کي ماته سويده نو دليل يي دا دي چي زوی به يي مري يا به دخپل کار څخه معزول سي اوکه څوك په خوب کي ويني چي پر آس ناست دی او په کوړه يي وهي نو دليل يي دا دي چي په ځاي کي به کار کوي او پرهغه به احسان کوي اوکه ويني چي دچا ملا په کوړو وهي نو دليل يي دا دي چي دغه سړی به حرام مال حاصل کړي يا به وهونکي دګناه تهمت باندي لګوي اوکه پرخپله ملا يي دکوړي زخم ليدلي وي او دوهونکي څخه خبر نه وي نو دليل يي دا دي چي ددين اودنيا شغل به پوره سي اوکه ويني چي څوك يي په کوړه وهلي دی او کوړه ټکره ټکره سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده اهل خانه به جلا جلا سي او که څوك يي بي شماره کوړي وهلي وي نو دليل يي دا دي چي ده ته به غم او فکر ورسيږي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خپل کور کي په خوب کي ويني چي دده په لاس کي کوچني کوړه وه اوبيا هغه اوږده سوه نو دليل يي دا دي چي دده ژبه به پر دښمن اوږده سي اوکه ويني چي کوړه اوږده وه اوبيا کوچني سوه نو دليل يي دا دي چي دښمن به غلبه باندي وکړي. جعفر

صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي کوره لیدل په پنځو وجو باندي ده ۱: شور اوغوغا ۲: جنګ ۳: دمشکل کار اسانیدل ۴: سفر اوجدایي ۵: بزرګي.

## تابه \ تبخی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي تبخی په خوب کي دکور خدمتګار دی کوم چي دکور انتظام کوونکي وي او پخپل اولاد او نورو خرچ کوی که ووینې چي دده سره نوي تبخي دی یا ورته چا ورکړیدی نو دلیل یي دا دي چي نیك عمله خدمت ګار به ورته حاصله سي یابه ځني جلا سي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که ثوك ووینې چي پر تبخی ثه پخوي نو دلیل یي دا دي چي دده دخدمت ګار کار به سم سي او که ووینې چي دتبخي څخه ثه شي خوري نو دلیل یي دا دي چي دخوړلو مطابق به ورته دخدمت ګار څخه فائده حاصله سي او که ووینې چي هغه شي تریو او بي خونده وو نودا پر غم اوفکر دلیل دی.

## تب \ تبه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که ثوك په خوب کي ووینی چي دده همیشه تبه وه او یو ساعت نه ځني جلا کیدله نو دلیل یي دا دي چي همیشه به په ګناه اوفساد کي مبتلا وي ده ته توبه ایستل پکارده چي دعذاب څخه خلاصون حاصل کړی. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي که ثوك په خوب کي ووینې چي ډیره تبه یي ده نو دلیل یي دا دي چي بدن به یي درست اوعمر به یي ډیر وي اوکه ووینې چي لږه تبه یي ده نو ددي تعبیر د اولني خلاف دی.

## تبر

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي تبر په خوب کي داسي خدمت ګار دی چي په وینا کار کوي اوکه دڅه کار ورته وویل سي نو غواړي چي مات ګوډ یي کړي ددي لپاره چي بیا ورته دکار ونه ویل سي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي تبر لیدل بیرونکي سړي دی که مدد وکړي نومنافق دی او په خلکو کي جنګ اوجلائي اچوي اوکه په خوب کي ووینې چي دده سره تبردي یا چا ورکړیدی نودلیل یي دا دي چي دداسي قسم سړی سره به یي ملګرتیا وي اوکه ووینې چي دده تبر مات سوي دی یا ورك سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دی به مري.

## طبله \ تبیره \ د پړئ

دپړئ په خوب کي لیدل بد دی، درواغ خبره ښکاره کار او روښانه دی اوداتول ددي پر ږغونکي دلیل دی. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که ثوک ووینې چي ددپړي سره نڅا کوي نو دا پر غم فکر اومصیبت دلیل دی او که ووینې چي صرف ږغوي یي نو دلیل یي دا دي چي باطل کار او بیهوده خبري به کوي چي دهغه په وجه به مشهور سي اوبعض اهل تعبیر بیان کړیدی چي په خوب کي د دپړئ ښه اواز بي هوده دی. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي که ثوك ووینې چي دپړئ ږغوي نو دلیل یي دا دي چي بیهوده کاربه کوي چي دهغه څه اصل نه وي او دخلکو سره به ددرواغو وعدي کوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دپړئ ږغوونکي داسي کار دی چي په ناداني سره کیږي اواخري ښکاره سي چي داباطل دی او په خوب کي دپړئ

ړغوونکي خواږه اوښه درواغ وايي او په باطن کي غيبت کوونکي اوخرابي خبري کوونکي دی.

## تتماج \ د خوراک نرم شي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي تتماج دبوزي يا دميږي دخوږو مستو سره خوري نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به ورته دشاهي سړی څخه فائده حاصله سي اوکه ويني چي دغوا يا دسوی دغوښی اودتروو مستو سره يي خوري نو دليل يي دا دي چي لږ فايده به ورته دبد سړي څخه ورسيږی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي تتماج دسوی دغوښي سره دغم دليل دی.

## تخت

محمد بن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک ويني چي پر تخت ناست دی او په هغه يي څه شي نه دی اچولي نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي اوکه ويني چي پر تخت بيده دی او په هغه يي څه شي اچولي دی نودليل يي دا دي چي عزت به پيدا کړي اودتخت دقدر اوقيمت مطابق به دښمنان مغلوب کړي ليکن دهغوی څخه به غافل وي که داسړی داهل فسادو څخه وي نودليل يي دا دي چي دي به په سولی کي وخيږي خاصکر که خپل ځان پر تخت بيده ويني او که ويني چي تخت مات سو او دي ځني را ايله سو نو دليل يي دا دي چي دعزت اومرتبي څخه به معزول سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تخت ليدل په اوو وجو باندي دی ۱: عزت اومرتبه ۲: سفر ۳: مرتبه ۴: لوړوالي ۵: ولايت ۶: قدر اومرتبه ۷: دکاروبار ترقي.

## تخم کاشتن \ تخم کرل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده تخم کرلي دی او بيايي جمع کړی نو دليل يي دا دي چي مرتبه اوبزرګي به حاصله کړي اوکه ويني چي کوم ځاي يي کرلي وي هم هلته يي خوري نوددي تعبير داول څخه ښه دی. اوکه ويني چي دکرلو څخه ورته هيڅ حاصل نه سوه يا يي ونه پيژندل چي ددي ميوه څه ده اونه يي کم اونه يي زيات وپيژندل نو داپه غم اوفکر دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي غنم يي کرلي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به خير اونيکي ورسيږئ اوکه ويني چي اوربشي يي کرلي دی نو دليل يي دا دي چي دده مال به جمع سي اوکه ويني چي باجره يي کرلي ده نودا پر لږ مال دليل دی اوکه ويني چي مسور کرخي باقلی او لوبيا اوددي په ډول نور شيان يي کرلي دی نو دا په غم اوفکر دليل دی. دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك ويني چي پخپله مځکه کي تخم کري نو دليل يي دا دي چي ښځه به کوي اوکاربه يي سم سي اوکه پخپله کرل سوي مځکه کي کرونده کوي نو دليل يي دا دي چي مال اونعمت به ورته حاصل سي اوکه ويني چي اوربشي يا غنم يا درختي يي پخپله مځکه کي کرلي دي نو دليل يي دا دي چي عزت اومرتبه به يي زياته سي څونه چي ده کرلي وي دهغه مطابق به حاصل کړي.

جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تخم کرل په څلورو وجو دي ۱: مرتبه اوبزرګي ۲:

فساد ۳: حرام مال ۴: په تجارت کي نفع.

## تخمه \ هیضه \ بد هضمي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که ثوک په خوب کي ویني چي ده ته هیضه سوي ده نو دلیل یي دا دي چي دي دسود مال خوري اودي باندي خرابيږي ده ته پکار دی چي توبه وباسي چي دالله تعالی دعذاب ثخه خلاصون حاصل کړي اوداهل تعبیرو اتفاق دی چي په خوب کي بد هضمي لیدل دنیکی دلیل نه دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي تخمه لیدل په ثلورو وجو باندي وي ۱: دسود مال ۲: فساد ۳: حرام مال ۴: دنفس دخواهشاتو تابعداري.

## تخمها \ تخمونه

ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چي که په خوب کي تخمونه ویني چي تروه ترخه او بي خونده وي دا ټول دغم اواندیښني دلیل دي خاصکر هغه تخم دکوم خوړل چي ډیرګران وي لیکن کوم تخمونه چي په خوراك کي خوارِه اوخوندور دی دهغو په خوب کي خوړل دلر فائدې دلیل دی. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي تخمونه لیدل ښه دی لیکن زاړه اوچینجو خوړلي لیدل یا خوړل ښه نه دی.

## تذرو \ زرک \ تنذري

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي تنذري بي وفا سړی اودهوکه کوونکي ښځه ده اهل تعبیر بیان کړيدی چي تنذري په خوب کي حرام مال دی چي په دهوکه به یي حاصل کړي اوکه ثوك په خوب کي ویني چي دتنذري سره جنګ کوي نو دلیل یي دا دي چي دده به د بي وفا سړی سره جنګ وسي اوکه ثوك ویني چي ښځه تنذري ورته حاصل سوي دی نو دلیل یي دا دي چي داسي ښځه به وکړي چي په هغه کي به هیڅ قسم ښه والي نه وي اوکه ثوك په خوب کي دتنذري ځاله ویني نو دلیل یي دا دي چي ددغه ځالي دښکلي والي مطابق به دښائسته ښځي سره نکاح کوي یا به مینځه اخلي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ثوك په خوب کي ویني چي دده په کور کي تنذري وي اوهغه مړه سوه نو دلیل یي دا دي چي دده ښځه به هلاکه سي یا به باندي دښځي په وجه مصیبت راسي اوکه ثوك ویني چي تنذري دده دکور ثخه الوتلي دی نو دلیل یي دا دي چي خپلي ښځي ته به طلاق ورکړي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي تنذري په خوب کي پرهیزګاره ښایسته اومالداره ښځه ده او که ویني چي ده تنذری پیدا کړي ده یا یي نیولي ده نودلیل یي دا دي چي ددغه صفت ښځه به کوي کوم چي موږ بیان کړ او که ویني چي تنذري دده په غیږ کي را ایله سوه او بیده سوي ده نو دلیل یي دا دي چي ثوك به دده داولاد سره بحث کوي او دهوکه به ورکوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي تنذري په خوب کي لیدل په ثلورو وجو دی. ۱: ښځه ۲: حرام مال ۳: نفع ۴: دزړه مرادونه تلاش کول.

## ترازو \ تله \ میزان

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي ترازو په خوب کي قاضي دی که ثوك ویني چي نوي ترازو

ورسره دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي په دغه ځاي کي قاضي پاك دین فقیه دی او دترازو پلې دقاضي قوت سماعت دی اوکوم درم چي په دي کي دی مقدمه ده چي قاضي یي کوي او دترازو کانې انصاف دی چي فریقین یي دقاضي دحکم مطابق اوري اوکه ویني چي دترازو دواړي پلې بالکل برابري دی نودلیل یي دا دي چي قاضي عادل دی او که ویني چي ترازو صحیح نه دي نو دلیل یي دا دي چي قاضي ښه اومنصف نه دی په حکمت کي یوطرف ته مائله دی. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك ویني چي دترازو ډنډی ماته سویده نو دلیل یي دا دي چي ددغه ملك قاضي به مري اوکه ویني چي په ترازو کي ډیر نقصان دی نو دلیل یي دا دي چي دقاضي په عدل او انصاف کي نقصان دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي ترازو په خوب کي درست کول او په طور دتحفي اوسوغات یي جوړول دقاضي د دوزخ دعذاب څخه نجات اوخلاصون دی.

## ترازوګر \ تله جوړونکی

ترازو جوړونکي په خوب کي پاچا دی اودرسته ترازو ریښتوني حاکم اوقاضي دی یا عادل وزیر دی جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي دقیامت ترازو په خوب کي لیدل په شپږو وجو دی. ۱: قاضي ۲: پاچا ۳: فقیه ۴: قاصد ۵: ریښتوني حاکم ۶: درواغجن حاکم. اوکه ویني چي دقیامت په ورځ دده نیك عملونه په ترازو کي دبد عملونو څخه زیات دی نو دلیل یي دا دي چي جنت ته به ځي اودعذاب څخه به خلاصون حاصل کړي دا الله تعالی فرمان دی (فمن ثقلت موازینه فاولئك هم المفلحون، سورة الاعراف: ۸) ترجمه: دچا چي نیك عمل دروند وی هغه به خلاصون حاصل کړي. اوکه ددي خلاف ویني نو دلیل یي دا دي چي ددوزخ دعذاب لائق دی دا الله تعالی فرمان دی (ومن خفت موازینه فاولئك الذین خسروا انفسهم فی جهنم خالدون، سورة المؤمنون: ۱۰۳) ترجمه: اودچا بد اعمال چي زیات وي دوی هغه خلک دی چاچي خپل ځانونه په خساره کي اچولي دی دوی به په دوزخ کي همیشه وي.

## ترب \ مولی

ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مولی لیدل اوخاصا دهغه خوړل دغم اوفکر دلیل دی اوکه څوك په خوب کي ویني چي مولی یي وخوړله نو چي څونه یي خوړلي وي دهغه په اندازه غم اوفکر به ورته وي. اوکه څوك په خوب کي ویني چي چا ته یي مولي ورکړیده نو دلیل یي دا دي چي دهغه څخه به دده زړه ته غم اوفکر رسیږي اوکه ویني چي ده چا ته مولی ورکړي ده یا یي دکور څخه دباندي غورزولي ده اوهغه یي لږ هم نه ده خوړلي نو دلیل یي دا دي چي دغم اوفکر څخه به خلاص سي.

## تربد \ نسوت \ سپینه او توره دوا

تربد یعني نسوت یوه سپینه اوتوره دوائي ده ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي نسوت لیدل دغم او اندیښني دلیل دی اوکه ویني چي خوړلي یي دی نو دخوړلو مطابق دمالل

دنقصان دليل دی.

## ترخون \ د پودينې يوقسم دې

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې ترخون په خوب کې بد اخلاقه اوبدکرداره سړی دی ځکه چې دترخون اصليت سپيلني دی کله چې سپيلني په سرکه کې خشته کړې سي اوڅه موده پس ځني راوايستل سي اوطبعيت اوخوند يې بدل سي بيا چې کله هغه وکړي او را وټوکيږي نو هغه ته ترخون ويل کيږي. او که ووينې چې ترخون ورسره دې يا چا ورکړيدی نودليل يې دا دې چې ده ته به ددغه سړی څخه ضرر اونقصان رسيږي او که ووينې چې ده چا ته ترخون ورکړيدی يا يې دکور څخه دباندې غوزولې دی نو دليل يې دا دې چې دداسې سړی دصحبت څخه به جدايې تلاش کوي اودهغه څخه به ليرې سي.

## ترسائي \ عيسائي

ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوک مسلمان په خوب کې ووينې چې اتش پرست سوی دی نو دليل يې دا دې چې دګمراهی اوبدعت پر لاره چليږي اوپه دين اسلام اعتقاد نه لري. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوک په خوب کې عيسائي ووينې نو په هغه به فتح حاصله کړې ځکه چې عيسائي نصراني دی اونصراني مشتق دی دنصرت څخه اوکه عيسائي ووينې چې مسلمان سوي دی نودليل يې دا دې چې دی به مسلمان سي يا به مړسي. جعفرصادق رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوک ووينې چې دده ناسته ولاړه دعيسايانو سره ده نو دليل يې دا دې چې دده به دوست سي او په دين اسلام به دده اعتقاد کمزوري او سست وی.

## ترشيها \ تروه شيان

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې تروه شيان خوړل لکه تروه ميوه خوړل غم دی اوکه ووينې چې چا تروه شيان ورکړي دی نو دليل يې دا دې چې دده په وجه به بل چاته غم اوفکر رسيږي غرض داچې دتروو شيانو په خوړلو کې هيڅ خيرنسته.

## ترف \ وچ سوي پنير

ترف يعني وچ سوي پنير چې تروه وي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې وچ سوي پنير ليدل دغم اوفکر دليل دی اوکه ووينې چې وچ سوي پنير يې خوړلې دی نودليل يې دا دې چې قرضدار به سي اوددې په وجه به غمجن سي ځکه چې دترف خوند تريو اورنګ يې خيرن وي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې وچ سوي پنير په خوب کې ليدل لږ مال دی اوددې خوړل غم اوفکر دی.

## ترنج \ ليمبو

دانيال عليه السلام ويلي دی چې ليمبو که څه هم ژړ وي ليکن خوشبوداره اوخوشذائقه په ليدلو کې ښه وي اووايې چې دجنت دميوو څخه دی اوداپه خوب کې ليدل نيك وي اوکه څوك يو ليمبو يا دوه درې په خوب کې ووينې نو ددې تعبير زوی دی او که ډير ووينې نو مال اوحلال نعمت به حاصل کړي او په خوب کې شين ليمبو دژړ څخه ښه دی. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چې

ليمبو په خوب کي دخلکو په نزد مالداره اوښائسته سړی دی کوم چي ټول خلک خوښوي اوکه ويني چي دده سره ليمبو دی يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دده به دداسي سړی سره ناسته ولاړه وي اوکه ليمبو په خپله غيږ کي ويني نو دليل يي دا دي چي دده کره به ښايسته هلک پيدا سي. اوکه ويني چي ليمبو يي خوړلي دی نو دليل يي دادي چي دخپل مال څخه يا ديو مشر دمال څخه به ورته کاميابي وي اوکه ويني چي ليمبو يي پټ کړي دی او اغوستي يي دی نو دليل يي دا دي چي دده زوی به هلاک سي او که ويني چي دده. په کورکي ډير ليمبوګان دی اوچاته يي بخښلي دی نو دليل يي دا دي چي دچا په حق کي به نيکي کوي او که ويني چي ليمبو دده په لستوڼي کي دی نو دليل يي دا دي چي دده به دمينځه څخه زوی پيدا کيږي اوکه ويني چي ليمبو دده دلستوڼي څخه را ايله سويدی نو دليل يي دا دي چي ده ته به زوی حاصل سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ليمبو ليدل په څلورو وجو دی ۱: ښائسته ۲: پاك دينه مينځه ۳: مالداره انډيوال ۴: شريف او نيك عمله زوی.

## ترنجبين \ حلوی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي حلوی بي منته حلال مال دی دا الله تعالی فرمان دی (وانزلنا عليكم المن والسلوى كلوا من طيبات ما رزقتكم، سورة البقرة: ۵۷) ترجمه: او موږ پر تاسو من سلوی رانازله کړه زموږ درليږل سوي پاك شيان خوري اوکه ويني چي دده سره ډيره حلوا ده يا چا ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي د بي اميده ځاي څخه به ډير رزق حاصل کړي او دده کاروبار به په ښه انتظام سره وي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي حلوا ويني يا يي وخوري نو ددي دليل په دروو وجو دی ۱: بغير دڅه احسان څخه مال اورزق ۲: په ژوند او کارونو کي اسانتيا ۳: دزړه مراد پوره کول.

## تره دوغ \ شلومبي \ تروي شلومبي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تروي شلومبي چيښل دغم او فکر دليل دی.

## تره فروشي \ سبزي خرڅول

که څوك په خوب کي ويني چي سبزي خرڅوي نو ددي تعبير نيك دی ځکه چي دده لاسونه داسي کار کوي چي دهغه ټولو خلکو ته ضرورت دی اوپه خوب کي سبزي خوړل دناجوړي غريبي غم اوفکر دليل دی.

## تره \ سبزي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی کومي سبزياني چي بي خونده اوترخي دی دضرر اونقصان دليل دی.

## ترياق \ تارياک

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دناجوړی په وجه ترياك خوړل دليل دی چي دغم څخه به خلاصون حاصل کړي او ټول کارونه به پر ده فراخ سي اوکه ددي خلاف وي نو دغم فکر نقصان انديښني او دمختلف قسمه فکرونو دليل دی.

## تزويج \ نكاح كول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي دښځي سره يي واده كړيدی نو دا دشرافت اوبزرگي دليل دی اوكه دي غريب وي نومالداره ښځه به كوي اوكه ويني چي ښځي ته يي طلاق وركړي دی نو دليل يي دا دي چي دده عزت او شرافت به ختم سي اوكه ويني چي دمړي ښځي سره يي نكاح كړيده اودهغه سره يي جماع هم كړيده نو دليل يي دا دي چي ددغه مړي ښځي دملكيت اومال څخه به ده ته لږ شي ملاو سي اوكه ويني چي دهغي سره يي جماع نه ده كړي نودليل يي دا دي چي دهغي دمال څخه به ده ته لږ څه ملاو سي اوكه ښځه ويني چي دي دمړ سړي سره نكاح كړي ده او دښځي په كور كي هغه سړی ورسره جماع كړيده نودليل يي دادي چي ددي ښځي دمال نقصان به وسي اوحال به يي بدسي اوكه ويني چي ښځه يي كړيده ليكن ښځه يي ليدلي نه ده او دهغی حال ورته معلوم نه وي نودليل يي دادی چي دده مرگ نزدي دی اوكه ښځه ويني اونامعلوم ځاي وي اودغه كور دمړي ملكيت وي اوهغه مړی ددي ښځي سره جماع كړي وی نودليل يي دا دي چي دغه ښځه به مري اوكه دغه كور معلوم وي نو دښځي دنقصان دليل دی. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی چي كه خاوند والا ښځه ويني چي ددي دويم خاوند دی او واده يي نه وي ليدلي نو دادعزت شرافت اودمال دزياتوالی دليل دی. اوكه ويني چي ددي واده كيدونكي دی او واده يي نه وي ليدلي اونه يي پيژندلي وي نو ددي دمړي بيره ده اوبعض وايي چي يو سړی به ددي دلاسه هلاک سي اوكه ويني چي دنامعلومي ښځي غوښتونكي دی يا ويني چي دده ښځه خاوند كوي اوهغه خاوند يي كور ته بيولي وي نودليل يي دا دي چي په دي طريقي به يي ځان ته ډير مال حاصل سي اوكه ويني چي يوه ناكاره ښځه دده په نكاح كي راغلي ده اودهغه سره يي جماع كړيده نودليل يي دا دي چي گران كار به باندي اسانه سي اوكه بي جماع ورسره نوي كړي نو څه چي موږ وويل هغه به كم وي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه څوک په خوب كي ويني چي دپيغلي انجلي سره يي واده كړيدی او دهغي پيغلتوب يي زايل كړي دی نو دليل يي دا دي چي په دغه كال به ده ته ښځه يا مينځه حاصليږي او دپاچا څخه به خير اونيكي ويني اوكه ويني چي په حرامو سره يي پيغله انجلي بيولې ده نوددي دليل دا دي چي حرام مال به حاصل كړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی په خوب كي ښځه كول په څلور قسمه تعبير لري ۱: عزت او بزرگي ۲: دمال ډيروالي ۳: ارام سهولت ۴: واده خوشحالي.

## تسبيح \ تسبيح ويل

ابين سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي تسبيح كول دالله تعالی دفرمان تابعداري ده كه څوك په خوب كي ويني چي تسبيح كوي نو دليل يي دا دي چي دالله تعالی دفرمان تابعدار به وي اودغمونو اوفكرونو څخه به خلاصون حاصل كړي او كه ويني چي تسبيح ورسره دی نو ده ته به غم او فكر ورسيږي ليكن ده ته به دهغه اجر اوثواب حاصل سي. اوكه ويني چي دتسبيح سره دالله شكر ادا كړي نودليل يي دا دي چي په دين كي به قوي سي اومال به حاصل كړي.

او که دا خوب د ملك حاکم ووینې نو دلیل یې دا دی چې د هغه ملك به اباد سي دالله تعالی فرمان دی (لئن شكرتم لازیدنكم، سورة ابراهيم: ۷) ترجمه: که تاسو شکر ګزاره سي نو موږ به درته نور زيات درکړو.

## طشت \ تالۍ

ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي چې تالي په خوب کې خادمه ښځه ده. محمد بن سیرین رحمه الله ویلي دي چې تالي په خوب کي داسې مینځه ده کومې ته چې د کور ټول ضرورتونه حواله سوي وي او که ووینې چې دده سره تالي ده یا چا ورکړیدی یا ده اغوستې ده نو دلیل یې دا دی چې کورته به خادمه ښځه راولي یا به مینځه اخلي او که ووینې چې تالۍ ماته سوې ده یا ورکه سوې ده نو دلیل یې دا دی چې دده مینځه به وتښتیږي یا به د دنیا څخه رخصت سي. کرماني رحمه الله ویلي دي چې که څوك په خوب کې ووینې چې تالۍ یې اغوستې ده نو دلیل یې دا دی چې خادمه ښځه یا مینځه به خپله ښځه جوړوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې تالي لیدل په درو وجو دي ۱: خادمه ښځه ۲: مینځه ۳: د ښځو څخه نفع حاصلول.

## تشنګي \ تنده

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې په اوبو مړیدل د تندي څخه غوره دي. او که ووینې چې ډیر تندي سوي دی او اوبه ورته نه دي حاصلي سوي دی نو دلیل یې دا دی چې ده ته به د دین لپاره یا د دنیا لپاره غم او تکلیف رسیږي او که ووینې چې تږي وو یا اوبه ورته ملاو سي یا چا ورته ورکړې وي او ده ونه چیښلې نو دلیل یې دا دی چې د غم او مصیبت څخه به خلاصون حاصل سي او په اخر کې به مراد ته ورسیږي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې تنده د دین فساد دی او که ووینې چې تږي وو او اوبه یې پیدا کړې او ویې چیښلې نو دلیل یې دا دی چې ګناه به کوي او په اخیره کې به توبه وکړي او نیک عمله پرهیزګار به سي.

## تعویذ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چې که څوك په خوب کې ووینې چې دده سره دالله د نومونو تعویذ دی نو دلیل یې دا دی چې د سختۍ او غم څخه به خلاص سي که قرضدار وي نو د قرض څخه به خلاص سي که ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي که قید وي نو ازاد به سي که په سفر کې وي نو په سلامتۍ سره به واپسي راسي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي چې که څوک ووینې چې تعویذونه لیکي او خلکو ته یې ورکوي نو دلیل یې دا دی چې دده څخه به خلکو ته نفع ورسیږي او که ووینې چې تعویذونه لیکي او د خلکو څخه قیمت باندې اخلي نو دلیل یې دا دی چې فکرمند او غمجن به سي.

## تاغار \ غټه تالۍ

غټه تالي په خوب کې لیدل همدرده او نیك عمله ښځه ده کومه چې کور ښه ساتي او خلکو ته دنیکۍ لار ښیي او د شر او فساد څخه توبه کوي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دي چې که څوك

په خوب کي ويني چي دده غټه تالۍ ماته سوي ده يا ورکه سوي ده نودليل يي دا دي چي دغه ښځه به دده څخه جلا سي يا به ددنيا څخه رخصت سي او دبعض اهل تعبيرو په نزد غټه تالۍ مينځه او يا خادمه ده.

## تفشله \ پخ کړی مسور

پخ کړي مسور په خوب کي ليدل دغم اوفکر دليل دی. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي پخ کړي مسور خوري نودليل يي دا دي چي غم اوفکر به ورته رسيږي يا به ورسره جنګ وسي او ددي په وجه به ناجوړه وي مقصد داچي په خوب کي په مسورو خوړلو کي هيڅ خير اونفع نسته.

## تکبير

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي تکبير کوي نو دليل يي دا دي چي ددښمنانو دشرارت څخه به په امن کي وي او دخيرات دروازي به باندي خلاصي سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي تکبير کول په څلورو وجو باندي وي. ۱: ددښمن څخه امن ۲: دمصيبت اوفتني څخه خلاصون ۳: خير اوبرکت ۴: دبندو کارونو خلاصيدل.

## تګرګ \ ګلی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي ګلی په خوب کي ليدل که لږ وي نو عذاب او ددنيا تنګي ده اوکه پرخپل وخت يي ويني نو ددغه ځاي خلکو ته به فراخي اونعمت ملاو سي ليکن بي وخته ګلی ليدل ددغه ځاي پرخلکو دغم اوفکر اودخفګان دليل دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ګلی ليدل په پنځو وجو باندي وي ۱: مصيبت ۲: جنګ ۳: لښکر ۴: ناجوړتيا.

## تل \ ډيري غونډۍ

تل په فارسي کي پښته يعني ډير ته ويلاي سو او ددي تفصيل په حرف (ب - پ) کي بيان سويدی.

## تمام شدن کار \ د کارونو پوره کيدل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده ددنيا کارونه په انتظام سره وي اوبامراده دی نو دليل يي دا دي چي دده حالات به بدل سي دالله تعالی فرمان دی (حتی اذا اخذت الارض زخرفها وازينت، سورة يونس: ۲٤) ترجمه: تردی چي مځکه خپل ځان ښائسته کوي او ښائسته سي اوکه څوك ويني چي دده کار نه دی پوره سوي نو دا دده دحال دبدليدو دليل دی اوبيره ده چي دده عمر پوره سوي دی اوداچي دي ظالم دی اودده څخه به انتقام اخيستل کيږي.

## تن \ بدن

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دبنيادم بدن ليدل دغم اوفکر دليل دی چي دخلکو روزي ده اوڅونه چي پر بدن کمی او زياتي ويني پر عيش اوژوند دليل دی او که ويني چي دده بدن کمزوري دی نو دا پرفقيري اوبندو کارونو دليل دی اوکه بدن چرب ويني نو دا په

مالداري او دكارونو پرفراخي دليل دی اوكه ويني چي دده دبدن څخه تار وتلي دی او اوږد سوي دی نو دليل يي دا دي چي په عيش او فراخي سره به ژوند تيروي او مال به يي زيات سي او كه ويني چي تار پري سوي دی نو تعبير يي ددي خلاف دی اوكه ويني چي دده بدن داوسپني دی يا دتانبي سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده عمر به زيات سي اورزق اونعمت به باندي فراخ وي اوكه ويني چي دده بدن دشيشي سويدی نو دليل يي دا دي چي دده مرګ نژدی سوي دی. ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دی چي كه څوک په خوب كي ويني چي دده بدن روغ اوقوي دی نو دليل يي دا دي چي دده كار به په انتظام سره وي اوراز به يي ښكاره وي اوكه ويني چي دده بدن كمزوري دی نو دليل يي دا دي چي فقير به سي اوراز به يي ښكاره سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي كه څوك پرخپل بدن زياتي ويني نو دا پر طاقت مالداري او پر دښمن دكاميابي دليل دی اوكه پخپل بدن نقصان ويني نو ددي تعبير د اولني څخه خلاف دی اوكه ويني چي دده پر ټول بدن پاړسوب دی نودليل يي دا دي چي ناجوړه به سي.

## تندر \ برېښنا \ ټکه

تندر په خوب كي ليدل دحاكم اودعامو خلكو څخه خوف اوبيره ده ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوک تندر دباران سره ويني نو دليل يي دا دي چي دخلكو خوف اوبيره به كمه وي او خير او نعمت به ورته زيات حاصل سي اوكه په سخت باران كي سخت تندر ويني نو دليل يي دادي چي خوب ليدونكي به دمور اوپلار په دعاسره بيره حاصله كړي. ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دی چي لږ رعد او پرقيدل دلږ باران دليل دی چي دپرهيزګار اودنيك عمله خلكو ددعا څخه به ورته بيره وي، جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي دتندر ليدلو دليل په پنځو وجو دی ۱: عذاب ۲: حكومت ۳: تكليف ۴: دبدبه. ۵: دپاچا غصه. اوكه څوک په خوب كي دتندر اواز دباران اوريدو په وخت كي واوري نو دليل يي دا دي چي په دغه ملک كي به خير او بركت ښكاره سي اوكه څوك ويني چي دباران پرقهاری اوبجلي ده نو دليل يي دا دي چي ددغه ملك خلكوته به دپاچا څخه بيره وی اوكه څوك ويني چي دباران سره ږلی هم ده نو دليل يي دا دي چي په دغه ملک كي به فتنه عذاب اوهلاكت پورته سي. اوكه څوك ويني چي بريښنا سخته اوري نو دليل يي دا دي چي په دغه ملک كي به دپاچا هيبت راسي اوكه ويني چي بريښنا اوتوره تياره ده نودليل يي دا دي چي ظالم پاچا به ښكاره سي.

## تنديسها \ عكسونه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوك دعكسونو سايه پر مځكه را ايله ويني خاصكر كه تور وي نو دغم اوفكر دليل دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي دعكسونو ليدلو تعبير په دروو وجو دی ۱: غم اوفكر ۲: دمرتبي اوقدر نقصان ۳: په كارونو كي خيانت.

## تنګي \ سختي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي كه څوک ويني چي د سختي څخه راحت ته راغلي

دی او دامن په ځای کي دی نو دلیل یي دا دي چي دده کارونه به په انتظام سره وي او دغمونو څخه به په راحت او اسانی کي وي اوکه ددي خلاف ووینی نوتعبیر یي ښه نه دی. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینی چي په سخت ځاي کي گرفتار سوي دی نودلیل یي دا دي چي په مشکل کار کي به راسي اوخلاصون به ځني حاصل کي اوکه ووینی چي په دغه ځاي کي خوراك سخت دی نودلیل یي دا دي چي پر ده به روزي تنگه سي او دټولو شیانو سختي په خوب کي ښه نه ده.

## تنور

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي تنور په خوب کي بزرگ او دکور سردار دی اوبعض اهل تعبیرو بیان کړیدی چي تنور په خوب کی دکور مالکه ده که ووینی چي دده سره تنور دی نو دلیل یي دا دي چي دکور کارونه به یي په انتظام سره وي اوښه به وي اوکه ووینی چي تنور مات سویدی او خراب سو نو دا دغم مصیبت ناجوړي او دکور دبربادي دلیل دی اوکه ووینی چي په تنور کي ډوډئ لگیدلي ده نودلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به حلال رزق حاصل کړي اوکار به یي ښه وي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوک ووینی چي په تنور کي ډیر اور دي اوبغیر دربا او دود څخه دی نودلیل یي دا دي چي بیت المقدس یا حج ته به ځي دالله تعالی فرمان دی (من شاطیء الوادي الایمن فی البقعة المبارکة، سورة القصص: ۳۰) ترجمه: دوا دی ایمن پر غاړه مبارك ځاي کي او بعض وایي چي خوب لیدونکي ته به خیر اونفع حاصله سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي تنور په خوب کي لیدل په دوو وجو دی ۱: خیر اونفع خاصکر که نوی وي ۲: هیبتناکه سړی چي دشفقت سره وي.

## توبره

توبره یعني داس خولي ته د ایښولو کڅوړه، ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي توبره په خوب کي خاصکر که نوي وي خیر اوبرکت دی که ووینی چي دده سره توبره ده یا چا ورکړیده نو دلیل یي دا دي چي دچا څخه به ورته خیر اونفع رسیږي اوکه ووینی چي توبره ځني ورکه سوي ده نوددي تعبیر داول خلاف دی.

## توبه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي ده توبه کړي ده نو دلیل یي دا دي چي په ټولو گناهونو اونافرمانی به پښیمانه سي او دالله تعالی درضا کار به کوي او ددنیا څخه به لاس اخلي او اخرت ته به یي مخه سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي توبه کول په څلورو وجو دی ۱: دگناه څخه پښیماني ۲: دالله تعالی رضا ۳: داخرت لار ۴: سعادت.

## توتیا\رانجه

کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي رانجه لیدل مال دی که څوك په خوب کي ووینی چي ده رانجه لگولي دی او ددي څخه یي مقصد دسترگو روښانه کیدل وي نو دلیل یي دا دي چي

ددين صلاح به خيږي او که مقصد يي ددي خلاف وي نو دليل يي دا دي چي خپله ديناري به پر خلکو په منافقانه طور ښکاره کوي ددي وجي څخه چي خلکو ته ښه ښکاره سي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي ده ته چا رانجه ورکړي دی نو دليل يې دا دي چي دهغه په قدر به ورته مال حاصل سي اوکه ووينې چي رانجه يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي محتاج اوغمجن به سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ووينې چي دتخرګ دبدبوئي دليري کولو لپاره رانجه ساتي نو دليل يي دا دي چي داسي کار به کوي چي دهغه په وجه به يي خلک مدح ثنا اونيکي بيانوي.

## توت \ شهتوت

په خوب کي خوږ توت خوړل رزق دي اوشهتوت يعني اوږده اوږده تور او تروه توتان خوړل غم او فکر دی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دخوږ توت په موسم کي خوړل دليل دی چي په هغونه اندازه به پخپل کسب کي روزي حاصله کړي که داخوب دتوتانو په موسم کي ووينې نو ډير ښه دی اوکه پخپل موسم کي نه وي نو دغم اوفکر دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ووينې چي خوږ توت خوري نودليل يي دادي چي دځوان سړی څخه به مزدوري او انعام اخلي اوکه په خوب کي ووينې چي شهتوتان يي اوږده اوږده تور اوتروه خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي غمجن اوفکر مند به سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي توت ليدل په دريو وجو وی ۱: مال ۲: دکسب څخه نفع ۳: دښځي لپاره جنګ.

## تورات

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي تورات وايي نو په ظاهره دليل دی چي ده ته به دمرتبي والا سړی څخه قوت حاصل سي اوکه ووينې چي ده په ښکاره تورات وايه نو دليل يي دا دي چي دچا سره به جنګ کوي او په هغه قدر به کاميابي حاصلوي او مراد به ورته حاصل سي اوکه څوک ووينې چي چاته دتورات تعليم ورکوي نودليل يي دا دي چي ده ته به دهغه څخه خير ورسيږي.

## تير \ غشي

دانيال عليه السلام ويلي دی چي غشي په خوب کي ليدل ريښتوني سړی دی چي دهغه څخه خلکو ته خير رسيږئ اوبعض اهل تعبير وايي چي غيبت کوي اوکه ووينې چي چا دده طرفته غشي ورغوزولي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به پيغام رسيږي خاصکر که ووينې چي دده دزخمي کولو لپاره يي باندي ويشتلي دی اوکه ووينې چي دي چا په غشي ويشتلي دی اونيت يي نخښه وه نو دليل يي دا دي چي ده ته به خط راځي.

# [ چ – ج ]

## چادر \ پټو

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پټو ليدل دښځي ستر پوش دی که څوك ووينې

چي دښځو په ډول يي پټو اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي په دغه کار کي خير اوشر دی ليکن دغه کار به بد ګڼي اوکه ويني چي پټو يي څيري سوي دي يا سوزلی دی نو دليل يي دا دي چي پردغه وخت به دده بي پردګي کيږی. ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي دشپي پټو په خوب کي ليدل ښځه ده که څوك ويني چي دده سره دشپي پټو دی يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي نوي ښځي به کوي اوکه ويني چي نوي پټو يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي مينځه به اخلي اوزوی به يي پيداسي اوکه دا خوب ښځه ويني نو دليل يي دا دي چي خاوند به کوي اوکه ښځه ويني چي دهغي دشپي پټو سوزلي دی نو دليل يي دا دي چي خاوند به يي مري يا به طلاق ورکوي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي پټو په خوب کي ليدل په دروو وجو دی. ۱: عزت اومرتبه ۲: سړی ته ښځه اوښځي ته خاوند حاصليدل ۳: دکور حکومت او سرداري.

## جادو

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي چي په خوب کي جادو کول باطل کار دی که څوك په خوب کي ويني چي جادو کوي نو دليل يي دا دي چي بيهوده اوبي فائدي کار به کوي او دبعض اهل تعبيرو په نزد دچا لپاره چي جادو کوي هغه ته فتنه ده جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي په خوب کي جادو کول ددرواغو وعده ده چي په هغه سره خلکو ته دهوکه ورکوي او په خوب کي جادو دهوکه ورکوونکي دښمن دی، جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي په خوب کي دجادو کولو تعبير په شپږو وجو باندي دی. ۱: فتنه ۲: دهوکه ۳: مکر ۴: انديښنه ۵: بي فائدی او درواغ ۶: بي اصله کار.

## چهارپای \ څناور \ حيوان

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده سره څناور دی. اودده تابع او فرمانبرداره دی نو دليل يي دا دي چي دهغه قيمت مطابق به دځنګلي سړی څخه فائده پورته کوي. که څوك ويني چي دده دځنګلي څناورو رمه را غله اودده فرمانبرداره سوه نو دليل يي دا دي چي کوم خلک په ځنګل کي اوسيږي هغه به دده تابعدار سي. ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دځنګلي څناورو سره محبت لري نو دليل يې دا دي چي دهوښيارو خلکو سره به جنګ کوي. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دي څناور سويدی نو دليل يي دا دي چي دده عقل به ختم سي او که ويني چي څناور دده سره خبري کوي نو دليل لي دا دي چي عزت به حاصلوي اوکه ويني چي دڅناور غوښه خوري نودليل يي دا دي چي دهغه په اندازه مال به حاصلوي.

## جاروب \ جارو

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دی چي جارو په خوب کي ليدل نوکر اوخدمت ګار دی اوپه شپه کي جارو خادم دی چي د ډيرو شيانو تقاضا کوي اوکه ويني چي کور جارو کوي نو دده مال به ضائع سي اوکه ويني چي دچا کور جارو کوي نو دليل يي دا دي چي دچا مال به ورته ورسيږي

خاصکر که ووینې چې دچا کور یې جارو کړي دی اوخاوره یې دځان سره خپل کور ته راوړې ده. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې جارو په خوب کې لیدل په درو وجو ده ۱: خادم ۲: نفع ۳: دخلکو دشیانو تقاضا چې ده ته به ورسیږي.

## جام \ پیاله

ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي چې که څوك ووینې چې پیاله یې داوبو څخه یا دګلابو داوبو څخه ډکه نیولې ده یا چا ورکړې ده او ده چیښلې ده نو دلیل یې دا دي چې ښځه به کوي یا به مینځه اخلي چې دهغه څخه به پرهیزګاره هلک پیداسي او دهغه څخه به راحت ووینې. اوکه ووینې چې دپیالې څخه اوبه تویېږي او پیاله پاکه پاته سوه نو دلیل یې دا دي چې دده زوی به مړ سي او ښځه به یې بچ سي اوکه پیاله ماته سوه اواوبه یې توي سوي نو دښځې او ما شوم د دواړو دمرګ دلیل دی. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چې که څوک ووینې چې دده دکور پر دیوال پیاله لګیدلې ده نو دلیل یې دا دي چې ددغه پیالو په شمار به دده ښځې اومینځې وي اوکه سپینه یا شنه پیاله ووینې نودلیل یې دا دي چې دده دښځې به نیك عمل او پرهیزګاره وي اوکه څوك سره پیاله ووینې نو دلیل یې دا دی چې دده ښځه به عیش کوونکې اومفسده وي اوکه ژړه پیاله ووینې نودلیل یې دا دي چې دده ښځه به ناجوړې اوژړه وي اوکه توره پیاله ووینې نو دلیل یې دا دي چې دده ښځه به غمجنه اومصیبت وهلې وي.

## جامه \ کالي

دانیال علیه السلام ویلي دی چې کالي په خوب کې کسب او دسړی کار دی که خپل کالي ښه ووینې نو دلیل یې دا دي چې دده کسب به بد وي. که پاچا په خوب کې خپل کالي تور ووینې نو دهغه دنیك حال دلیل دی اوکه رعایا خپل کالي تور ووینې نو دغم اوفکر دلیل دی او ژړ کالي په خوب کې ناجوړې ده اوسره کالي په خوب کې خوشحالي ده او داطاعت توفیق دی، دلیل یې دا دی چې شنه کالي دجنتیانو دی دالله تعالی فرمان دی (علیهم ثیاب سندس خضر واستبرق، سورة الدهر: ۲۱) ترجمه: پرهغو دشنو وریښمو کالي دی. او سپین پریولل سوي کالي لیدل دکار جوړیدو دلیل دی او اسماني رنګ کالي دنقصان دلیل دی اوسوزل سوي کالي دښځو دلیل دی چې دپاچا دوجې څخه وي اوخیرې سوي کالي دراز ښکاره کیدو دلیل دی او دپشمینې لنډ او دټاټ کالي دمال اومراد حاصلیدو دلیل دی اوټوکر لګیدل سوي کالي دفقیری او تنګدستې دلیل دی اوخیرن کالي که هر قسم وي دفکر اوغم دلیل دی او کاغذي کالي دملامتیا اوبدي دلیل دی اودځناورو دپوست کالي دخیر او نفع دلیل دی او بې درزه کالي دکفن په شکل دلیل دی چې دده ددین کارونه پوره سوي دی لیکن دده عمر اخیرته رسیدلی دی اوکه ووینې چې دخره پوست یې اغوستي دي نودلیل یې دا دي چې عزت اومرتبه به حاصله کړي. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چې که څوك ووینې چې دسرداری کالي یې اغوستي دی نوکه دي ددي کالیو اهل وي نو کار به یې قوي سي اوکه ووینې چې دوزارت کالي یې اغوستي دي نو دلیل یې دا دي چې دده مال به زیات سي لیکن دخلکو څخه به ملامتیا وینې او که ووینې چې ددربار کالي

يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دمشرانو دعطاء څخه به محروم وي اوكه ووينـي چي دشاهي مددګار كالي يي اغوستي دی نودليل يي دا دي چي څوك به ورتـه پـه بخشش رسـولو كي مدد كوي اوكه ووينـي چي دجلاد كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي نفع به حاصله كړي اوكه ووينـي چي دنمبردار كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي امانتدار او ژبه ور به وي اودخلكو په ضروري كارونوكي به مشغول سي. او كه ووينـي چي دصوفيانو كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دين به يي زيات وي اوكه ووينـي چي دپرهيزګارانو كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي امانت دار به وي اوكه ووينـي چي دسوداګر كالي يي اغوستي دی نودليل يي دا دي چي دده ددنيا كاروبار به نيك وي اوكه ووينـي چي داهل اصلاح كالي يي اغوستي دي نو دليل يي د ادي چي دده دين به په صلاح سره وي اوكه ووينـي چي دفساديانو كالي يي اغوستي دی نو دا دغم اوفكر دليل دی اوكه ووينـي چي دمزدور كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي فكر مند اورنځور به سي. اوكه ووينـي چي دطبيب كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دده كار به نيك وي او په خلكو كي به مشهورسي اوكه څوك ووينـي چي ديهوديانو كالي يي اغوستي دي نو دليل يي دا دي چي څوك به په دهوكه او بهانه هلاك كړي او دده انجام به بد وي اوكه ووينـي چي دعيسايانو كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي داسي كاربه كوي چي دهغه په وجه به ددښمن څخه په امن نه وي اوكه ووينـي چي دپادريانو كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دي به بدعتي وي اودده توجه به دكفر اوګمراهي طرف ته وي اوكه ووينـي چي دده سره داتش پرستو كالي دی نو دليل يي دا دي چي دده رغبت به دبي دينو اوجاهلانو طرفته وي اوكه ووينـي چي دسپاهيانو كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي څوك به ورته يو شي وركړي اوبيابه يي بيرته ځنی اخلي او كه ووينـي چي دبت پرستو كالي يي اغوستي وي نو دليل يي دا دي چي دپاچا يا امير په خدمت كي بل مشغول سي اوكه ووينـي چي دښځو كالي يي اغوستی دی نو دليل يي دا دي چي دخپل بزرګ څخه به ليري سي اوكه ووينـي چي دجيليانو كالي يي اغوستي دي نو دليل يي دا دي چي دځه كار لپاره به غمجن او حاجتمند سي اوكه ووينـي چي ددقلي كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي امانتداره به وي اوبدنام به وي اوكه ووينـي چي دګوركن كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دبد اودكم همته سړی په خدمت كی به مشغول سي. او كه ووينـي چي دمانړوګي كالي يي اغوستي دی نودليل يي دا دي چي ده ته به په يو مصلحت حلال رزق ورسيږي اوكه ووينـي چي دده سره دقصاب كالي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به نقصان او فكر ورسيږی اوكه ووينـي چي دماتمي كالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دښځي سره به په ښه طريقه صحبت نه ساتي. ابراهيم كرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي كه څوك ووينـي چي نوي كالي ورسره دی او دهوبي پريولي نه دی نو دنيكي دليل دی اوتنګي اوخرابي جامي ليدل دنوی اودهوبي پريولل سوي څخه ښه دی او دكيمخا كالي عقلمنده ښځه اوهوشياره مينځه ده او پټه داره كالي خير اونفع ده او دنامعلومه رسي كالي دكوړي زخم يا سخت غم دی چي ده ته

به ورسيږي او مقرره کالي طلب کړه سوي مال دی. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي دکالو ليدلو تعبير پر دوه قسمه دی ديو تعلق ددين سره دی او دبل تعلق ددنيا سره دی او سپين کالي دين دی او دپټکي نوي کالي دنيا ده او که څوک ويني چي دده سره نوي سپين او پاك کالي دي نو دا ددين او دنيا ددواړو لپاره ښه ده او که پنډ او تنگ کالي ويني دا ددين اودنيا دواړو لپاره بدوالی دی اوکه کالي خيرن او ځيري ويني نو داهم ددين او ددنيا دفساد دليل دی اوسره کالي دښځو او سړيو دواړو لپاره ښه دی اوپرتوگ لنگ دوريښمو پټو قبا او پټکي داټول دسړيو لپاره غم اوفکر دی يا جنگ دی اوژړ کالي دسړيو لپاره ناجوړي ده اودبعض اهل تعبيرو دفرمان مطابق که ښځه ويني چي هغې ژړ کالي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي خاوند به کوي اوکه خاوند والاوي نوناجوړه به سي اوشنه کالي دښځو اوسړو لپاره دين دی که په ژوندي يي ويني نو ددين صلاح ده او که په مړي يي ويني نو داخرت دخلاصي دليل دی اوتور کالي دهغه چا لپاره چي هميشه تور کالي اغوندي ښه دی ليکن دسپينو کالو اغوستونکي لپاره تور کالي ښه نه دی په دين او دنيا دواړو کي ښه نه دی. او دبعض اهل تعبيرو په نزد تورکالي دخطبي قاضي اوپاچا دپاره ښه دی اودرعايا لپاره غم اوفکر دی او اسماني رنگ کالي بهتان غم اومصيبت دی. اوکه څوك ويني چي دده سره رنگدار کالي دی شنه سره اوژړ دي نودليل يي دا دي چي دپاچا څخه يا ددغه ولايت دحاکم څخه به داسي خبره اوري چي ده ته به ښه نه معلوميږي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي څوك ويني چي دده سره دواړه طرفته رنگ سوي کالي دي نو دليل يي دا دي چي داهل دنيا اواهل دين سره به په ذلت سره ژوند تيروي اوکه ويني چي خپل کالي خوري نو دليل يي دا دي چي دخپل مال ډيره حصه به خرڅ کوي اوکه ويني چي ځيري سوي کالي يي اغوستي دی نودليل يي دا دي چي په سفر به ځي يا دڅه کار لپاره به قيدخاني ته وليږل سي اوکه ويني چي دده کالي ورك سويدی يا چا ځني واخستل او دي پخپله لڅ پاته سو نودليل يي دا دي چي عزت اومرتبه به يي کمه سي او ذليله اوخوار به سي اوکه ويني چي خپل کالي يي ځيري کړل نودليل يي دا دي چي غمجن به سي اودخپلي ښځي سره به جنگ کوي اوکه ويني چي دده کالي ځيري دی نودليل يي دا دي چي دښځي څخه به جلا سي اوکه ويني چي خپل کالي يا دخپلي اهل خاني کالي پيدا کړي نو دليل يي دا دي چي دخپلوانو سره به يي جنگ کوي يا به دده دوست سره جنگ کوي اوکه ويني چي چا ځني په زور اخيستي دی اودي يي لڅ پاته کړيدی نودليل يي دا دي چي دعزت او مرتبي څخه به معزول سي اوکه ويني چي د قحط کره سوي کالي يي خلاص کړي دی نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي اوکه ويني چي خلاص سوي کالي يي نغښتي دی نودليل يي دا دي چي دده څخه ورك سوی سړی به دسفر څخه واپس راځي. که ويني چي دښځو کالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي مال به يي زيات سي ليکن بيره به يي زياته سي اوديو قول مطابق ده ته به غم فکر او بي حرمتي وي اوکه ويني چي دسړيو کالي لري نو دليل يي دا دي چي خير اونعمت به ورته حاصل سي او په خوب کي کالي پيدا کول دسفر دليل دی او

دکالو داوږدوالي اوپلنوالي مطابق به دسفر موده وي اوکه ووینې چې کالي يې تمام کړيدی نو دليل يې دا دي چې دغم څخه به خلاصون پيدا کړي.
اصفهانی رحمة الله علیه ويلي دی چې په خوب کي په ټولو کالو کي ښه کالي دسوترو دي چې ريښم پکښي نه وي اوسوتي عنابي کالي يا دريښمو کالي دواړه دحرام مال او ددين دفساد دليل دی او دريښمو اوابريشم کالي دسړو لپاره بد دي اودښځو لپاره ښه وي او زاړه کالي دپاچا دطرف څخه غم اوفکر دی اوکه څوك په خوب کي ووينې چې زاړه کالي يې خرڅ کړي دی نو ښه دی او که زاړه کالي واخلي نو بد دی اوزاړه کالي دبدن څخه ليري کول ښه دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ويلي دی چې که څوك په خوب کي مينځل سوي کالي واغوندي نو دتبي دليل دی اوکه خيرن کالي ووينې نوفقير به سي اوکه په خوب کي ووينې چې رنګين کالي يې اغوستي دی نو دښځي اوسپاهي لپاره يې تعبير ښه دی اوکه ووينې چې عجيبه رنګ کالي لري نو دليل يې دا دي چې مکروه خبره به دده مخ ته راسي. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چې نوي کالي په خوب کي ليدل په څلورو وجودی. ۱: ښځه ۲: پاچا ۳: مال ۴: خير اونفع، او دايي هم ارشاد وفرمايي چې که څوك ووينې چې خپل کالي په غچي سره پريکوي نودليل يې دا دي چې څه شي به ورته ورسيږي اوکه ووينې چې غلو دده څخه کالي ايستلي دی نو دليل يې دا دي چې دده دښځو په مينځ کي به فساد پيداسي.

## جامه خواب \ د خوب کالي

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چې دخوب کالي په خوب کي دليدلو تعبير ښځه ده اوکه ووينې چې دخوب کالي پاك اوسپين دي نو دليل يې دا دي چې اولاد به يې پرهيزګاره او ديندراه وي او که دخوب کالي تور ووينې نو دليل يې دا دي چې ده ته به دخپل اولاد څخه غم اوفکر ورسيږي. اوبعض اهل تعبير بيان کړيدی چې په خوب کي تورکالي دپاچا لپاره ښه دی او درعايا لپاره ښه نه دی اوکه دخوب کالي اسماني رنګ ووينې نو دليل يې دا دي چې ده ته به داولاد په وجه غم فکر اومصيبت رسيږي اوکه ووينې چې دده دخوب کالي خيرن دی او څيري دي نو دليل يې دا دي چې دده ښځه به خرابه خيرنه اوناموافقه وي اوکه ووينې چې دده دخوب کالي ورك سوي دی يا چا پټ کړي دی نو دليل يې دا دي چې ښځي ته به طلاق ورکړي يا به ځني جلا سي اوکه ووينې چې دده دخوب کالي سوزلي دی نو دليل يې دا دي چې دده اولاد به مري. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چې دخوب کالي ليدل په دروو وجو دی ۱: نيکه ښځه ۲: اسانتيا اوراحت ۳: غم فکر اومصيبت.

## جان \ روح

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چې په خوب کي روح ليدل زوی مال يا موافق عيال دی اوکه ووينې چې دده دبدن روح وتی نو دليل يې دا دي چې دده زوی يابښځه به مري يا به يې مال ورك سي او يابه پخپله هلاک سي اوکه خپل روح دنيك سړي په شکل کي ووينې نودليل يې دا دي چې دده به نيك زوی پيداسي اوحال به يې ښه سي اويا دخوش طبيعته اوځوانمرده پاچا خدمت به ورته

حاصل سي او حال به يي ښه سي او كه خپل روح ديو خراب سړی بدخويه په شكل كي ووينـي نو ددي تعبير د اولني څخه خلاف دی.

## حكايت

په حديث شريف كي راغلي دی چي يو سړی دنبي ﷺ په خدمت كي حاضر سو اوعرض يي وكړي اي دالله رسوله ماپه خوب كي ليدلي دی چي روح زما دبدن څخه راوتلي دی او زه يي په غيږه كي اخيستي يم اوبيا اسمان تـه تللي دی حضور ﷺ وويل چي وصيت وكړه ستا روح خپل ځاي ته رسيدلي دی بياهم په هغه ورځ هغه سړی ددنيا څخه رخصت سو. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه وايي چي كه په خوب كي خپل روح پخپل لاس كي ووينـي نو دليل يي دا دي چي په خطرناك كار كي به مشغول سي او ده ته به دمرګ بيره وي اوكه ووينې چي روح دده دلاس څخه اسمان ته تللي دی نو دليل يي دا دي چي ژر به مري اوكه ووينې چي دده دروح رنګ ژړ دی نو دليل يي دا دي چي په سخته ناجوړي كي به مړسي اوكه روح سور يا سپين ووينې نو دده انجام به ښه وي او دغمونو څخه به خلاصون حاصل كړي اوكه روح تور رنګي ووينې نو دليل يي دا دي چي دالله تعالی دعذاب مستحق به وي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ووينې چي دمړي څخه روح وزي او خپلوان ورته ژاړي نو دليل يي دا دي چي دمړي كوروالاو ته به غم اوفكر ورسيږي او كه ووينې چي خپلوان يي په كراره كراره ژاړي نو دليل يي دا دي چي دمړي روح په عذاب كي دی.

## چاه \ څاه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي دڅاه اصل تعبير ښځه دی كه څوك ووينې چي په يو ځاي كي څاه كني نو دليل يي دا دي چي ښځه به كوي اوكه ووينې چي دڅاه په كښلو كي ورسره څوك مدد كوي نو دليل يي دا دي چي دده او دښځي تر مينځ به وكيل وي او دی غواړي چي په مكر اودهوكي سره ددغه ښځي سره واده وكړي ځكه چي په متلونو كي څاه كښل مكر او حيله ده چي فلاني دفلاني لپاره څاه كاږي يعني دهغه سره بد اومكر كوي اوپه خوب كي دڅاه كښل يعني دهغه سره بد او مكر كوي او په خوب كي دڅاه اوبه دښځي مال دی اوكه څوك ووينې چي دڅاه اوبه يي چيښلي دي نود ليل يي دا دي چي دښځي مال بـه خوري اوكه دداسي څاه څخه اوبه چيښي چي دپخو خښتو څخه جوړ سوی دی نودا دښځي پر مال دليل دی او كه ووينې چي څاه يي كښلي دی اواوبه يي ځني راونه ايستلي نو دليل يي دا دي چي دغريبي ښځي سره بـه واده كوي. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ووينې چي دڅاه اوبه په چيښلو كي خوږي دي نو دليل يي دا دي چي دښځي مال به په نفرت سره اخلي اوكه ووينې چي دڅاه اوبه ښي يخي دی نو دليل يي دا دي چي دښځي څخه به خير اونفع حاصله كړي. اوكه ووينې چي په څاه كي ډيري اوبه دی نو دليل يي دا دي چي ښځه به يي ځوانه اوسخي وي اوكه ووينې چي په څاه كي اوبه لږ دي نو دليل يي دا دي چي ښځه به يي بد ذاته اوبده وي او كه ووينې چي څاه يي وكښي اوژر اوبه پكښي راغلي نو دليل يي دادي چي ښځه به يي ناجوړه سي او كه دڅاه څخه

توري یا اسماني رنګ اوبه وتلي وی نودلیل یي دا دي چي غم اوفکر به ورته ورسیږی اوکه دڅاه څخه سپیني اوبه راوزي نو دلیل یي دا دي چي وراثت به حاصلوي اوکه ووینې چي دڅاه اوبه ژوري ولاړی اوهیڅ پاته نه سوي نودلیل یي دا دي چي ښځه به یي هلاکه سي اومال به یي ورك سي اوکه ووینې چي څاه تر زمکي لاندی ولاړي نو دلیل یي دا دي چي ښځه به یي هلاکه سي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینې چي څاه ته یي بوقه اچولي ده چي اوبه ځني راباسي او رسی یي پري ده نو دلیل یي دا دي چي دده به ناقص زوی پیدا سي.

## حکایت

په حدیث شریف کي راغلي دی چي یو سړی دعبدالله بن عباس رضی الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي ما په خوب کي لیدلي دی چي څاه ته مي داوبو را ایستلو لپاره بوقه واچوله نو رسي دوه ټکړي سوه یو ټکړه په څاه کي پاته سوه اوبله راوختله عبدالله ددي خوب په تعبیر کي وویلي چي ته دخپل عیال څخه غائب وي او ستا دشپږو میاشتو زوی پیدا سو اوهغه یي دفن کړو هغه سړی وویل چي ماته په دي خبره ډیر تعجب وسو یعني پوره تعبیر یې بیان کړو.

دانیال علیه السلام ویلي دی چي که څوك ووینې چي په نامعلومه ځاي کي څاه کني نو دلیل یي دا دي چي دخپلوانوسره به مکراوفریب کوي اودبعض اهل تعبیرو دوینا مطابق څاه کیندل او اوبه را ایستل دنکاح حکم لري اوکه ووینې چي دبل چا لپاره څاه کني نودلیل یي دا دي چي دده په واسطه به دچا نکاح کیږي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك دڅاه څخه اوبه راوباسي نو دلیل یي دا دي چي په مکر اوفریب سره به مال جمع کوي خاصکر که پخپله یي کښلي وي او که ووینې چي دبوقي څخه اوبه منګي ته اچوي نو دلیل یي دا دي چي دخپل مال حفاظت به کوي. اوکه اوبه راوباسي او په مځکه یي توي کړي نو دلیل یي دا دي چي په مکر اوحیله کی به راسي اوکه ووینې چي باغ ته اوبه ورکوي نو دلیل یي دا دي چي کوم مال یي ګټلي وي په هغه به ښځه کوي یا به باندي مینځه اخلي. اوکه ووینې چي په دغه باغ کي میوي دی نو دا پر زوی پیدا کیدو دلیل دی او بعضي وایي چي که ووینې چي باغ ته اوبه ورکوي نو دلیل یي دا دي چي دخپلي ښځي سره به نکاح کوي اوکه ووینې چي اوبه دڅاه سر ته راغلي او بهیږي نو دلیل یي دا دي چي دمالداري ښځي سره به واده کوي او ددغه ښځي څخه به ورته مال اونعمت حاصل سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي څاه لیدل په شپږو وجو دی ۱: ښځه ۲: مینځه ۳: عالم ۴: مالداري ۵: مکر ۶: فریب او حیله او په خوب کي څاه کښل مکر اوحیله ده.

## جبه\ غټ کوټ\ چپنه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي چوغه په خوب کي ښځه ده که ووینې چي د ده سره فراخه اوپاکه چوغه ده نو دلیل یي دا دي چي دده ښځه به نیك خیاله اونیك خویه وي اوکه د دې خلاف ووینې نو دده ښځه به بدخویه اوناموافقه وي او که ووینې چي دده چوغه خیري ده یا

سوزلي ده نو دليل يي دا دي چي دسړی اوښځي ترمينځ به جدائي راسي. صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ديخني په موسم کي پرخپل بدن چوغه ليدل ښه دی اوپه څلورو وجو دی ۱: ښځه ۲: قوت ۳: واده ۴: نفع او زړه اوخيرنه چوغه غم اوفکر دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي چوغه ورسره ده يا چا ورکړي ده اورنګ يي شين دي نو دليل يي دا دي چي پاك دينه ښځه به کوي او که ويني چي سپينه اونوي چوغه ورسره ده نو دليل يي دا دي چي پرهيزګاره او امانتداره ښځه به کوي او که ژړه ويني نو ناجوړه ښځه به وي اوکه اسماني رنګ ويني نو فکرمنده اوغمجنه ښځه به کوي او که سره چوغه ويني نوښځه به يي عيش پسنده وي او دده سره به موافقت نه کوي.

## چتری \ سايوان

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده پر سر چتري لګوي نو دليل يي دا دي چي که دشاهي اهل نه وي نو پاچاهی به حاصله کړي کنې دمشرئ دليل دی اوکه ويني چي دپاچا چتري دده په لاس کي ده نو دليل يي دا دي چي د پاچا مقرب به سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي چتري ليدل په اووه وجو ده: ۱: سلطنت ۲: عزت ۳: مرتبه ۴: رياست. ۵: لوړوالي ۲: ولايت ۷: د مشرانو سره ناسته ولاړه.

## چراغ \ ډيوه

ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ډيوه دکور خادم دی اونورو اهل تعبيرو ويلي دی چي دکور مالکه ده که په خوب کي ويني چي دده په کور کي پاکه ډيوه روښانه ده نو دليل يي دا دي چي دکور مالکه اصلاح منده اونيك خويه ده او که ويني چي ډيوه بليږي نو دکور په مالکي يا ښځي يا دخادمي پر غم دليل دی او که ويني چي ډيوه مړه سوي ده نو دليل يي دا دي چي کور به را ايله سي او دکور مالکه به مړه سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي په تاخ کي ډيوه بله ده نو دليل يي دا دي چي که واده يي کړي دی نو زوی به يي پيدا سي کني ښځه به کوي يا به مينځه اخلي اوکه څوك يي په سفر تللي وي نو بيرته به راسي اوکه ويني چي په ښار کي ډيري ډيوي دي نودليل يي دا دي چي دملك پاچا عادل اوقاضي انصاف کوونکي دی اودښار خلك به خوشحاله وي اسماعيل رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي دده په لاس کي ډيري ډيوي دی نو دليل يي دا دي چي زوی به يي راسي او عزت او دولت به حاصل کړي او که خوب ليدونکي بدکاره وي نو دليل يي دا دي چي دالله تعالی طرف ته به رجوع وکړي اوتوبه به وکړي او که مشرك وي نو هدايت به حاصل کړي اوکه مسلمان وي نو دعبادت توفيق به حاصل کړي دالله تعالی فرمان دی (وسراجا منيرا وبشر المؤمنين بان لهم من الله فضلا كبيرا، سورة الاحزاب: ٤٧) ترجمه: او يوه روښانه ده اوايماندارانو ته زيري ورکړه چي پر دوی دالله تعالی دطرف څخه لوئ فضل دي. اوکه ويني چي څراغ مړ سو نو دليل يي دا دي چي زوی به يي هلاک سي يا به يي په عزت اودولت کي نقصان وسي او که ويني چي د ده په مخکي ډيوه

بلیږي نو دلیل یي دا دي چي ددین اودنیا مرادبه حاصل کړي اوکه ویني چي دده په لاس کي دوه بتیو والا ډیوه بلیږئ نو دلیل یي دا دي چي دده به یوځای دوه زامن پیداسي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کي د ډیوي لیدلو تعبیر په څوارلسو وجو دی ۱: پاچا ۲: قاضي ۳: زوی ۴: ناوي ۵: ولایت ٦: سرای ۷: سردار ۸: واده ۹: علم ۱۰: مالداري ۱۱: خوشحاله ژوند ۱۲: مینځه ۱۳ : نفع ۱۴: ښځه چي یي لیدلي وي هغسي به کیږي.

## چراغ پایه \ پر کومي چوکۍ چي ډیوه ږدي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي څراغ پایه دکور خدمت ګار دی که و ویني چي د ده سره چوکی ده یا چا ورکړي ده نو دلیل یي دا دي چي دده خادمه به خوشطبعه اومهربانه وي او که چوکی ته سره زر لګیدل سوي وویني نودلیل یي دادي چي د ده خادم به متکبره او مغروره وي اودین به یي کمزوري وي اوکه وویني چي چوکی دلرګي ده نودلیل یي دا دي چي خادمه به یي بد ذاته وي او دهغي په خبرو اعتبار کول نه دي پکار.

## چراغ دان \ د ډیوي ایښودلو تاخ

څراغ دان په خوب کي ښځه ده او اهل تعبیر بیان کړیدی چي دکور اوقبیلي خدمتګار دی او څراغ دان حکومت دی، ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك وویني چي څراغ دان داوسپني دی نو دلیل یي دا دي چي دده خدمت ګار داصله اتش پرست دی اوکه دخاورو یي وویني نو د ده خدمت ګار داصله مسلمان دی او دیندار اوامانتدار دی او که وویني چي څراغ دان دده دلاس څخه را ایله سو او مات سو نو دلیل یي دا دي چي دده ښځه یا خدمت ګار به مري.

## چرغ \ یو ښکاري مارغه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کی چرغ پاچا دی او که په خوب کي وحشي چرغ وویني نو دلیل یي دا دي چي دده زوی به بلوغ اوځواني ته ورسیږي. او که وویني چي چرغ یي نیولي دی او په هغه یي ښکار کړیدی نو دلیل یي دا دي چي پاچا به پر ده ظلم اوزیاتي کوي او که وویني چي پاچا چرغ ورکړي دی اوهغه ښکار کوی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا څخه به عزت اوحرمت وویني اوپر نورو خلکو به ظلم کوی اوکه وویني چي چرغ ښکار کوي اوهغه یي نیولي دی نو دلیل یي دا دي چي دده به نافرمانه زوی وسی او که وویني چي دده دغوښي څخه چرغ څه خوړلي ده نو دلیل یي دا دي چي د زوی څخه به غم اوبدي وویني ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دچرغ لیدلو تعبیر بزرګ هیبتناك اوقوي سړی دی او که وویني چي چرغ دده پر کور په یوه یا دوه واري اواز کړیدی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به نقصان رسیږي او که دري اوازونه یي کړي وي نو هیڅ نقصان به ورته نه وي او بعض اهل تعبیر وایي چي په خوب کي چرغ غل سړی دی چي دشپي هر قسم کارونه کوي.

## چرک \ خیره

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي وویني چي کالي یي خیرن دی نودا دده

ددين اودنيا دتباهي دليل دی اوکه ووينی چي دده دکالو خيري دمړو دوچي څخه دی نو دا ددين دفساد او ددنيا دصلاح دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي پر بدن او پر سر خيری ليدل غم اوفکر دی اوپه خوب کي پر بدن خيري ليدل دهيڅ قسم خير اونفع دليل نه دی.

## جزغ \ کوړئ د مړي

کوړئ په خوب کی ليدل مختلف حال ګنده او غلامزاده ښځه ده که ووينی چي دده سره کوړئ ده ياچا ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي دپورته صفت ښځه به کوي اوکه ووينی چي کوړئ دده څخه ورکه سوي ده نو دليل يي دا دي چي ښځه به يي مري يا به ورته طلاق ورکوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي دسپيني اوروښانه کوړئ ليدلو دليل دا دي چي پرهيزګاره امانتداره او ښائسته ښځه به کوي اوکه ووينی چي کوړی تکه توره ده نو ددي تعبير د اولني خوب خلاف دی.

## جستن \ جمپ وهل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينی چي ديو ځاي څخه يې جمپ وهلي دی نودليل يي دا دي چي حال به يي بدل سي او که ليري يي جمپ وهلي وي نو په اوږد سفر به ځي اوکه ووينی چي دده په لاس کي لرګي يا نيزه ده اودهغي سره يوځاي ته جمپ وهل وي نو دليل يي دا دي چي دمدد لپاره په قوي سړی اعتماد کوي چي هغه کار دده په مرضی برابر وسي او که ووينی چي ددېوال څخه يي جمپ وهلي وی اوپر ځناور ناست دی نودليل يي دا دي چي هلاک به سي اوکه ووينی چي دکور پر کوټه يي جمپ وهلي دی اوکور را ايله سوي دی او دي مړ سويدی نو دليل يي دا دي چي ښځه به ځني جلا سي اوبيا به بيرته راسي. اوکه ووينی چي دمځکي څخه يي هواته جمپ وهلي دی او دقبلي طرف ته يي مخ کړي دی اوبيا يي ځان په حرم کعبه يامکه يا مدينه منوره کي وليدی نو دا ټول دحج کولو دليلونه دی اوکه ووينی چي دنامعلوم ځاي څخه يي نامعلوم ځاي ته جمپ وهلي دی نودليل يي دا دي چي هلاک به سي او که ووينی چي په شګون سره يي جمپ وهلي دی اوهلته را زړيږي نودليل يي دا دي چي عيش به باندي خلاص سي او که ووينی چي هواته يي جمپ وهلي دی اومرغي يي نيولي ده نو دليل يي دا دي چي خپله ښځه به پريږدي اوبله ښځه به کوي اوکه ووينی چي په لرګي يا په همسا سره يي ديو ځاي څخه بل ځاي ته جمپ وهلی دی اوګرځي نو دليل يي دا دي چي دغم اواندېښني څخه به خلاص سي او کار به يي په انتظام سره وي.

## چشم \ سترګي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي سترګه ليدل يو بينا سړی ليدل دی چي دهغه څخه به دهدايت لاره پيداکړي شني سترګي بدعت دی اوګلابي سترګي زوی دی اوکه څوک ووينی چي پخپله ړوند سوي دی نو دليل يي دا دي چي دهدايت دلاري څخه به ورك سي يابه يي زوی مړ سي. اوکه ووينی چي دی په يوه سترګه ړوند سوي دی نودليل يي دا دي چي دده نيم دين

ورك سوي دی یا ده ډیره لویه ګناه کړیده یا به دده په لاس یا یوه پښه یا دبدن په یوه حصه مصیبت راځي یا به دده نیم کار خراب سي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي که څوك وویني چي په سترګو کي یي رانجه لګولي دی نو دلیل یي دا دي چي ددین اصلاح به تلاش کوي اوکه ویني چي درانجو څخه دده مقصد ښکلي والي او ارائش دی نو دلیل یي دا دي چي ځان دخلکو په مخکي امانتدار اودیندار ښکاره وي چي عزت حاصل کړي اوکه ووینی چي چا ده ته رانجه ورکړي دی چي په سترګوکي یي واچوي نو دلیل یي دا دي چي دهغه په قدر به مال حاصل کړي اوکه ووینی چي دده دسترګو نظر کمزوري سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دی په ښکاره اوپه پټه دوه مخي منافق دی اوکه ووینی چي دده پر بدن ډیري سترګي دی اوټول شیان په ښه طریقه سره ویني نودا ددین دصلاح دلیل دی او دشریعت فرائض اوسنت په ښه رقم سره ادا کوي. اوکه ووینی چي چا سترګي ځني ایستلي دی نودلیل یي دا دي چي په کوم شي دده سترګي روښانه وي لکه ښځه زوی باغ دابه دده دنظر څخه ورك سي داسي چي بیا به یي نه ویني. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که داوسپني سترګي ووینی نو دلیل یي دا دي چي پرده به یي شلیږي اوکه ووینی چي دده پردواړو سترګو پاړسوب دی چي سترګي یي نه سي خلاصیدلی نو دلیل یي دا دي چي دمخالف سړی په صحبت کي به کښیني او که دسترګو رڼا کمزوري ووینی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به په طاعت کولو کي نقصان رسیږي اوکه خپلي سترګي ایستل سوي ووینی نو دلیل یي دادي چي ددین او شریعت څخه به بي برخي وي اوکه ووینی چي دده دمخ په مینځ کي یوه سترګه ده نو دلیل یي دا دي چي ددین په باره کي به دخپلي ژبي څخه نالائقه خبري کوي او که ووینی چي دده سترګي روښانه دی او خلکو ته ړندي ښکاري نو دلیل یي دادي چي دده ددین باطن دظاهر څخه غوره دی اوکه څوك ووینی چي دده په تورو سترګو کي ککځ سوي دی نو دا دبدي او دحال دبدلیدو دلیل دي. دالله تعالی فرمان دی (ونحشر المجرمين يومئذ زرقا، سورة طه: ۱۰۲) ترجمه: اوموږ به ګنهګاران دقیامت په ورځ شین سترګي را پورته کړو. اوکه ووینی چي دده دواړي سترګي سپیني سوي اوبیا توري سوي نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي یا به دچا سره جنګ کوي اوکه ووینی چي سترګي یي توري سوي اوسپین والي په کي پاته نه سو نو دلیل یي دا دي چي متکبر به سي اوکه ووینی چي دده پر یوه سترګه افت راغلي دی نو دلیل یي دا دي چي دده زامن له به څوك افت رسوي اوکه ووینی چي چا ځني یوه سترګه وویشته نو دلیل یي دا دي چي څوك به دده زوی دلاري څخه بوزي اوکه ووینی چي چا دده سترګه تړلي ده یا یي په لاس کي اخیستي ده نو دلیل یي دا دي چي دده دزوی یا دمال نقصان به وسي یا به ګناه کوي اوکه ووینی چي دده دسترګي څخه وینه بهیږي نو دلیل یي دا دي چي ده ته به دزوی دطرف څخه غم رسیږي یا به یي دمال نقصان وسي. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینی چي سترګه یي غوږ سوي دی اوغوږ یي سترګه سویده نو دلیل یي دا دي چي دانجلي مور به کوي اوددواړو سره به جماع کوي اوکه ووینی چي سترګه یي په تلي کي ده

نودليل يي دا دي چي مال به حاصل کړي اوکه ويني چي دده په سترګو کي سپين والي دی نو دليل يي دا دي چي غم اوفکر به ورته ورسيږي دالله تعالی فرمان دی (وابيضت عيناه من الحزن، سورة يوسف: ٨٤) ترجمه: دغم دوجي يي دواړي سترګي سپيني سوي.

## حکایت

بيان کوي چي يو سړی ددانيال عليه السلام په خدمت کي حاضر سو اوعرض يي وکړ چي ما په خوب کي ليدلي دی چي زما راسته سترګه چپه سترګه مچوي دوی يي په تعبير کي وويل چي اي سړيه دالله څخه وبيريږه اوتوبه وکړه او ائنده دخپل همسايه سره خيانت مه کوه د دې وجي څخه چي ته دالله تعالی دعذاب څخه په امن کي سوي خوب ليدونکي عرض وکړي چي ما توبه کړي ده. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي سترګي ليدل په اووه وجودی ۱: رڼا ۲: ددين هدايت ۳: اسلام ۴: زوی ۵: مال ۲: علم ۷: دمال او ددين زياتوالي.

## چشمه \ چينه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي داوبو چينه سرداري ده اوبخشش کوونکي يي ځوانمرد او دخوشبوداره اوبو په ډول دی دالله تعالی فرمان دی (فيها عين جارية، سورة الغاشية: ۱۲) ترجمه: په هغه کي چينه جاري ده اوکه دچيني اوبه توري خرابي اوبدرنګه وي نو دليل يي دا دي چي دده انجام دغم بيماری او دمصيبت دی اوکه ويني چي په چينه کي اودس کوي نو دليل يي دا دي چي دغمونو څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه ويني چي دچيني اوبه زياتي سوي دی نو دليل يي دا دي چي عزت اومرتبه به حاصله کړي او په دغه ملك کي به سخاوت زيات سي اوکه ويني چي دچيني اوبه نقصاني سوي دی نوددي تعبير داولني خلاف دی او که ويني چي دچيني اوبه وچي سويدي نودليل يي دا دي چي يوڅوک سخي سردار به ددغه ملک څخه رحلت کوي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك وينی چي دده په کور کي يا دده په دکان کي داوبو چينه ښکاره سويده نو دليل يي دا دي چي ددغه چيني دقدر او قيمت په اندازه به ورلره غم اوفکر ورسيږي اوکه اوبه يي خونده ويني نو غم اوفکر به ورته سخت وي اوکه ويني چي په دغه چينه کي يي مخ لاس پريولي دی نو دليل يي دا دي چي که غلام وي نو ازاد به سي که غمجن وي نو دغم څخه به خلاصون حاصل کړي که بيمار وي نو شفا به حاصله کړي که قرضداره وي نو دقرض څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه ګنهګاره وي نو توبه به وکړي اويا به حج وکړي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دچيني اوبه دخوب ليدونکي پر عمر دليل دی خاصکر که په اوبو کي يي لاس وهلي وي نو دچيني مطابق به يي عمر وي او ولاړي اوبه د جاري اوبو څخه په تعبير کي کمزوري دی. اوبعض اهل تعبير وايي چي دچيني ولاړي اوبه ددين صلاح ده او جاري اوبه پر غم او فکر دليل دی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دچيني اوبه په خوب کي ليدل په پنځو وجو دی ۱: سرداري او سخاوت ۲: غم او فکر ۳: مصيبت ۴: ناجوړي ۵: عمر او ژوند حاصلول.

## چغانه \ یو ساز دی

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ساز بیهوده خبره او درواغ دی که څوك ووینې چي باجه رغوي نودلیل یې دا دي چي بیهوده خبري اودرواغ به وایي اوکه ووینې چي پاچا باجه ورکړیده نو دلیل یې دا دي چي دپاچا څخه به ورته غم اوفکر رسیږي اوکه ووینې چي ساز یې مات کړي او غورزولي یې دی نو دلیل یې دا دي چي ددرواغو اوباطلو خبرو څخه به توبه کوي اوکه ووینې چي باجه رغوي اومخکي ورته باجه رغول نه وه ایزده نو دلیل یې دا دي چي که صاحب علم وي نوخلکو ته به تعلیم ورکوي اودخپل علم څخه به فایده رسوي اوخلکو ته به دحدیث فقه او دتفسیر علم ښیي اوکه خوب لیدونکی جاهل وي نو داسي کاربه اختیار کړي چي په هغه به یې خلک ملامتوي اوکه ووینې چي دساز سره لاس چکچکی وهي نودا پر غم او فکر او مصیبت دلیل دی.

## چغد \ کوچنی ګونګی

ګونګي په خوب کي فساد کوونکي اوحرامي دی اوکه ووینې چي څوك ګونګي نیسي نودلیل یې دا دي چي هغه به دداسي سړی سره جنګ کیږي اوپه هیڅ حال کي هم ګونګي لیدل مبارك نه وي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي دګونګي اواز اوري نودلیل یې دا دي چي په هغه ځاي کي به دګونګي داواز مطابق ژړا او فریاد وي اوکه په خوب کي دګونګي بچي ووینې نو دلیل یې دا دي چي دده زوی به کمبخته اونافرمانه وي اوکه ووینې چي دګونګي غوښه یې خوړلي ده نو دلیل یې دا دي چي دهغه په قدر به دغله او مفسد سړی مال خوري.

## چغندر \ جغندر

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي جغندر دغم اوفکر دلیل دی که څوك ووینې چي جغندر یې خوړلي دی نو دلیل یې دا دي چي دهغه په اندازه غم اوفکر به ورته وي اوکه ووینې چي جغندر یې دکور څخه دباندي غورزولي دی نو دلیل یې دا دي چي دغم څخه به خلاصون حاصل کړي او په خوب کي جغندر دښځو لپاره لږ نفع ده.

## چیک \ د جایداد کاغذ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مهر سوي چیك که څوك حاصل کړي یا چا ورکړي وي نو دلیل یې دا دي چي مال اونفع به حاصله کړي اوکه ووینې چي چا په دي چیك یا خط باندي څه لیکلي وي نو دلیل یې دا دي چي ښکر به لګوي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي مهر سوي چیک ورسره دی او دهغه څخه یې مهر لیري کړي دی نودلیل یې دا دي چي دمال نقصان به یې وسي اوکه څوك ووینې چي چیك ځني ورك سوي دی یا یې سوزلي دی نودلیل یې دا دي چي هغه به ورك سي.

## چکاوک \ سرخاب مارغه

سرخاب یو مارغه دی چي په خوب کي د دې تعبیر زوی یا غلام دی که په خوب کی ووینې چي

سرخاب يي نيولي دى يا چا ورکړي دى نودليل يي دا دي چي دده غلام يا زوى به راسي که نروي نوغلام يا زوى به يي وي اوکه ماده وي نو غلام يا انجلي به وي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دى چي سرخاب په خوب کي خوږ ژبانه غريب اوکم ازاده سړى دى که څوك په خوب کي ويني چي سرخاب يي نيولي دى يا چاورکړي دى نو دليل يي دا دي چي دداسي سړى سره به يي ملګرتيا وي.

## جګر \ اينه \ ځيګر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دى چي په خوب کي اينه ليدل پټ مال دى که دسړى اينه ويني نو پټ سوي مال به يي پيداسي او خرڅ به يي کړي اوکه ويني چي ډيره سره کړي يا پخه اينه ورته ملاو سوي ده نو دليل يي دا دي چي خزانه به حاصله کړي دغوا او بوزي اينه هم دمال اونعمت دليل دى اوبعض اهل تعبير وايي چي اينه په خوب کي ليدل پر زامنو دليل دي لکه چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم ويلي دى چي (اولادنا اکبادنا) ترجمه: زمونږ اولاد زمونږ ځيګرونه دى. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دى چي په خوب کي دايني وتل يا ښکاره کيدل پر پټ مال دليل دى چي ښکاره به سي اوډيري ايني پخي يا اومي پر خزانه يا پر علم غيب دليل دى. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دى چي اينه په خوب کي ليدل په دروو وجو ده ۱: زوى اومال ۲: انډيوال چي دزوى پر ځاي وي ۳: علم. اوکه ويني چي اينه يي دکور څخه دباندي اچولي ده يا اور اينه سوزي نو دليل يي دا دي چي پاچا به دده خزانه اخلي اوکه داخوب څوك عالم ويني نو دليل يي دا دي چي ټول علمونه به هير کړي.

## جماع \ کوروالي کول

دانيال عليه السلام ويلي دى چي جماع په خوب کي حاجت پوره کيدل دي خاصکر که ويني چي مني څني وتلي دى اوکه ويني چي چا ورسره جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي دده خاندان به مالدار سي اوکه ويني چي چا ورسره داسي جماع کړي ده چي سړى لاندي دى اوښځه پورته ده نو دليل يي دا دي چي دوهمه ښځه به کوي اودهغه څخه به خير اونفع ويني. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دى چي که څوك ويني چي دخپلي ښځى سره يي يا دبلي ښځي سره يي په دوهمه لار جماع کړي ده نودليل يي دا دي چي دغه سړى به نالائقه کارکوي اوپه دغه کار کي به ورته فايده نه وي اودنبي کريم صلى الله عليه وسلم سنت به په نظر کي نه ساتي اوکه ويني چي دمور سره يا دخور سره يا دبل چاسره چي پر ده حرام وي جماع يي کړي ده نو دليل يي دا دي چي د خپلوانو محبت به دده څخه جلا سي که څه هم هغه ژوندى وي اوکه مړ وي خو په هر حال دغم اوفکر دليل دى او بعض اهل تعبير وايي چي که ژوندي وي نو دهغه څخه به خير اونفع ويني او حج به وکړي اوکه دمړي سوي ښځي سره په خوب کي جماع وکړي نو دليل يي دا دي چي دکوم کار څخه نا اميده وى هغه به وکړي خو پوره به يي نه کړي اوکه ويني چي دنامعلوم ځوان سره يي جماع کړي ده او ديو بل سره په جنګ وو نو دليل يي دا دي چي انجام به يي په محبت وي او دهغه څخه به خير اونيکي ويني اوکه هغه ځوان معلوم وي نوبه فتح حاصلوي او که ويني چي

دبوډا سړی سره يي جماع کړيده نو دليل يي دا دي چي د خپل نصيب څخه به خير اونيکي ويني. ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي پيغله انجلۍ ورته حاصله سويده نو دليل يي دا دي چي په دغه کال به واده کوي يا به مينځه اخلي اوکه ويني چي دپاچا کورته ولاړي او هلته يي جماع وکړه نو دليل يي دا دي چي پر دښمنانو به کاميابي حاصله کړي. اوکه ويني چي دده سره جماع وسوه نو بيايي هم دغه دليل دی چي مراد به يې حاصل سي اوبعض اهل تعبير وايي چي ده ته به دپاچا دطرف څخه خوف اوبيره حاصله سي او که ويني چي دچرګ سره يي جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي دده طرف ته کم سړی منسوب دی پر هغه به فتح حاصله کړي. اوکه ويني چي دعيسائي يا يهودي يا فارسي سره يي جماع کړيده نو تعبير يي دا دي چي دده دنيوي کار به په انتظام سره وي او که بوډا سړی چي شهوت يي بالکل ختم وي په خوب کي وګوري چي دده شهوت غالب سوي دی څنګه چي په ځواني کي وو نو دليل يي دا دي چي ددين په کار کي به ښه مينه لري. اوکه ويني چي دناکاره ښځي سره يي جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي ددنيا اوحرام مال طلب به کوي اوکه داسي خوب ښځه ويني نوبيا يي هم دغه تعبير دی. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي که ويني چي داوښ سره يي جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي دسختي څخه به خلاص سي اوپر دښمن به کاميابي حاصله کړي اومال به يي زيات او نوم به يي لوړ سي. اوکه ويني چي دپاچا سره يي جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي دهغه به رازدار اومقرب سي اوکه ويني چي دپاچا دښځي سره يي جماع کړي ده نودليل يي دا دي چي دهغي څخه به نفع حاصله کړي اوکه ويني چي دحيض والا ښځي سره يي جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي دده کار به خراب وي اوکه ويني چي دمړي ښځي سره يي جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي دده کاربه خراب وي يا به دهغه دخپلوانو سره ملاقات کوي اوکه هغه ژوندئ وي نو دهغه دخپلوانو سره به جدايي کوي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي دحائضي ښځي سره په خوب کي، جماع کول ددنيا په کارونو کي اسانتيا ده. اسماعيل اشعث رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوک ويني چي ده دښځي سره چي دده مينځه وه جماع کړي ده نو دليل يي دا دی چي د پاچا څخه به خير اونفع حاصله کړي اوکه ويني چي ده دمعلوم ځوان سړی سره جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي ده ته به دهغه څخه خير ورسيږي اوکه ويني چي دنامعلوم ځوان سړی سره يي جماع کړيده نو دليل يي دا دي چي دهغه لپاره به دعا يا خيرات کوي اوکه ښځه ويني چي دي دبلي ښځي سره جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي دهغه نيکي به ويني او مراد به يي پوره سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي جماع کول چي غسل باندي واجب سي د دې تعبير نسته.

## جلاب \ د دستونو او اسهالونو راوستلو دوا

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي جلاب چيښل حلال مال اوپاك دين دی که ويني چي چا ورته جلاب ورکړي دی او ده چيښلي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په قدر به ورته مال حاصل سي او دده دپاکي عقيدي او ددين ددرستی دليل دی اوکه ويني چي چا ورته

جلاب ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي اوکه ويني چي جلاب يي چيښلي نه دی بلکي پرمځکه يي تويي کړي دی نو د دې تعبير داولني خلاف دی.

## جنازه

که څوك په خوب کي جنازه وړونکی ويني نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکی به پر دونه خلکو حکومت کوي اوپه هغو به ظلم کوي اوکه ويني چي پخپله مړسوي دی اوجنازه يي وړه سوي ده اوخلک دجنازی څخه وروسته روان دی نودليل يي دا دي چي شرف اوعزت اومشري به حاصله کړي ليکن دين به يي خراب سي اوپر دغه قوم به حکومت کوي. اوکه ويني چي پخپله دمړي جنازه وړي نو دليل يي دا دي چي دپاچا خدمت به کوي او دهغه څخه به خير او نيکي ويني او که ويني چي خلک دده دجنازي څخه وروسته راروان دی اوپه هوا کي وي نو دليل يي دا دي چي ددغه ښار يو لوي سړی په سفر کي مري اوکه پخپله جنازه ويني چي په مځکه يي وړی نو دليل يي دا دي چي په سفر به ځي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دژوندي جنازه وړي اوپه هغه پسي هيڅ څوک نسته نو دهغه دعزت مرتبه او دکار دنقصان دليل دی او که ويني چي خلک دهغه دجنازي څخه وروسته وو نو د دې تعبير داولني خلاف دی اوکه ويني چي دده جنازه روانه وه نو دليل يي دا دي چي پر خلکو به ظلم کوي. اوکه ويني چي جنازه سپکه ده نو دليل يي دا دي چي پر خلکو به رحم کوي اوحال به يي ښه سي اوکه ويني چي دجنازي څخه را ايله سوي دی يا جنازه وړونکو دي غورزولي دی نو دليل يي دا دي چي دعزت او مرتبي څخه به را ايله سي اودده کاربه بند سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي جنازه په خوب کي ليدل په درو وجو دی ۱: بزرګي ۲: ولايت ۳: عزت مرتبه او لوړوالي.

## جنب بودن \ جنب کيدل

که څوك په خوب کي ويني چي جنب دی نو په حرامو کي به حيران او پريشان سي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي سفر به کوي او ددنيا مرادبه حاصل کړي اوکار به يي تباه سي. اوکه ويني چي دجنابت غسل يي کړي دی او کالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي په اخره کي به د کار څخه خلاصون حاصل کړي اوکار به يي تباه سي او که دغسل پوره کيدو سره ناست دی نو دليل يي دا دي چي کار به يي پوره نه سي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ځان جنب او لڅ ويني نو دليل يي دا دي چي پخپل کار کي به حيران او عاجز سي او که ويني چي په حمام کي يي غسل کړي دی او راوتلي دی او پاك کالي يي اغوستي دی نو دليل يي دا دي چي دالله تعالی طرف ته به رجوع وکړي اوتوبه به وکړي.

## چنګال \ پنجه

که څوك په خوب کي ځان دچرګانو په ډول پنجو والا ويني نو دليل يي دا دي چي ده ته به په کسب او روزي کي قوت وي اوپر دښمنانو به کاميابي حاصله کړي اوکه ويني چي دده په لاس کي دچرګانو پنجه ده نودليل يي دا دي چي ده ته به دچرګ په اندازه خير اونفع حاصله سي

جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پنجه ليدل په درو وجو ده ۱: په کارونو کي قوت او طاقت ۲: معيشت ۳: کسب کول.

## چنګاله \ زوز

زوز په خوب کي بدکار اوغم ورکوونکي سړی دی که څوك په خوب کي ويني چي دده سره زوز دی يا چا ورکړي دی نودليل يي دا دي چي دداسي صفت سړی سره به يي صحبت او انډيوالي کيږي اوکه ويني چي زوز دده بدن زخمي کړي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به دبد کردار سړي څخه نقصان رسيږي اوکه ويني چي زوز دده څخه ورك سوي دی يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دبدکرداره سړي دصحبت څخه به جلا سي.

## چنګ زدن \ ساز ږغول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ساز ږغول درواغ خبره ده که ويني چي ساز ږغوي نو دا پر باطله اودرواغ خبري دليل دی او ده ته به ځني غم اوفکر اونقصان رسيږي. اوکه ويني چي پاچا ده ته ساز ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به دپاچا څخه بخشش اوبزرګي حاصله سي او که د دې اهل نه وي نو دغمونو او فکرونو څخه به خلاصمون حاصل کړي. اوکه ويني چي ساز يي مات کړي يا يي غورزولي دی نو دليل يي دا دي چي ددرواغو اوباطل کار څخه به توبه وکړي اوکه څوك ساز ږغوي او دي يي اوري نو دليل يي دا دي چي درواغ او بي فائدي خبري به اوري او اهل تعبير بيان کړي دی چي په خوب کي ساز ږغول د ډير عمر دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي ساز ږغوي نو دليل يي دا دي چي په سردارانو کي به دچا دښځي سره ملاو سي اوعزت اومال به حاصل کړي اوپه اخره کي به دهغي ښځي سره نکاح وکړي او که ويني چي دساز سره نڅا هم ده نو ددي دليل غم اومصيبت دی جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ناجوړي ويني چي ساز ږغوي نو دا دده دمرګ دليل دی.

## جنګ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دخلکو سره يا دځناورو سره جنګ کوي اوهغه ورك سوي دی نو دليل يي دا دي چي پر دښمن به کاميابي حاصله کړي.

## جو \ اوربشي

ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي لندي يا وچي يا پخي اوربشي خوري نو دليل يي دا دي چي يوڅه لږ شي به ورته ملاو سي اوکه ويني چي دده سره اوربشي دي يا چا ورکړيدی نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به ورته خير او نيکي رسيږي او صحت مندبه وي او که ويني چي اوربشي يي پر مځکه کي کرلي دی نو دليل يي دا دي چي مال به ورسره جمع سي او دالله تعالی دخوشحالی کار به وکړي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي اوربشي په خوب کي مال دی چي په اساني سره به ورلره حاصل سي او اوربشي خرڅونکي داسي سړی دی چي دنيا پر دين باندي اختياروي.

## جوال دوز \ د بورۍ ګنډلو ستن

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دبوجۍ ګنډلو ستن په خوب کي ليدل داسي سړی دی کوم چي دخلکو کارونه کوي خاصکر کوچني کوچني کارونه اوکه ويني چي دده سره ستن ده يا چا ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي دده به د دې صفت سړی سره ناسته ولاړه کيږی او که ستن ماته سوي يا ورکه سوي ده نو ددغه سړی دهلاکت دليل دی.

## جوان شدن \ ځوانيدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ځوان سوي دی اوسپين ويښته يي تور سوي دی نو دليل يي دادی چي بد سړی به سي او که نامعلومه ځوان ويني نو دليل يي دا دي چي ددښمن څخه به ذلت ويني اومراد به يي پوره نه سي اوکه ويني چي ځوان سپين ږيری سو نو دليل يي دا دي چي عزت به يي زيات سي ښځي هم په دي خوب کي دسړو برابر دی جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کي ويني چي دځواني څخه سپين ږيري سوي دی نو دليل يي دا دي چي علم او ادب به زده کړي او د دې تفصيل به په حرف ميم کي راسي.

## چوب \ لرګی

ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي لرګي ليدل نفاق دی اوکه څوك پردی يي ورکړي نو دده سره به نفاق کوي او دکوږ لرګي په خوب کي دليدلو تعبير دسيده لرګي په ډول دي او که کوږ لرګي دسوزلو قابل ويني نو دا منافق او درواغجن ويونکي سړی دی.

## جراب \ جرابي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي جرابي دخادمو ښځو دحساب څخه دی که ويني چي دوريښمو يا دتار نوي جرابي يي اغوستي دی نودليل يي دا دي چي دده خادم به اصل وي او دهغه څخه به فائده پورته کوي او که ويني چي دده جرابي پشميني يا نقشداري دی نودليل يي دا دي چي ښائسته مينځه به اخلي يا به ښائسته ښځه کوي اوکه ويني چي دده سره ژړي جرابي دی نودليل يي دا دي چي دده خادم به ناجوړه غوندي ښکاري اوکه ويني چي دده جرابه سره ده نو دليل يي دا دي چي دده خادم به بي شرم وي او که ويني چي دده جرابي توري دی نو که خوب ليدونکي مصلح وي نوتعبير يي نيك دی اوکه مفسد وي نو تعبير يي بد دی او که ويني چي دده جورابه زړه او خيرنه ده نودليل يي دا دي چي دده پر خادم به تهمت لګوي او که ويني چي دده جرابه ورکه سويده يا سوزلي ده نودا دخادم پر مرګ دليل دی اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي په خوب کي جرابه مال اومراد دی اوکه جورابي بوي کوي نودليل يي دا دي چي دمال زکوة به ورکوي او که دجورابو بوی وي نو دليل يي دا دي چي دمال زکوة به نه ورکوي او خلک به ورپسي خبري کوي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دده جورابي دپوست دی که داوښ دپوست وي نودليل يي دا دي چي دده خادم به باهمته او داصله بزرګ وي او که دبوزو دپوست وي نودليل يي دا دي چي دده خادم دعامو خلکو څخه

دی او که داس دپوست وي نودليل يي دا دي چي دده خادم بزرگ او دسپاهيانو دنسله دی اوکه دده جورابي دځنګلي ځناور دپوست وي نو دليل يي دا دي چي دده خادم ځنګلي دی جابر مغربی رحمه الله علیه ويلي دی چي که څوک ووينې چي دده جورابي په پښو دی نودليل يي دا دي چي مال به په نظر کي ساتي اوکه ووينې چي دده سپيني او پاکي جورابي په پښو دی نو دليل يي دا دي چي ده دخپل مال زکوة ادا کړي دی جعفر صادق رحمه الله علیه ويلي دی چي په خوب کي استعمال سوي جورابي سړی دی اودزکوة دمال ساتونکي دی اوکه ووينې چي دده دجرابو څخه خوشبويي راځي نودليل يي دا دي چي په مرګ اوژوند کي به نيک نومه سي او که بدبوی ځني راتلی نو نفرت به ورسره کوي اوکه ووينې چي دده جورابي ورکي سوي دی نودليل يي دا دي چي زکوة به نه ورکوي اومال به يي ورك سي.

## جوش \ زغره \ د اوسپني قميص

ابن سيرين رحمه الله علیه ويلي دی چي په خوب کي داوسپني قميص اغوستل په اندازه دهغي د اوسپنيوالي اوپاکوالي دليل دی که ووينې چي دده سره زغره ده نودليل يي دا دي چي دده کوروالا به ددښمن دشر څخه په امن کي وي اوکه ووينې چي ده زغره اغوستي ده نودليل يي دا دي چي دده بدن به ددښمن دشرڅخه محفوظ وي اوهغوي به پر ده کاميابي حاصله نه کړي. اوکه ووينې چي دده سره زغره اووسله ده نودليل يي دا دي چي دمنافق دمکر اودعامو خلکو دشرارت څخه به په امن وي او بعض اهل تعبير بيان کړي دی چي زغره په خوب کي ليدل ددين زياتي دی کوم سړی چي په خوب کي زغره ووينې نو دليل يي دا دي چي دي به پټ دالله په حفاظت کي وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ويلي دی چي په خوب کي زغره ليدل په شپږو وجو ده ۱: بزرګي ۲: پناه ۳ : قوت ۴: مال ۵: ژوند ۲: ددين زياتي، په خوب کي زغره غم خوار ملګري دی.

## چوګان زدن \ غونډسکي کول

ابن سيرين رحمه الله علیه ويلي دی چي په خوب کي دغونډسکی کولو دليل دا دي چي دکوم شي طلب کوي هغه به حاصلوي اوعزت اومرتبه به حاصلوي ليکن په دين اوعبادت کي به سست وي ابراهيم کرمانی رحمه الله علیه ويلي دی چي په خوب کي غونډسکی دپاچا په لاس کي ووينې نو دليل يي دا دي چي پر دښمنانو به کاميابي حاصلوي او که غونډسکي دعام سړی په لاس کي ووينې نو دليل يي دا دي چي دچا سره به جنګ کوي اودښځو څخه به خرابه خبره اوري اواهل تعبير غونډسکي ته دخولي سره اوجوګان ته دژبي سره تشبيه ورکوي.

## جولاها \ جولا

ابن سيرين رحمه الله علیه ويلي دی چي په خوب کي جولا مسافر يا قاصد سړی دی کوم چي په دنيا کي ګرځي اوکه ووينې چي جولا کالي جوړوي نودليل يي دا دي چي دده به دچا سره فساد او جنګ وي ځکه چي دکالو جوړولو تعبير جنګ دی ابراهيم کرمانی رحمه الله علیه ويلي دی چي دکالو دجوړولو اوشيانو ته دپيچ ورکولو بيان په حرف (ب) کي سوي دی که څوک په خوب کي ووينې

چي کالي يي ټوله جوړ کړي دی نو دليل يي دا دي چي غمجن به سي.

### جواهر \ ملغلري

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوک په خوب کي ويني چي ملغلري خرڅوی او هغه دده ملکيت وي نودليل يي دا دي چي عالم او ديندار به سي او دهرچا سره به نيکي اواحسان کوي او که ديندار نه سي نو دغلامانو مالك به سي او ددغه ملغلرو دقدر وقيمت مطابق به ورته مال حاصل سي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي که مصلح او پرهيزګار وي اوملغلري خرڅوی نو دليل لي دا دي چي دين اوعلم به ورته حاصل سي.

### جوئي آب \ دوالي اوبه

ابن سيرين رحمه الله ويليي دی چي په خوب کي دوالي اوبه ليدل چي دخوړو اوپاکو اوبو په ډول وي نودليل يي دا دي چي دده ژوند به ښه تير سي اوکه ويني چي دنامعلومي والي څخه يي پاکي اوبه چيښلي دی او داسړی په سفر کي وي يا په پردي ځاي کي وي نودليل يي دا دي چي په نامعلوم کار کي به مشغول سي اوخپل عمر به تير کړي اوددغي والي څخه به داوبو چيښلو مطابق نفع حاصله کړي او که دوالي اوبه تروي اوبي خونده وي نو دا دخوړ ژوند تيريدو دليل دی. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دوالي ليدلو اصل وکيل دی چي مقرب به سي که څوک دوالي اوبه بهيدونکي اوپاکي ويني نودليل يي دا دي چي کار به يي جاري وي او که ويني چي دوالي اوبه ګنده دي نو دليل يي دا دي چي کار به يي تباه اوبي انتظامه سي او په کوم ځاي کي چي دوالي اوبه ويني دهغي تعبير دساحل تعبير دی اوڅومره چي په والي کي کمي يا زياتي ويني هغه به پر وکيل واقع کيږي اوکه ويني چي پر تخت ناست دی او دهغه څخه لاندي اوبه بهيږي نو دليل يي دا دي چي دولت اومرتبه به دده طرفته مخ کړي او دده ددواړو جهانونو احوال به نيك سي دالله تعالى فرمان دی (تجري من تحتها الانهر لهم فيها ما يشاءون، سورة النحل: ۳۱) ترجمه: تردي لاندي والي بهيږي ددوي لپاره چي څه غواړي مراد به يي حاصل سي او که ويني چي دوالي په پاکو اوبوکي ناست دی نو دليل يي دا دي چي دغم څخه به خلاصون حاصل کړي که ناجوړه وي شفا به حاصله کړي که قرضدار وي نو قرض به يي ادا سي که په سفر کي وي نو وطن ته به راسي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي دويالي په تعبير کي دبدبي والا او نفعي والا سړی دی او که ويني چي دوالي څخه يې اوبه را لوړي کړي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په قدر به ديو مالداره سړی څخه مال حاصل کړي او کوچني ويالا ژوند دی او الله تعالى دټولو کارونو حقيقتونه ښه پيژني.

## [ ح ]

### حبر \ سياهي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دسياهي طلب کول عيش او مال حاصلول دی اوکه ويني چي سياهي يي اغوستي ده يا چا ورکړيده نو دليل يي دا دي چي عيش به باندي فراخ

سي اومراد به يې حاصل سي او که ويني چي سياهي يې توي کړي ده يا ځني ورکه سوي ده نو د دې تعبير داولني خلاف دی ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي سياهي دده پر کالو توي سوي ده که منشي وي نو دده لپاره نقصان دی او که ويني چي په سياهي څه ليکلي دي که ليکل سوي شي قرآن کريم يا دالله نومونه وي نو دخير اوصلاح دليل دی اوکه د دې خلاف وي نو دشر اوفساد دليل دی.

## حب خوردن \ ددوا گولۍ خوړل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ددوا گولی ديوې ناجوړئ لپاره وخوري او دهغه دخوړلو سره ورته شفا او نفع حاصله سو ده نو دانبه والي اوپه کارونو کي دنفعي دليل دي اوکه ويني چي دوا يې دڅه نفعي لپاره نه وي خوړلي نو ددې تعبير داولني خلاف دی.

## حج گزاردن \ حج کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده حج کړي دی نو دالله به په ده حج کول نصيب کړي که ناجوړه داخوب ويني نو شفا به حاصله کړي که قرضداره يې ويني نو دقرض څخه به خلاص سي که مسافر دا خوب ويني نو وطن ته به په سلامتی سره بيرته راسي اوکه په خوب کي ويني چي حج ته تللي دی اوحج يې نه دی ادا کړي نو دليل يې دا دي چي عمر به يې زيات سي اوکار به يې په انتظام سره سي ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي حج ته تللي دی اوپه حرم شريف کي لبيک وايي نو دليل يې دا دي چي دده ته به خوف او بيره وي اوکه ويني چي حج پر واجب سويدی او دتلو اراده يې نه ده کړي نو دليل يې دا دي چي خيانت به کوي اوکه ويني چي دعرفي ورځ ده نو دليل يې دا دي چي دچا سره به صلح کوي او که ويني چي په خانه کعبه کي لمونځ کوي نو دليل يې دا دي چي دبزرگانو څخه به نفع حاصله کړي او کاربه يې ښه سي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي حج کول په اوو وجو دی ۱: نکاح کول ۲ : مينځه اخستل ۳: دعادل پاچا زيارت کول ۴: نيکي ۵: دنيك کار کولو کوشش کول ۶: دثواب اجر حاصلول ۷: دعالمانو ناستي او ملگرتيا ته تلل.

## حجر اسود

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي پر حجر اسود باندي لاس وهي نو دليل يې دا دي چي داهل حجاز څخه به ورته نفع حاصله سي اوکه ويني چي حجر اسود يې را ايستلي دی نودليل يې دا دي چي بې مذهبه بې اعتقاده او ناپاکه به سي ا وکه ويني چي حجر اسود يې بيا پرخپل ځاي ايښي دی نودليل يې دا دي چي بيا به پر سمه لار روان سي او که ويني چي دزم زم اوبه يې چيښلي دی نودليل يې دا دي چي ورك سوي شي به ورته بيا ملاو سي ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي حجر اسود مچوي اوپر هغه مخ مښي نو دليل يې دا دي چي د ده ددين خير اوصلاح به زياته سي او د عالمانو سره به ملاو سي.

## حجامت کردن \ ښکر لګول \ وینه کښل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي یو چا پردي ورته بي ځایه ځاي ښکر لګولي دی نو دلیل یي دا دي چي امانت به پرخپله ذمه اخلي او که ویني چي دوست ورته ښکر لګولي دی نو دلیل یي دا دي چي امانت به ورته واپس کیږي او ددښمن دشرارت څخه به په امن وي او دغمونو څخه به خلاصون حاصل کړي ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي سپین ږیري ته یي ښکر لګولي دي نو دلیل یي دا دي چي کار به یي ښه سي اوکه ویني چي پاچا ته یي ښکر لګولي دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا مقرب به سي اوکه ویني چي دښکر لګولو سره وینه نه ده راوتلي نو دلیل یي دا دي چي ښکر لګوونکي به دپاچا منشي سي که جاهل وي نو قرضداره به سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ښکر لګول په اوو وجو دی ۱: امانت ادا کول ۲: شرط ۳: ولایت حاصلول ۴: عزت او بزرګي۵: مرتبه ۶: دپیغمبر سنت ۷: که حاکم وي نو دکار څخه به معزوله سي اوبعض اهل تعبیر بیان کړیدی چي که ښکر لګونکي ځوان وي نو دلیل یي دا دي چي دخرڅ حساب کوونکي به سي یا دشیانو اندازه کوونکي او دخلکو کارونه به دده په لاس فراخ کیږي.

## حذر دادن \ سزا ورکول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سزا ورکول دښځو دکار پوره کیدلو دلیل دی که ویني چي سزا یي ورکړي ده نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به دښځو کار کوي اوکه ویني چي ده ته چا سزا ورکړي ده نوددي تعبیر داولنی خلاف دی جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي پر څه ګناه باندي یي سزا ورکړي ده نوکه خوب لیدونکي مصلح وي نو ددنیا په شغل کي به مشغول سي او که مفسد وي نودغم اوفکر دلیل دی.

## حربه \ کوچني نیزه

که په خوب کي ویني چي دده سره نیزه ده نو دلیل یي دا دي چي زوی به یي مړ پیدا سي او که واده یي نه وي کړي نو مال به حاصل کړي اوکه ویني چي دنیزي سره نوره وسله هم ده نو دلیل یي دا دي چي عزت اومرتبه به حاصله کړي او که ویني چي پاچا ورته نیزه ورکړي ده نودلیل یي دا دي چي دپاچا څخه به نفع حاصله کړي او که ویني چي ده ته چا نیزه ورکړي ده، نو دلیل یي دا دي چي دهغه څخه به ورته څه ملاو سي او که ویني چي نیزه دده په لاس کي ماته سوي ده نو دلیل یي دا دي چي پر دښمن به کامیابي حاصله کړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي دنیزي په خوب کي دلیدلو تعبیر په شپږو وجو دی ۱: غرور ۲: ولایت ۳: ډیر عمر ۴: فتح ۵: ریاست ۶: نفع.

## حرم مکي \ بیت الله شریف

بیت الله شریف دامن ځاي دی که څوك ویني چي دي په بیت الله کي دی نو دلیل یي دا دي چي ددنیا دافتونو څخه به په امن وي اوحج به ورته نصیب سي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي پاچا یا سردار حرم ته تللي دی نودلیل یي دا دي چي په ټولو

ښارونو کي به امن وي او دپاچا څخه به ورته څه ملاو سي اوبعض اهل تعبیر کوونکو بیان کړیدی چي دده به ددغه حرم والاوو سره څه کار راځي اوکه ووینې چي پاچا دی خپل ځای ته غوښتي دی او دي په دغه ځای کي مقیم سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا کار به کوي او ده ته به په دغه کار کي بدنامي وي او که ووینې چي دظالم پاچا ځاي ته تللي دی نو د دې هم دغه تعبیر دی.

## حریر \ ریښم

دحریر خز او دیبا بیان به په حرف دال کي راځي ان شاءالله تعالی.

## حساب

ابن عباس ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي حساب کوي نو دلیل یي دا دي چي په محنت اوعذاب کي به راسي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوک ووینې چي الله تعالی دقیامت په ورځ پر ده حساب اسان کړي دی نو امید دی چي خلاصون به حاصل کړي او که د دې خلاف ووینې نو په زحمت کي دراتلو دلیل دی جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دقیامت حساب لیدل په شپږو وجو دی ۱: پاچا عذاب ۲: مشغولیات ۳: سختي او غم ۴: بد حالي ۵: فکر او غم ۶: لږ عمر.

## حصار \ کلا

که څوك ووینې چي کلا ته تللي دی نودلیل یي دا دي چي ددښمن دشر څخه به په امن وي او که ووینې چي د کلا څخه وتلی دی نو دلیل یي دا دي چي پر دښمن به کامیابي حاصلوي ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي په مضبوطه کلا کي دی او هغه دده ملکیت دي نودلیل یي دا دي چي ددښمن دشر څخه به په امن وي اوکه ووینی چي د کلا څخه وتلي دی نو ددي تعبیر داولني خلاف دی جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ځان په کلا کي ووینې نو دلیل یي دا دي چي نعمت او روزي به باندي فراخه سي او که د دې خلاف ووینې نو دده دتباهي او دکاروبار دبندیدو دلیل دی.

## حصیري \ پوزي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي دده سره پوزی دي یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي د پوزی په اندازه به نفع حاصله کړي اوکه ووینې چي پوزی جوړوي نو دلیل یي دا دي چي پر ښځو به عاشق سي او که ووینې چي پوزی دلږ قیمت دی او دي یي جوړوي نودلیل یي دا دي چي دغه ښځه به یي اصیله اوفقیره وي او که ووینې چي پوزی قیمتي او پاك دی نو دلیل یي دا دي چي اصلیه اومالداره ښځه به کوي جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي پوزی لیدل په دروو وجو دی ۱: ښځه ۲: نفع ۳: غوښتل چي ده ته به دهغه څخه نفع حاصله سي.

## حقنه \ د لویي بولو په ځای کي دوا دننه اچول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي حقنه په خوب کي په غصي سره دیوځاي څخه بل ځاي ته تلل

دی په داسي رقم سره چي دسختی څخه بي هوښه سي اوبعضي اهل تعبیر بیان کړي دی چي حقنه په خوب کي داسي کار دی چي پر لیدونکي بیرته راځي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي ده حقنه کړي ده اوده ته ځني تکلیف رسیدلی دی نودا دده دبد حالی دلیل دی او که د دې خلاف ووینی نوخیر او نفع به حاصله کړي.

**حقه \ د جواهراتو ډبی**

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي ډبی په خوب کي ښځه یا مینځه ده که څوك ووینی چي دده سره نوي ډبه ده یا یي اغوستي ده یا چا ورکړي ده نودلیل یي دا دي چي ښځه به کوي یا به مینځه اخلي اوکه ووینی چي ډبی مات سوي دی یا ورك سوي دی نودلیل یي دا دي چي ښځه به ځني جلا سي جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینی چي دده سره نقشدار غټ ډبی دی نو دلیل یي دا دي چي مالداره ښځه به کوي اودهغي څخه به نفع حاصلوي او که د دې خلاف ووینی نو دلیل یي دا دي چي دبد شکلي او فقیري ښځي سره به واده کوي.

**حکمت**

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینی چي دحکمت علم وایي نو دلیل یي دا دي چي قران شریف به وایي اوکه ووینی چي دحکمت کتاب یي سوزلي دی نو دا دده ددین دتباهی دلیل دی ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دحکمت دکتاب ورقي خوري نو دلیل یي دا دي چي دحکمت علم به وایي اوکه ووینی چي ورقي یي څیري کړي دی نو دلیل یي دا دي چي خوب لیدونکي لمونځ نه کوي او که ووینی چي څوك دحکمت کتاب وایي او دي یي اوري نو دلیل یي دا دي چي دي به علم کوي.

**حلاج \ نداف \ پمبه ټکوونکی**

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي نداف قوي سړی دی دچاپه لاس چي دخلکو کارونه کیږي اوکه ووینی چي ندافي کوي نو دلیل یي دا دي چي دداسي سړی سره دکومو ذکر چي لوړ وسو دده به ورسره صحبت کیږی جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ندافي کول په دوو وجو دی ۱: نفع ۲: فراخي.

**حلتیت \ هنجه \ اینجه**

حلتیت انگوزه هنجه دا شیان په خوب کي لیدل په هر حال کي غم اوفکر دی.

**حلوا**

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي حلوی داسي مال دی چي دپاچا په لاس تیریدو سره حرام سوي دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي حلوی په خوب کي لیدل ډیر مال اوخالص دین دی او په خوب کي دحلوی یوه ټوټه زوی مچول دی او دمیوو والا حلوه یوه گوله ښه ده او په کومه حلوی کي چي دبادامو یا دغوزانو مغز وي دهغي تعبیر نفع ده چي ده ته به دبخیل څخه رسیږي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دحلوی جوړولو دلیل دا دي چي دهغي په اندازه به حلال مال اوحلاله روزي حاصلوي او که ووینی چي په حلوی کي زعفران دی

نو داهم دښه والي دليل دی اوپه خوب کي حلوی خرڅونکي خوږ ژبانه دی.

## حمال قلي \ مزدور

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي قلي دمرتبي خاوند او خطرناك سړی دی او كه ويني چي دده پر ملا سپك پيتی دی اودغه پيتی دده ملکيت دی نو دليل يي دا دي چي ددغه پيتي مطابق به ورته راحت خير اونفع رسيږي او که ويني چي هغه پيتي دونه دی چي دده ملا ته تكليف ځني رسيږي نو دليل يي دا دي چي دي ګنهكاره اونافرمانه دی دالله تعالی فرمان دی (ليعلموا اوزارهم كاملة يوم القيمة، سورة النحل: ۲۵) ترجمه: ددي لپاره چي دوي په ښه رقم خپل پيتي دقيامت په ورځ پورته كړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه څوك ويني چي دخلكو پيتي بغير دڅه اجر څخه وړي نو دليل يي دا دي چي دالله تعالی دمخلوق سره به په خير او احسان سره پيش كيږی اوكه ويني چي دپيتي وړلو مزدوري اخلي نو ددي تعبير غم او فكر دی.

## حنا \ نكريزي

ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی چي كه څوك ويني چي دده پر لاس او پښو نكريزي لګيدلي دي نودليل يي دا دي چي خپل ځان به ښايسته كوي ليكن په دين كي به يي كراهت وي. اوبعض اهل تعبيرو بيان كړي دی چي دخپلوانو حال به ځني پټ نه وي او كه داخوب داسي سړی ويني چي نكريزي لګول يي عادت نه وي نو دليل يي دا دي چي ده ته به غم اوفكر پيښيږي اوژر به ځني خلاصيږي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي نكريزي لګول په درو وجو دی ۱: دخپلو ښايست ۲: دكور والاو ستر ۳: غم او فكر.

## حنوط \ د مړي خوشبويي

حنوط يوه خوشبولي ده چي مړی ته لګول كيږي ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوك ويني چي حنوط باندي لګول سوي دی نو دليل يي دا دي چي توبه به كوي او دالله تعالی په پناه كي به سي اوكه داخوب يو څوك مصلح سړی ويني نو دغم اوفكر څخه به خلاص سی او دبيري څخه به په امن كي سي ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی چي حنوط بويول دخلكو ډير تعريف دی ځكه چي بعض اهل تعبير ويلي دی چي دحنوط په اندازه دمړی كوروالاو به نيک نامه وي.

## حوض \ تالاب

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي تالاب ليدل علم اوپوه ده كه ويني چي دتالاب څخه يي پاكي او صفا اوبه چيښلي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به دعلم څخه حصه حاصلوي اوكه ويني چي په حوض كي يي لامبلي دی نو دليل يي دا دي چي دطاعت توفيق به حاصلوي او دنافرماني څخه به منع سي اوكه ويني چي دتالاب ټولي اوبه يي چيښلي دی نو دليل يي دا دي چي عمر به په سلامتي سره تير كړي اومال به يي زيات سي. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلی دی چي كه څوك ويني چي خپل كالي يي په تالاب كي پريولي دی نو دليل يي دا دي چي دده دكور خلک توبه كوي او ددين پر لاره به ځي اوكه ويني چي په حوض

کي يي کالي پريولي دی او داوبو لاندي ځاي اوبام ښکاره سوي دی نو دليل يي دا دي چي په علم به کار نه کوي او که ويني چي دتالاب پر غاړه شينکي دی نو دليل يي دا دي چي دخپل علم څخه به فايده پورته کوي او خلک به دده دعلم څخه نفع حاصلوي خاصکر که تالاب دده ملکيت وي اوکه ويني چي دتالاب اوبه زياتي سوي دي بغير د دې څخه چي حوض ته دبل ځاي څخه اوبه نه راځي نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به يي مال اوعلم زيات سي اوکه ويني چي دتالاب اوبه خرابي اوترخي دي نو دليل يي دا دي چي غم اوفکر به حاصل کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تالاب ليدل په څلورو وجو دي۱ : فايده مند سړی ۲ : مالدار سړی ۳: مال جمع کول ۴: عالم چي خلک نفع ځني حاصلوي.

## حوض کوثر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي قيامت دی او خلک حوض کوثر ته رابولي نو دليل يي دا دي چي داسي پاچا به ښکاره سي چي په خلکو کي به عدل او انصاف کوي. اوکه ويني چي دحوض کوثر څخه يي يوه پياله چيښلي ده نو دليل يي دا دي چي مرګ به يي داسلام سره وي اوکه ويني چي دحوض کوثر په خوا کي ګرځي او اوبه غواړي او اوبه ده ته نه دی حاصلی سوي نو دليل يي دا دي چي دنبي کريم ﷺ او داصحابو کرامو ددوستانو دښمن به وي اوکه ويني چي نبي ﷺ دحوض کوثر څخه اوبه ورکړي دي او ده چيښلي دی نودليل يي دا دي چي دنبي کريم ﷺ شفاعت به حاصلوي ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دده نوم پر حوض کوثر ليکل سوي دی او ده پياله راواخسته او اوبه يي وچيښلي نو دليل يي دا دي چي دده به دعالم سره صحبت وي او ددواړو جهانونو مراد به يي حاصل سي جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي ده دحوض کوثر څخه اوبه چيښلي دی او اوبه خرابي دی نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي منافق دی اوده ته به دقران او حديثو علم نصيب نه سي اوکه په خوب کي ويني چي حوض کوثر هغه رقم دی لکه څنګه چي په حديث شريف کي بيان سويدی اوده ځني څه اوبه دکوثر چيښلي دی نودليل يي دا دي چي د دې سړی دالله په نزد لوي مقام اومرتبه ده او دي به ددين دبزرګانو څخه وي.

## حيض (د ښځو مياشتني ناجوړي)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي حيض دسړو لپاره په ژوند کي بقا ده او د ښځو لپاره دمال زياتوالي دی اوکه ويني چي حيض يي راغلي دی نو دادفساد او حرامو دليل دی او اهل تعبير بيان کړي دی چي که په خوب کي ويني چي حيض يي راغلي دی نو دا دغم او سختي دليل دی اوکه ښځه ويني چي حيض ورته راغلي دی نو دليل يي دا دي چي دويني په اندازه به حرام مال حاصل کړي اوکه سړي ويني چي دده دښځي حيض راغلي دی نو دليل يي دا دي چي په ده به ددنيا کار بند سي اوکه ويني چي خوب ليدونکي پټ دی نودليل يي دا دي چي په دين کي به حيران سي اوکه ويني چي دده ښځه پاکه سوي ده اوهغي د حيض څخه مخکي غسل کړي دی نو دليل يي دا دي چي پر ده به ددنيا کارونه خلاص سي والله اعلم.

# [ خ ]

## خار\ څوز\ زوز

زوز په خوب كي قرض دی كه څوك په خوب كي ويني چي زوز دده په بدن كي دي يا چا په بدن كي ټمبلي دی نو دليل يي دا دي چي دچا څخه به قرض اخلي اود زوز دتكليف مطابق به ترخي خبري اوري اوكه ويني چي دده بدن چا په زوز وهلي دی نو دليل يي دا دي چي چا ته به قرض وركوي اودهغه څخه به ناخوښي خبری اوري ابراهيم كرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي كه څوك ويني چي ډيري غښي دي اوپه هغه سره دده پښو ته تكليف رسيدلي دی نو دليل يي دا دي چي قرضدار به سي او په اخر كي به خلاصون ځني حاصل كړي جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي زوز په خوب كي ليدل په دروو وجو وي ۱: قرض ۲: ښكنځل ۳: په كارونو كي مشكلات.

## خارپشت\ شكوڼ

جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب كي شكوڼ ليدل بدشكله دښمن دی اوكه ويني چي د شكوڼ غوښه يي خوړلي ده نودليل يي دا دي چي پر دښمن به غالب سي اوكه ويني چي د شكوڼ غوښه يي خوړلي ده نودليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به ددښمن مال خوري او كه ويني چي دی شكوڼ خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي ددښمن څخه به ورته نقصان ورسيږي خاصكر كه ويني چي د زخم څخه وينه هم راوتلي ده.

## خارش تن\ د بدن خارشت

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي كه څوک په خوب كي ويني چي دده پر بدن خارشت ښكاره سوي دی نو دليل يي دا دي چي دخپلوانو طلب به كوي او دهغوي لپاره به غم اوفكر كوي ابراهيم كرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي دبدن خارشت دخپلوانو اودكور والاوو احوال پوښتل او دهغوي لپاره غم او فكر كول دی. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي كه دبدن خارشت تكليف وركوي نو ده ته به دخپلوانو څخه زحمت رسيږي.

## خاشک\ خزلي\ خشاک\ خس\ خاشه

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب كي خزلي ليدل دعامو خلكو لپاره مال اونعمت دی كه ويني چي په كور كي ډيري خزلي دی او دي پكښي مقيم دی نو دليل يي دا دي چي دهغي په اندازه به مال اونعمت حاصل كړي اوكه ويني چي دده خشاك هوا يووړي يا يي وسوزي نودليل يي دا دي چي پاچا به دده مال اخلي اوكه ويني چي خشاك ددیگ څخه لاندي يا په تنور كي سوزي نو دليل يي دا دي چي خپل مال به په اولاد خرڅ كوي اوجمع كوي به يي اوكه ويني چي خشاك دځنګل څخه راوړي اوپه كور كي يي جمع كوي نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به په سفر كي مال حاصلوي اوكه ويني چي دښار په كوڅوكی هوا خشاك راوړي نودليل يي دا دي چي ددغه ښار خلكو ته به دهغه په اندازه خير اونفع حاصله سي.

## خاک\خاوره

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خاوره که لړ وي اوکه ډيري روپۍ دی اوکه ويني چي په کور کي خاوره ده نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به روپۍ حاصلي کړي او ده ته به بغير دتکليف څخه ملاو سي اوکه ويني چي پر خاوره ګرځي يا يي خوري يا يي جمع کوي يا يي پورته کوي نو داټول دمال دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي خاوره دکور څخه دباندي غورزوي نو دليل يي دا دي چي خپل مال به يې ورك سي. اوکه ويني چي خاوره په لاس سره خوري نو دليل يي دا دی چي دهغه په اندازه به دده مال ورك سي اواهل تعبير بيان کړي دی چي دمال څخه به خلاص سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خاوره ليدل په پنځو وجو ده ۱: مال ۲: نفع ۳: شغل ۴: دپاچا دطرف څخه فايده ۵: درئيس دطرف څخه فايده.

## خاکستر\ايره

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ايره باطل مال دی چي دپاچا دطرف څخه وي او دچا سره پاته کيږي نه اواهل تعبيرو بيان کړي دی چي داسي علم به حاصل کړي چي دهغه څخه به خير اونفع حاصله سي، جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ايره ليدل په نهو وجو وي ۱: نامقبول علم ۲: حرام مال ۳: بي فايدي کار ۴: جنګ ۵: بدکاري ۶: مکر اوحيله ۷: افسوس ۸: پښيماني ۹: داسي کار چي په هغه کي ښه والي نه وي دالله تعالی فرمان دی (مثل الذين كفروا بربهم اعمالهم كرماد اشتدت به الريح في يوم عاصف، سورة ابراهيم: ۱۸) ترجمه: کوم خلک چي پخپل رب کفر کوي دهغو اعمال دايرو په ډول دی چي دطوفان په ورځ يي سيلي پورته کړي او ګرځوي يي.

## خادمه\قلم

که څوك ويني چي قلم يي اخيستي دي يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي علم به حاصل کړي اوکار به يي ښه سي اومراد به يي پوره سي اوکه ويني چي په قلم يې څه ليکلي دی که چيري ليکل نيك وي نو پر نيکي دليل دی اوکه بد وي نو پر بدي دليل دی اوکه ويني چي په دوو قلمونو سره ليکل کوي نو دليل يي دا دي چي دده په سفر کي تللي سړی به بيرته راسي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلی دی چي که څوك پخپل لاس کي قلم ويني نو که د عالمانو څخه وي نو دليل يي دا دي چي دعالمانو اوصالحانو سره به صحبت ساتي اوکه ويني چي په قلم سره يې څه ليکلي دي اووايي يي نو دا دده دمرګ دليل دی (اقرأ كتابك كفى بنفسك اليوم عليك حسيبا،سورة الاسراء: ١٤) ترجمه: وواپه خپله عملنامه ته دنن ورځي حساب اخيستونکي يي اوکه څه يي ليکلي وي اوهغه د اهل سنت والجماعت دکتابونو سره موافق وي نو دليل يي دا دي چي عزت اومرتبه به حاصله کړی. اوکه ويني چي قلم دده په لاس کي مات سويدی نو که عالم وي نو عزت به يي کم سي اوکار به يي بي خونده سي اوکه ويني چي په مات سوي قلم ليکل

کوي او ده چي څه ليکلي دی هغه دحيوانانو دحساب څخه دی نو ددی تعبير به دده دذات صورت اوخاصيت مطابق وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي قلم ليدل په اووه وجو وي ۱: حکمت ۲: فرمان ۳: علم ۴: هوښيارتيا ۵: ولايت ٦: دشيانو صحيح کيدل ۷: کار او مراد.

## خانه\کور

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کور دسړی لپاره ښځه ده که څوك په خوب کي ويني چي کور يي دستنو سره دځاي څخه پورته کړي دی نو دليل يي دا دي چي دمخوري او مهرباني ښځی سره به واده کوي. اوکه ويني چي کور ته يي نوی دروازه جوړه کړي ده نو دليل يي دا دي چي مالداره ښځه به کوي اومالدار به سي اوکه ويني چي يواځي کورته يي چونه لګولي ده اودا ورته معلوم نه وی چي کور دچا ملکيت دی نو دليل يي دا دي چي کوروالا به ددنيا څخه رخصت سي. اوکه ويني چي دکور دروازه زړه او دی په کور کي بند دی اودغه کور دنورو کورونو سره ملاو دی نو دليل يي دا دي چي دغم اوسختي څخه به خلاص سي اوکه ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي اوکه ويني چي دده کور غټ سويدی نو دليل يي دا دي چي پر ده به مال اونعمت فراخ سي او که د دې خلاف ويني نو مال اونعمت به باندي تنګ سي.
ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دده دکور ديوال يا کور رانړيدلي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به مال ورسيږي اوکه ويني چي دده کور وچ او خراب سوي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به مال اودرهم حاصل سي اوکه ويني چي کور داوسپني دی نودليل يي دا دي چي مالدار به سي. اوکه ويني چي دده کور دچاندي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته توبه کښل په کار ده دالله تعالی فرمان دی (لمن يكفر بالرحمن لبيوتهم سقفا من فضة، سورة الشورٰى: ۳۳)
ترجمه: کوم خلک چي دالله تعالی سره کفر کوي دهغوي دکورونو بامونه به داوسپني کړو. اوکه مالدار وي نونعمت به يي نورهم زيات سي اوکه ويني چي دده دکور شاوخوا ته بل کور نسته نو دليل يي دا دي چي دده حال به تباه سي.

## خرابی\وران ځايونه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي وراني غم اوفکر دی ځکه چي وراني د لوږي څخه لاندي وي اوکه ويني چي ويراني ته تللي دی نودليل يي دا دي چي غمجن به سي اوکه ويني چي په ويراني کي يي غسل کړي دی نو دليل يي دا دي چي دغمونو څخه به خلاص سي.
ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که په خرابيو کي سايي يا کورونه ښکاره سي نو دليل يي دا دي چي په دغه ځاي کي به غم فکر اومصيبت وي.

## خاييسک\چټک

چټک په خوب کي ليدل سرداري ده که ويني چي دده سره ډير چټکونه دی يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دده صحبت به د قوم دمشر سره وي او دهغه څخه به نفع حاصلوي اوکه

ویني چي ځوک يي په چټک وهلي دی نو دليل يي دا دي چي سردار به مغلوب کړي اوکه ويني چي دده چټک ورك سوي دی نو دليل يي دا دي چي دسرداري ځخه به جلا سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوک دآهنګري په کار نه پوهيږي او دا ويني چي چټک په سندان وهي نو دليل يي دادي چي ددوو مشرانو په مينځ کي به چغلي کوي اودښمني به وغوروزي.

## خايه مرغ \ دچرګي هګۍ

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي هګي ليدل پر مينځه دليل دی که په خوب کي ويني چي چرګي دده په مخکښي هګۍ اچولي ده او ده ته معلومه نه ده چي ځنګه ده نو دليل يي دا دي چي ښځه به کوي اوډير وخت به ورسره وي او که ويني چي پخه سوي هګي خوري نو دليل يي دادي چي په تکليف اومحنت سره به مال خوري او ده ته به تکليف اوغم رسيږي اوکه ويني چي هګي يي دپوستکي سره خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي دمړو کفن به پټوي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ويني چي پخپله يي هګۍ اچولي ده نو دليل يي دا دي چي دښځي سره به ډيره مينه لري او پر جماع به حرصناك وي. اوکه ويني چي پر هګيو دمرغيو په ډول ناست دي نودليل يي دادي چي دښځوسره به کښيني اوفايده به حاصلوي اوکه ويني چي چرګي ته يي هګۍ ايښي ده اوچرګه هغه دباندي کړي ده نودليل يي دا دي چي دده مړ کار به ژوندي سي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي دده به ايمانداره زوی پيداسي اوکه ويني چي هګۍ ماته سوي ده نو دليل يي دا دي چي لور به يي ځوانه سي او که ويني چي دده سره ډيري هګۍ دی نودليل يي دا دي چي دده به ډير زامن وی او دهيلۍ هګۍ په تعبير کي فقير اوبي چاره زوی دی او دمرغۍ هګۍ پر خوشحالي دليل دی.

## خايه ادمي \ خايه \ دسړی خايې

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوك ويني چي دده هګۍ غټه سوي ده نو دليل يي دا دي چي قوت زامن اومال به يي زيات سي اوکه ويني چي دده دواړي هګي کوچني سوي دی نو ددي تعبير داولني خلاف دی اوکه ويني چي دده هګۍ ماته سوي ده نودليل يي دا دي چي دښمن به باندي کامیابه سي اوکه ويني چي خپله هګۍ يي چا ته بخښلي ده نو دليل يي دا دي چي دده زوی به حرامزاده وي اونسب به يي دبل چا ځخه وي. اوکه ويني چي دده هګۍ پړسيدلي ده يا دهوا ځخه ډکي سوي دی نو دليل يي دا دي چي ډير مال به حاصل کړي ليکن ددښمن ځخه به ورته بيره وي اوکه ويني چي دده هګۍ اوږده سوي ده اوپر مځکه راکشول کيږي نو دليل يي دا دي چي ډير مال به ورته حاصل سي اوکه ويني چي دچا هګۍ راکاږي نو دليل يي دا دي چي ځوك به دده پر زوی ظلم کوي. اوکه ويني چي چا دده هګۍ سخته نيولي ده نو دليل يي دا دي چي دزوی دمرګ خبر به اوري اوکه زوی يي نه وي نو عزت به يي کم سي اوکه ويني چي هګۍ يي وريښته پريکړي دی نودليل يي دا دي چي قوت به يي ختم سي اوکه ويني چي هګی په رسي يا په بل شي تړل سوي ده نودليل يي دا دي چي په دغه سړی به يې

ټول کارونه بند سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ويلي دي چي په خوب کي دسړی هګي ليدل ددښمن دسختي د ده څخه دمنع کيدو دليل دی اوکه ويني چي دده په هګي کي نقصان دی نو دليل يي دا دي چي دښمن به باندي کاميابي حاصله کړي اوکه ويني چي دده چپه هګي وتلي ده نو دليل يي دا دي چي هلاک به سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي خصيه ليدل په اووه وجو وي. ۹: زوی ۲: مال ۳: اهل بيت ۴: عزت ۵: بزرګي ۲: حاجت غوښتونکي ۷: مراد حاصلول.

## خايه مرغابي\دايلۍ هګۍ

دايلي هګي په خوب کي ليدل په څلورو وجو دی ۱: مراد حاصلول ۲: ښځه کول ۳: مينځه اخستل ۴: زوی پيدا کيدل.

## خفه کردن\مرۍ خفه کول

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دي چي که څوك په خوب کي ويني چي مرغۍ يي خفه کړه نودليل يي دا دي چي غمجن به سي اوکوم کار چي کوي دهغه څخه به معزول سي اوکه ويني چي ده دچا مري خفه کړه نو دليل يي دا دي چي دهغه په غم اوفکر کي به وي اوبعض تعبير بيانوونکي وايي چي دده ژوند به تنګ سي.

## ختنه کردن\سنتول

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده ختنه کړي ده نو دليل يي دا دي چي داسي سنت به پر ځاي راوړي چي دي به دګناهونو څخه پاك سي. اوکه ويني چي دسنتولو په وخت کي دده څخه وينه جاري سوي ده نودليل يي دا دي چي په دي سنتو به قايم وي اودګناهونو څخه به توبه وباسي اوکه ويني چي دختني پر وخت يي پر ختنه نظر کوی نو دليل يي دا دي چي ده ته به غم اوفکر ډير ورسيږي، ابراهيم کرمانی رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك ويني چي دي يي سنت کړي دی نودليل يي دا دي چي دګناهونو څخه به پاك سي او که ختنه يي نه وي کړي نو دليل يي دا دي چي داسلام او سنتو لار به پريږدي ليکن مال به يي زيات سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دي چي په خوب کي ختنه کول په پنځو وجو دی ۱: سنت پر ځاي راوړل ۲: زوی ۳: نيکي ۴: ارام ۵: دښځي او زوی څخه جلا کيدل.

## خربوزه\خټکی

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دي چي خربوزه په خوب کي ناجوړي ده اوکه شنه خوړه اوپه موسم کي وي نو صحت اونفع ده اوکوچني خربوره دغتي څخه ښه ده. ابراهيم کرمانی رحمة الله علیه ويلي دي چي په خوب کي شنه خربوزه دغم اوفکر پر ليري کيدو دليل دی اوکه ويني چي دده په مخکي ډيري خربوزي پرتي دی نودليل يي دا دي چي په غم کي به ګرفتار سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي خربوزه په موسم کي ليدل دډيري نفعي سره ښځه ده او دډيري خوشحالي اوعيش دليل دی جعفر صادق رحمة الله علیه ويلی دی چي په خوب کی خربوزه ليدل په پنځو وجو دی ۱: ناجوړي ۲: ښځه ۳: غلام ۴: نفع ۵: خوشحاله ژوند خاصکر که په موسم کي وی.

## خرچنګ کوني\چانچر کوني\کبر (حیوان آبی)\چنګاښ

چنګاښ په خوب کي پرکم همته سړی دلیل دی که ویني چي ده چنګاښ نیولي دی نودلیل یي دا دي چي دکم همته بد سړی ملګري به سي اولږ نفع به ځني جلا سي اوکه ویني چي چنګاښ یي ووژي یا یي لیري وغورزوي نو دلیل یي دا دي چي دبد خویه اوکم همته سړی څخه به جلا سي اوکه ویني چي د چنګاښ غوښه یي خوړلي ده نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کی ویني چي دده سره چنګاښ دي نو دلیل یي دا دي چي دخوش طبعیته سړی سره به انډیوالي کوي اوخوش خویه به سي او دهغه څخه به نیکي ویني.

## خر

دانیال علیه السلام ویلي دی چي خر په خوب کي نصیب او بزرګي ده اودخره ښه والي ا وبدوالي خوب لیدونکي ته رجوع کوي او که ویني چي خر دده خپل دی یا دده په قبضه کي راغلي دی او ده خر نیولي دی اوتړلي یي دی نو دلیل یي دا دي چي دخیر دروازه به پر ده خلاصه سي اودغمونو څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه ډیر خره ویني نو دلیل یي دا دي چي دده مال اونعمت به زیات سي اوښه تعبیر په خوب کي دخر دا دي چي خر دده تابعدار وي، ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي پر تورخره ناست دی نودلیل یي دا دي چي بزرګي او سرداري به حاصله کړي او دعزت اومرتبي دلیل دی اوکه ویني چي پر شینه خره ناست دی نو دلیل یي دا دي چي عابد او پرهیزګار به سي اوکه ویني چي پر سره خره ناست دی نودلیل یي دا دي چي عیش او عشرت به کوي اوکه ویني چي پر ژړ خره ناست دی نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه پر حاملي خري ناست وي نودلیل یي دا دي چي خیر اوخوشحالي به حاصله کړي. اوکه ویني چي دخره غوښه یي خوړلي ده نو دلیل یي دا دي چي په تجارت کي به مال حاصل کړي اوکه ویني چي دده په کښیناستو سره خر مړ سو نو دلیل یي دا دي چي خوب لیدونکي به ژر مري اوکه ویني چي دخپل خره څخه را ایله سوي دی نودلیل یي دا دي چي فقیر اوتنګ دسته به سي اوکه ویني چي دخره څخه کوم چي دده خپل وو را ایله سو نو دلیل یي دا دي چي دچا څخه به ضرر او نقصان حاصل کړي اوکه ویني چي دخره څخه راکښته سو او بل سړی باندي کښینستي نو دلیل یي دا دي چي خپل مال به خرڅ کړي اوکه ویني چي دڅه کار لپاره دخره څخه راکښته سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دکوم کار طلب کوي هغه به یي ژر پوره سي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دي چي که څوك ویني چي زمري خر خوري نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي اوژر به شفا حاصله کړی اوکه ویني چي خر یي اخیستي دی اودهغه قیمت یي نه دی ورکړي نو دلیل یي دا دي چي مشر ته به دیوي خبري کولو په وجه خوشحاله سي اوکه ویني چي دخره یوه سترګه ده یا یي یوه سترګه کمزوري ده نو دلیل یي دا دي چي په مشکله به روزي طلب کوي اوکه ویني چي دده سره خر دی او دهغه دواړه سترګي نسته نودلیل یي دا دي چي کوم مال دده سره دی هغه به ورك سي اوکه ویني چي دخره ډیر لاسونه

اوپښي دی او خر اوږد سوي دی نودليل يي دا دي چي ډيرخلک به دده تابعداره سي اوکه وويني چي دده خر مړ سويدی اودي پر بل خرناست دی يا ده خپل خر خرڅ کړي دی اوبل يي اخيستي دی نو دليل يي دا دي چي دده ژوند به ديوحال څخه بل حال ته بدل سي اوکه وويني چي دده خر غاتره سويده نودليل يي دا دي چي دده معشيت به دپاچا څخه وي ليکن په ظلم سره به وي اوکه وويني چي خر سرلي سويدی نو دليل يي دا دي چي حلال مال به حاصل کړي اوکه وويني چي دده خر غل وړي دی نو دليل يي دادي چي دده ښځه به دفساد شهرت حاصل کړي او ددي نتيجه به دده څخه جلا وي اوکه وويني چي د ده خر قوي او زورور دی نودليل يي دا دي چي ددنيا کار او ګټه به پرده اسانه سي اوکه د دې خلاف وويني نو دليل يي دا دي چي خر يي بوڅ اينښي دی او دي باندي ناست دي نودليل يي دا دي چي مالدار به سي او که وويني چي د خري سره يي جماع کړي ده نو دليل يي دا دي چي خپل مراد به حاصل کړي اوکه وويني چي خر يي پشاه کړي دی او داوبو څخه يي ايستلي دی نو دا دقوت حال بزرګي بخت او دمرتبي دليل دي اوکه وويني چي خر چيغي کړي دی نو دانيك دليل نه دی دالله تعالی فرمان دی (ان انكر الاصوات لصوت الحمير، سورة لقمان: ۱۹) ترجمه: دټولو اوازونو څخه خراب اواز دخره دی جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوک وويني چي پر خره ناست دی اوخر دشا څخه اواز کړي دی نو دليل يي دا دي چي دده عيال به بدخويه وي اوکه وويني چي خپل خر يي په بل خره سره بدل کړي دی او دهغه څخه خراب دی نو دده حال به خراب سي اوکه د اول خره څخه ښه دی نو دده حال به نيك سي اومال به يي زيات سي. او که وويني چي خپل خر يي په اس يا غاتري سره بدل کړي دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به مال او نفع حاصله کړي اوکه وويني چي په درنده سره يي بدل کړي دی نودليل يي دا دي چي دظالم پاچا څخه به ورته څه ملاو سي اوکه وويني چي خپل خر يي په مرغي سره بدل کړي دی نو دليل لي دا دي چي دمرغی دقيمت په اندازه به ده ته څه ملاو سی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خر ليدل په لسو وجو دی ۱: نصيب ۲: دولت ۳: حکومت ۴: رياست ۵: مال ۶: ښځه ۷: مينځه ۸: مرتبه ۹: مشري ۱۰: بخت اوپه خوب کي خر ساتلو والا ليدل دولايت اوتدبير خاوند دی اوکارونو سمولو والا او معيشيت تياروونکي دی.

## خر ګور \ ځنګلي خر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي وويني چي دده سره ځنګلي خر دی نو دليل يي دا دي چي غنيمت به ورته حاصل سي او که وويني چي پر ځنګلي خر ناست دی او دده تابعدار دی نودليل يي دا دي چي دي به ګناهګاره اونافرمانه وي اوکه وويني چي ځنګلي خره ورسره جنګ کوي نو دا دکار دسختي اودغم دليل دی چي ده ته به ورسيږي اوکه وويني چي دځنګلي خره ښکار يي کړي دی نو دا پر خير اونفع دليل دی اوکه وويني چي دوه ځنګلي خره ديو بل سره جنګ کوي نو دليل يي دا دي چي دوه ناکاره سړی به دده لپاره جنګ کوي اوکه

ووینې چې ځنګلې خر یې کورته راوستلې دی نو دلیل یې دا دې چې ناکاره سړی به کورته را ولې. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلې دی چې په خوب کې ځنګلې خر لیدل جاهل اواحمق سړی لیدل دی چې علم اوعقل یې نه وي دالله تعالی فرمان دی (اولئك كالانعام بل هم اضل، سورة الاعراف: ۱۷۹) ترجمه: دغه خلک دچارپایانو په ډول دی بلکې دهغوڅخه هم زیات ګمراه دی اوکه ووینې چې دځنګلې خره غوښه یې خوړلې ده نو دلیل یې دا دې چې ډیر مال به حاصل کړی اوکه ووینې چې پرځنګلې خر ناست وو او را ایله سو نو دلیل یې دا دې چې دڅه کار طلب به کوي خوحاصل به یې نه کړي اوکه ووینې چې پر ړوند ځنګلې خر ناست دی نو دلیل یې دا دې چې بې اندازې مال به حاصل کړي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلې دی چې په خوب کې دځنګلې خره پوست او غوښه لیدل مال غنیمت عزت اومرتبه ده اوکه ووینې چې دځنګلې خر ماغزه یې پیدا کړې دی نو دلیل یې دا دې چې زر درهمه به پیدا کړې او ملګرتیا به یې دیو مشر سره وي چې خیر اونفع به ځنې حاصله کړې او که ووینې چې دځنګلې خر سر یې خوړلې دی نو دلیل یې دا دې چې ډیر عبادت به کوي او ددین لاربه قبوله کړي او که ووینې چې ځنګلې خر دده څخه تښتیدلې دی نو دلیل یې دا دې چې دمسلمانانو څخه به جلا سي.

## خردل\وری

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلې دی چې په خوب کې وري لیدل پر غم اوفکر اواندیښنې دلیل دی اوکه ووینې چې وری یې خوړلې دی نو دلیل یې دا دې چې دمال نقصان به یې وسي یا به په غیم او فکر کې ګرفتار سي. حضر جابر مغربی رحمة الله علیه ویلې دی چې په خوب کې وري خوړل پر مصیبت جنګ اوناجوړې دلیل دی.

## خرس\لیوه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلې دی چې په خوب کې لیوه بد اواحمق دښمن دی او که ووینې چې پر لیوه ناست دی نو دلیل یې دا دې چې دپاچا څخه به ذلت حاصل کړي او که ووینې چې لیوه یې وژلې دی نو دلیل یې دا دې چې پر دښمن به کامیابې حاصله کړي . اوکه ووینې چې دلیوه غوښه یې خوړلې ده اوپوست یې دځان سره ایښې دی نو دلیل یې دا دې چې ده ته به بیره رسیږي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلې دی چې نرلیوه په خوب کې بدبخته اولیونې سړی دی اوښځه لیوګې د دې خوی ښځه ده اوکه ووینې چې ښځه لیوګې یې نیولې ده نو دلیل یې دا دې چې د دې صفت ښځه به کوي اوکه ووینې چې لیوه دده کورته راغلې دی که نروي نو د دې صفت سړی به دده کورته راځي اوپه هر حال کې لیوه لیدل ښه نه دي .

## خرګاه\تنبو\خیمه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلې دي چې په خوب کې تنبو لیدل ښه دی او که ووینې چې په تنبو کې ناست دی نو دلیل یې دا دې چې ددنیا دسامان څخه به ورته څه ملاو سي. اوکه ووینې چې تنبو دده خپل دی نو دلیل یې دا دې چې ښځه به کوي او که تنبو شین یا سپین وي نو دخیر اونیکې

دلیل دی او که تنبو معلوم اوشین وي اودي په کي ناست وي نو دلیل یي دا دي چي دیندار به سي اوکه تنبو نامعلوم وي نودلیل یي دا دي چي دي به شهید سي او سپین تنبو پر مال اونعمت دلیل دی او که تنبو سور وي نوپه بازیو اوعیش کي به مشغول سي اوکه ووینی چي دتنبو رنګ دی نو دا پرغم فکر اومصیبت دلیل دی اوتور تنبو لږ نفع ده او که تنبو دده خپل وي نو ددي تدبیر دخوب لیدونکي طرفته په ښه اوبد کیدو کي رجوع کوي.

## خرګوش\سوی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي ده سوی نیولي ده یا چا ورکړي ده نو دلیل یي دا دي چي خرابه ښځه به کوي یا به ناکاره مینځه اخلي اوکه ووینی چي د سوی پوست یي اغوستي دی یا یي ددې غوښه خوړلي ده نو دلیل یي دا دي چي دښځي څخه به ورته یو شي حاصل سي اوکه ووینی چي دده سره دسوی بچي دی نو دلیل یي دا دي چي مال به ورته حاصل سي اوپه هغه کي به خیر نه وي اوبعض اهل تعبیر وایي چي ده ته به د زوی دطرفه غم او ناجوړي اوفکر ورسیبري. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي سوی په خوب کي پرهیزګاره او خاموشه ښځه ده اوکه ووینی چي دده سوی مړه سوېده یا چا مړه کړي ده نودلیل یي دا دي چي ښځه به یي هلاکه سي یا به ده ته داولاد دطرفه زحمت وي اوکه ووینی چي دده سوی څټ شاته پیچلي دی لکه چي مري یي وربدله کړي ده نو دلیل یي دا دي چي دخپلي ښځي سره به په بل طرف جماع کوي.

## کجور\خورما

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي خرما په خوب کي مال اومراد دی اوکه ووینی چي خرما یي خوړلي ده که داهل علم څخه وي نوعلم به یي زیات سي که سوداګر وي نو دلیل یي دا دي چي مال به یي زیات سي اوکه ووینی چي خرما یي خوړلي ده اوهډوکي یي دباندي غورزولي دی نو دلیل یي دا دي چي دشریعت حکمونه به پر ځای راوړي اوبعضي اهل تعبیرو بیان کړیدی چي که څوك ووینی چي خرما یي خوړلي ده نودلیل یي دا دي چي وراثت به حاصل کړي اوکه ووینی چي کچه خرما یي خوړلي ده نو دلیل یي دا دی چي دخپل زوی میراث به خوري. اوکه ووینی چي دده په کورکي دخرما درخته ده اوډیري میوي پکښي دی نو دلیل یي دا دي چي دلوي سړي سره به ملاو سي اودهغه څخه به نفع حاصله کړي اوکه ووینی چي دغه دخرما درخته وچه سویده نو دلیل یي دا دي چي ددوي تر مینځ به جدایي راسي اوکه ووینی چي دده په کورکي وچه خرما ده او هغه شنه سوه نو که ناجوړه وي نوشفا به حاصله کړي اوکه ووینی چي دخرما دریښي نیلونه پریکړه سوه نو دلیل یي دا دي چي دده په خاندان کي به څوك ناجوړه کیږي.
ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي چي که څوك په خوب کي ووینی چي دده سره تازه خرما ده نو دلیل یي دا دي چي په سختي سره به مال حاصل کړي اواهل تعبیرو بیان کړي دی چي خرما په خوب کي نفع ده چي ده ته به دمالدار څخه حاصله سي اوکه ووینی چي دده په کور کي ډیري خرماوي دی نودلیل یي دا دي چي دخرما په اندازه به مال اوسامان کړي او که ووینی چي تازه

يا وچه خرما يي خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي دايمان خوند به حاصلوي اوكار به يي په انتظام سره وي اوكه ويني چي خرما يي دبيخه ايستلي ده نودليل يي دا دي چي كوم كار كوي هغه به نه كيږي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دى چي كه څوك ويني چي دده سره خرما ده نودليل يي دا دي چي مالداره ښځه به كوي او دبلي وينا مطابق مال به حاصلوي اوكه ويني چي په خرما كي ډير انګور لګيدلي دى او ده راخيستي دى نودليل يي دا دي چي دتوري مينځي به زوى پيدا كيږي اوكه ويني چي دوچي خرما څخه يي تازه خرما راخيستي ده نودليل يي دا دي چي دمنافق څخه به پاكه خبره اوري اوبعض اهل تعبيرو بيان كړي دى چي د جاهل سړي څخه به دفايدې خبره اوري اوكه خوب ليدونكي غمجن وي نو غمونه به يي خلاص سي دالله تعالى فرمان دى (بجذع النخلة تساقط عليك رطبا جنيا، سورة مريم: ۲۵) ترجمه: دخرما تنه به په تازه خرما را وغورزوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دى چي په خوب كي خرما ليدل په سختي سره دمالداري دطرف څخه حلال مال دى اوپه خوب كي وچه خرما پر پاك دين اوحلال مال دليل دى او تازه خرما دسترګو پر رڼا حلال مال او پر نيك زوى دليل دى.

## حكايت

يو سړى دابن سيرين رحمة الله عليه په خدمت كي حاضر سو اوعرض يي وكي چي ماپه خوب كي ليدلي دى چي ما دپاچا دمحل په دروازه كي څلويښت خرماوي پيدا كړي دى دوي يي په تعبر كي وويل چي سبا به په دغه ځاي كي تاته څلويښت بيتونه لګيږي اوهم داغسي وسوه بيا په بل كال هغه سړى د ابن سيرين رحمة الله عليه په خدمت كي حاضر سو اوعرض يي وكي چي ما دپاچا دمحل په د روازه كي څلويښت خرماوي پيدا كړي دى دوي وويل چي ته به څلويښت زره درهمه حاصل كړي هغه سړى عرض وكړي چي تير كال د دې خوب تعبير بل رقم وو اوسږ كال څنګه داسي دى دوي وويل چي تير كال دخرما په درختو خرما نه وه د دې وجي څخه دهغه تعبير دغه وو بيا يوه هفته وروسته هغه سړى څلويښت زره درهمه پيداكړل.

## خرمن ګرفتن\د غلې ډيران لګول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب كي دغلې ډيران داسي سړى دى چي په تكليف او مشقت سره مال حاصلوي اوهغه مال فضول جمع كوي اوكه ويني چي ويي كرل او ويي ريبل او ډيران يي كړل نو دليل يي دا دي چي په تكليف سره به مال حاصلوي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دي چي كه څوك ويني چي دغلو ډيران يي اخيستي دي يا چاوركړي دي نو دليل يي دا دي چي ښځه به كوي اوبعض اهل تعبيرو بيان كړي دى چي دده به دداسي سړى سره صحبت وي كوم چي مال په سختي اوتكليف سره حاصلوي.

## خرنوت\ځنګلي توت

ځنګلي توت چي تور اوتريو وي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب كي توت داسي سړى دى چي مال په تكليف اوسختي سره حاصلوي اوكه ويني چي ځنګلي توت يي خوړلي دى نو

دليل يي دا دي چي خپل مال يي په تكليف سره حاصل کړي دی او خوړلي يي دی او که ويني چي ځنګلي توتان يي په لاس کي جمع کړي دی نودليل يي دا دي چي دبخيل سړی څخه به دهغه په اندازه مال حاصلوي او که ويني چي ځنګلي توت يي په اور کي سوزلي دی نو دليل يي دا دي چي پاچا به دده ملکيت اومال واخلي.

## خروس بانګي\نر چرګ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي څوک په خوب کي ويني چي دده سره چرګ دی اوپيژني يې چي دا دده خپل دی نو دليل يي دا دي چي په غلام زاده به فتح حاصله کړي اوکه ويني چي دچرګ سره جنګ کوي نو دليل يي دا دي چي دعجمي سړی سره به جنګ کوي اوکه ويني چي ده ته دچرګ څخه تکليف رسيدلي دی نو دليل يي دا دي چي دعجمي سړی څخه به ورته نقصان رسيږي. اوکه ويني چي دنر چرګ بچي يي پيدا کړي دی نو دليل يي دا دي چي کوچني غلام يا دمينځي څخه به ورته زوی حاصل سي اوکه ويني چي دچرګ اواز يي اوريدلي دی نو دليل يي دا دي چي نيکي اوخيرات به خوښوي اوکه ويني چي چرګ په مښوکه وهلي دی نو دليل يي دا دي چي دچا څخه به ورته فکر رسيږي اوپه خوب کي دهګۍ ليدل غلام دی اوکه ويني چي چا ورته دځرګ بچي ورکړي دی نو دليل يي دادي چي دغه سړی به دغلام بخشش کوي جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چي که څوك په خوب کي ويني چي دده سره کورني چرګ دی نو دليل يي دا دي چي زوی به يي پيداسي او دموذن سړی سره به يي صحبت وی دنبي کريم ارشاد دی (الديك محبي وهو يدعوا الى الصلاة) ترجمه: چرګ زما دوست دی چي دلمونځ طرف ته بلنه کوي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي چرګ يي قابو کړي دی نو دليل يي دا دي چي دسردار زوی به قابو کړي اوهغه به مغلوب کړي. اوکه ويني چي دچرګ هګي يي پيدا کړي ده او ماته کړي يي ده نو دليل يي دادي چي پر يو چا کوچني يا لوي به واک ترلاسه کړي.

## خريد او فروخت\اخيستل او خر څول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي اخيستل او خرڅول ښه شي دی ځکه چي په روپو او پيسو سره يي کوي اوکه سامان په سامان سره بدلوي نودليل يي دا دي چي د دې اندازې مطابق به دغه سړی نفع حاصلوي.

## خز\ريښم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دريښمو چوغه پټکي ټوپي او څه چي د دې په ډول وي دسړو لپاره ښه دی اوکه د دې رنګ يو رقم وی نو نيك دی اوکه رنګ يي يورقم نه وي نو غم او فکر دی او دکالو شين رنګ ښه وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي ريښم په خوب کي ليدل يا څوك چي ريښم اخلي په پنځو وجو دی ۱: مال اونفع ۲: خيرات اوبرکت ۳: عزت او مرتبه ۴: په اندازه دقيمت ۵: رياست او بزرګي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب

کي درېښمو کالو اغوستل دليل دحرام مال دی اهل تعبيرو بيان کړي دی چي دسرو لپاره ريښم په خوب کي ليدل ښه نه دی او دښځو دپاره ښه دی او ريښم خرڅونکي سړی په خوب کي داسي دی چي ددين په بدله کي دنيا اختياروي.

## خسته کردن \ زخمي کول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک په خوب کي ويني چي دده بدن چا زخمي کړي دی او دهغه څخه وينه راوتلي ده نودليل يي دا دي چي زخمي کوونکي به ده ته ريښتوني خبره کوي د دې وجي څخه دي به دهغه جواب نه سي ورکولی اوکه ويني چي ددغه زخم څخه وينه نه ده را وتلي نو دليل يي دا دي چي دهغه سړی څخه به درواغ خبره اوري ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي چي که څوك ويني چي توره يي ووهله اودوه ټوکړي يي کړي ده نو دليل يي دادي چي دده په مخکي به څوك خبره کوي اوخلک به ورته پيغور ورکوي اوکه څوك په خوب کي پرخپل بدن ډير زخمونه ويني نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به نفع حاصله کړي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي زخم په دروو وجو دی ۱: مال او دولت ۲: خير اونفع۳: ناخوښه خبره.

## خشت \ خښته

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خښته مال جمع کول اويوځاي کول دي د دې وجي څخه دهري يوي خښتي په بدله کي زر درهمه مقرر کوي اوکه ويني چي ده ډيري خښتي جمع کړي دی نو دليل يي دا دي چي دده به ډير مال جمع سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي ده ددېوال څخه ډيري خښتي نړولي دی نودليل يي دا دي چي ددېوال دمالک مال به اخلي اوکه ويني چي خښتي يي ماتي اوبي کاره کړي نودليل يي دا دي چي خپل مال به ضايع کړي، جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي پخي خښتي په خوب کي بدي دی ځکه چي دي ته اور رسيدلي وي نو د دې وجه څخه دا پر غم اوفکر دليل دی.

## خشم گرفتن \ غصه کول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي پر چا يي ددنيا لپاره غصه کړي ده نو دليل يي دا دي چي ددنيا کار به ذليل او خوار گڼي اوپه دنيا به مغرور وی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي پر ده مور اوپلار غصه کړي ده نو دليل يي دا دي چي دلوړ ځاي څخه به را ايله سي دا الله تعالی فرمان دی (ومن يحلل عليه غضبي فقد هوى، سورة طٰهٰ: ۸۱) ترجمه: په چا چي زما غصه راسي هغه به هلاک سي.

## خصومت \ جنگ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دچا سره جنگ کوي اوپر هغه غالب سوي دی نو دليل يي دا دي چي اخر داچه غالب به سي اوفتح به حاصله کړي اوکه ويني چي دښمن باندي غالب سوي دی نو د دې تعبير د اولني خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي ددغه ملك دحاکم سره يي جنگ کړي اوپر هغه غالب سويدی نودليل يي دا

دي چي دحاکم څخه به خير او نفع ور رسيږي اوکه ددې خلاف ويني نو دحاکم څخه به ورته تکليف ورسيږي اوکه ويني چي دپاچا په مخکي په جنګ سره تللي دی نو دليل يي دا دي چي مراد به يي پوره سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دچا سره بي وجي جنګ کوي نو دليل يي دا دي چي خلک به ځني خفه وي ځکه چي خلک تنګول غواړي.

## خصي کردن\خصي کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي ځان يي خصي کړي دی نو دليل يي دا دي چي مراد به يي پوره سي اوبعض اهل تعبيرو بيان کړي دی چي زوی به يي مړ سي او کني دالله په عبادت کي به مشغول سي اومالدار به سي اوکه نامعلوم سړی خصي ويني نو دليل يي دا دي چي دغه سړی به نيك او پرهيزګار وي او داهم وايي چي فرشته به وي چي دي دخير او صلاح طرفته رابولي او دخير خوشخبري ورته اوروي ځکه چي فرشتو ته دخواهش شهوت نه وي اوکه ويني چي دهغه په خبرو کي علم اوحکمت نسته نو هغه به فرشته نه وي اوکه څوك يي ليدلي وي اوهغه خصي او معلوم وي نو څه ښه يا بد يي ليدلي وي دهغه تعبير دخوب ليدونکي ته رجوع کوي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دده يوه خايه پري سوي ده او را ايله سوي ده نودليل يي دا دي چي پر دښمن به کاميابي حاصله کړي اوبعض اهل تعبيرو بيان کړي دی چي په خوب کي دخايي پريکيدلو دليل دا دي چي اينده به دده انجلي نه پيدا کيږي ځکه چي خايه انجلي وي اوکه ويني چي خپلي خايي يي ايستلي دی اوچاته يي ورکړي دی نودليل يي دا دي چي چا ته به انجلي ورکوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي بي وجي خصي سوي دی نودليل يي دا دي چي ذلت اونقصان به ورته رسيږي اوکه دده اندام مخصوص دبدن څخه پريکولای سي نو د دې هم دغه تعبير دی اودده نوم به په خلکو کي ورك سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خصي ليدل په دروو وجو وي ۱: پرهيزګار سړی ليدل ۲: فرشته ۳: عبا دت.

## خضاب کردن\نکريزي لګول

دانيال عليه السلام ويلي دی چي پر ږيره خضاب لګول کارونه پټول دی اوکه ويني چي دږيري سره يي دسر خضاب هم کړي دی او رنګ سوي نه دی نودليل يي دا دي چي خپل ښکاره به خلکو ته ښکاره کوي اوکه ويني چي خضاب يي کړي دی نو دليل يي دا دي چي دده کار به نيک وي ليکن کارونه به يي پټ وي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي په داسي شيانو سره خضاب کوي چي په هغه سره خلک خضاب نه کوي نو دليل يي دا دي چي خپل ځان به په خوښه او محالو خبرو کي لګوي اوکه ويني چي پرخپل لاس اوپښو يي نکريزي لګولي دی نو دليل يي دادي چي دده ورك سوي مال به واپس راسي اوکه ويني چي پخپلو دواړو لاسونو يي نکريزي لګولي دی نو دليل يي دا دي چي خپل زامن به په څه ښايسته شي ښايسته کوي چي دشريعت خلاف به وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي خپل لاس يي نقش کړي دی اونکريزي يي هم باندي لګولي دی نو دليل يي دا دي چي پخپل کار اوکسب کي

به مکر او حیله کوي او که ويني چې پر تول بدن باندې نقش دی نو دليل يې دا دی چې دده به يو ځوك عزيز مري يا به پخپله هلاک کيږي او که دا خوبونه يو ځوك ښځه ويني نو دواده او خوشحالي دليل دی. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دي چې که څوك ويني چې پر لاس او پښو يې نکريزي لګولي دی نو دليل يې دا دی چې داسې کار به کوي چې دهغه په وجه به خلک پر ده افسوس کوي او که ويني چې پر سر اوګوتو يې نکريزي لګولي دی نو دليل يې دا دی چې تسبيح به کوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې نکريزي لګول په څلورو وجو دی ۱: ښه کار ۲ : ددنيا دکار ښه والي ۳: دعزت اومرتبې طلب ۴: په دروا غو مشهور کيدل.

## خطبه خواندن \ خطبه ويل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې که څوك ويني چې پر منبر خطبه ورکوي او دی د دې اهل وي نو دليل يې دا دی چې خوب ليدونکي به عزت اوبزرګي حاصله کړي او که د دې خبرې اهل نه وي نو دليل يې دا دی چې په سفر به ځي او ډير وخت به پکښې وي او خوف اوبيره به ورته وي او وايي چې که مالدار وي نوفقير به سي او که ويني چې بې دينه سړی خطبه ورکوي نو دليل يې دا دی چې مسلمان به سي يا به مړ سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چې که څوك ويني چې پاچا پر منبر خطبه ورکوي نو که پاچا مصلح وي نو عدل به کوي او که مفسد وي نو غايب به سي او که ويني چې ښځه پر منبر خطبه ورکوي او خلکو ته نصيحت کوي نو دليل يې دا دی چې دهغه خاوند به رسوا اوذليله سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چې که څوك ويني چې دخلکو په مينځ کې دنکاح خطبه ورکوي نو دليل يې دا دی چې دهر چاسره به نيکي کوي او خير صلاح اونفع به حاصلوي.

## خطمي \ ګل خيرو

خطمي يوه دوايي ده ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې ګل خيرو پخپل موسم کې ليدل نفع ده او بې موسمه ليدل يې غم اوفکر دی او خوړل يې ضرر اونقصان دی او ددې اوبه پر توبې اوپاك دين دليل دی.

## خفتن \ بيده کيدل \ خوب

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې ځان بيده ليدل خوشحالي اوخلاصون دی او که ويني چې پر تخت بيده دی نودليل يې دا دی چې مشرې به حاصلوي او ددين دلارې او پرهيزګارې څخه به بې خبره وي ځکه چې دا ددين په لاره کې غفلت دی او که ويني چې په يو ځای کې په بستره بيده دی نو دا دسپکاوي اوذلت دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چې خوب ديدونکي لپاره امن دی اودمړي لپاره بخشش اودناجوړي لپاره شفا اود قيدي لپاره خلاصون دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چې که څوك ويني چې دمړو په مينځ کې بيده دی اوده ته خلک ګوري نودليل يې دادی چې په خلکو کې به شهرت حاصل کړي دالله تعالی فرمان دی (وتحسبهم ايقاظا وهم رقود، سورة الكهف: ۱۸) ترجمه: ته ګمان کوي پر دوي چې دوي ويښ

دى حالانكه چي دوي بيده دى.

## خلال كردن \ خلالول دغاښونو

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دى چي په خوب كي خلال كول ښه نه دى ځكه چي په خوب كي غاښونه اهل بيت دى اوخلال په مثال دجارو دى چي داهل بيتو مال باندي جارو كوي او كه ويني چي خلال كوي نو دليل يي دا دي چي دغاښونو څخه وزي داهل بيتو نقصان دى. جابر مغربى رحمه الله عليه ويلي دى چي كه څوك ويني چي په خلال سره يي دغاښونو څخه څه را ايستلي دى او چا ته يي وركړي دى نو دليل يي دا دي چي داهل بيتو څخه به په ناحقه مال اخلي او چا ته به يي وركوي.

## خلعت \ انعامي كالي

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دى چي انعامي كالي په خوب كي پاك اوښه دى اودعزت مرتبي رياست او پاچاهي حاصلولو دليل دى او مينځه اوښځه ده او دانعامي كالو وركوونكي دقدرو قيمت مطابق دتعبير حكم دى. ابراهيم كرمانى رحمه الله عليه ويلي دى چي كه پاچا ورته انعامي كالي وركړي دى نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به انعامي كالي اوقدر مطابق مال حاصلوي اوكه ويني چي يو عالم ورته انعامي كالي وركړي دى نودليل يي دا دي چي ددغه عالم څخه به علم او پوهه حاصلوي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دى چي كه څوك ويني چي ده ته سپيني يا شني انعامي جامي ملاو سوي دى نو دليل يي دا دي چي دين اوعزت به حاصلوي او كه ريښمي جامي وي نو دليل يي دا دي چي ددين اودنيا عزت به حاصلوي.

## خرقه (زړه د كالو ټوټه)

خرقه په خوب كي غم اوفكر دى اوكه ويني چي زاړه كالي يي دخپل بدن څخه ايستلي دى نو دليل يي دا دي چي غم اوفكر به ځني ليري سي اوټول شيان نوي په خوب كي ليدل ښه دى ليكن زړه موزه ليدل دنوي څخه ښه دى. ابراهيم كرمانى رحمه الله عليه ويلي دى چي كه څوك په خوب كي زاړه كالي خرڅ كړي نودا ډير بد دى او كه خپل نوي كالي خرڅ كړي نودابنه دى زاړه شيان خرڅونكي په خوب كي داسي سړى دى چي بدي دځان څخه ليري كوي.

## خلم \ بلغم \ د پوزي ګړنګ او مرداري

خلم چي دپوزي څخه وزي كه په خوب كي ويني چي دده دپوزي څخه پليتي وزي نو دليل يي دا دي چي دقرض غمونو او فكرونو څخه به خلاص سى. ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دى چي په خوب كي دپوزي ګړنګ او پليتي پر زوى دليل دى او كه ويني چي دده پركالو دپوزي ګړنګ او پليتي را ايله ده نو دليل يي دا دي چي زوى به يي پيداسي اوكه ويني چي دده دپوزي ګړنګ او پليتي پر مځكه را ايله ده نو دليل يي دا دي چي انجلي به يي پيدا سي اوكه ويني چي ده پر مځكه چينجي غورزولي دى نو دليل يي دادي چي دده ښځه به حامله سى اوددي څخه به دزوى اسقاط وسي اوكه ويني چي پر ښځي باندي پليتي غورزوي نو دليل يي دا دي

چې دهمسايه دښځې سره به فساد کوي اوکه ويني چې چينجي يې خوړلي دی نو دليل يې دا دي چې دقيدخاني مال به په نيکه وجه خوري.

## خليفه \ داسلام پاچا

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك په خوب کې خليفه خندرويه ويني نو دليل يې دا دي چې ده ته به ددين او دنيا خير حاصلوي اوکه ويني چې خليفه ده ته په خاصو کارونو کی دڅه کار حکم کړي دی نو دليل يې دا دي چې عزت بزرگي اومرتبه به حاصلوي اوکه ويني چې خليفه ورته ولايت ورکړي دی نو دليل يې دا دي چې که مسلمان وي نوشرف اوبزرگي به حاصله کړي اوکه ويني چې د خليفه محل ته تللي دی نودليل يې دا دي چې دهغه دمقربو څخه به سي اوکه ويني چې خليفه ورته ددنيا دسامان څخه څه ورکړي دی نو دليل يې دا دي چې مرتبه به حاصلوي اوپه مالدارو کې به لوي نوم يوسي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك ويني چې خليفه ورسره په يوه شرعي کارکې جګړه کړي ده نو دليل يې دا دي چې مراد به يې پوره سي اوپر دښمن به کاميابي حاصله کړي اوکه ويني چې د خليفه پر بستره پخپله بيده سوي دی نو دليل يې دا دي چې خليفه به ورته ښځه يا مينځه يا مال ورکړي اوکه ويني چې د خليفه څخه شاته پر اس ناست دی نو دليل يې دا دي چې په خلافت کې به دهغه سره شريک سي اوکه ويني چې دخليفه څخه مخکې ياپه اړخ کې روان دی نودليل يې دادي چې په خلافت کې به دهغه سره شريك سي او که ويني چې د خليفه څخه مخکې يا په اړخ کې روان دی نو دليل يې دا دي چې دهغه په کارونو کې به مختاره سي اوکه ويني چې خليفه ورسره تريو تندي دی نو دليل يې دا دي چې دده په دين کې به خلل وي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك ويني چې دي خليفه سو حالانکه دخلافت اهل نه وي نودليل يې دا دي چې خليفه به يې څه کار ته ليږي او که ويني چې دي خليفه په يو کار پسې ليږلي دی نو دليل يې دا دي چې خير اونفع به حاصله کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك خليفه مړ يا ژوندي ويني او خوشحاله وي او ده ورسره خبري کړي وي نو دليل يې دا دي چې مراد به ورته حاصل سي او عزت او دولت به حاصل کړي اوکه خليفه غمجن ويني نو د دې تعبير داولنی خلاف دی.

## خم \ چاټی \ منګی \ ماټی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې چاټي داسي ښځه ده چې دهغه دطرف څخه دچاټي دغټوالي مطابق فايده رسيږي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې دشرابو چاټي خزانه ده او داوبو چاټي ښځه ده ليکن ښځه به مالداره وي اوکه ويني چې دده په کورکې داوبو چاټي ده او دي دهغې څخه اوبه چيښي نو دليل يې دا دي چې ډير مال به حاصل کړی اودخير په لاره کې به يې خرڅ کړي اوپه خوب کې دسرکي چاټي پرهيزګار سړی دی او دغوړو او کوچو چاټي حلال مال دی او دترخو اوبو چاټي پر ناجوړی سړی دليل دی او دخاورو د تيلو چاټي خراب او ځوان سړی دي اوپه خوب کې چاټي پر پاچا او دپاچا پر ارکان سلطنت دليل دی.

## خمیر کردن \ اوړه اخښل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي داوړو اخښلو تعبیر ددین درستي ده او دغنمو اوړه اخښل پر داسي مال دلیل دی چي په تجارت سره حاصل سوي دی اوکه خمیر لوړ سوي وی نو دا دفساد دلیل دی او په خوب کي دباجري اوړه اخښل دلږي نفعي دلیل دی چي ده ته به حاصله سي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ثوك ویني چي ده خمیره کړیده یا یي اخښلي ده یا چا ورکړیده که چیري داوربشو خمیره وي نودا ددین او نیکي درستي ده او که خمیره دغنمو وي نو ګټه به حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي خمیره لیدل په دروو وجو ده. ۱: ددین زیاتوالی ۲: نفع ۳: حلال مال.

## خبزه \ دډوډۍ پخولو تبخی

په دي کي دري قولونه دی بعض وایي چي خادمه ده اوبعض وایي چي داسي سړی دی چي ښارونو ته پیغام وړي او راوړي اوبعض وایي چي ښځه ده اوکه ویني چي دشیشو تبخي دده په کور کي دی نو دلیل یي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکوي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ثوك ویني چي دده سره تبخي دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي خادمه ښځه یا مینځه یا مال به ورته دتبخي په اندازه حاصل سي. یا به یي دخادمي ښځي سره صحبت وي چي دهغه څخه به فائده پورته کوي اوکه ویني چي تبخي ځني ورك سوي دی نو ددي تعبیر داولني خلاف دی.

## خنجر \ توره

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که ثوك په خوب کي ویني چي دده په لاس کي خنجر دی نو دلیل یي دا دي چي دده به دچا سره دښمني وی اوکه ویني چي دده خنجر مات سوي دی یا ورك سوي دی نو دلیل یي دا دي چي ددوي ترمینځ دجنګ او دښمني انجام به صلح وي، اوکه ویني چي دده په لاس کي خنجر دی نو دلیل یي دا دي چي کوم کار غواړي په هغه کي به ورته دچا څخه مدد حاصل سي او که دخنجر سره توره وسله هم ورسره وي نو دلیل یي دا دي چي پر دښمن به کامیابه سي او کار به یي په انتظام سره وي.

## خندا

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي خندا په خوب کي غم اوفکر دی اوکه ویني چي په کټ کټ سره خاندي نو دلیل یي دا دي چي زیات غم به ورته لاحق سي دالله تعالی فرمان دی (فلیضحکوا قلیلا ولیبکوا کثیرا، سورة التوبة: ۸۲) ترجمه: پکار دی چي خندا کمه وي او ژړا زیاته وي اوکه په کراره خاندي نو دلیل یي دا دي چي فکر به یي کم وي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي په کراره خندل مراد او زیري حاصلول دی دالله تعالی فرمان دی (فتبسم ضاحکا من قولها، سورة النمل: ۱۹) دهغه په وینا یي کرار وخندل. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي په کراره خندا پر زوی دلیل دي دالله تعالی فرمان دی (فضحکت فبشرنها باسحق، سورة هود: ۷۱) ترجمه:

هغه روخندل نو موږ ورته زيري ورکړو په اسحق سره او په زوره زوره خندا په خوب کي پر غم اوفکر دليل دی اوداللّٰه تعالی په کارونو تعجب کول دی داللّٰه تعالی فرمان دی (افمن هذا الحديث تعجبون، سورة النجم: ۵۹) ايا تاسو په دي خبرو تعجب کوي.

## خوان\خوانچه\ستر خان

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده سره خوانچه ده اوپه هغه کي خوراك دی اودهغه څخه څه خوري نودليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به غنيمت حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دکه خوانچه ښه ده اوکه بغير د خوراك څخه يي پورته کړي نوغم اوفکر دی او خوراك ډير خوړل د ډير عمر دليل دی. اوکه ويني چي په خوانچه کي دري قسمه خوراك دی نو دليل يي دا دي چي روزي به باندي فراخه سي داللّٰه تعالی فرمان دی (ربنا انزل علينا مائدة من السمآء، سورة المائدة: ۱۱۴) ترجمه: اي زموږ ربه پر موږ داسمان څخه خوراك راوليږه. اوبعض اهل تعبير وايي چي عزت مرتبه اوخوشحالي ده جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خوانچه ليدل په پنځو وجو دی ۱: غنيمت حاضره ۲: شريف سړی ۳: قوت ۴: دکارونو انتظام ۵: عزت مرتبه او خوشحالي.

## خود\داوسپني ټوپۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي د ده پر سر داوسپني ټوپي ده نو دا د مرتبي او زوی دليل دی او دټوپي د پرقاڼدو او برېښېدو مطابق به يي قوت زيات وي اوکه ويني چي دده پرسر ټوپي ده نو دليل يي دا دي چي دسردارانو څخه به قوت حاصل کړي اوکه ويني چي خپله داوسپني ټوپۍ يي ماته کړي ده يا ځني ورکه سوي ده نودليل يي دا دي چي عمر به يي کم وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي داوسپني ټوپۍ ليدل په پنځو وجو وي ۱: قوت ۲: مال ۳: زوی ۴: بقا او نيکي ۵: ځان ددهوکي څخه ساتل.

## خوردن\خوړل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دخوراك بوي ښه دی او خوړل يي خير اوخوشحالي ده اوکه بد بويه وي نو دفقيري او دعاجزي دليل دی ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که خوراك په خوند کي ښه وي نو خوشحالي او واده دی اوکه تريو او تريخ وي نو پر غم اوفکر دليل دی اوپه خوب کي دخوراك شيان خرڅونکي زياتي خبري کوونکي سړی دی.

## خوشه\وږي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي وږي ليدل که تازه وي نو زوی برکت او دمال زياتي دی او که وچ وي نو په ډير عمر والا زوی دليل دی ليکن په دغه کال به تنګي اوقحط وي او دانګورو او خرماوو وږي ښه دی خاصکر که پخپل موسم کي يي ويني. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي که څوك په خوب کي ويني چي شين وږي يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي په دغه کال به پر ده عيش اوفراخي وي اوکه وچ اوژړ وږي ويني نو دليل يي دا دي

چي پر دغه کال به پری قحطی اوتنګي وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي شين وږي پر زامنو اوبرکت دليل دی دالله تعالی فرمان دی (سبع سنابل في کل سنبلة، سورة البقرة: ۲٦۱) ترجمه: اووه وږي دی په هر يوه وږي کي تراخر پوري. او وچ وږي قحطی ده.

## خوګ\خنزير

ابن سيرين رحمه الله ويلی دي چي په خوب کی خنزير مالداره اوقوت والا سړی دی ليکن بي همته اوبي خيره وي اوکه ويني چي په يو ځاي کي يي خنزيران جمع کړي دي اونه يي پريږدي ددي لپاره چي ګډوډ سي نو دليل يي دادي چي ډير مال به جمع کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دخنزير حفاظت کول ددنياداری لپاره ښه دی او ددين لپاره بد دی او دخنزير بچي په خوب کي غم اوفکر دی او که ويني چي دي خنزير خوري نو دليل يي دا دي چي دي به کانی خوري اوکه ويني چي خنزيران ځاي پر ځاي ګرځوي نو دليل يي دا دي چي دده ددنيا احوال به ښه سي اوداخرت احوال به يي بد سي اوکه ويني چي دخنزيرانو په مينځ کي ګرځي نو دليل يي دا دي چي دي حرام مال جمع کوي او خوشحاله به سي. او وايي چي په خوب کي دښځي خنزيري شيدي چيښل غم فکر اومصيبت دی او که ويني چي دخنزيرانو په مينځ کي ناست دی نو دليل يي دا دي چي پر دښمن به غالب سي اوکه ويني چي خنزير دده پر شا راغلي دی او دده په مخکي دباندی راوتلي دی نو دليل يي دا دي چي دده ناپاکه مراد به پوره سي او که ويني چي دخنزير غوښه ورسره ده ياچا ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي حرام مال به حاصلوي اوکه ويني چي دي دخنزيرانو پيوونکي دی نو دليل يي دادي چي دبي دينه اوبدکاره ټولګي مشر به وي. حضر جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دخنزير سره ځنګل ته تللي دی نو دليل يي دا دي چي دظالم او خراب سړی سره به دده جنګ وي او که ويني چي دده سره دخنزير ويښته يا پوست ياهډوکي وی نو دليل يي دادي چي دهغه په اندازه به حرام مال حاصلوي.

## خون امدن\وينه راتلل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي وينه يي بغير دزخم څخه دده دبدن څخه راوتلي ده نودليل يي دادي چي ده ته به نقصان رسيږي اوکه پرخپل بدن زخم ويني نو دا دمال دنقصان دغم اوفکر دليل دی اوکه ويني چي دي په توره وهل سوی دی اووينه يي بهيدلي ده نو دليل يي دا دي چي دده نقصان به اوږد سي اوپر هغه به ثواب حاصل کړي او که ويني چي دزخم په وينه دده کالي خراب سوي دی نودليل يي دا دي چي حرام مال به حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي وينه چيښي نو دليل يي دا دي چي حرام مال به خوري يا به په ناحقه خون کوي اوکه ويني چي دده په بدن کي سوري دی او دهغه څخه وينه يا نو بهيږي اودده کالي يي خراب کړي دی نودليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به حرام مال حاصلوي او که ويني چي وينه دده داندامِ مخصوص څخه راوتلي ده نو

دلیل یې دا دي چې انجلي به په حمل کي ساقطه سي او که ووینې چې دده دلویو بولو دځای څخه وینه راوتلي ده نو دلیل یې دادي چې دهغه په اندازه به حرام مال حاصلوي اوکه ووینې چې دده دغاښونو دوریو څخه وینه راوتلي ده نودلیل یې دا دي چې دخپلو اهل بیتو څخه به غم اوفکر حاصل کړي اوکه ووینې چې دښار په کوڅوکي وینه بهیږي نو دلیل یې دا دي چې پر دغه ځای کي به ډیره خونریزي کیږي. دانیال علیه السلام ویلي دی چې که څوك په خوب کي ووینې چې دده دپوزی څخه وینه راوتلي ده نودا دحرام مال پیدا کیدو دلیل دی که چیري کالي یې نه وي باندي خراب سوي نودلیل یې دا دي چې فقیر به سي او دمال نقصان به یې هم زیات سي.

## خیار \ بادرنګ

ابن سیرن رحمة الله علیه ویلي دی چې که بادرنګ په خوب کي ووینې نو دلیل یې دا دي چې کومه ښځه غواړي دهغه څخه به ښه خبره واوري اوکه ووینې چې دبادرنګ څخه یې څه حصه خوړلي ده نو دلیل یې دا دي چې دهغه ښځي څخه به یې مراد حاصل سي او دبادرنګ اوخټکي یو حکم دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کي بادرنګ لیدل په دروو وجو دی ۱: پرکار پښیماني ۲: خوشحالي او ارام ۳: دخپلوانو او انډیوالانو څخه فایده.

## خیک \ مشک

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې په خوب کي مشک لیدل دزمري او مار مخ دی چې دهغه په لاس حرام مال خرچ کیږي او دشهدو مشك په خوب کي عالم او عقل ښودلو والا او رهبر سړی دی اوکه ووینې چې دده سره مشك دی یا یې اغوستي دی نو دلیل یې دا دي چې دده به دداسي سړي سره صحبت وي چې دهغه څخه به خیر اونفع ووینې اوکه ووینې چې مشك چا څني پټ کړي یا یې ورك کړي دي نو دلیل یې دا دي چې دداسي سړي سره به یې جدایي راسي.

## خیمه \ تنبو

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ووینې چې ده دځان لپاره تنبو لګولي دی اوپه هغه کي ناست دی نو دلیل یې دادي چې که خیمه توره وي نو دهغه دغټ والي او کوچنیوالي مطابق به مال حاصل کړي اوکه سوداګر وي نوپه سفر به ځي اومال به حاصلوي اوکه یو لوی سړی داخوب ووینې نو پر غم اوفکر دلیل دی اوکه تنبو زوړ وي نوزیات نقصان به وي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ووینې چې دتنبو څخه دباندي راوتلي دی نوشرف اوبزرګي به حاصله کړي اوکه ووینې چې پاچا دتنبو په دروازه کي ناست دی نو دلیل یې دا دي چې دده کار به نیك وي اوپر دښمن به کامیابه سي اوکه ووینې چې پاچا دی خپل تنبو ته راغوښتي دی او دي هلته ناست دی نو دلیل یې دا دي چې دپاچا څخه به بزرګي حاصله کړي اوکار به یې په ښه انتظام سره وي.

## خیو \ توکاڼي \ ناړي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ووینې چې ده ناوړي توکلي دی نو دلیل یې دا دي چې ناجایزه خبره به کوي اوکه ووینې چې په جمات کي یې توکلي دی نو دلیل یې دا دي چې ددین

په باره کي به غلطه خبره وکړي او دغه رقم چي پرکوم ځاي کي يي توکلي دی دليل يي دا دي چي دهغه ځاي والا په باره کي به خبره کوي اوکه ويني چي پر مځکه يي توکلي دی نو خپل نقصان به ويني اوکه ويني چي په درخته يي توکلي دی نو دليل يي دا دي چي وعده خلافي به کوي اوددرواغو قسمونه به خوري. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي ګرمي ناوړي د ډير عمر دليل دی اويخي ناوړي په مرګ دليل دی او دا سرچپه دی او توري ناوړي پر غم اوفکر دليل دی او ژړي ناوړي پر ناجوړي دليل دي اوکه ناوړي دخولي څخه راووزي او کالي خراب نه کړي نو دليل يي دا دي چي په باطل او درواغ علم به تقرير کوي اوکه د دې اهل نه وي نو درواغ به وايي اوکه ويني چي بلغم يي دمري څخه را ايستلي دي او په لستوڼي کي يي واچول نو دليل يي دا دي چي خپل مال به پراولاد خرچ کړي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي چا دده پرمخ دوينو څخه خرابي ناوړي توکلي دی نودليل يي دا دي چي څوك به دده اهل ته پيغور ورکوي اوکه ويني چي وينه دناوړي سره ملاو سوه نو دليل يي دا دي چي حرام مال به خوري او درواغ به وايي او وعده به نه پوره کوي.

[ د ]

## دارو

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي ده دناجوړي لپاره دارو خوړلي دی او دهغه سره موافق دي نو دليل يي دا دي چي ددين اصلاح به تلاش کوي اوکه ويني چي دارو يي خوړلي دی اوموافق نه دی نو دليل يي دا دي چي ددين صلاح به دده څخه زايله سي اوکه ويني چي د جوړيدو لپاره يي دارو خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي څونه موافق وي دهغه په قدر به ددنيا صلاح طلب کوي اوکه په خوب کي ويني چي دخلکو لپاره دارو جوړوي نو دليل يي دا دي چي دالله پر مخلوق به احسان کوي اوکه ويني چي دارو وچ سوي دی نو دليل يي دا دي چي دغم اوفکر څخه به خلاصون حاصل کړي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي چي که څوك ويني چي ده دارو خوړلي دی اوډير دستونه يي سوي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به نقصان رسيږي اوکه د دې خلاف ويني نونفع ده او که ويني چي ده دارو خوړلي دی اوعقل او هوش ځني تللي دی نو دليل يي دا دي چي دغم اوفکر څخه به خلاصون حاصل کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي کوم دارو ژر وي هغه غم اوناجوړي ده او دکوم دارو دخوړلو څخه چي يي کرکه وي هغه په ناجوړي دليل دی.

## داروچيني\دال چيني

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي ده داروچيني خوړلي ده نودليل يي دا دي چي دده دغم اوفکر به زيات سي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي چي که څوك ويني چي ده داروچيني دڅه ناجوړي لپاره خوړلي ده او ده ته يي فايده ورکړي ده نو داپر خير اونفع دليل دی.

## داغ کردن \ داغ لګول

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي داغ لګول مال اوخزانه ده اوکه ویني چي خلکو پر ده داغ لګولي دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به مال دالله تعالی په لاره کي خرڅ کړي او په اخرت کي به دعذابه څخه خلاص وي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي چي که ددغه ځاي څخه وینه یا نو راوتلي دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا په کور کي به مقیم سي او که وینه او نو نه وي نو دپاچا څخه به هیڅ نفع حاصله نه کړي. دانیال علیه السلام ویلي دي چي که څوك ویني چي ده دچا پر بدن داغ لګولي دی نو ددې تعبیر خرابه خبره ده یا به په ده تهمت لګیږي اوکه ویني چي دڅه ناجوړي څخه دده پرشا داغ لګیدلی دی نو دا ددین اودنیا دصلاح دلیل دی او بعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چي داغ لګول دپاچا په کارکي بنیاد دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي داغ لګول زکوة منع کول او دپاچا سره مشغولتیا ده دالله تعالی فرمان دی (یوم یحمی علیها فی نار جهنم فتکوی بها جباههم وجنوبهم وظهورهم، سورة التوبة: ۳۵) ترجمه: په کومه ورځ چي ګرم کړي سي دا په اور دجهنم کي بس په دې به وداغل سي تندي ددوي او اړخونه ددوي او ملاګاني ددوي.

## داس \ لور (دريبلو آله)

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دی چي که څوك په خوب کی وویني چي دده په لاس کي لور دی نو دلیل یي دا دي چي داسي اوزار به جوړوي چي په هغه به مال حاصل کړي اوکه ویني چي دده څخه لور ضایع سوي دی نو دلیل یي دادي چي دده دمال نقصان به وسي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي دده سره دسروزرو یا دسپینو زرو لور دی نو دلیل یي دا دي چي دحرام مال یو شي به حاصلوي اوکه ویني چي په هغه سره یي یو قیمتي شي پریکړي دی نو دلیل یي دا دي چي مال اونعمت به حاصل کړي.

## دام \ جال

دانیال علیه السلام ویلي دي چي په خوب کي جال مکر اوحیله ده اوکه ویني چي دده پښه په جال کي نغښتي ده نو ددې تعبیر داولني خلاف دی. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي حیوان یي په جال کي راوستي دی نو کوم سړی چي د دې حیوان مالک دی هغه به په مکر او حیله سره په قبضه کي راولي.

## دانها \ داني

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي داني که پخي وي یا کچه پرغم او فکر دلالت کوي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك په خوب کي ویني چي داني په مځکه غورزیدلي دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه نرخ به ارزانه وي او څنګه چي داني ویني که کورته یي راوړي یا یي په بوجي کي واچوي دلیل یي دا دي چي هغه شي به ګران وي او که ویني چي مړو خلکو ته داني ورکوي نو دلیل یي دا دي چي هغه داني به ارزانه وي.

## د باغي کردن \ پوست رنګول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي پوست رنګول شغل او فرمان جاري کول دی او که په خوب کي ويني چي پوست رنګوي نو دليل يي دا دي چي دا دپوستو رنګولو پيشه به اختيار کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دغوړو لوښه امانتدار سړی دی او که ويني چي دده سره دغوړو کونجي ده يا چا ورکړي ده نودليل يي دا دي چي دده صحبت به دامانتدار سړی سره وي او دهغه څخه به خير اونفع ويني او دهغه غوړو د ښيم مطابق به فايده پورته کوي او که ويني چي کونجي زړه اوخيرنه ده نودليل يي دا دي چي ليدونکي ته به ضرر رسيږي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي ښيم ليدل په نهو وجو وي ۱: امانتدار سړی ۲: ښځه ۳ : خادم ۴: ددين مضبوط والي ۵: دبدن صلاح ۶: ډير عمر ۷: مال او نعمت ۸: خير او برکت ۹: د ښځو دطرف څخه وراثت.

## دبيري \ منشي توب

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي منشي توب کوي نو دليل يي دا دي چي دمړو مال به په حيله سره اخلي او دنه کولو کار به کوي او که ويني چي دپاچا منشي جوړ سوي دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا دخلکو څخه به نفع حاصله کړي او که ويني چي دعامو خلکو منشي توب کوي نو دليل يي دا دي چي دخلکو زړونه به پر ځان سوزوي. دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك ويني چي منشي سوي دی نو دليل يي دا دي چي دخلکو څخه به په مکر اوحيله سره روزي حاصلوي او که هوشيار منشي ويني چي منشي توب کوي نو دليل يي دا دي چي ډير خير اونفع به حاصله کړي او که خوب ليدونکي عملدار يعني مزدور وي نو معزول به سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي قران کريم او حديث شريف ليکي نو دليل يي دا دي چي دهغه جهان خير اونفع به حاصلوي او که ويني چي غزلي او شعرونه ليکي نو دليل يي دا دي چي په عيش کي به مشغول سي او که ويني چي خط ليکي او سياهي ښه ده نو دليل يي دادی چي خط به ليکي او که ويني چي دده ليکل دشريعت خلاف دی نو دليل يي دا دي چي د دې سړی انجام به بد وي.

## دبيرستان \ دفتر \ د منشي ځاي

دمنشي ځاي په خوب کي ليدل دغم ځاي دی ليکن عاقبت به يي ښه وي او دنفعي او بزرګي دليل دی.

## دجال

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي دجال په معلوم ځاي کي دليدلو دليل دا دي چي په هغه ځاي کي به فتنه راسي اوهلته به درواغجن خلک جمع سي او هلته به خير اوبرکت نه وي.

## دختر \ لور

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي لور ليدل واده او خوشحالي ده او که په خوب کي ويني چي دده لور پيدا سوي ده يا چا بخشش کړي ده نودليل يي دا دي چي دانجلي دښايست

او خوی مطابق به ده ته مال نعمت او خوشحالي حاصله سي او که ويني چي انجلي مړه سوي ده نو ددي تعبير داولني خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك ويني چي انجلي ناقصه او خرابه ده نو دليل دغم دی او که ويني چي انجلي يي په غيږ کي واخسته او بوي يي تلی نو دا پرخير اونفعي دليل دی او که ويني چي خپله لور يي چا ته ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي دده څخه به هغه سړی ته خوشحالي رسيږي.

## دخنه\دود

که څوک ويني چي دځان څخه لاندي يي دعود دود کړي دی يا يي خوشبوداره شيان ايښي دی نو دليل يي دا دي چي کسب به زده کوي او دهغه څخه به نفع حاصله کړي او دخلکو سره به په خوشحالي اوعيش سره ژوند تيروي او که بد بويه وي نو تعبير يي د دې خلاف دی جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دي چي په خوب کي ددود تعبير په دروو وجو دی. ۱: کسب ۲: خير اونفع ۳: ښه بنياد.

## دوګان\شرمښان

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دي چي که څوك ويني چي دده سره شرمښان دی ټول خره سوي دی يا يو خرا او بل غويي يا بوزه سوي ده نو دليل يي دا دي چي پر ده به روزي فراخه سي ليکن دده لپاره نقصان هم دی او که ويني چي دده رمه ليوان سوي دی نو د دې تعبير داولني خلاف دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك ويني چي دی دشرمښانو په شکل سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده عقل به زايل سي او که ويني چي ليوان خبري ورسره کوي نو دليل يي دا دي چي پاچاهي به حاصلوي او که ويني چي ليوان يي وژني نو دليل يي دا دي چي پر دښمن به کاميابي ورته حاصله سي.

## دراج\زرکه

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي زرکه په خوب کي ښايسته ښځه ده ليکن بي محبته ده چي دخاوند سره مواقت نه کوي او که ويني چي زرکه يي نيولي ده يا چا ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي دا قسم ښځه به کوي او که ويني چي دزرکي غوښه يي خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي دهغه په مقدار به دښځي مال اخلي. جابر مغربی رحمة الله علیه ويلي دي چي که څوك ويني چي دده سره ډيري زرکي دی اوپوهيږي چي دا دده دي نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به مينځي او ښځي حاصلي کړي او که ويني چي زرکي دده دلاس څخه الوتلي دی نو دليل يي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکړي.

## دراعه\زغره

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده نوي غټه فراخه اوشنه زغره اغوستي ده نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به ورته مرتبه او قوت حاصل سي اوبزرګي به حاصله کړي او که ويني چي تنګه اوخيرنه زغره يي اغوستي نو د دې تعبير داولني خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك ويني چي سپينه زغره يي اغوستي ده

نودليل يي دا دی چي مال نعمت اوبزرگي به حاصله کړي اوکه سره زغره يي اغوستي وي نو دليل دمصيبت دی اوکه توره وي نو دغم اوفکر دليل دی ليکن توره زغره قاضي اوخطيب ته نقصان نه ورکوي اوکه ويني چي زغره يي دبدن څخه ايستلي ده نو دليل يي دا دي چي دښځي څخه به جلا سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي زغره ليدل په اوو وجو وي: ۱: خوشحالي ۲: قوت ۳: محبت ۴: بزرگي ۵: مرتبه اوولايت ۶: دکارونو انتظام ۷: ښځه.

**در\دروازه**

دروازه په خوب کي ليدل ښځه ده اوکه څوك ويني چي دمعلوم يا نامعلوم ځاي بندي دروازي ده ته خلاصي سوی دی اوکوم چي خلاصي سوي دی هغه دلاري طرفته دی نو دليل يي دا دي چي خپل مال به خرڅ کړي اوکه ويني چي په کور کي دده برابر دروازه ماته ده نو دا دمصيبت او دلوي غم دليل دی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي چا دده دکور دروازه ايستلي ده او وړي يي ده او چاته معلوم نه وي چي چيري يي وړي ده نو دا پر کور والا دمحنت او مصيبت دليل دی اوکه ويني چي دده دکور دروازه بنده سوي ده نو دا پر کور والا دمصيبت دليل دی اوکه ويني چي دده دکور دروازه وړه سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده اولاد ته به افت رسيږي. اوکه ويني چي دده دکور دروازه دټولو کورونو ددروازو څخه غټه ده نو دليل يي دا دي چي دده کور ته به نافرمانه قوم په قوت مصيبت او جنگ سره راځي اوکه ويني چي ده دکور ددروازي زنجير وښوراوو که جواب ورته ملاو سوي وی نو دليل يي دا دي چي دده دعا به قبوله سي او ممکنه ده چي خزانه به حاصله کړي او که ويني چي کله يي زنجير وشرنگاوو نو دروازه ژر خلاصه سوه نو دليل يي دا دي چي الله تعالی به دده دعا قبوله کړي اوپر دښمن به کاميابی حاصله کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي چي که څوك ويني چي ده نوي دروازه مضبوطه بنده کړي ده او قلف يي ورته لگولي دی نو دليل يي دا دي چي ښځه به يي مري يا به ورته طلاق ورکوي اوکه ويني چي ده ترکاڼ ته دنوي دروازي جوړلو لپاره ويلي دی د دې لپاره چي په کورکي يي ولگوي نو دليل يي دا دي چي پيغله مينځه به اخلي اوکه ويني چي دده دکور پر دروازه زنجير نسته نو دليل يي دا دي چي کونډه ښځه به کوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي که څوک ويني چي دده دکور پر دروازه شرمښان راختلي دی او اوازونه کوي نو دليل يي دا دي چي ځوانه ښځه به دده دعيال قصد کوي اوکه ويني چي داسمانونو دروازي خلاصي سوي دی نو دليل يي دا دي چي ددغه ملك پرخلکو به دخيرات دروازي خلاصي سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دروازه ليدل په دروو وجو ده ۱: دکور مالك ۲: ښځه ۳: خادم.

**دربان\چوکيدار**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي دښار دروازه ويني نو دليل يي دا دي چي دپاچا پاسبان او دربان به سي اوپه خوب کي دربان ليدل بزرگ سړی ليدل دي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي درباني کوي نو دليل يي دا دي چي دده

مراد به ژر پوره سي او ديوه لوی سړی څخه به عزت او مرتبه حاصله کړي. اوکه ووينې چې چوکيداري کوي او دروازه نسته نودليل يې دا دې چې ديوچا په وجه به چې دده مراد وي هغه به پوره سي ليکن مرتبه به نه وي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چې که څوك ووينې چې دپاچا چوکيداري کوی نو دليل يې دا دې چې دپاچا مقرب به سي.

## دربر گرفتن\په غيږ کې اخيستل

ددې شرح په حرف الف کې بيان سوې ده.

## درختان\درختې

دانيال عليه السلام ويلي دی چې په خوب کې داسې درخته ليدل کوم چې دخلکو خوښه وي نو هغه شريف اوبزرگ سړی ليدل دی اوکه ذليله درخته ووينې نو پر بد سړی دليل دی اوکومه درخته چې ميوه داره وي نو دليل يې دا دې چې مالداره سړی به سي اوبې ميوو درخته پر فقير سړی دليل دی اوکومه درخته چې دعربو په ملک کې وی هغه پرځنګلي سړی دليل دی اوکومه درخته چې دعجمو په ملک کې وی هغه پرعجمي سړی دليل دی اوکومه درخته چې په باغ کې ووينې هغه د باغ دمالك پرمال دليل دی اوکه ووينې چې درخته يې دبيخه ايستلې ده نو دليل يې دا دې چې يو سړی به دمرتبې اونعمت څخه پرې باسي.

## درخت خرما\د خرما درخته

دخرما درخته په خوب کې ليدل پر شريف اوعالم سړی دليل دی اوکه ووينې چې دده سره دخرما درخته ده نو دليل يې دا دې چې دلوی سړی ملګري به سي اوکه دخرما درخته په باغ کې ووينې نو د دې تعبير دباغ مالك ته رجوع کوي.

## درخت ابنوس

درخت ابنوس په خوب کې ليدل پرهغه سړی دليل دی کوم چې پخپل کار کې عاجزه وي اوبعض اهل تعبير وايي چې ښځه يا مينځه ده.

## درخت الو\دالوچې درخته

دالوچې درخته طبيب سړی دی چې هر چا ته فايده رسوي.

## درخت بادام\دبادام درخته

دبادام درخته ښايسته ښځه ده.

## درخت انار\د انار درخته

دانار درخته مالدار اونفعي والا سړی دی.

## درخت پيپل\د پيپل درخته

دپيپل درخته دمرچو درخته پر لوی سړی دليل دی.

## درخت برګد\دبړ درخته

دبړ درخته پر کرار او اطمينان والا سړی دليل دی.

**درخت ترنج \ دترنج درخته**

دترنج درخته پر مخالف او خود رايي سړی باندي دليل دی.

**درخت زيتون \ د خونه درخته**

دخونه درخته پر اصيل اونسب والا سړی باندي دليل دی.

**درخت حنظل \ د مړغوني درخته**

دمړغوني درخته په فقير اوبي دينه سړی باندي دليل دی.

**درخت زردالو دزردالو درخته**

دزردالو درخته په مبارك سړی دليل دی چي خلكوته نفع ورسوي.

**درخت سرو \ دسروي درخته**

دسروي درخته پر عجمي خوش طبع سړی باندي دلالت كوي.

**درخت سنجد \ دمرخنو درخته**

دمرخنو درخته پر نازك مزاجه او دولت مند سړی باندي دليل دی.

**درخت سيب \ د سيبو درخته**

دسيبو درخته پر ناجوړه سړی باندي دليل دی.

**درخت شمامه \ ځنګلي خربوزه**

ځنګلي خربوزه پر تيز دولت مند سړی باندي دليل دی چي ژر به هلاک سي.

**درخت شفتالو \ د شفتالو درخته**

دشفتالو درخته پر عزت مند اوشرمناكه سړی باندي دليل دی.

**درخت عود \ د عود درخته**

دعودو درخته په ښايسته اوخوش زبانه سړی باندي دليل دی.

**درخت فستق \ د پستې درخته**

دپستي درخته پر مالدار اوبخيل سړی باندي دليل دی.

**درخت ګل \ د ګلابو درخته**

دګلابو درخته پر خوشحال سړی باندي دليل دی.

**درخت فندوق (يو ډول ميوه)**

فندوق په غريب اوسخت سړی باندي دلالت كوي چي بازي خوښوي.

**درخت بلوط \ د څيړي درخته**

دڅيړي درخته په خوب كي ليدل پر بي خبره اومنافق سړی باندي دلالت كوي.

**درخت غوزان \ د غوزانو درخته**

دغوزانو درخته ليدل پر شريف اوځوان سړی دليل دی.

**درخت جوز هندي \ د كوپړي درخته**

دكوپړی درخته په عجمي سړي دليل دی چي دخلكو سره بخل كوي او دخپل اولاد سره سخت

وي اوكه ويني چي درختي ته ختلي دی نو دليل يي دا دي چي دلوي سړی سره به ملاو سي او دهغه څخه به نفع اوبزرگي حاصله کړي.

**درخت ليمون \ دليمو درخته**

دليمبو درخته ليدل په جادوگر يا نجومي سړی دليل دی.

**درخت مورد \ د ماڼو درخته**

دماڼو درخته پر ناسازگان او گران طبع سړی دليل دی.

**درخت ني \ دنل درخته \ باڼس**

دباڼس درخته پر بدخويه او چغل خور سړی دليل دی اوکومه درخته چي ميوه داره وی دهغه دميوی په قياس دهغه تعبير دی اوکه ويني چي دميوه داره درختي څخه ميوي خوري نو دهغه ميوي په اندازه به مال حاصلوي اواهل تعبير بيان کړي دی چي په خوب کي پخپل کورکي درخته ليدل ښځه ده اوکه درخته دپاچا په کورکي ويني نو دليل يي دادي چي دپاچا خدمتگار به سي اوکه درخته بغير دتني څخه ويني لکه دبادرنګ يا دختګي درخته نو د دې تعبيرکم همته خلک دی. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي چي که ددرختي ريښي قوي ويني نو دليل يي دا دي چي دمال زکوة به يي ورکړي وي کني د دې خلاف دی او ددرختي پوستکي پر زوري دليل دی چي ددرختي دمالك لپاره وي او ددرختي ښاخونه ورونه خپلوان اوزامن وي اوکه په درخته ډيري پاڼي ويني نو دليل يي دا دي چي ددرختي مالك به خوش طبعه وي اوکه ويني چي په درختي کي لږ ميوي دی نو د دې تعبير داولني خلاف دی او دوني ميوه دهغه پر مالك دليل دی چي پرهيزگاره او ديندار به وي اوکه ويني چي درخته يي پريکړي ده او راويي غورزوله نو دا د درختي دمالك پرمرگ دليل دی. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي درخته خوشبوداره ده او ميوه يي مزيداره ده نو دا پر مصلح اوپاك دينه سړی دليل دی اوکه ويني چي درخته بي خونده او ازغي داره ده نو دا پر مفسد اوبي ديانته سړی باندي دليل دی. اوکه ويني چي دده په کورکي يا دبل چا په کورکي کوچنۍ درخته ده نو دليل يي دا دي چي دده په کور کي به مصيبت راسي اوکه ويني چي پخپل کور کي يي تخم کرلي دی نو دليل يي دا دي چي ددغه تخم په اندازه به ورته يو شي ملاو سي اوکه ويني چي ديو پردي سړی پر مځکه يي درخته لگولي ده نو دليل يي دا دي چي ديو پردی سړي سره به صحبت او شرف او بزرگي حاصله کړي اوکه ويني چي پخپل کور کي يي درخته لگولي ده نو دليل يي دا دی چي زوم به راولي اوکه ويني چي ددرختي سر ته ختلي دی نو دليل يي دا دي چي دده کار به لوی وي اوکه ويني چي ددرختي پاڼي جمع کوي دليل يې دا دی چي دهغه په اندازه به درهم حاصلوي اوکه ويني چي ددرختو څخه ميوه حاصلوي نو دليل يي دا دي چي دده نسل اوزامن به زيات وي اوکه ډيري ميوي داره درختي ويني اوپيژني چي دا دده ملکيت دی نو دليل يي دا دي چي دده عمر به زيات وي اوفتح اوبزرگي به حاصله کړي اوکه ويني چي درخته يي پريکړي ده نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي يا به دده په خپلوانوکي څوك مري اوکه دخزان

په موسم کې په یو نامعلوم باغ کې ووینې چې ددرختو پاڼې غورځیږي نو دا دغم اوفکر دلیل دی اوکه ووینې چې درختې دده سره خبرې کوي نودلیل یې دا دی چې داسې کار به وکړي چې په هغه سره به خلک حیران سي اوکه ووینې چې درخته یې دیو ځای څخه را ایستلې ده نو دلیل یې دا دی چې ناجوړه به سي یا دکوم ځای څخه چې یې درخته ایستلې وي هلته به ځوك مري. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلې دي چې که ځوك درختې پریکړه سوي یا وچې ووینې نو دلیل یې دا دی چې خلک به بې دینه وي اوکه درخته ښه ووینې نو دلیل یې دا دی چې دده دین به ښه وي اوځونه چې په درختو کې نقصان ووینې نو دا دده پر نقصان دلیل دی اوکه ووینې چې ددرختې ترسایې لاندې ناست دی یا بیده دی نودلیل یې دا دی چې دداسې سړي سایې ته به ځي چې دهغه به ددغه درختې سره نسبت وي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلې دی چې درخته په خوب کې لیدل په لسو وجو ده ۱: پاچا ۲: ښځه ۳: سوداګر ۴: مرد میدان ۵: عالم ۶: ایماندار ۷: کافر ۸: مددګار ۹: جنګ ۱۰: دشك مال.

## درد اندامها \ د بدن او بندنو درد

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلې دی چې که ځوك په خوب کې ووینې چې دده بندونه درد کوي نو دلیل یې دا دي چې دده دقبضې څخه به مال ځي اوکه ووینې چې دده سر درد کوي نودلیل یې دا دي چې ډېر ګناهونه یې کړي دی توبه دی وکړي اوصدقه دی ورکړي دالله تعالی فرمان دی (فمن کان منکم مریضا او به اذی من راسه ففدیة من صیام او صدقة اونسك، سورة البقرة: ۱۹۶) ترجمه: ځوك چې په تاسو کې ناجوړه وي یا په سر کې تکلیف وي نو دروژو فدیه یا صدقه دی ادا کړي، اوکه ووینې چې دده تندی درد کوي نو دا ددین پر فساد غم اوفکر دلیل دی اوکه ووینې چې دده سترګه درد کوي نو دلیل یې دا دي چې ځوك به ده ته دحق لاره ښیي اوکه ووینې چې دده وږه درد کوي یا دده په ژبه کې نقصان دی نو دلیل یې دا دي چې دچا څخه به خرابه خبره اوري اوکه ووینې چې دده پوزه درد کوي یا دده په ژبه کې نقصان دی نو دلیل یې دا دی چې داسې خبره به کوي چې دهغه وبال به پرده راسي اوکه داخوب سوداګر ووینې نو دلیل یې دا دي چې په سوداګري کې به درواغ وایي اوکه خپله ژبه پریکړه سوې ووینې نو دا د اصلاح او پرهیزګاري دلیل دی اوکه ووینې چې دده تالو درد کوي اوپړسیدلې دی نو دلیل یې دا دي چې دچا دحق څخه به انکار کوي اوکه ووینې چې دده خوله درد کوي نو دلیل یې دا دي چې دخپلوانو څخه به غم حاصل کړي اوکه ووینې چې دده څټ درد کوي نودلیل یې دا دي چې دده پر ذمه امانت دی او هغه نه ادا کوي اوکه ووینې چې دده نس درد کوي نو دلیل یې دا دي چې ده حرام مال خوړلی دی اوکه ووینې چې دده ملا درد کوي نو دلیل یې دا دي چې دخپلوانو په وجه به درد حاصل کړي اوناجوړه به سي اوکه ووینې چې دده زړه درد کوي نو دلیل یې دا دي چې پرخپلو زامنو به مهربانه وي اوکه دلاس درد ووینې نو دلیل یې دا دي چې دهمسایه پر ورور به ظلم کوي اوکه ووینې چې ګوته یې درد کوي نو دلیل یې دا دي چې بدې داره به وي او که ووینې چې نو یې

درد کوي نو دلیل یي دا دي چي خپل اولاد به تنګوي اوکه ویني چي دده پر عضو تناسل درد دی نو دلیل یي دا دي چي فساد به کوي اوکه ویني چي دده دلویو بولو پر ځای درد دی نو دلیل یي دا دي چي فساد اوحرام به کوي اوکه ویني چي دده پر کوناټو درد دی نو دلیل یي دا دي چي پر خپلوانو او دوستانو به ظلم کوي او که ویني چي دده پښه درد کوي نودلیل یي دا دي چي په خپلوانو او دوستانو به ظلم کوي او که ویني چي دده پر بدن داغ دی نو دلیل یي دا دي چي مال به حاصلوي.

## درهم

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي دخلکو طبعیتونه مختلف دی اوکوم سړی چي په خوب کي درهم ویني نو په ویښه ددرهم حاصلیدو دلیل دی اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي څوك په خوب کي درهم ویني نو دلیل یي دا دي چي نیکه خبره به اوري یا به دالله تعالی تسبیح بیانوي اوکه ویني چي درهم سپین دی نو د دې تعبیر ډیر ښه دی اوکه درهم تور وي نو پر جنګ دلیل دی اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي که ویني چي په کوچنیوالي یې درهم پیدا کړي دی نو دا پر کوچني زوی دلیل دی اوکه ویني چي دده څخه درهم ورك سوي دی یا ځني چا پټ کړي دی نو دلیل یي دا دي چي دکوچني زوی په وجه به دده پر زړه بوج راځي اوکه ویني چي کوچني درهم ځني ضایع سوي دی اوبیا یي پیداکړي دی نو دلیل یي دا دي چي دغه بوج به دده دزړه څخه زایل سي او که بیا یي نه وي حاصل کړي نودلیل یي دا دي چي دده زوی به هلاک سي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي درهم په لاس کي لرل ښه خبره ده اومات سوي درهم خرابه خبره ده او ډیر درهمونه مال دی اوکه ویني چي پخپل اولاد یي پخپل لاس درهمونه تقسیم کړي دی نو دلیل یي دا دي چي ددوي ترمینځ به جنګ کیږي. اوکه ویني چي ډیر درهمونه په کور کي لري نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي او که ویني چي ډیر درهمونه یي جمع کړي دی نو دلیل یي دا دي چي خلک به دحق اوباطل څخه منع کوي دالله تعالی فرمان دی (جمع مالا وعدده یحسب ان ماله اخلده، سورة الهمزة: ۲ –۳) ترجمه: مال یي جمع کړي اوشمار یي کړی ګمان کوي چي دده مال به همیشه وي اوکه یو سپین درهم پخپل تلي کي ویني نو دلیل یي دا دي چي زوی به یي مړ پیداسي اوکه ویني چي دغه درهم دده څخه ورك سو نودا دزوی پرمرګ دلیل دی اوکه په خوب کي درهم ددینارو په بدله کي حاصل کړي نو دلیل یي دا دي چي حلال مال اونعمت به جمع کوي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که سپین درهم په خوب کي ویني نو تور درهم به حاصلوي او ډیر خلک په خوب کي درهم ویني او په ویښه یي حاصلوي. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دي چي صفا درهم په خوب کي ددین صفایي ده او مات سوي درهم جنګ دی اوکه ویني چي پاچا ورته درهم ورکړي دی نو دا دغم اوفکر څخه دخلاصون دلیل دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي درهم لیدل په یولسو وجو دی ۱: سمي خبري ۲: مراد پوره کیدل ۳ : ولایت ۴: مال جمع کول ۵: ملګري ۶:

زوی ۷: فتنه ۸: دروزي فراخي ۹: امن ۱۰: مینځه ۱۱: درهم پیدا کول خاصکر که خوب لیدونکي پرهیزګار وي اوکه پرهیزګار نه وي نو دزامنو په زحمت غم اوفکر دلیل دی لیکن مات سوي درهم په خوب کي لیدل په څلورو وجو دی ۱: خرابه خبره ۲: جنګ ۳: بند اوقید ۴: خبري.

## درمنه (یوه دواده)

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي درمنه په خوب کي لیدل پر غم او فکر دلیل دی اوددي خوړل دمال او د اولاد پر نقصان دلیل دی.

## دروغ گفتن\درواغ ویل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي درواغ ویل ددین پر تباهي او پر فساد دلیل دی اوکه ووینې چي ده ددرواغو ګواهي ورکړي ده نو دلیل یي دا دي چي دده دین به تباه سي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي باچا درواغ ویلي دی نو دلیل یي دا دي چي خلک به دهغه بدي اوخرابي کوي او دهغه عزت او حفاظت به ختم سي.

## درودگري کردن\لرګي تراشل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي لرګي تراشلو والا دخلکو خیرخوا دی لیکن صحبت یي دمنافقانو سره دي او بي مذهبه دی او دهغو پر رایه چلیږي ځکه چي لرګو والا په خوب کي لیدل په نفاق دلیل دي دالله تعالی فرمان دی (کانهم خشب مسندة، سورة المنافقون: ٤)
ترجمه: ګویا چي ولاړ لګول سوي لرګي دی. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دلرګو تراشلو والا دهلکانو معلم دی چي جاهلانو اوکم عقلانو ته پوهه ښیي اودخلکو دکارونو مصلح او تدبیر کوونکي دی او هغوي دفساد او دنفاق دلاري څخه لیري کوي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ترکاڼ دخلکو معلم دی.

## درویشي\فقیري

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي فقیري دمالداري څخه ښه دی خاصکر که په صلاح او ددین په لاره کي وی که څوك ووینې چي دي فقیر سوي دی نو دا پر درستوالي ددین دلیل دی اوکه ووینې چي مالدار سوي دی نو د دې تعبیر داولني څخه خلاف دی. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلي دی چي که چا په خوب کي مسلمان فقیر ته خیرات ورکړ نو دلیل یي دا دي چي دغمونو او تکلیفونو څخه به خلاص سي اوکه ووینې چي دخلکو په دروازو کي ډوډي غواړي او ګرځي نو دلیل یي دا دي چي ده ته به خیر اونفع ورسیږي.

## دریا\دریاب\سمندر

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دریاب پاچا یا لوی عالم دی او که ووینې چي ددریاب اوبه روښانه صفا او خوندوري دی نو دلیل یي دا دي چي پاچا به پرهیزګاره عدل کوونکي او انصاف کوونکي وي اوکه ووینې چي ددریاب اوبه خرابی اوتروی سوي دی

نودليل يي دا دي چي باچا به فسادي او ظالم وي اوكه ويني چي ده ددرياب څخه اوبه چيښلي دى نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به عزت اومرتبه حاصلوي اويابه دعالم څخه نفع حاصلوي اوكه ويني چي ددرياب څخه يي اوبه منګي ته اچولي دى نودليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به دپاچا څخه نفع حاصله كړي اوكه ويني چي په درياب كي ډوب سوي دى اوبدن يي دختو څخه ډك سوي دى نو دليل يي دا دي چي ده ته به دپاچا څخه غم اوفكر ورسيږي اوكه ويني چي خپل بدن يي دختو څخه پاك كړي وي نو دليل يي دا دي چي دده غم اوفكر به ختم سي اوكه ويني چي ددرياب په اوبو كي لمبيږي نو دليل يي دا دي چي پاچا به دي قيدي كړي اوكه ويني چي ددرياب څخه په لمبيدو وتلي دى نو دليل يي دا دي چي دقيد څخه به خلاص سي او كه ويني چي په درياب كي غرق سوي دى اومړ سوي دى نو دليل يي دا دي چي ددين په لاره كي به مصروف سي اوكه ويني چي دليري څخه يي درياب ليدلي دى اونزدي ورته نه دى تللي نو دليل يي دا دى چي دده اميد به پوره سي اوكه ويني چي په درياب كي تير سوي دى اوپښي يي نه دى لندي سوي نودليل يي دا دي چي ددوږخ داور څخه به په امن كي وي او ددنيا كارونه به باندي اسانه سي. ابراهيم كرمانى رحمة الله عليه ويلي دى چي كه څوك ويني چي دى په درياب كي دى نو دليل يي دا دي چي دپاچا په خدمت كي به تابعدار اوفضيلت والا سي او كه ويني چي ددرياب مينځ ته تللي دى نودليل يي دا دي چي دده كار به خطرناكه وى اوكه ويني چي ددرياب څخه راوتلي دى نو دليل يي دى چي بى غمه به وي اوكه ويني چي ددرياب څخه يي يخي اوبه چيښلي دى او خوب ليدونكي عالم وي نو دليل يي دا دي چي پوره نصيب به حاصل كړي اوكه خوب ليدونكي پوره عالم نه وي نو د دې تعبير داول څخه خلاف دى دالله تعالى فرمان دى (قل لو كان البحر مدادا لكلمات ربى لنفد البحر قبل ان تنفد كلمات ربى، سورة الكهف: ۱۰۹) ترجمه: ووايه چي كه درياب زما درب دكلماتو لپاره رنګ سي نو زما درب دكلماتو دختميدو څخه اول به درياب ختم سي اوكه خوب ليدونكي دپاچا دخلكو څخه وي نو دليل يي دا دي چي دپاچا دمعتبرو خلكو څخه به سي اوكه ويني چي ددرياب په اوبو يي ځان پريولي وى نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به امن حاصل كړي اوكه ويني چي ددرياب ګرمي اوبه يي چيښلي دى نو دليل يي دا دي چي ګناه به كوي دالله تعالى فرمان دى (يتجرعه ولا يكاد يسيغه، سورة ابراهيم: ۱۷) ترجمه: دابه په ګوټ ګوټ چيښي خو تيري به يي نه كړي جابر مغربى رحمة الله عليه ويلي دى چي كه څوك ويني چي ددرياب په اوبو كي تللي دى نو دليل يي دا دي چي دعبادت توفيق به حاصل كړي اوامانت به ادا كړي اوكه ويني چي ددرياب اوبه يي چښلي دي نو دليل يي دا دي چي پر دښمن به كاميابه سي اوكه ويني چي ددرياب اوبه زياتي سوي دى نودليل يي دا دي چي پاچا په دلښكر سره هلاک سي. اوكه ويني چي ديو ځاي څخه چي پورته سوي دى او ټوله دنيا په وريځو باندي تاريكه سوي ده نودليل يي دا دي چي ددغه ملك خلک

به نافرمانه اوګنهګاره وي دالله تعالی فرمان دی (من فوقه موج ومن فوقه سحاب، سورة النور: ٤٠) ترجمه: پر دوي لوړ څپې دی اوپر دوي لوړ وریځې دی. اوکه ویني چې په دریاب کي ښکار نیسي نو دلیل یي دا دي چي حلاله روزي به حاصله کړي او دده په عیال به ژوند فراخ وي دالله تعالی فرمان دی (احل لکم صید البحر وطعامه متاعا لکم، سورة المائدة: ٩٦) ترجمه: ستاسو لپاره ددریاب ښکار حلال دی او ددي خوراك ستاسو لپاره سرمایه دی. اوکه ویني چي ددریاب اوبه تروي دی نو دلیل یي دا دي چي حرام مال به خوري اوکه ویني چي ددریاب اوبه خرابی سوي دی اودي ښکار پکي نیسي نودلیل یي دا دي چي دی به هلاک سي دالله تعالی فرمان دی (واسئلهم عن القریة التي کانت حاضرة البحر، سورة الاعراف: ١٦٢) ترجمه: دهغه کلي والاوو څخه پوښتنه وکړه چي پر دریاب باندي حاضر وو اوکه ویني چي ددریاب څخه یي یاقوت او مرجان را ایستلي دی نودلیل یي دا دي چي ددین په علم زده کولو کي به مشغول سي اوکه اهل علم وي نوعلم به یي نور زیات سي اوکه ویني چي ددریاب څخه یي مګرمچ نیولي دی اووژلي یي دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا دښمن به دده په لاس مړ کړه سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دریاب لیدل په شپږو وجودی ۱: پاچا ۲: حاکم ۳: رئیس۴: مال ۵: عالم ٦: لوی کار.

## دژ\قلعه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي ده قلعه جوړه کړي ده نو دا دده دښه والي دلیل دی اوکه ویني چي خپله قلعه یي خرابه کړي ده نو دا دده ددین پر تباهي او فساد دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که قلعه یي په خوب کي دپخي مسالي او پخو خښتو څخه جوړه کړي وي نو دلیل یي دا دي چي دوږخي به وي اوکه ویني چي دختې او خښتو څخه یي جوړه کړیده نودلیل یي دا دي چي جنتي به وي. اوکه په قلعه کي مقیم وي نو دا ددین دصلاح او دسمي لاري دلیل دی اوکه ویني چي هروخت قلعه ته ننوځي اوراوځي نو دلیل یي دا دي چي ددین په لاره کي به کامل نه وي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که خپل ځان په قلعه کي ویني نو دا پر صلاح ددین دلیل دی اوکه د دې خلاف ویني نو دا ددین پر کمزورتیا اوتباهي دلالت کوي.

## دزدي کردن\غلا کول

اوکه ویني چي دچا مال یي پټ کړي دی او څه یي خرڅ کړي دی نو دلیل یي دا دي چي دی به مړ کیږي اوکه ویني چي دغلا نیت یي وکړی لیکن غلا یي نه وکړه نو دلیل یي دا دي چي خرابي خبري به چا ته رسوي اوبعضي وایي چي ناجوړه به سي اوبیا به شفا حاصله کړي اوکه ویني چي دده دکور څخه یي څه پټ کړي دی نودلیل یي دا دي چي ده ته به څه افت یا غم رسیږي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي دغل په لاس قید سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دده حال به بد سي اوپه غم اوفکر کي به ګرفتار سي اوکه ویني چي غلو ډاکه باندي اچولي ده نو دلیل یي دا دي چي دغه سړی به غم، اوفکر ویني. جعفر صادق رحمه الله

ویلي دي چي غلا په خوب کي ناجوړي ده او اهل تعبیر بیان کړي دی چي چیري غلا وکړي هلته دزوم والي دلیل دی یابه یي زوی پیداسي اوکه دخوب لیدونکي زوی غایب وي نوپه سلامتي سره به بیرته راسي. دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي غل لیدل خیانت او حیله ده.

## دستار \ لنګوټه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي لنګوټه لیدل دین دی اوکه ووینی چي دده لنګوټه سپینه یاشنه یا ژړ رنګه یا دستر دی نو دا ددین دصلاح دلیل دی اوکه ووینی چي سپینه او پاکه لنګوټه لري نو دلیل یي دا دي چي ددین او دنیا اصلاح به وي او دریښمو لنګوټه ددنیا په کارونو کي درستي ده اوکه ووینی چي دده دلنګوټي سره بله لنګوټه مښتي ده نو دلیل یي دا دي چي دده بزرګي اومرتبه به زیاته سي اوکه ووینی چي دده لنګوټه را ایله ده یا ورکه سوي ده نو دا ددین دنقصان او دده دبي حرمتي دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که خپله لنګوټه پټه سوي ووینی نو دده دمرتبي او دقدر دنقصان دلیل دی اوکه ووینی چي لنګوټه یي پیچلي ده اوښه یي ساتي نو دلیل یي دا دي چي ددنیا دارو اودیندارو سره به موافقت کوي او که نقشداره لنګوټه لري نو دلیل یي دا دی چي په سفر کي به په خلکو کي مشهوره سي اوکه ووینی چي دده لنګوټه اوکالي شنه دی نودلیل یي دا دي چي ددنیا څخه به په شهادت ځي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي ثونه لنګوټه غټه وي دده مرتبه اوعزت به زیات سي اوکه ووینی چي دده لنګوټه خیرنه ده نودا دده دمرتبي او دعزت او نقصان دلیل دی اوکه سره لنګوټه ووینی نو دلیل یي دا دي چي پر چابه ظلم کوي اوکه ژړه یي ووینی نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه اودلي لنګوټه ووینی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به مصیبت رسیږي اوکه توره ووینی نو ده ته به نقصان او ضرر رسیږي لیکن دخطیب اوقاضي لپاره نقصان نه دی اوکه پر سر دریښمو لنګوټه ووینی نو دلیل یي دا دي چي منصف اوحاکم به سي او خلک به یي عزت کوي اوکه ووینی چي اوږده لنګوټه یي تړلي ده نودلیل یي دا دي چي دسفر څخه به ژر راسي او دریښمو ټوپۍ ددین پرفساد دلیل دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي لنګوټه لیدل په اوو وجوده ۱: دین ۲: ریاست ۳: عمل ۴: ولایت ۵: مرتبه ۶: توانایي ۷: سفر.

## دستار حمامي \ د حمامي دسمال

ان شاءالله د دې بیان به په حرف میم کي راځي.

## دست اس \ میچن

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي میچن لیدل دفکر څخه خلاصون دی اوکه ووینی چي دده سره میچن ده نودلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به نعمت حاصل کړي اوکه ووینی چي دمیچن کاڼی مات سوي دی نو دلیل یي دا دي چي میچن والا به هلاک سي یابه سخت ناجوړه سي اوکه ووینی چي په میچن یي نکریزي وغیره اوړه کړي دی نو دا دجنګ دلیل دی.

## دست \ لاس

دانیال علیه السلام ویلي دی چي دراسته لاس تعبیر ورور دی او دچپه لاس تعبیر خور ده که څوک

ووینې چې دده راسته لاس اوږد سوې دی نو دلیل یې دا دې چې دده دورور یا دده دشریك کار به نیك وي اوکه ووینې چې دده دواړه لاسونه بیا کوچنې سوې دی نو دلیل یې دادی چې دده ورور او خور به دده څخه مخ واړوي اوکه ووینې چې دده دواړه لاسونه لنډ سوي دی نو دلیل یې دا دې چې دخپل ورور یاخور څخه به نفع حاصله کړي اوکه ووینې چې دده دواړه لاسونه پریکړه سوې دی او را ایله سوي دی نو دلیل یې دا دې چې دده ورور او خور به دده په ژوند کې دده څخه جلا سي اوکه ووینې چې ده دواړه لاسونه پر سینه ایښي دی نو دلیل یې دا دې چې دخپلو دوستانو لپاره به غم خوري. اوکه ووینې چې دخلکو په مینځ کې دی اولاسونه ښوروي نو دلیل یې دا دې چې په دغه ځاي کې به واده کوي اوکه ووینې چې یواځې لاس وهي او خوشحاله کیږي نودا دغم او فکر دلیل دی اوکه ووینې چې پاچا یاقاضي دده راسته لاس پریکړي دی نو د ابن سیرین رحمه الله دوینا مطابق به دده ورور یا خور یا زوی مري اوکه دده دواړه لاسونه یې پریکړي دی نو دلیل یې دا دې چې دخپل کسب اومراد څخه به منع سي اوکه ووینې چې ده په یو لاس سره دبل لاس پوست ایستلي دی نو دلیل یې دا دې چې په خپلوانو به ظلم کوي. اوکه ووینې چې خپل لاس یې په چاړه سره پریکړي دی نو دلیل یې دا دې چې دچا سره به جنګ کوي یا به دده زړه په چامشغول سی دالله تعالی فرمان دی (وقطعن ایدیهن، سورة یوسف: ۳۱) ترجمه: او دوي خپل لاسونه پریکړل. اوکه ووینې چې خپل یو تلې په بل تلي پریولي نو دلیل یې دا دي چې دخپلوانو څخه به ښځه کوي اوکه ووینې چې دده یې یولاس پریکړي دی او پهانسي کړي یې دی نو دلیل یې دا دې چې ددغه ځاي امیر به معزول سي اوکه ووینې چې دحیوانانو په ډول پرلاس او پښو ګرځي اومخ یې داسمان طرفته کړي دی نو دلیل یې دا دې چې ناممکنه ارمان به تلاش کوي او په مشکله به پوره سي او که ووینې چې دده لاس پیدایشي وچ دی نو دلیل یې دا دې چې دصدقي ور کولو او دکار خیر څخه به عاجز وي ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چې که څوك ووینې چې دده لاسونه په ستني سره درست سویدی نو دلیل یې دا دي چې دده همت به دعلم اودعقل په تعلیم سره وي، اوکه ووینې چې دده لاس پري سویدی او دانه پیژني چې راسته لاس یې پري سوي دی که چپه لاس نو دلیل یې دا دي چې ده ته به مصیبت رسیږي اوکه ووینې چې کله دده لاس پري کیدی هغه وخت ده قران مجید ویلو نو دلیل یې دا دي چې لاس به یې دګناه څخه منع سي. او اهل تعبیرو بیان کړي دی چې په خوب کي لاس پري سوي لیدل دلیل لري چې عمر به یې زیات سي اوګناه پریښول اوپه کار کې مشغولتیا ده اوکه ووینې چې دده راسته لاس دځه ګناه په وجه پري سوي دی نو دلیل یې دا دي چې درواغجن اوبې دیانته به وي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دي چې که څوك ووینې چې په څټ کې یې خپل لاس را ځړولي دی نو دا دلمونځ طاعت جهاد او دنیك کار پر ځاي راوړو دلیل دی. اوکه ووینې چې دده راسته لاس پري سوي دی نو دلیل یې دا دي چې ددرواغو قسمونه به خوري او که ووینې چې دده لاس پري سوي دی او دوخت دپاچا پر بدن لګیدلی دی که پاچا

مصلح وي نو پر شر او فساد دليل دی اوکه ويني چي دده يو لاس دبل لاس څخه ډير اوږد سوي دی نو دليل يي دا دي چي قوت اومرتبه به يي زياته سي او څه چي طلب کوي هغه به حاصل کړي. اوکه ويني چي دي په دواړو لاسونو ګرځي نو دليل يې دا دي چي پخپل کار به يي بهروسه وي اواهل تعبيرو بيان کړي دی چي دخپلوانو څخه به نفع حاصله کړي اوکه ويني چي دده لاسونه او پښي دده سره خبري کوي نو دليل يي دا دي چي دده ژوند به ښه وي اوکه ويني چي دخپل انډيوال لپاره يي ملغلري په لاس کي نيولي دی نودليل يي دا دي چي ټول قران مجيد به په ناظره وايي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دي چي که څوك ويني چي دده لاس دپاچا په ډول سوي دی نو دليل يي دا دي چي بزرګي او يا پاچاهي به حاصله کړي اوکه ويني چي دده راسته لاس دسرو زرو سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده دولت به ختم سي اوکه ويني چي خپل لاس يي په صابون پريولي دی نو دليل يي دا دي چي نا اميده به سي اوکه ويني چي دکوم حيوان تعبير نيك دی هغه دده په چپه لاس ننوتلي او دراسته لاس څخه دباندي را وتلي دی يا په راسته لاس ننوتلي او دچپه لاس څخه دباندي راوتلي دی نو دليل يي دا دي چي دغم څخه به خلاص سي او اخري انجام به يي ښه وي اوکه هغه حيوان په تعبير کی بد وي نو دليل يي دا دي چي پر يو کمزوري به ظلم کوي. اوکه ويني چي دده لاس وچ سويدی نودا دده دصحت پر خرابيدو دليل دی اوکه ويني چي دده لاس چا ژوندي يا مړي پخپل لاس کي نيولي دی يا دده څڼ ته يي لاس اچولي دی نودليل يي دا دي چي دده عمر به زيات سي اوکه ويني چي دچا مشرك لاس ته يي کړي اچولي ده نو دليل يي دا دي چي هغه مشرک به دده په لاس اسلام راوړي دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي لاس ليدل په دولسو وجو دی ١: ورور ٢: خور ٣: شريك ۴: انډيوال ۵: زوی ۶: ملګري ٧: قوت ٨ : طاقت ٩: ولايت ١٠: مال ١١: محبت ١٢: پيشه او صنعت وغيره.

## دست کړی\رنجن کړی\دلاس کړۍ

دست اورنجن هغه کړي ده چي په لاس کي يي اچوي ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کړي دښځو لپاره خاوند دی اودسړو لپاره غم اوفکر دی اوکه ويني چي دسپينو زرو کړي ورسره ده نو دليل يي دا دي چي غم اوفکر په يي کم وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي چا کړی ورته ورکړي ده نو دليل يي دا دي چي دده ورور يا زوی به پيدا سي اوکه داخوب ښځه ويني نو خاوند به کوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي دده په دواړو لاسونو کي کړي ده نو دليل يې دا دي چي ده ته به مال او نعمت په غم سره ملاو سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کی کړۍ ليدل په پنځو وجو دی ١: رياست ٢: حکومت ٣: مکر ۴: غم ۵: ورور يا زوی.

## دستوروی شتن\مخ او لاس پريولل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي که څوك ويني چي ده مخ او لاس په صفا اوبو پريولی دی نو دليل يي دا دي چي دغم څخه به خلاصون حاصل کړي که ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي که

قرضدار وي نو دقرض څخه به خلاص سي اوکه ويني چي يي دلاس پريولو څخه لمونځ کوي نو دليل يي دا دي چي دده دين به کمزوري وی اومال به يي دلاسه ولاړ سي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دواړه لاسونه او مخ يې پريولي نو دليل يي دا دی چي دخپلو دوستانو څخه به مدد غواړي اوکه ويني چي مخ او لاس يې پريولی او دده اودس دغه وخت مات سوي وو نو دليل يي دا دي چي پخپل کسب اوګټه کي به عاجز سي اوکه ويني چي دده اودس مات سوي دی او بيايي مخ او لاس پريولي دي اولمونځ يي شروع کړيدی ليکن ختم کړي يي نه دی نو دليل يي دا دي چي دده عمر اخري سوي دی. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي څوك ويني چي چا دده مخ او لاس پريولي دی او هغه سوچ پکښي کوي نو دليل يي دا دي چي دده مراد به پوره سي.

## دستينه \ لاستی دچړيوغيره

کړه يا لاستي په خوب کي دسرو لپاره دښځو څخه غوره دی ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دده په لاس کي داوسپني کړه ده نو دليل يي دا دي چي قوت والا او مالدار به سي اوپه دښمن به کاميابی حاصل کړي خاصکر که دفولادو کړه وي د دې تعبير دلاس دکړي مطابق دی. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کړه ليدل په دروو وجو وی ۱: قوت او توانايي ۲: پر دښمن بري حاصلول ۳: ددنيا دکار انتظام.

## دښمن

که په خوب کي ويني چي پر دښمن يي غلبه کړي ده نو دليل يي دا دي چي مراد به يي پوره سي اوکه دښمن غلبه باندي کړي وی نو د دې تعبير داول خلاف دی اوکه ويني چي دښمن دی خوړلي دی نودليل يي دا دي چي په بلا او مصيبت کي به راسي توبه ايستل پکار دی چي بلا دفع سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي دښمن په خوب کي ليدل په دروو وجو دی ۱: دکارونو بنديدل ۲: غم اوفکر ۳: دمال تاوان.

## دشنام \ ښکنځل

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي چا ورته ښکنځل کړي دی نو دليل يي دا دي چي حال به يي نيك سي اوپر ښکنځل کوونکي به کاميابی حاصله کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي چا ورته ښکنځل کړي دی نو دليل يي دا دي چي هغه سړی به پر ده کاميابی حاصله کړي.

## دعا کردن \ دعا کول

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دعا کول مراد حاصلول دی اوکه ويني چي دځان لپاره يي دعا اوبخښنه غوښتي ده نو دليل يي دا دي چي دده خاتمه او کار به په خير سره وي او مراد به يي پوره سي او که ويني چي دچا مصلح لپاره يي دعا کړي ده نو دليل يي دا دي چي دظلم اوفساد طرفته به مايل نه وي او امر بالمعروف به پر ځاي راوړي اوکه ويني چي دمخلوق لپاره دعا غواړي نو دليل يي دا دي چي دمخلوق خيرخوا به وي او مراد به يي پوره

سي اوکه ويني چي خاصکر دعا غواړي نو دليل يي دادي چي زوی به يي پيداسي دالله تعالی فرمان دی (اذ نادی ربه نداء خفيا، سورة مريم: ۳) ترجمه: کله چي يي خپل رب ته په پټه اواز کوي.
ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي په تاريکه کي دعا غواړي که مصلح او پرهيزګار وي نوالله تعالی به يي وبخښي اومراد به يي پوره سي اوکه خوب ليدونکي مفسد وي نو توبه کوي او که کافر وي نو مسلمان به سي.

## دف زدن\نغاره وهل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي نغاره وهل دامر معروف کولو دليل دی اوکه ويني چي نغاره وهي نو دليل يي دا دي چي دچا اصلاح به کوي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي داستاذ په طور نغاره وهي نو دليل يي دا دي چي بدکاره ښځه به کوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دنغاري اواز اوريدل خوشحالي ده او که دمينځي څخه يي واوري نو ښه دی اوکه دسړی څخه يي واوري نو دولت او بزرګي به حاصله کړي اوکه دځوان څخه يي واوري نو دا دکارونو ښکاره کيدو دليل دی.

## دلالي کردن\دلالي کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دلالي کول په څلورو وجو دی ۱: دخلکو ترمينځ صلح کول ۲: رسته لاره ۳: نيك کار ۴: امر بالمعروف په ځاي راوړل او دلال داسي سړی دی چي دخلکو لارښونه کوي دخير طرف ته به لار ښيي جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي دلالي کول په پورته ذکر سوي څلورو وجو ده.

## دل\زړه

دبدن دښار باچا زړه دی اوبدن دده پر فرمان قايم دی اوپه ښکاره اوباطن کي زړه دعقل خزانه ده. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي زړه ليدل درسيدلي مال جمع کول دی اوکه ويني چي زړه دده دبدن څخه دباندي دی نو دا پر صلاح اونيکي دليل دی دالله تعالی فرمان دی (حتی اذا فزع عن قلوبهم قالوا ماذا قال ربکم قالو الحق، سورة سبا: ۲۳) ترجمه تردي پوري چي کله ددوي زړونه وبيريږي نو دوي به ووايي چي ستا رب څه وايي هغوي به ووايي چي حق يي وويل اوکه ويني چي زړه يي تنګ سوي دی نو دليل يي دا دي چي کارونه به باندي تنګ سي اوکه ويني چي زړه يي خوشحاله دی نو دليل يي دا دي چي کارونه به باندي فراخ سي او که زړه بند ويني نو دليل يي دا دي چي دګناه څخه به توبه وباسي دالله تعالی فرمان دی (افلا يتدبرون القران ام علی قلوب اقفالها، سورة محمد: ٢٤) ترجمه: دوي ولي په قران کي سوچ نه کوي يا ددوي پر زړونو قلف لګيدلي دی. که زړه په لاس کي ويني نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه ويني چي زړه يي په دواړو لاسونو کي نيولي دی نو دليل يي دا دي چي دده کارونه به پوره سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي دده زړه درد کوي نو دليل يي دا دي چي مال به

يي زيات سي اوکه ويني چي دده دزړه سترګي خلاصي دی نو دليل يي دا دي چي ددواړو جهانونو پرکار به حرصناکه اومتوجه سي. اوکه ويني چي دده دزړه څخه وينه وزي نو دليل يي دا دي چي دنه کوونکي کار څخه به توبه وکړي او دالله تعالی طرفته به رجوع وکړي اوکه ويني چي دده دزړه څخه صفرا وتلي ده نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه ويني چي دده زړه ته زخم رسيدلي دی نو دليل يي دا دي چي بي غمه به سي اوکه ويني چي دزړه څخه يي ملغلري وتلي دی اوپه خوله يي ملغلري غورزولي دی نو دليل يي دا دي چي کافر به سي اوکه ويني چي ملغلره يي دځمکي څخه لوړه کړه او وويي خوړه نو دليل يي دا دي چي بيا به مسلمان سي اوکه ويني چي دزړه څخه يي ملغلره ووتله او دهغه څخه يي جواهرات پرمځکه وغورزول او ملغلري يي وخوړي نو دليل يي دا دي چي پنځه سره لمونځونه به پريږدي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک ويني چي دده زړه ټکړي ټکړي سوي دی نو دليل يي دا دي چي په ناممکنه حرصونو کي به خپل زړه لګوي اوکه ويني چي دده زړه روښانه دی نو دا ددين دصلاح دليل دی اوکه ويني چي دده پرزړه تياره ده نو د دې تعبير داولني خلاف دی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي زړه ليدل په لسو وجو دی ۱: مال ۲: رياست ۳: زوی ۴: بهادري ۵: ځوانمردی ۶: حرص۷: قوت ۸: مدد ۹: شهوت۱۰: خپل احوال پټ ساتل.

## دنبال\لکۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دده داس ياخره يا غوايي په ډول لکۍ سوي ده نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به مال اونعمت حاصل کړي اوکه ويني چي دده په لاس کي دداسي حيوان لکي ده دکوم غوښه چي حرامه ده نو دليل يي دا دي چي حرام مال به حاصل کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کي لکی ليدل په څلورو وجو وی. ۱: اخستل خرڅول ۲: باران ۳: مال ۴ : خوشحالي اوعيش.

## دنبل\ننګي\دانه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي پر ده ننګي ده نو دليل يي دا دي چي دننګي په اندازه به دده مال زيات سي اوکه ويني چي ننګي ماته سوي ده اووينه ځني وتلي ده نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به دده مال ورك سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي دننګی څخه وينه او نو وزي او دي يي څټي نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به حرام مال حاصل کړي اوکه ويني چي ده پر ننګي دارو لګولي دی او کالي يي دويني څخه پريولي دی نو دليل يي دا دي چي دحرامو څخه به توبه کوي.

## دنبه\ګډ\پسه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پسه دمال بتوه ده چي دهغه حفاظت کوي يا دښځي مال دی دهغه دغټ والي او کوچني والي په اعتبار سره اوکه ويني چي کچه يعني مزدور پسه يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي مشتبه مال به خوري اوکه ويني چي پوخ سوي پسه يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي دده دښمن به دده دمال څخه څه خوري. ابراهيم

کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي ده ته دپسه په ډول لم لګیدلي دی نو دلیل یي دا دي چي دده زوی به راځي چي ددولت اومرتبي خاوند به وي او روزي به یي فراخه وي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي پسه لیدل دسرو زرو تیلۍ ده.

## دندان \ غاښونه

دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي غاښونه دخاندان خلک دی لوړ غاښونه پر نر دلیل لري او لاندي غاښونه پر ښځه دلیل لري او مخکي غاښونه پر زامنو ورونو اوخوندو یا پر مور اوپلار دلیل لري او داړخ غاښونه پر اکا او داکا پرزامنو باندي دلیل لري او وروستني غاښونه په نورو خپلوانو دلیل لري او دغاښونو سپین والي او پاکوالي دکور والاوو پرقوت او مرتبي دلیل لري. اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چي په اولو غاښونو کي کوم راسته طرفته دی هغه دده پر پلار او خپلوانو دلیل لري اوکوم چي چپه طرفته دی هغه پر مور او دمور پر خپلوانو دلیل لري او که ووینی چي دده اولني غاښونه خیږي نو دده په خاندان کي به یو سړی ناجوړه سي. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دده اولني غاښونه په تلی کي یا په غیږ کي یا په مځکه کي را ایله دی اوپه خاور خراب سوي نه دی نو دلیل یي دا دي چي دده به زوی یا ورور یا خور پیدا کیږي اوکه ووینی چي دده غاښونه په خاورو کي را ایله سوي دی یا ورك سوي دی نو دلیل یي دا دي چي ددوي څخه به کوم چي بیان یي وسو څوك مري اوکه ووینی چي دده غاښونه مات سوي دی یا خراب سوي دی نودلیل یي دا دي چي په بیان سوي خلکو کي به په یوافت راځي اوکه ووینی چي دده اولني غاښونه ټکیدلي دی نودلیل یي دا دي چي ددوي سره به دده دښمني وي اوکه ووینی چي دغاښونو څخه یي یو ایستلي دی نو دلیل یي دا دي چي دغه کسان به ده ته سختي خرابي خبري کوي او دده څخه به جدایي تلاش کوي. اوکه ووینی چي دده اولني غاښونه زیات سویدی نو دلیل یي دا دي چي دده په خپلوانو کي به یو په راحت او خوشحالي کي وي اوکه ووینی چي دده دغاښونو په اړخ کي یوبل غاښ راختلي دی که لاندي وي نو انجلي به پیدا کیږي اوکه دلوړه څخه وي نو هلك به پیدا کیږي اوکه ووینی چي ده د خپل اولني غاښونه ایستلي دی نو دلیل یي دا دي چي دلوړ ذکر سوي خپلوانو څخه به خپل تاوان اخلي اوکه ووینی چي ټول غاښونه یي را ایله سول او حال یي ښکاره سو نو دا دخاوند دخلکو پر هلاکت دلیل لري اوکه ووینی چي دده غاښونه دلاس په تلي کي یاپه غیږ کي را ایله سول نو دلیل یي دا دي چي دده خاندان به زیات سي اوکه ووینی چي دده ټول غاښونه لاندي طرفته دی که خوب لیدونکي داهل اصلاح څخه وي نو پر خیر اونیکي دلیل دی اوکه داهل شر څخه وي نو پر شر اوفساد دلیل لري اوکه ووینی چي دده غاښونه دسپینو زرو دی یا دشیشي یا دټیکري دی نو دا دده پرهلاکت دلیل لري اواهل تعبیر بیان کړي دی چي دغاښونو را ایله کیدل قرض ادا کول دی اوبعض وایي چي پرجنګ دلیل لري. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي لوړ غاښونه کوم چي دسترګو په مقابل کي دی پر نر اولاد دلیل لري او لاندني غاښونه پر ښځینه اولاد دلیل لري. اوکه ووینی چي ټول غاښونه یي په غیږ کي

را ایله دی اوده دلاس په تلي کی اخیستي دی نو دلیل یي دادی چي خپلوان به جمع کوي او هغوي به جدايي ته نه پريږدی اوکه ويني چي دده دغاښونو څخه خوشبويي راځي نو دليل يي دا دي چي دده خپلوان به دده تعريف کوي او که د دې خلاف ويني نو دليل يي دا دي چي دده غيبت به کوی او که ويني چي دده غاښونه درد کوي نو دا پر غم اوفکر دليل دی او که ويني چي دده غاښونه ژړ سوي دی نو دليل يي دا دي چي کوم سړی دده طرف ته منسوب دی هغه به ناجوړه سي او که ويني چي دده غاښونه تور سوي دی نودليل يي دا دي چي ده ته به غم اوفکر ورسيږي اوکه ويني چي دده غاښونه را ايله سويدی او بيا يي ښه مضبوط تړلي دی نودليل يي دا دي چي دده عمر به زيات وي او دده ټول خپلوان به دده په مخکي قبر ته ځي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي غاښونه يي درد کوی اوهغه يي پخپل لاس ايستلي دی اوپه دواړو لاسونو کي يي اخيستي دی دليل يي دا دي چي ډير مال به حاصل کړي اوکه ويني چي دچا دخولي څخه يي دوينو خراب غاښونه په لاس کي نيولي دی نودليل يي دا دي چي دچا غاښونه يي نيولي دی هغه ته به نفع وي ليکن ده ته به نقصان رسيږي او که ويني چي دده بعضي غاښونه ښکاره دی نو دليل لي دا دي چي دده بعض خپلوان به يې په سفر ځي اوپه سلامتي سره به بيرته راځي اوکه ويني چي دده ټول غاښونه دژبي په مينځ کي جمع سوي دی او بيا ټول پرخپل ځاي لګيدلي دی نو دليل يي دادي چي دخپلوانو څخه به شکي سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي غاښونه ليدل په شپږو وجو دی ۱: اهل بيت ۲: مال ۳: نفع ۴: غم اوفکر ۵: جدايي ۲: ضرر او نقصان.

## دهان\خوله

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خوله دکارونو کيلي اودهغه خاتمه ده او څه چي دخولي څخه وځي هغه په جوهر او کلام دليل لري نيك وي اوکه بد څه چي په خوله کي وي که دنياوي وي که په کراهت ستغ او ترخه سره په خوله کي وي نو په ژوند کي دمحنت او غم دليل دی او څه چي په خوله کي خواږه و اوپه اساني سره تيريږي نو داپه روزګار خوشحالي او ژوند دليل دی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي دده خوله په سختي سره تړلي سوي ده نو دليل يي دا دي چي هلاک به سي اوکه و ويني چي دده خوله دغنمو يا داور بشو داوړو څخه ډکه سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده مرګ نزدی دی اوکه دده خوله پراخه سوي ده اوډير خوراك پکي راځي نو دليل يي دا دي چي دده مرګ نزدی دی اوکه دده خوله پراخه سوي وی او ډير خوراك پکي راځي نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به نعمت اوروزي ورته ملاو سي اوکه ويني چي دده خوله ښه ده نو نيکه خبره به اوري اوکه ويني چي دده دخولي څخه وينه وتلي ده نو دليل يي دا دي چي دچا سره به خبري کوي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دده د خولي څخه چينجي يا يو بل حيوان وتلي دی نو دليل يي دا دي چي دده په عيال کي به يو جلا سي. اوکه ويني چي دده د خولي څخه مرداري وتلي ده نودليل يي دا دي چي کوم سلوك يي کړي وي هغه به په احسان اچولو سره خرابوي اوکه ويني چي دده د

خولي څخه ملغلري راوتلي دی او خلکو لوړي کړي دی نو دليل يي دا دي چي خلک به دده دعلم څخه فايده اخلي اوکه ويني چي چا دده پر خوله مهر لګولي دی او دمهر لګوونکي پته نه وي نو دليل يي دادي چي رسوا به سي دالله تعالی فرمان دي (اليوم نختم علی افواههم وتکلمنا ايديهم وتشهد ارجلهم، سورة يٰسين: ٦٥) ترجمه: نن به موږ ددوي پر خولو مهر ولګوو او زموږ سره به ددوي لاسونه خبري کوي او ددوي پښي به ګواهي ورکوي جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي د خولي څخه يي څخه ښه شيان وتلي دی نو دليل يي دا دي چي دښه مطلب خبري به کوي اوکه د دې خلاف ويني نو تعبير يي خلاف دی اوکه ويني چي څه شي يي په خوله کي ايښي دی اوهغه شي ښه وو نو دليل يي دا دي چي حلال شي به خوري. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خوله ليدل په اووه وجو ده ۱: منزل ۲: خزانه ۳: دکارونو خلاصول ۴: مال ۵: حاجت ۶: وزير ۷: دربان.

## دهل زدن \ ډول وهل

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ډول وهل بي فايدي کار خرابه خبره درواغ ښکاره کار او روښانه دی او د دې ټولو تعبير دا دي چي ډول وهل بد دی اوکه ويني چي دډول سره شپيلۍ وهي او نڅا کوي نو دا پر غم اوفکر دليل دی اوکه ويني چي صرف ډول وهي نو دا د باطلو خبرو دليل دی. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ډول وهل مختلف خبرونه او بي فايدي خبري دی.

## دهليز \ درشل

ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي درشل خادم دی اوکه ويني چي په درشل رونق دی نو ښه دی اوپر تندرستي دليل دی يا دکوم دخادم پرانتظار دليل دی اوکه ويني چي درشل خرابه ده نو د دې تعبير داول خلاف دی. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي که دکور درشل ديوال دخښتو او خټو وي نو دليل يي دا دي چي دکور خادم به مفسد اوبي دينه وي.

## دوال \ د پوست تسمه

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تسمه ليدل پر خير اونفع دليل دی دهغه حيوان دقيمت په اندازه دکوم چي يي پوست او تسمه جوړه کړي وی اوکه ويني چي دپوست تسمه يي ټکړي کړي کړي ده يا يي ورکه کړي ده نو دليل يي دا دی چي دهغه په اندازه به ورته ضرر رسيږي جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دپوست ډيري تسمي ورسره دی او هغه تسمه دحلال حيوان دپوست دی دليل يې دا دی چي حلال مال به حاصلوي اوکه ددی خلاف ويني نو حرام مال به حاصلوي.

## دوختن جامه \ د کالو ګنډل

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي خپل کالي ګنډي نو دليل يي دا دي چي دده کار به مراد ته ورسيږي او حال به يي ښه سي اوکه دخپل اولاد کالي ګنډي نو

بيايي هم دغه تعبير دی اوکه ووينې چې دپردي ښځې کالي ګنډي نو دليل يې دا دي چې ده ته به غم او نقصان رسيږي که ووينې چې ديو سړی کالي ګنډي نودليل يې دا دي چې خير اونيکي به ووينې اوکه ووينې چې ستن يې په لاس کې ده او ټول کالي يې ګنډلي دی نو دليل يې دا دي چې کوم کار دده په مخکې دی هغه به ختم کړي اوکه ووينې چې دده پـه کـورکې ډيري ګنډل سوي جامې دی نـو دلـيل يـې دا دي چې دده ژوند بـه فـراخ وي او پـوره مال بـه پـه وراثت کې حاصلوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك ووينې چې دځان لپاره يې قميص ګنډي او تمام يې کړی نو دليل يې دا دي چې داولاد سره به يې موافقت وي اوکه و وينې چې پرتوګ يې ګنډلي دی خو بډه يې نه ده ورته پوره کړي نو دليل يې دا دي چې ښځه به کوي او په اخر کې به دهغه څخه جلا سي اوکه ووينې چې چوغه کوټ يا چوغانه يې ګنډلي ده نو دليل يې دا دي چې په خدمت کې به مشغول سي اوکه ووينې چې داولاد کالي ګنډي نو دليل يې دا دي چې داولاد په خبروکې به مشغول سي اوکه ووينې چې د پريولل سوو کالو لپاره تار غړي نودليل يې دا دي چې اولاد به د يو ځاي څخه بل ځاي ته بدل کړي اوکه ووينې چې دخپل اولاد لپاره دريښمو کالي ګنډي نو دليل يې دا دي چې غمجن به سي او دګناه پـه تهمت کې بـه فکر حاصـل کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې درزي هغه سړی دی چې خراب شيان جمع کوي او په اصلاح کې يې راولي.

## دود

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې دود ظالم پاچا دی اوکه ووينې چې دمشرق يا دمغرب دطرف څخه ډير دود دی نو دليل يې دا دي چې ددغه ملک خلک به دظالم پاچا دلاسه ظلم او زياتي وړي اوکه ووينې چې په دنيا کې دود پورته سوي دی او اور شغلي وهي نو دليل يې دا دي چې په جهان کې به فتنه راسي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك ووينې چې په ښار يا ولايت کې داور څخه بغير دود ښکاره سويدی نو دليل يې دا دي چې هلته به دالله تعالی دطرف څخه بيره وي اوکه ووينې چې دکور څخه يا دده د خولې څخه دود وزي نو دليل يې دا دي چې ظالم پاچا به ده ته ضرر او نقصان رسوي يا به تاوان باندي اچوي اومال به ځني په زور اخلي.

## دوږخ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې که ووينې چې دی په دوږخ کې دی اودباندي دی وتلي دی نو دليل يې دا دي چې ګنهګاره اوبد عمله دی ده ته توبه ايستل په کار دی اوکه دوږخ ووينې اوده ته ځني څه تکليف نه وي رسيدلي نو دليل يې دا دي چې په غم اوفکر کې به ګرفتار سي او په اخر کې سلاميتا به حاصلوي اوکه ووينې چې په دوږخ کې مقيم دی او داور ته نه وي معلوم چې کله دی ته راغلي دی نو دليل يې دا دي چې هميشه به په دنيا کې په روزي پسې ګرځي او که ووينې چې ددوږخيانو خوراك چيښاك خوري اوپه اور کې سوزي نودليل يې دا دي چې په دنيا کې به بدعمله وي اوپه اخرت کې به پر ده وبال وي اوکه ووينې چې دي فرشتي دتندي

دوپیښتانو څخه نیولي دی او دوږخ ته یي غورزولي دی نودلیل یي دا دي چي دخوب لیدونکي لپاره دبدبختي علامت دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که خپل ځان په دوږخ کي ووینې نو دلیل یي دا دي چي په ګناهونو کولو کي به زړور وي اوکه ووینې چي زقوم او ایشیدلي اوبه چیښي نو دلیل یي دا دي چي په باطل علم اوجهالت کي به مشغول سي. اوکه ووینې چي توره یي ایستلي ده او جهنم ته تللی دی نو دلیل یي دا دي چي فحش اوخرابي خبري به کوي اوکه ووینې چي په دوږخ کي یي څه خوړلي دی نو دلیل یي دا دي چي دیتیم مال به خوري اوکه ووینې چي ده ددوږخ خواته اور بل کړي دی نو دلیل یي دا دي چي یو سخت کار به ده ته پیښیږي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینې چي دي دوږخ ته په راکشولو بیول سوي دی نو دلیل یي دا دي چي په اخرکي به کافر سي دالله تعالی فرمان دي (یوم یسبحون فی النار علی وجوههم ذوقوا مس سقر، سورة القمر: ۴۸) ترجمه: په کومه ورځ چي دمخ دطرفه را کشول کیږي اوپه دوږخ کي واچول سي نو ددوږخ عذاب به وڅکي. اوکه ووینې چي دوږخ ته تللي دی او بیا دباندي راغلي دی نو دلیل یي دا دي چي کوم ګناهونه یي کړي دی دهغه څخه به توبه کوي اوکه ووینې چي دي یي دوږخ ته بیولي دی او ده فریاد هم نه دی کړي نو دا دده په کفر دلیل دی دالله تعالی فرمان دی (قال اخسئوا فیها ولا تکلمون، سورة المومنون: ۱۰۸) ترجمه: حکم به وسي چي دي ته ځي او زما سره خبري مه کوي. اوکه ووینې چي ده ددوږخ اواز اوریدلي دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به دپاچاهي هیبت اوسیاست رسیږي اوکه ووینې چي دي ددوږخ خواته دی نودلیل یي دا دي چي دنیا به پر ده تنګه سي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دوږخ لیدل په شپږو وجو دی ۱: دالله تعالی غضب ۲: په ګناه کي اخته کیدل ۳: دپاچا ظلم ۴: ددنیا تنګي ۵: غم او مصیبت ۶: دده دوږخي کیدل.

**دوشاب\رس**

دوشاب دانګور یا دجوارو رس چي دوي شپي باندي تیري سي ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي رس لږ مال اونعمت دی اوکه ووینې چي رس یي چیښلي دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه مال به حاصلوي اوکه ووینې چي رس جوړوي نو دلیل یي دا دي چي داسي کار به کوي چي په هغه سره به مال اونفع حاصلوي اوکه ووینې چي رس جوړوي نو دلیل یي دا دي چي داسي کار به کوي چي په هغه سره به مال اخلي اوکه ووینې چي دده په خوله کي رس دی نو دلیل یي دا دي چي دچا څخه به ښه خبره اوري. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینې چي دده سره سپین اوپاك رس دی نو دلیل یي دا دي چي دده به ښایسته زوی پیدا سي.

**دوش\اوږه**

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي اوږه په خوب کي دسړی لپاره ښایست دی اوکه ووینې چي دده ښي اوږه کمزوري سوي یا ماته سوي ده نو ددې تعبیر داولني خلاف دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینې چي دده اوږه مضبوطه او درسته ده نو دلیل یي دا دي چي دده په

ذمه به امانت وي او دنا امیده ځاي څخه به مال حاصلوي.

## دوشیزګي\پیغلتوب

ابن سیرین رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك ووینی چي ده دپیغلي ښځي سره نکاح کړي ده نو دلیل يي دا دي چي حرام مال به حاصل کړي او که پیغله ښځه نه وي او دي په خوب کي ووینی چي پیغله ده نو دا ددغه سړی پر ستر او پرهیزګار کیدو دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ويلي دی چي که سړی په خوب کي ووینی چي ده ته پیغله ښځه ملاو سوي ده نو دلیل يي دا دي چي په دغه کال به پیغله ښځه کوي یا به مینځه اخلي.

## دوغ\شلومبې

ابن سیرین رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي شلومبې خرڅول غم اوفکر دی او د دې چیښل ناجوړي ده اواهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي شلومبې چیښل حرام مال حاصلول دی ځکه چي د دې څخه کوچي ایستل سویدی اوکه ووینی چي چا شلومبې ورکړي دی نو دلیل يي دا دي چي هغه سړی به غمجن وي.

## دکان

ابن سیرین رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي دکان يي جوړ کړي دی نو دلیل يي دا دي چي ښځه به کوي اوکه ووینی چي دکان يي خراب کړي دی نو دلیل يي دا دي چي ښځي ته به طلاق ورکړي اوکه ووینی چي دکان را ایله سوي دی نو دلیل يي دا دي چي ښځه به يي مري اوکه ووینی چي دمالک داجازت څخه بغیر دهغه په دکان کي ناست دی نو دلیل يي دا دي چي دچا پرعیال به تصرف کوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي دکان په خوب کي لیدل په شپږو وجو دی ۱: ښځه ۲ : ژوند ۳: عزت اومرتبه ۴: نیکي ۵: لوړوالی ۶: که نوي دکان وي نو مرتبه به حاصله کړي.

## دوک\څرخه

ابن سیرین رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي څرخه پر انجلي دلیل دی که سړی ووینی چي ده څرخه اخیستي ده اوپه هغه کي دوه پرکي دي نو دلیل يي دا دي چي دانجلي نکاح به کوي اوکه ووینی چي څرخه ماته سوي ده نو دلیل يي دا دي چي دده لور یا خور به مري. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي څرخه مسافر سړی دی اوکه ووینی چي دده سره څرخه ده یا چا ورکړی ده نو دلیل يي دا دي چي دمسافر سړی نکاح به کوي اوکه ووینی چي دده دڅرخي څخه پرکي را ایله دی نو دلیل يي دی چي دده دښځي محبت به دخاوند سره ختم سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دي څرخه صحیح کوي نو دلیل يي دا دي چي غمجن به سي اوکه داخوب ښځه ووینی نو دلیل يي دا دي چي بي غمه به سي او داهم وايي چي څرخه دلاله ښځه ده.

## دولاب\ارهټ

ابن سیرین رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي ارهټ خزانه ده او داباد کور دنعمت څخه ډك والي

دی که ووینې چې ارهټ جوړوي که د دې اهل نه وي نو دلیل یې دا دې چې خپله خزانه جوړوي اوکه د دې داهل څخه نه وي نو دلیل یې دا دې چې دبل چا لپاره خزانه جوړوي اوکه ووینې چې پاچا یا لوی سړی ورته ارهټ ور کړي دی نو دلیل یې دا دې چې دپاچا خپله خزانه یا دهغه دکور خزانه به ده ته ملاو سي اوکه ووینې چې دارهټ څخه اوبه چیښي یا یې جمع کوي نو دلیل یې دا دې چې ده ته به دخزانچي څخه نفع ورسیږي.

## دلو \ بوکه \ سلواغه

ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چې په خوب کې بوکه داسي سړی دی چې نه پیژندل سوي مال را وباسي اوکه ووینې چې بوکه داوبو څخه ډکه ده یا په بوکی سره اوبه را باسي نو دلیل یې دا دي چې دهغه په اندازه به تکلیف اوسختي حاصله کړي اوکه ووینې چې دده سره دصفا اوبو څخه ډکه سوي بوکه ده یا چا ورکړي ده نو دلیل یې دا دې چې ده ته به په اساني سره مال ملاو سي اوکه ووینې چې په بوکه کې دوالي اوبه راوړی نو دلیل یې دا دې چې دهغه په اندازه به دي مال حاصلوي او دامال به په مکر اوحیله سره حاصلوي اوکه ووینې چې په بوکه سره پر مځکه اوبه غورزوي نو دلیل یې دا دې چې مال به په نیکي کې خرڅ کړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ووینې چې دده سره غټه بوکه ده یا چا ورکړي ده نو دلیل یې دا دې چې دمالدار سړی سره به دوستي کوي او دهغه څخه به نفع حاصله کړي.

## دوات

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ووینې چې دده سره دوات دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یې دا دې چې دخپلوانو سره به جنګ کوي اوکه ووینې چې په دوات لیکل کوي نو دلیل یې دا دې چې دده څخه به کار اخیري حد ته ورسیږي اوکه ووینې چې دوات مات سوي دی یا چا پټ کړي دی یا ورك سوي دی نو دلیل یې دا دې چې دکونډې ښځې څخه به نفرت کوي اوکه ووینې چې په قلم سره په دوات کې سیاهي اچوي نو دلیل یې دا دې چې دده به زوی پیداسي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ووینې چې دسرو زرو دوات ورسره دی نو دلیل یې دا دې چې فکرمند به سي اوکه ووینې چې دسپینو زرو دوات ورسره دی نو دلیل یې دا دې چې ښځه به کوي یا به مینځه اخلي اوکه ووینې چې دده دوات دپیتلو دی نو دلیل یې دا دې چې نفع به حاصله کړي اوکه داوسپنې دوات ووینې نودلیل یې دا دې چې په کاروبار کې به طاقت حاصلوي اوکه داوسپنې دوات ووینې نودلیل یې دادي چې ده ته به یولږشي ملاو سي.

## دویدن \ ځغستل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوک په خوب کې ووینې چې پخپله ځغلي یا حیوانان ځغلوي نو دلیل یې دا دي چې په سفر به ځي او څونده چې زیات ځغلي دهغه په اندازه به سفر اوږدوي اوکه ووینې چې پرتیار کړي اس باندي سپور دی اوهغه ځغلوي نو دلیل یې دا دي چې دعیال سره به په سفر ځي او مال به حاصل کړي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوک ووینې چې په ځغاسته کې دچا څخه مخکې کیدی نو دلیل یې دا دي چې دمال په حرص کې به

دهغه څخه مخکي سي اوکه ويني چي په ځغاسته کي عاجز سوي دى اوارام يي کړي دى نو دليل يي دا دي چي دنيا به پريږدى او صبرناك به سي.

## ديبا\ريښم

ابن سيرين رَحِمَهُ الله ويلي دي چي په خوب کي ريښم د دې جهان خير او اصلاح ده که ښځه ريښيم ويني نو تعبير يي ښه دى اوکه سړى ويني چي ده دريښمو چوغه اغوستي ده اوجهاد کوي نو دليل يي دا دي چي په دين اودنيا کي به عزت اومرتبه حاصله کړي. جابر مغربى رَحِمَهُ الله ويلي دي چي که ښځه ويني چي دي د شنو ريښمو چوغه اوقميص اغوستي دى نو د ليل يي دا دي چي دغه ښځه به ديندراه اوامانت داره وي اوکه ويني چي سپين وريښم يې اغوستي دى نو دا ددي پر پرهيزګاري دليل دى اوکه اسمانى رنګه ريښم وى نو دليل يي دا دي چي پر دي به مصيبت راځي اوکه تور ريښم ويني نو دليل يي دا دي چي غمجنه به سي اوپه خوب کي ريښم جوړونکي سړى مسافر دى چي ددنيا اصلاح او ددين خرابى کوي او دپريانو او ښاپيريو يوقسم ريښم تعبير دديبا دريښمو دتعبير برابر دى.

## ديګ

ابن سيرين رَحِمَهُ الله ويلي دى چي په خوب کي نوي ديګ ښځه ده. اواهل تعبيرو بيان کړي دى چي ديګ دکور مالك دى که په خوب کي ويني چي ده سره ديګ دى يا چا ورکړي دى او ده پر اور ايښي دى او دخوراك څه شي يي باندي پوخ کړي دى نو دليل يي دا دى چي په يوه وجه به ورته دپاچا څخه نفع اومال ورسيږي اوکه ويني چي دده سره داوسپنى يا دکانى ديګ دى نو دليل يي دا دي چي ددي په اندازه به فايده حاصله کړي اوکه ديګ دخاورو وي نو دليل يي دا دي چي داسي کار به وکړي چي دهغه په وجه به ورته دکور دسردار څخه فايده رسيږي اوکه ويني چي ديګ يي پر اور ايښي دى او دخوراك څه شي پکښي نسته نو دليل يي دا دي چي چا ته به داسي کار ښيي چي دهغه څخه به دده نفرت وي. ابراهيم کرمانى رَحِمَهُ الله ويلي دى چي ديګ په خوب کي دکور مالک يا مالکه دى اوکه ويني چي په ديګ کي غوښه يا دخوراك څه شي دى نو دليل يي دا دي چي ده ته به وريجي دخوراك لپاره ملاويږي اوکه ويني چي دده ديګ مات سويدى نو دليل يي دا دي چي دکور مالك او بي بي دواړه به مري. جعفر صادق رَحِمَهُ الله ويلي دي چي په خوب کي ديګ ليدل په پنځو وجو دى.۱: دکور مالک ۲: دکور بي بي ۳: رئيس ۴: خادم ۵: دکارونو ذمه وار.

## ديګدان\نغرى

ابن سيرين رَحِمَهُ الله ويلي دي چي نغري په دوه وجو دى ۱: دکور مالک ۲ : دکور ښځه که په خوب کي ويني چي دده سره نغري دى يا چا ورکړي دى نو دليل يي دا دي چي ښځه به کورته راولي که ښځه و ويني چي نغري مات سوي دى نو دليل يي دا دي چي دکور مالک به مري جابر مغربى رَحِمَهُ الله ويلي دى چي نغري دکور قوي مالک دى چي دچا څخه نه بيريږي.

## دينار\افغانۍ\اشرفي\روپۍ\پيسې

دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك ويني چي دده په لاس کي دځلورو څخه زياتي پيسي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به يو بد شي رسيږي يا به څه خبره اوري چي ده ته به خرابه معلوميږي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ورسره پنځه درهمه يعني پيسي دی نو دليل يي دا دي چي دي به يو ښه اونيك کار په عمل کي راولي اوکه دده سره يوه اشرفي يا زر اشرفي وی نو دليل يي دا دي چي داسي علم به حاصل کړي چي په هغه سره به ورته اشرفي ملاو سي ليکن دهغه شمير جفت پکار دی اوکه ويني چي چا ته يې اشرفي ورکړيده يا ورکه سوي ده نو دليل يي دا دي چي د زوی دطرف څخه به ورته مصيبت ورسيږي اوکه ويني چي دده سره ډيري اشرفي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به غم ورسيږي. اواهل تعبير بيان کړي دی چي په خوب کي اشرفي ادا کول امانتونه دی دالله تعالی فرمان دي (ومنهم من ان تامنه بدينار لايؤده اليك، سورة آل عمران: ۷۵) ترجمه: اوپه دوي کي بعض خلک داسي وي چي که ته ددوي سره يوه اشرفي امانت کښيږدي نو دوي به يي ادا نه کړي. اوکه دخپل لاس په تلي پنځه اشرفي ويني نو دليل يي دا دي چي پنځه وخته لمونځ به ادا کوي اوکه ويني چي دده سره ډيري اشرفي دي او په يو ځاي کي يي محفوظي ايښي دی نو دليل يي دا دي چي دمسلمانانو امانت به په نظر کي ساتي اوکه ويني چي اشرفي تقسيموي نو دليل يي دا دي چي خلکو ته به دنيکي حکم کوي او امانت به ورکوي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي ده يوه اشرفي پيدا کړي ده نو دليل يي دا دي چي دامانت حواله کولو لپاره به په ده چيك ليکي اوډير خلک په خوب کي اشرفي ويني اوپه وينښه ورته ملاويږي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي اشرفي په خوب کي ليدل دين اوسمه لاره ده کله چي پر اشرفي تصوير نه وي اوکه ويني چي دده سره اشرفي ده او دهغه پر يو طرف دالله نوم دی اوپه بل طرف تصوير دی نو که خوب ليدونکي مسلمان وی نو مرتد به سي اوکه کافر وي نو مسلمان به سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي اشرفي پنځه لمونځونه دی اوکه اشرفی جفت ويني نو دپاك دين او نفعمند علم دليل دی اوکه په شمير کي طاق وي نو د دې تعبير داول خلاف دی. حافظ معبر رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي اشرفي پنځه لمونځونه دی اومينځه ده او ډيري اشرفي ډير مال دی چي په تکليف او جنگ سره حاصليږي.

## ديه\کلي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي که په خوب کي ويني چي دي په نامعلوم کلي کي دي نو دا پر خير اونيکي دليل دی اوکه دهغه کلي نوم معلوم وی نو پر بدي دليل دی اوکه ويني چي دکلي څخه دباندی وتلي دی نو دا پر نيکي دليل دی اوکه ويني چي يو کلي ته تللی دی نو دا پربدي دليل دی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي که څوك په خوب کي ويني چي دښارڅخه کلي ته تللي دی اوهلته اباد سويدی چي په هغه کي نعمت دی نو دا پر خير اوبرکت عزت اومرتبي

دلیل دی اوکه د دې خلاف ویني نو پر بدي اوبدبختي دلیل دی اوکه په خوب کي ویني چي دي یو ځای په کلي کي ورك سویدی نو دا پر خیر دلیل دی اوکه په خوب کي ویني چي چا ورته نامعلوم کلي ورکړي دی یا یي اخیستي دی یا یي جوړ کړي دی نو دلیل یي دا دي چي دکلي دعمارت په اندازه به خیر اونفع حاصل کړي اوکه د دې خلاف ویني نو پر نقصان دلیل دی.

## دیوار\دیوال

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي دیوال دخوب لیدونکي حال دی که ویني چي ښه او مضبوط دیوال دي نو داپه دنیا کي دښه حال دلیل دی اوکه ویني چي دیوال زوړ دی او دي یي غورزوي نو دلیل یي دا دي چي مال به حاصل کړي اوکه ویني چي نوي دیوال خرابوي نو ددیوال دخرابي مطابق دغم اوفکر دلیل دی اوکه ویني چي دیوال کمزوري اوتنگ دی نو دلیل یي دا دي چي دده حال به په دنیا کي کمزوري سي اوکه ویني چي پر دیوال دده پښه ده نو دلیل یي دا دي چي حال به یي مستقیم سي اوکه ویني چي په دیوال زړیږي نو دا دده پرخراب حال اودژوند پرزوال دلیل دی اوکه ویني چي دیوال را ایله سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دمعیشت او صنعت څخه به را ایله کیږي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي دښار یا دجماعت دیوال را ایله سویدی نو دلیل یي دا دي چي ددغه ښار حاکم به هلاک سي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی که ویني چي دخاورو ختو څخه یي پخپل لاس دیوال جوړ کړي دی نو دا دده پر پاك دین دلیل دی اوکه دخښتو او چوني څخه یي جوړ کړي وي نو داپه دین کي دده دحال دتباه کیدو دلیل دی اوکه دیوال دچوني اوکاڼو وي نو دلیل یي دا دي چي پر اشرفیو به عاشق وي او داخرت طالب به نه وي.

## دیو\شیطان

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي شیطان په خوب کي لوی دښمن مکار اودهوکه باز سړی دی اوکه ویني چي شیطان ورته وسوسي اچوي نو دلیل یي دا دي چي دبي فایدي خبرونه به توبه کوي د دې وجي څخه چي دښمن باندي کامیابه سي دالله تعالی فرمان دی (ان الذین اتقوا اذا مسهم طائف من الشیطان تذکروا فاذا هم مبصرون، سورة الاعراف: ۲۰۱) ترجمه: په تحقیق سره چي کوم خلک پرهیزګار دی ددوي سره چي شیطاني ټولګي چیرچاپېر کوي نو دوي نصیحت قبلوي او دوي هوښیار دی. اوکه ویني چي دشیطان سره یي جنګ کړی دی او هغه یي مغلوبه کړي دی نو دلیل یي دا دي چي دده دین به درست وي اوکه د دې خلاف ویني نو ددین پر کمزوري دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که شیطان په خوب کي خوشحاله ویني نودلیل یي دادي چي خوب لیدونکي به په حرص اوشهوت کي مشغول سي اوکه شیطان غمجن ویني نو دلیل یي دادی چي په عبادت او ددین په درستي کي به مشغول سي اوکه ویني چي شیطان دده دبدن څخه کالي ایستلي دی که خوب لیدونکي حاکم وي نو معزول به سي او که دا خوب

يو كلي وال ووينې نو دليل يې دا دي چې نقصان به ورته ورسيږي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چې كه څوك ووينې چې شيطان دده شاته ختلي دی نو دليل يې دا دي چې شيطان به باندې كامیابه سي اوكه ووينې چې دي دشيطان په لاس كي قيد سوي دی اوهغه وړي دی نو دليل يې دا دي چې په رسوايي كي به مشهور سي اوكه ووينې چې دشيطان سره يې ملاقات كړي دی نو دليل يې دا دي چې ډيره لويه گناه به كوي اوكه ووينې چې دشيطان سره يې خبري كړي دی نو دليل يې دا دي چې ددښمن سره به په يوه صلاح وي اوالله تعالی به دده مراد پوره كړي دالله تعالی فرمان دی (انما النجوى من الشيطان ليحزن الذين امنو وليس بضارهم شيئا الا باذن الله، سورة المجادلة: ١٠)

ترجمه: چې پټې جرگي دشيطان نه دی ددی لپاره چې دايمان خاوند غمجن كړي او دالله دحكم څخه بغير دوي ته ضرر نه سي وركولای. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دي چې كه په خوب كي ووينې چې ده دشيطان سره خوراك خوړلی اواوبه چيښلي دی نو دليل يې دا دي چې دبدكار اوفساد پرلاره به ځي او دشيطان تابعداري به كوي او كه د دې خلاف ووينې نو دليل يې دا دي چې دخير اوصلاح په كار كي به وي او ددين په لار كي به صبر كوي اوكه ووينې چې ده شيطان نيولي دی يا دهغه په نس كي ختلي دی نو دليل يې دا دي چې دفساد دلاري څخه به ليري وي اوتوبه به وكړي اوپه عبادت كي به مشغول سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چې په خوب كي شيطان ليدل په شپږو وجو دی ۱: دښمن ليدل ۲: فساد ۳: شهوت مصيبت او دنفس خواهش ۴: دطاعت څخه ليري كيدل ۵: داهل خير اوصلاح څخه ليري والي تلاش كول ۶: حرام شيان.

## ديوانگي\ليونتوب

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب كي ليونتوب دخوب ليدونكي لپاره دليونتوب په اندازه حرام مال حاصليدل دی. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی چې كه په خوب كي و وينې چې دی ليوني سوي دی نو دليل يې دا دي دی چې په حرامو كي به راسي اوسود به خوري دالله تعالی فرمان دی (الذين ياكلون الربا لا يقومون الا كما يقوم الذي يتخبطه الشيطان من المس، سورة البقرة: ۲۷۵)

ترجمه: كوم خلک چې سودخواره دی هغه به نه لوړيږي دقيامت په ورځ مگر دهغه سړي په ډول به لوړسي دكوم سره چې شيطان چيړچاړ كړي وی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چې كه څوك ووينې چې دليوني سره ملگري سوي دی نو دليل يې دا دي چې دسود خور او فاسد سړی سره به ملگري سي او ده ته به ملامتيا او بدنامي حاصله سي.

## [ ذ ]

## ذكر (د سړيو خاص اندام)

دانيال عليه السلام ويلي دی چې په خوب كي ذكر ليدل مبارك او نامور زوی دی اوكه څوک په خوب كي ووينې چې دده دوه عضو تناسل دی نو دليل يې دا دي چې دده به زوی پيداسي او په خلكو كي به عزت حاصل كړي اوكه ووينې چې دده عضو تناسل سست سوي دی نو دليل يې

دا دي چي دده زوی به ناجوړه سي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دعضو تناسل غټ والي په ډيرو زامنو اونوم پيدا کيدو دليل دی او کوچنيوالي د دې خلاف دی. اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل سره دښاخونو په ډول نور لګيدلي دی نو داپه ډيرو زامنو اولمسيانو دليل دی اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل نه ماهی وتلي دی نو دليل يي دا دي چي دده به دهغه ښځي څخه لور پيدا سي کومه چي يي دمشرق ددرياب دغاړي څخه راوستي ده اوکه ووينې چي د ده دعضو تناسل څخه پشي وتلي دي نيو دليل يې دا دي چي دده به غل اوډاکو زوی پيدا سي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه چرګ وتلي دی نو د دې تعبير دچرګ مطابق دی اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه مږه وتلي ده نو دليل يي دا دي چي دده به ناکاره لور پيدا سي چي په هغه کي به هيڅ خير نه وي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه مار وتلي دی نو دليل يي دا دي چي دده به زوی پيداسي چي د ده دښمن به وي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه لړم وتلي دی نو بيا يي هم دغه تعبير دی اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه ميږي وتلي دی نو دليل يي دا دي چي دده به کم همته کمزوري بدن والا زوی پيداسي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه ډوډی وتلي ده نودليل دی چي دده عيال به وږي اوتنګ دسته وي او که ووينې چي دده دعضو تناسل څخه کونزلي وتلي دی نودليل دی چي څوك به دده دعيال سره په پټه مينه کوي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه نو وتلي دي نو د دې تعبير داول خلاف دی اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه مني وتلي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به دهغه په اندازه مال حاصل سي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه وينه وتلي ده نو دليل دی چي دحيض والا ښځي سره به جماع کوي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه اور وتلي دی او نيم دمشرق طرفته اونيم دمغرب طرفته تللي دی نو دليل يي دا دي چي د ده به زوی پيداسي چي دمشرق او دمغرب پاچابه وي اوکه ووينې چي دده عضو تناسل څخه سوټی وتلي دی نودليل دی چي دده به دهلکانو سره مينه وي اوکه ووينې چي دده عضو تناسل لوړ دی اوسخت سويدی نو دليل يي دا دي چي دده نصيب اومرتبه به قوي سي. اوکه ووينې چي دده عضو تناسل سخت سوي او اوږد سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده به ډير زامن پيدا سي اوکه ووينې چي دده دعضو تناسل څخه چاپيره وزري را ټوکيدلي دی نو دليل يي دا دي چي دده نوم به په ملك کي مشهور سي اوعزت اومرتبه به يي زياته سي اوکه ووينې چي پخپل لاس يي خپل عضو تناسل ايستلي دی اوبيا يي پرخپل ځای ايښي دی نو دليل يي دا دي چي اولني زوی به يي مړسي او دوهم به پيداسي اوکه ووينې چي خپل عضو تناسل يي دچا په خوله کي ايښي دی اوهغه روي نو دليل يي دا دي چي له هغه څخه به ورته نفع ورسيږي او که ووينې چي دده په عضو تناسل ويښته را ټوکيدلي دی نو دليل يي دا دي چي د زوی څخه به خوشحاله سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي عضو تناسل دده څخه جلا سوي دی نو دليل دی چي دده زوی به مری يا به يي مال ختم سي اوپه خوب کي دعضو تناسل حرکت ليدل په قوت اودنعمت په فراخي دليل دی اوکه

ووینې چې عضو تناسل شلیدلې دی اووینه څنې بهیږي نو دلیل یې دا دې چې دمال نقصان به یې وسې اوزوی به یې مړسي اوکه ووینې چې دده عضو تناسل پړسیدلې دی نو دلیل یې دا دې چې مال به یې زیات سي اوکه ووینې چې خلک دده عضو تناسل وهي نو دلیل یې دا دې چې دده ژوند به تباه سي اوکه ووینې چې دده عضو تناسل په مینځ کې تړل سوې دی نو دلیل یې دا دې چې دده ګواه به دده لپاره ګواهي نه ورکوي اوکه ښځه ووینې چې دیته عضو تناسل لګیدلې دی که حامله وي نو زوی به یې پیداسي لیکن مړ به سي اوکه حامله نه وي نو حامله به سي اوکه ووینې چې دده عضو تناسل نرې دی نو بیایې هم دغه تعبیردی اوکه ووینې چې دده عضو تناسل لږ پریکړه سوې دی نو دلیل یې دا دې چې زوی به یې مړسي اومال اومرتبه به یې کمه سي اوکه ووینې چې دده دعضو تناسل څخه ملغلرې یا جواهرات وتلې دی نو دلیل یې دا دې چې دده به پرهیزګار اوعالم زوی پیداسي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلې دی چې په خوب کې عضوتناسل لیدل په اووه وجو دی ۱: زوی ۲: اهل خانه ۳: مال ۴: بزرګي ۵: طلب حاجت ۶: عمر ۷: عزت حرمت اوبهتري.

# [ر-ز-ژ]

## رازیانج\کاږه\بادیان

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلې دې چې په خوب کې کاږه لیدل که په موسم وي اوکه بې موسمه غم او فکر دی اوخوړل یې نقصاني دی اوکه پرخپله مځکه ډیر کاږه ووینې نو په غم اوفکر کې به ګرفتار سي.

## راسو\نولې

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلې دی چې په خوب کې نولې غل دی اوکه ووینې چې نولې یې نیولې دی یا یې وژلې دی نو دلیل یې دا دې چې غل به نیسي اوکامیابي به باندې راسي اوکه ووینې چې دنولې غوښه یې خوړلې ده یا دهغه دبدن څه شی دده په لاس کې دی نو دلیل یې دادې چې دغل څخه به دغلا مال اخلي. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلې دی چې که څوك ووینې چې ده نولې نیولې دی یا یې خوړلې دی نو دلیل یې دا دې چې ناجوړه به سي اوپه اخیر کې به شفا حاصله کړی او که ووینې چې دنولې سره یې جنګ کړې دی او پر هغه غالب سوې دی نو پر دښمن به غالب سي او هغه به ګیر کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلې دې چې په خوب کې نولې لیدل په دروو وجو وي ۱: غل ۲: غم او فکر ۳: ناجوړي.

## ران\ورون

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلې دی چې په خوب کې ورون دخپلوانو قوت دی اوکه ووینې چې دده ورون مات سوې دی یا را ایله سوې دی نو دلیل یې دا دې چې دخپلوانو څخه به جلا سي اوکمزوري به سي او په سفر کې به مړ کیږي اوکه ووینې چې دچا ورون یې څیرې کړې دی نو د دې هم دغه تعبیر دی. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلې دی چې راسته ورون دپلار په خپلوانو دلیل

دى اوچپه ورون دمور پر خپلوانو دليل دى اوكه ويني چي دده ورون نري سوي دى نو دليل يي دا دي چي دده دخپلوانو كار به كمزوري سي اوكه ويني چي دده ورون پريكړه سوى دى نو دليل يي دا دي چي دخپلوانو څخه به جلا سي اوكه ويني چي دده ورون مات سوي دى نو دليل يي دا دي چي دسردار څخه به ورته ذلت اوخواري ورسيږي اوكه ويني چي دده د ورنو غوښه را ايله سويده نو دليل يي دا دي چي دده دخپلوانو مال به ورك سى. جابر مغربى رحمة الله عليه ويلي دى چي كه څوك په خوب كي ويني چي دده ورنونه په رسى سره تړلي دى نو دليل يي دا دى چي دخپلوانو څخه به جلاسي اونكاح به كوي اوكه ويني چي دخپل ورون غوښه يي پخپله خوړلي ده نودليل يي دا دي چي دهغه په اندازه دخپلوانو مال به خوري.

## حكايت

يو سړى د ابن سيرين رحمة الله عليه په خدمت كي حاضر سو اوسوال يي وكړي چي ما په خوب كي ليدلي دى چي زما په ورون كي سوري سويدى اوپر هغه ويښته را ټوكيدلي دى ما چا ته وويل چي زما داويښته وخربي دوي يي په تعبير كي وويل چي ته قرضدار يي اوستا يو خپل به ستا قرض ادا كوي بيا په هغه مياشت كي دهغه دخپلوانو څخه څوك راغلي اودده دقرض دوه سوه اشرفي يي ادا كړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دى چي په خوب كي ورون ليدل په څلورو وجو دى. ۱: اهل بيت ۲: ملگري چي بهروسه باندي وي ۳: مال ۴: غصه.

## راه\لاره

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دى چي په خوب كى لاره ليدل داستقامت او ديندارى دليل دى او ددين په لاره كي دسموالي تلاش دى اوكه ويني چي پر سرك گرځي نو دليل يي دا دي چي ددين پر لاره دى اوكه ويني چي ديو ټولگى رهبري په سمه لاره كوي نو دليل يي دا دي چي يو قوم به په سمه لار او ددين په صلاح لگوي اوكه ويني چي په لاره كي حيران اوخفه دي نو دليل يي دا دي چي ددين پر لاره يا ددنيا په كارو كي به حيران او پريشانه به سي اوكه ويني چي غل دده سامان دلاري څخه وړي دى نو دليل يي دا دي چي ځونه يي وړي دى دهغه په اندازه به دچا تاوان ادا كوي اوكه ويني چي پرلاره ځي اونه ستړي كيږي نودليل يي دا دي چي خپل حق به دچا څخه په مشكله سره اخلي اوكه ويني چي چا دسمي لاري څخه كږى لاري ته بيولي دى نو دليل يي دا دي چي په گناه كي به مشغول سي او دثواب دلاري څخه به ليري سي اوكه ويني چي په تاريكه شپه كي ځي اولاره باندي مشكله ده او دده خيال وي چي دى په سمه لاره دى نو دليل يي دادى چي استقامت اوسمه لاره حاصله كړي اوكه ډيري لاري ويني اومعلومه ورته نه وي چي پر كومه لاره تلل دى نو دليل يي دا دي چي پخپل دين كي به حيران سي اودبي دينه خلكو سره به صحبت لري اوكه ويني چي دده څخه لاره وركه ده اونه پيژني چي چيري ځي اود نبي صلى الله عليه وسلم دفرمان مطابق دراسته لاس طرفته روان سو نو دليل يي دا دي چي حقه لاره به پر پته نه وي اوكه ويني چي قصدا دسمي لاري څخه يو طرفته تللي دى نو دليل يي دا دي چي ددښمن سره به مكر اوحيله كوي اوكه ويني چي پر سمه لاره روان دى خو دچا

دعزت په وجه واپس سویدی نودلیل یي دا دي چي داسي کار به کوي چي په هغه سره به دین ته نقصان وي او دخپل ژوند لپاره به په ناممکنه خبرو کي مشغول سي اوکه ووینی چي پر لاره روان دی اویوه ښځه مخته ورته راغلي ده اودهغه په وجه یي لار پریښوده اوبل طرفته روان سویدی نو دلیل یي دا دي چي دده په دین کي به خلل راسي او پر دنیا به عاشق سي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي په لاره کي شینکي اوښه ښه بوټي دی نو دا دده دنیکي او دپاك دین دلیل دی اوکه ووینی چي پر یوه پټه لار په گمان سره ځي نو دلیل یي دا دي چي په دین کي به بدعت کوي اوپه خپل کار کي به حیران سي. دالله تعالی فرمان دی (وان هذا صراطی مستقیما فاتبعوه، سورة الانعام: ۱۵۳) ترجمه: دا زما سمه لاره ده د دې پیروي کوي. او که ووینی چي څوك یي دلاري څخه بیولي دی نو دا دده ددین پر فساد دلیل دی دالله تعالی فرمان دی (وقد خاب من دسها، سورة الشمس: ۱۰) ترجمه: چاچي هغه دهوکه کړی نوهغه په خساره کي راغلي. اسماعیل اشعث رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سمه لاره اسلام دی اوکږه لاره د دې خلاف دی. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي لاره لیدل په پنځو وجو دی ۱: دنیا ۲: ارام ۳: نیک کار ۴: خیر او برکت ۵: اساني اورحمت.

## راهزن\غل\ډاکو

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي غل دخلکو سره جنگیالي سړی دی که ووینی چي غل دده مال وړي دی نو دلیل یي دا دي چي دداسي سړی سره به ملاویږي اوهغه به خپلوي او ثونه مال چي غل ځني وړي دی دهغه په اندازه به دهغه څخه فایده پورته کوي او که ووینی چي پر ده غله جمع سویدی او دده څخه شي نه سي اخیستي نو دلیل یي دا دي چي که ناجوړه وي نو شفابه حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي غله یو څه ځني وړي دی نو دلیل یي دا دي چي هغه غل به ده ته درواغ وایي اوکه ووینی چي غل دده څخه ټوپۍ وړې ده نو دلیل یي دا دي چي په مصیبت کي به گرفتاره سي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي ده غلا کړي ده اوسامان یي اخیستي دی نو دلیل یي دا دي چي دچا څخه یي غلا کړي وی هغه به باندي په قهر سي اوکه ووینی چي ده پخپله غلا کړي ده او سامان یي وړی دی نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي اوبیا به شفا حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي غل په درو وجودی ۱: جنگ ۲: همیشه جنگ او درواغ ویل ۳: د ژوند تباهي او ناجوړي.

## ربها\شیره

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي خوشبودار او خوږه شیره لیدل په خیر اوبرکت دلیل دی او ددی خلاف پر ضرر تکلیف اوپه غم دلیل دی. او خوږه شیره په خوب کي پخول په کار خیر اونفع دلیل دی اوکه ترخه وي نو تعبیر یي د دې خلاف دی.

## رباب

رباب دیو مشهور ساز نوم دی ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ساز لیدل په بي فایدي خبرو بازیو او درواغو ویلو دلیل دی اوکه په خوب کي دساز ږغ وي نو دلیل یي دا دي چي درواغ به وایي او دچا به په درواغو صفت کوي اوکه ویني چي دده مخته ته ساز ږغوي نو دلیل یي دا دي چي په بي فایدي خبره به راضي سي. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي دساز سره ګنګري اوشپیلۍ هم ده نو دا ټول پر غم اومصیبت دلیل دی او که ویني چي ساز مات سوی دی یا ورك سوي دی نودلیل یي دا دي چي ددرواغو څخه به توبه کوي اوکه ناجوړه ویني چي ساز ږغوي نو دلیل یي دا دي چي مړبه سي یابه ناجوړي باندي راسي.

## رخسار\مخ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مخ رڼا اودسړی لپاره بزرګي ده اوکه په خوب کي ویني چي دده مخ پاك اوسور دی نو دلیل یي دا دي چي په خلکو کي به مخور سي اوکه ویني چي دده مخ تور یا ژړ دی نو د دې تعبیر د اول څخه خلاف دی. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلي دی چي مخ په خوب کي دخلکو ښایست او دکور مالك دی اوکه سوزیدلي مخ ویني نو دصاحب خانه لپاره دښه والي اونیکي دلیل دي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مخ لیدل د حال دښه والي او دسړی دخوشحالۍ دلیل دی او خراب مخ پرغم فکر او ناجوړي دلیل دی.

## زر\دانګوروزیلی\وانښکی

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دانګورو زیلي پر نیکوکاري او سخي ښځي دلیل دی اوکه دانګورو پاکیزه اوشني درخته په موسم کي ویني نو دلیل یي دا دي چي نیکو کاره ښځه به کوي اودهغه څخه به خیر اونفع حاصله کړي اوکه ویني چي دانګورو پاڼي ژړي سوي دی نودلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه دده ملکیت نه وي نو د دې تعبیر به د دې دمالك طرفته رجوع کوي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دانګورو وانښکی لیدل په دروو وجو وي ۱: سخي او نیکو کاره ښځه ۲: نفع ۳: تکلیف اوغم. اوکه دانګورو زیلی خراب ویني نو د دې دمالك دحالت په خرابي دلیل دی.

## رستخیز\قیامت

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي قیامت په یقین اوصداقت سره قایم دی نو دلیل یي دا دي چي الله تعالی به پر دغه ملك والا رحمت وکړي اوکه ددغه ملك پاچا ظالم وي نو دلیل یي دا دي چي پرهغه به بلا اوافت راځي اوکه مظلوم وي نو پر ظالمانو به کامیابي حاصله کړي اوکه و ویني چي ملك والا دالله تعالی په مخکي ولاړ دی نو دلیل یي دا دي چي پر هغو به دالله تعالی قهر اوغصه وي. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي قیامت قایم دی نو دلیل یي دا دي چي مظلومان به پر ظالمانو واک حاصل کړي اوکه په غم

محنت او فکرکي وي نو دليل يي دا دي چي خلاصون به حاصل کړي اوکه ويني چي يوه علامه د قيامت دعلامو څخه ښکاره سوه لکه لمر دمغرب څخه راوختي يا دجال ملعون يي وليدي يا ياجوج ماجوج ښکاره سوه نو ددې تعبير دا دي چي توبه دی وباسي او دالله تعالی طرفته دی رجوع وکړي اوکه ويني چي دشمير ځاي دی نو دغفلت نخښه ده دالله تعالی فرمان دی (اقترب للناس حسابهم وهم في غفلة معرضون، سورة الانبياء: ۱) ترجمه: دخلکو حساب نزدی سوي دی او دوي په غفلت سره مخ ګرځوونکي دی. اوکه ويني چي دده حساب کيږي نو دليل يي دا دي چي ده ته به نقصان ورسيږي د الله تعالی فرمان دی (فحاسبناهم حسابا شديدا وعذابناها عذابا نكرا، سورة الطلاق: ۱۰۸) ترجمه: موږ به دهغوي څخه سخت حساب اخلو او هغوي ته به خراب عذاب ورکوو اوکه ويني چي عملونه وزن کوي او دده نيکي زياتي سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده انجام به نيك وي دالله تعالی فرمان دی (فمن ثقلت موازينه فاولئك هم المفلحون، سورة الاعراف: ۸) ترجمه: دچا دنيکيو تله چي درنه وه هغه به خلاصون حاصل کړی اوکه ويني چي بدي يي دنيکيو څخه زياتي دی نو دليل يي دا دي چي دده ځاي دوږخ دی دالله تعالی فرمان دی (فاولئك الذين خسروا انفسهم بماكانوا باياتنا يظلمون، سورة الاعراف: ۹) ترجمه: هغه خلک دی چا چي دخپلو عملونو په وجه ځانونه په خساره کي وساتل. اوکه ويني چي ده ته عملنامه په راسته لاس کي ملاو سوي ده نو دليل يي دا دي چي په راسته لاس به ځي او اميد دی چي دده ددين لار به سمه وي دالله تعالی فرمان دی (وانزلنا معهم الكتاب والميزان، سورة الحديد: ۲۵) ترجمه: اوموږ ددوي سره کتاب اوميزان وليږي. اوکه ويني چي ده ته عملنامه ورکړه سوي ده او دويلو لپاره ورته وويل سوه که داهل اصلاح نه وي نو دده کار به نيك وي اوکه داهل فسادو نه وي نو دده کار به په خطره کي وي دالله تعالی فرمان دی (اقرا كتابك كفى بنفسك اليوم عليك حسيبا، سورة بني اسرائيل: ۱٤) ترجمه: خپل کتاب ووايه نن ستا ځان دحساب لپاره پوره دی اوکه ځان پر پل صراط ويني نو دليل يي دادي چي دی پرسمه لاره دی اوکه ويني چي دپل صراط څخه نه سي تيريدلي نودليل يي دادی چي دي پر خطا لاره دی توبه ايستل پکار دی چي الله رضا سي.

**رسن\رسۍ**

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي رسي وعده او لوظ دی اوکه ويني چي په لاس کي يي رسي ده اوپه هوا کي زړيږي نو دليل يي دا دي چي درسي دلوړوالي مطابق مرتبه به حاصله کړي اوکه ويني چي رسي يي په لاس کي وه او ايله سوه نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي به دعزت اومرتبي څخه معزول سي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي رسي داسمان څخه رازړيږي اوده نيولي ده نو دليل يي دا دي چي دده اودالله ترمينځ به څه وعده اولوظ وي مثلا که دناجوړي په وخت کي ووايي چي که الله تعالی ماته شفا راکړي نو زه به توبه وکړم اوکه ويني چي په پښه کي يي رسي ده اودي ولاړ دی نو دليل يي دا دي

چي ده دين نيولي دى دالله تعالى فرمان دى (واعتصموا بحبل الله جميعا، سورة آل عمران: ١٠٣) ترجمه: ټول په جمع دالله رسي ونيسي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دى چي په خوب کي رسي ليدل دالله تعالى اودمخلوق سره وعده اولوظ دى اوکه وويني چي دده په څټ کي چا رسي اچولي ده نو دليل يي دا دي چي ده دچا سره اقرار کړي دى اودهغه په پوره کولو کي تاخير کوي او که وويني چي خپل ځان يي په رسي سره دکړکي څخه يا دلوړ ځاي څخه رازړولي دى نو دليل يي دا دي چي مقصد اوحاجت به دبيري څخه پريږدي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي په خوب کی رسی ليدل په څلورو وجو دى ١: وعده اولوظ ٢: دين ٣: امانت ۴: مراد پوره کيدل.

## رضوان\دجنت چوکيدار

رضوان دجنت ددروازي فرشته ده ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي که څوك په خوب کي رضوان وويني نو دليل يي دا دي چي دعذاب څخه به په امن کي وي اوکه وويني چي رضوان په جنت کي ولاړ دى نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي به ددنيا څخه سفر کوي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دى چي په خوب کي رضوان دپاچا پر خزاني دليل دى چي دهغه په صحبت کي به اوسيږي ځکه چي رضوان دجنت خزانچي دى. اوکه وويني چي ده ته رضوان ياقوت جواهرات او ملغلري ورکړي دى نو دليل يي دا دي چي دده به هوشيار اوعالم زوى پيداسي اونوم به يي په علم سره مشهور سي.

## رفتن\تلل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي که څوك په خوب کي وويني چي دښار څخه تللي دى اومعلوم ورته نه وي چي چيري تللي دى نو دليل يي دا دي چي لاچاره اوحيرانه به سي اوکه دده سره ښځه او زامن هم وي نو دليل يي دا دي چي ټول به حيران او پريشانه سي اوکه وويني چي د درنده په ډول ځي نو دليل يي دا دي چي په دنيا کي به سعادت حاصل کړي اوکه وويني چي ددرنده په ډول تګ کوي نو د دې تعبير بد دى اوکه وويني چي دماشومانو په ډول تګ کوي نو د دې هم دغه تعبير دى اوکه دښکاري مرغو په ډول وويني نو پر خير اونيکي دليل دى اوکه دتياري څخه د رڼا طرفته تللي وى نو دليل يي دا دي چي دحق پر لاره به سي اوکه دويراني څخه د ابادي طرفته تللي وي نو دليل يي دا دي چي دتنګي څخه به په فراخي کي سي اوکه دابادي څخه دويراني طرفته تللي دى نو تعبير يي داول خلاف دى اوکه خراب ځاي ته ولاړ سي نو تعبير يي بد دى اوکه نيك ځاي ته ولاړسي نو په نيکي اوخير دليل دى.

## رفو کردن\ګنډل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي په خوب کي کالي وغيره ګنډل پر جنګ دليل دى اوکه وويني چي خپل کالي يا نقاب ګنډي نو دليل يي دا دي چي دده به دخپلوانو سره جنګ کيږي يا ددوست سره چي خير به پکښي نه وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دى چي که په خوب کي وويني چي خپل کالي نسي ګنډلي نو دليل يي دا دي چي دخپل عيال لپاره به غم اوفکر کوي او

په خوب کي ګنډلو والا صاحب جنګ دی خو په کوشش سره خپل کار سموي او دجنګ څخه تښتي.

## رقص کردن \ نڅا کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ګډيدل غم اوفکر اومصيبت دی اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي ناجوړي ده اوبعض وايي چي دسړيو لپاره د جيل خاني څخه خلاصون دی. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي نڅا کول دښځو لپاره رسوايي ده او دسړو لپاره مصيبت دی ليکن دصوفيانو او نڅا کوونکو لپاره غم اوفکر نه دی اوپه خوب کي نڅا کوونکي داسي سړی دی چي هميشه دخپلو او پردو په غم کي وی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي نڅا کول په خوب کي غم او مصيبت دی.

## رګ کشادن \ درګ څخه وينه ايستل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ووينې چي ده درګ څخه وينه ايستلي ده نو دليل يي دا دي چي داندېوال څخه به څه خبری اوري يا به دده مال ختم سي. اوکه ووينې چي رګ يي څيري کړي او وينه يي ځني وايستله نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به ورته زحمت رسيږي اوکه لږه وينه وي نوزحمت به يي لږ وي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي عالم دده رګ څيري کړي اوډيره وينه يي ځني وايستله اوپه يوځاي کي يي وغورزوله نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي اوخپل مال به په ناجوړي کي خرڅ کړي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي دراسته لاس درګ څخه يې وينه وايستله نو داپه مال او دمراد پرزياتوالي دليل دی اوکه دچپه لاس درګ څخه يي وينه ايستلي وي نومال اودولت به يي زيات سي اوکه ووينې چي يومعلوم سړی دده رګ څيري کړي دی که دده ښځه حامله نه وي نو حامله به سي اوکه حامله وي نو لور به يي پيداسي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي رګ يي څيري کړي دی اووينه دده دبدن څخه راوتلي ده نودليل يي دا دي چي ده ته به خلک حق خبره کوي جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي درګ څخه دوينې دايستلو تعبير په څلورو وجو دي. ۱: دکار خلاصول ۲: سفر ۳: جنګ ۴: دمال لپاره شرك کول. اوکه ووينې چي رګ يي څيري کړي دی اووينه نه ده راوتلي نو داپر جنګ دليل دی اوکه وينه ځني وتلي وي اوپه بدن کي نوره وينه نه وي پاته سوي نو دليل يي دا دي چي جنګ به کيږي اوکه ووينې چي زخم په وينو لړلي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به څه ملاوسي. او اهل تعبير بيان کړي دی چي په خوب کي دده درګ څخه وينه ايستلي ده که پرهيزګار وي نو واده اوخوشحالي ده اوکه پرهيزګار نه وی نو په شر اوفساد دليل دی.

## رګها \ رګونه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي دبدن رګونه پر کور والاو اوپر خپلوانو دليل دی اوکه ووينې چي دده دبدن رګ ته څه افت رسيدلي دی نو دليل يي دا دي چي دده خپلوان به په غم اوفکر کي وي اوهر يو رګ دخاصو بنيادمو سره تعلق لري لکه دتندي رګونه پر بزرګانو دليل دی

اودملا رګونه دپلار پرخپلوانو دليل لري او ورنو اوکوناتیانو رګونه پر کوروا لا او دښځي په خپلوانو دليل لري اودپنډي رګونه پر مال اونفع دليل دی اوکه ويني چي دده رګونه شليدلي دی او په پلنوالي پريکړه سوي دی يا وچ سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده په خپلوانو کي چي ځوك دده درګ سره تعلق لري هغه به ددنيا څخه سفر کوي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي دده خپلوانو ته به غم اوفکر رسيږي او دخپلوانو څخه به جلا سي اوپه عذاب کي به راسي. اوکه ويني چي چا دده رګ ځيري کړي دی نو دليل يي دا دي چي د خپلوانو څخه به ورته سخته خبره ورسيږي اوبعضي وايي چي دده دويني په اندازه به دده ديوخپل مال تلف سي. دانيال عليه السلام ويلي دی چي که ځوك ويني چي رګ قيفال چي ديورګ نوم دی او ديته سراره هم وايي او ددي څخه په وينو ايستلو سره د سر اومخ وينه راځي که دا ځوك ويني چي ځيري کړي يې دی نو دليل يي دا دي چي دده کار به بند سي او درګ باسليق هم دغه تعبير دی اوکه پوښتنه کوونکي وايي چي زما درګ څخه وينه وزي نو دليل يي دا دي چي ته به نقصان رسيږي، اوتعبير بيانوونکي ته پکار دی چي دخوب ليدونکي په الفاظو غور وکړي او دالفاظو مطابق تعبير بيان کړي، اوکه ويني چي دده رګ خالي دی نو دليل يي دا دی چي غم به ورته رسيږي.

## رکاب

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي که په خوب کي ويني چي رکاب دزين څخه جلا دی نو پر زوی يا پر غلام دليل دی اوکه رکاب دزين سره وي نو په ديانتداره زوی دليل دی. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي دده رکاب دسروزرو دی نو دليل يي دا دي چي دده به متکبر او مغرور زوی پيداسي اوکه دسپينو زرو رکاب ويني نو دده زوی به پر دنيا عاشق وي اوکه دتانبي يا پيتلو رکاب ويني نو پرکم همته زوی دليل دی اوکه رکاب داوسپني وي نو دهغه درنيا او صفايي مطابق به ده ته ددنيا په کار کي طاقت وي اوکه رکاب دلرګي وي نو دليل يي دا دي چي دده زوی به بدخياله اوبد وي. او رکاب داره په خوب کي نيك سړی دی ځکه چي دی سردارانو ته نزدی دی.

## رنګها\رنګونه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي پرکالو وغيره سپين رنګ ليدل ددين دصفايي دليل دی اوسور رنګ دسړيو لپاره بد اوغم دی او دښځو لپاره ښه دی اوشين رنګ دښځو او سړيو لپاره په دين اودنيا دواړو کي ښه دی اوتور رنګ مصيبت دی ليکن کوم خلک چي اغوندي دهغه لپاره نه دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي شين اوسپين رنګ په خير اوبرکت او دين دليل دی.

## روبا\لومړه\ګيدړه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي ګيدړ په خوب کي دهوکه باز سړی يا درواغ ويونکي ښځه يا مينځه ده که ويني چي ګيدړ جنګ کوي نو دليل يي دا دي چي دده به دچا سره جنګ کيږي

اوکه ووینې چې ګیدړ ټوپونه وهي نو دلیل یې دا دی چې دښاپیرو څخه به بیرېږي اوکه و وینې چې دګیدړې سره بازي کوي نو دلیل یې دا دی چې یوه ښځه یې غواړي لیکن دهغه ښځې محبت کمزوري دی. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه وېلې دي چې که څوك ووینې چې دي ګیدړ په ږمنځ سره صفا کوي نو دلیل یې دا دي چې دي به دچا سره حیله او دهوکه کوي اوکه ووینې چې ګیدړه دده سره چاپلوسي کوي نو دلیل یې دا دي چې مسافر سړی به دده سره مکر اوحیله کوي اوکه دګیدړې پوست ووینې نو دا مال دي چې په حیله سره به ورته حاصل سي اوپه خوب کې دګیدړې شیدې چیښل دناجوړي څخه دشفا دلیل دی او دغم اوفکر سره واده کول دی اودقید څخه خلاصون دي او بعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چې دګیدړې شیدې چیښل پر ناجوړي او بیره دلیل دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي چې ګیدړه په خوب کې درواغجنه ښځه ده که ووینې چې شیدو والا ګیدړه د ده کور ته راغلې ده اوهلته حصاره سوه نو دلیل یې دا دي چې داشنا ښځې سر به واده کوي اوکه ووینې چې ده ګیدړه نیولې ده یا چا ورکړې ده نو دلیل یې دا دي چې مکاره او درواغجنه ښځه به کوي اوکه ووینې چې ګیدړه ځنې وتښتیدله نو دلیل یې دا دي چې دده قرض به وتښتوي.

## رود\واله\ویاله

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې غټه واله په خوب کې لوي سړی دی که ووینې چې په غټه واله کې صفا اوبه دی نو دلیل یې دا دي چې دلوی دیانتدار سړی سره به ملاو سي اودهغه څخه به خیر اونفع حاصله کړي اوکه ووینې چې دوالی څخه وتلي دی نو دبلا اوغم څخه به خلاص سي اوکه ووینې چې غټه واله ته تللي دی او دهغه اوبه خرابي دی نو دلیل یې دا دي چې دلوی ظالم سړی سره به ملاو سي اوکه ووینې چې په دغه واله کې ډوب سویدی نو دلیل یې دا دي چې دهغه څخه به په مرګ خلاص سي. دانیال علیه السلام ویلي دی چې غټه واله وزیر دی که ووینې چې غټه واله وچه سویده نو دلیل یې دا دي چې وزیر به معزول سي اوکه دوالي اوبه زیاتي ووینې نو دلیل یې دا دي چې د وزیر څخه به بخښنه حاصله کړي اوکه ترخي اوبه وي نودلیل دی چې رشوت به اخلي اوکه دوالي اوبه خرابي ووینې نو دلیل یې دا دي چې په دغه ملك کې به ډیره خونریزي کیږي اوکه ووینې چې دوالي اوبه سپیني اوښتي دی نو دلیل یې دا دي چې عام خلك به دوزیر تعریف کوي اوکه ووینې چې دوالي اوبه په مځکه کې تللي دی اوڅه ځنې پاته سوي نه دی نو دا پر عذاب دلیل دی چې په دغه ملك به راځي دالله تعالی فرمان دی (قل ارئیتم ان اصبح مائکم غورا فمن یاتیکم بمآء معین، سورة الملك: ٣٠) ترجمه: دوي ته ووایه چې که ستاسو اوبه پر مځکه کې ولاړی سي نو تاسو ته به دچیني اوبه دکوم ځاي څخه ملاویږي، اوکه ووینې چې دوالي په اوبو یې ځان پریولي دی نو دلیل یې دا دي چې دپاچا اودوزیر دشرارت څخه به په امن کې وي اوکه ووینې چې په اوبو کې یې غوټه لګولې ده نو دلیل یې دا دي چې دوزیر دراز څخه به اطلاع حاصلوي اوکه ووینې چې خپل کالي یې پکې پریولي دی نو دلیل یې دا دي چې

ده ته او دده اهل بيتو ته به دپاچا او وزير څخه امن وي اوکه ووينې چې دوالي په اوبو کې ګرځي او دده کالي لړل سوي دی نو دليل يې دا دي چې دسوداګر څخه به ورته غم رسيږي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چې که ددجله واله په خوب کې ووينې نو خليفه به سي. اوکه جيحون ووينې نو دخراسان پاچا به سي اوکه سيحون ووينې نو دهند پاچا به سي اوکه فرات ووينې نو دملك شام پاچا به سي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چې دملك روم پاچا به سي اوکه واله نيل ووينې نو دمصر پاچا به سي او که واله رود ګروويني نو دارمينتيا پاچا به سي اواوبه چيښل اوخپل ځان په دی سره پريول خير اونفع ده اوچه څونه اوبه يې چيښلي وي دهغه په اندازه به ورته دپاچا دطرف څخه څه ملاويږي اوکه خپل ځان دشيدو په واله کې ووينې نو دليل يې دا دي چې په فتنه کې به راسي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې واله ليدل په اوو وجو وي ۱: حج ۲: عبادت ۳: پاچاهي ۴: تجارت ۵: مال ٦: رياست ۷: فتح.

## رودبار \ دويالو لښتي

که څوك ووينې چې دويالو په لښتيو کې اوبه تللي دی نو دليل يې دا دي چې په غم اوفکر کې به ګرفتار سي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك ووينې چې دويالو دلښتيو څخه وتلي دی نو دليل يې دا دي چې دغم اوفکر څخه به خلاص سي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چې دويالو لښتي په خوب کې حج اسلام دی دالله تعالی فرمان دی (بواد غير ذی ذرع عند بيتك المحرم، سورة ابراهيم: ۳۷) ترجمه: بغير دکښت سوي مځکي څخه ستا دعزت مند کورسره نزدی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې دويالو دلښتيو ليدل پرشعر ګويي دليل دی دالله تعالی فرمان دی (والشعراء يتبعهم الغاوون الم تر انهم فی کل واد يهيمون، سورة الشعراء: ۲۲۵) ترجمه: ګمراه خلک دشاعرانو تابعداري کوي ايا تاسو نه ګوري چې په هره يوه وادي کې پريشانه ګرځي.

## روده \ کولمې

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك په خوب کې ووينې چې کولمې يې اخيستي دی او خوړلي يې دی نو دليل يې دا دي چې دخپلوانو څخه به نفع پورته کړي اوکه ووينې چې دده دننه کولمې ښکاره سوي دی نو دليل يې دا دي چې دده په خپلوانو کې به يو هلك سردار سي اوکه ووينې چې دچا کولمې يې خوړلي دی نو دليل يې دا دي چې دهغه په اندازه به دچا مال خوري. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې دکولمو ښکاره کول دايښول سوي مال ښکاره کيدل دی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك ووينې چې دده د خولې څخه کولمې راوتلي دی نو دليل يې دا دي چې دده په زامنو کې به مرګ راځي اوکه ووينې چې ده دچا څخه کولمه ايستلي ده نو دليل يې دا دي چې دهغه په اندازه به دچا پټ مال حاصلوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې کولمه ليدل په شپږو وجو دی ۱: حرام مال ۲: ناخوښي خبري ۳: ښکنځل ۴: فرزند ۵: ژوند ٦: خپل کار کول.

## روزها\ورځي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي که څوك ويني چي دجمعي ورځ دخالي ورځ سوي ده نو دليل يي دا دي چي يوکار به ښه ګني او شروع به يي کړي حالانکه هغه به بد وي اوکه ويني چي خالي ورځ جمعه سوي ده نو دليل يي دا دي چي د دې خلاف دی اوکه ويني چي شپه ورځ سوي ده نو دا پر نيکي دليل دی اوکه ويني چي دخالي ورځ ده نو دليل يي دا دي چي دی به ديهوديانو سره دوستي کوي اوکه داتوار ورځ په خوب کي ويني نو دعيسايانو دوست به سي اوکه په خوب کي خالي ورځ دجمعي ورځ معلومه کړي نو دليل يي دا دي چي داهل نعمت دوست اومالدار به سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي دټولو ورځو څخه ښه ورځ دجمعي ده او دجمعي څخه وروسته دخالي اوزيارت ورځ ښه ده اوڅونه چي ورځ زياته صفا اوروښانه وي دهغه په اندازه به دخير اوبرکت سبب وي.

## روزه داشتن\روژه نيول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي که څوك په خوب کي ويني چي ده روژه نيولي ده او سبحان الله لا اله الا الله اوقران شريف وايي نو دليل يي دا دي چي دحرامو اوګناه څخه به توبه کوي اوکه ويني چي روژه يي نيولي ده اودخلکو غيبت کوي اوفحش خبري کوي نو دليل يي دا دي چي په عبادت کي به رياکاري کوي او ددين په لاره کي به ريښتوني نه وي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دي چي که څوك ويني چي د روژي مياشت ده نو داپر ګراني اودخوراك پر تنګي دليل دی اوبعض وايي چي دقرضدار پر درستي او دغمونو پر خلاصي دليل دی اوقرض به يي ادا سي خاصکر که د روژي په مياشت کي په خوب کي دروژي مياشت ويني. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي روژه نيول په لسو وجو وي ١: بزرګي ٢: رياست ٣: تندرستي ۴: مرتبه ۵: توبه ٦: فتح ٧: نعمت ٨: جهاد ٩: هلك. ليکن په خوب کي په هيره روژه نيول پر نيک مردي اوحلالي روزي دليل دی اوکه په اراده سره روژه ماته کړي نو په سفر کي به مصيبت باندي راځي يا به ناجوړه سي اوکه ويني چي دوه مياشتي روژي يي نيولي دی نو دليل يي دا دي چي دګناه څخه به توبه وکړي اوکه ويني چي نفلي روژي يي نيولي دی نودليل يي دا دي چي دناجوړي څخه به په امن کي وي. اوکه ويني چي دکال پرلپسي روژي يي نيولي دی نو دليل يي دا دي چي حج به کوي اوکه په خوب کي ويني چي دعاشوري روژي يي نيولي دی نو دليل يي دا دي چي دغم اوفکر څخه به خلاص سي.

## روستا\کلي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که خپل کلي په نامعلوم ځاي کي ويني نو پر خير دليل دی اوکه په معلوم ځاي کي يي ويني نو بد دی اوکه په خوب کي ويني چي دکلي څخه ښارته تللي دی نو ان شاء الله دفتني اوعذاب څخه به په امن کي وي اوکار به يي په انتظام سره وی اوکه ويني چي دښار څخه کلي ته تللي دی نو تعبير يي داول څخه خلاف دی. جابر مغربي رحمه الله ويلي دي چي که څوك په خوب کي ويني چي په کلي کي دده ملکيت دی يا چا ورکړي

دي نو دلیل یي دا دي چي دهغه ښار دابادي مطابق به ده ته خیر اونیکي ورسیږي اوکه په خوب کي کلي ویران وویني نو تعبیر یي داول څخه خلاف دی.

## روښني\روښنايي\رڼا

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي رڼا ددین پر هدایت دلیل دی اوکه ووینی چي ده رڼا اخیستي ده یا چا ورکړیده نودلیل یي دا دي چي چاته به ددین علم ښیبي اوسمه لار به ورته ښیبي او په خوب کي تاریکه ګمراهي اوبي دیني ده د الله تعالی فرمان دی (الله ولي الذین امنوا یخرجهم من الظلمت الی النور، سورة البقرة: ٢٥٧) ترجمه: الله دایمان والاوو مالك دی دوي دتاریکي څخه درڼا طرفته راباسي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي دده په سینه کي رڼا ده نو دلیل یي دادي چي پرهیزګاره او دینداره به سي دالله تعالی فرمان دی (افمن شرح الله صدره للاسلام فهو علی نور من ربه، سورة الزمر: ٢٢) ترجمه: ایا هغه سړی چي دهغه سینه الله داسلام لپاره خلاصه کړي ده هغه دخپل درب طرف څخه پررڼا دی. اوکه په خوب کي ووینی چي دده څخه ګیر چاپیر رڼا ده نو دا دده په خیر او عافیت دلیل دی جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي رڼا په څلورو وجو وي ١: ددین هدایت ٢: علم ٣ : سمه لار ۴: پاکه عقیده.

## روغن\تیل\غوړي

دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي غوړي لیدل مال اونعمت دی اوبعض وایي چي وراثت دی اوکه په خوب کي ووینی چي دده سره غوړي دی اوده خوړلي دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به مال اونعمت حاصل کړي اوپه خلکو کي به عزت مند سي اودبوزي دغوړو هم دغه تعبیر دی لیکن دغوا غوړي دمېږي د غوړو څخه ښه دی اوروغن بادام اوروغن کنجد مال اونعمت دی اونور قیمتي روغن لکه روغن بلسان روغن بنفشه اوروغن فلتون داټول دکلي وال سړی څخه نفع ده. ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دده ټول بدن په غوړو لړل سوي دی نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه ووینی چي پر سر یي تیل لګولي دی نو داپر ښایست دلیل دی اوکه خوشبوداره تیل ووینی لکه بنفشه او دچنبیلي تیل نو دا ددنیا پر ارایش دلیل دی او د دې ټولو تیلو لیدل کله چي خوشبودار وي نو پر ښه والي دلیل دی اوبدبو دار پربدي دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي د زیتون تیل مال اونعمت دی اوکه په خوب کي ووینی چي یو سړی دبل سړی پرسر تیل لګوي نو دلیل یي دا دي چي دهغه سړی سره به مکر اوحیله کوي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي په ځان تیل لګول دښایست دلیل دی لیکن غم اوفکر ورسره هم دی اوکه ووینی چي په تیلو سینه غوړوي نو ددرواغو قسمونه به خوري. اسماعیل اشعث رحمه الله علیه ویلي دی چي ټول غوړي په تعبیر کي خراب دی لیکن دزیتون تیل خوړل دمال دلیل دی اولګول یي پر غم اوفکر دلیل دی اوکه ووینی چي دده کالي په تیلو لړل سوي دی نو دلیل یي دا دي چي غمجن به سي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي ښه روغن په خوب کي په شپږو وجو وي ١: ښایسته ښځه ٢: مینځه

۳: نيك تعريف ۴: نفع ۵: ښي خبري ۷: نيك طبعيتونه او دبدبو په روغنو دليل په درو وجو دی ۱: بازاري ښځه ۲: بدکاري ۳: خرابي خبري.

## روناس (يورنګ دار شي)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي روناس ليدل ددنيا پر ښايست دليل دی او دا خوړل پرضرر اوغم دليل دی اوکه ويني چي ده خپل کالي په روناس باندي سره کړي دی نودليل يي دا دي چي ددنيا په ژوند کي به مشغول سي او ددين لار به پريږدي.

## روی\مخ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي مخ لکه ځنګه چي وو دهغه څخه زيات ښايسته ويني نو دليل يي دا دي چي دهغه مرتبه اوژوند به زيات سي اوکه خپل مخ خراب او خفه ويني نومرتبه به يي کمه سي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك دخپل مخ رنګ سور اوپاك ويني نو دليل يي دا دي چي مخور به سي اوکه ويني چي دده مخ سپين دی نو دا ددين په قوت دليل دی دالله تعالی فرمان دی (واما الذين ابيضت وجوههم ففى رحمة الله هم فيها خلدون، سورة آل عمران: ۱۰۷) ترجمه: اودکومو خلکو مخونه چي سپين دی هغوي دالله تعالی په رحمت کي دی اودوي به په دي کي همیشه وي اوکه ويني چي دده مخ رنګ ژړ دی نو دليل يي دا دي چي دده به لور پيدا سي دالله تعالی فرمان دي (واذا بشر احدهم بالانثى ظل وجهه مسودا وهو كظيم، سورة النمل: ۵۸) ترجمه: اوکله چي په دوي کي چاته دلور زيري ورکړه سي نو دهغه مخ دغصي څخه تور سي. اوکه ويني چي دده مخ تور او په دوړو لړلي دی نودليل يي دا دي چي دی به مشرك وي اوکه ويني چي دده مخ په وينو خراب دی يا دده دمخ څخه ژړي اوبه راوځي او دده پرمخ زخم نه وی نودليل يي دا دي چي دده دمال نقصان به وسي اوکه ويني چي دده مخ کوږ سوي دی نو دا دده دحال پر تباهي دليل دی اوکه ويني چي دده پر مخ خال دی نودليل يي دا دي چي قرضدار به سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي که خپل مخ په خوب کي په اوبو يا شيشي کي ښايسته ويني يا ورته څوك ووايي چي ستا مخ ښايسته دی نو دليل يي دا دي چي دده کار به نيک وي اوکه خراب يي ويني نو تعبير يي خلاف دی اوکه ويني چي دده مخ سور دی نو دليل يي دا دي چي دده به دچا سره بحث کيږي اوغصه به کوي. اوکه خپل مخ سپين او روښانه ويني نو دليل يي دا دي چي دعبادت توفيق به حاصل کړي اوکه خپل مخ تور ويني نو پرغم اوفکر دليل دی او دکفر بيره ده دالله تعالی فرمان دی (واما الذين اسودت وجوههم اكفرتم بعد ايمانكم، سورة آل عمران: ۱۰٦) ترجمه: ليکن دچا مخونه چي تور سويدی ايا تاسو دايمان څخه وروسته کافران سواست اوکه پرخپل مخ زخم ويني نودليل يي دادي چي دهغه په اندازه غم اوفکر به ورته وي اوکه پرخپل مخ خراش ويني نو دليل يي دا دي چي دده په کار کي به خلل راسي او که خپل دوه مخونه ويني نودليل يي دا دي چي منافق به وي. جعفر صادق رحمة الله عليه

ويلي دی چي په خوب کي مخ ليدل په اتو وجو دی ۱: شرف اوبزرګي ۲: ذلت اوحقارت ۳: دکارونو انتظام ۴: دين او ديانت ۵: فکر او رسوايي ۶: قرض ۷: نيکي ۸ : دعبادت توفيق.

## ريحان\کشمالو

که په خوب کي ويني چي کشمالو شين او خوشبودار دی نو پر زوی دليل دی او ريحان دمځکي ښخه را ايستل پر ژړا اوغم دليل دی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي که ريحان پر خپل ځاي ويني نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي به نيک کار کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ريحان ليدل په اوو وجو دی ۱: ښځه ۲: مينځه ۳: دوست ۴: زوی ۵: نيکه خبره ۶: دعلم مجلس ۷: نيک کار اوکه ويني چي دده په کور يا باغ کي ريحان دی نودا په خير او نفع دليل دی جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي په موسم کي ريحان خرڅونکي ډير نيک دی.

## ريسمان\رسۍ

رسي په خوب کي سفر دی که ويني چي دپشم يا وړينته ښخه يي رسي اوبدلي ده لکه څنګه چي ښځي يې اوبدي نو دليل يي دا دي چي حلال کار به کوي اوکه تارونه يي جولاله ورکړي وي چي کالي ځني واوبدي نودليل يي دا دي چي دجنګ دکار په تدبير کي به وي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دښځي دوريښتو په ډول دپشم ښخه يا دوريښتو ښخه رسي اوبدي نو دليل يي دا دي چي دده غايب به په سفر کي ډير وخت وي اوکه ويني چي دده سره ډيری رسي دی نودليل يي دا دي چي عمر به يي زيات وي او دهغه په اندازه به دخپلوانو څخه خير او نفع حاصلوي.

## ريواس\د دستونو دوا

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ريواس دهغه دخوراك مطابق غم دی اوکه ويني چي ريواس يي دباندي اچولي دی نودليل يي دا دي چي دغم اوفکر څخه به خلاص سي اوکه ويني چي ريواس خوري دی نودليل يي دا دي چي ده ته به ضرر کم رسيږي او الله تعالی ښه پوهيږي.

## ريش\ږيره

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ږيره دسړو لپاره ښايست دی اوخانه داري ده په حديث شريف کي راغلي دی چي دالله تعالی يوه فرشته ده چي دهغه تسبيح دا دي (سبحان من زين الرجال باللحی والنسآء بالذوايب) ترجمه: پاکي دی وي هغه ذات ته چي سړيانو ته يې په ږيرو او ښځو ته يې په سرو ښايست ورکړيدی. اوکه ويني چي دده ږيره اوږده سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده دخانه داري کار به جوړ سي ليکن که په اوږدوالي کي دنوم څخه اوږده سي نو دغم اوفکر دليل دی اوکه ويني چي خپله ږيره يي په نوکونو ښايسته کړي ده نو دليل يي دا دي چي خپله ښځه به ناجوړه ويني اوکه ويني چي پر خپله ږيره يي نکريزی لګولي دی نو دليل

يي دا دي چي خپل حال به پر خلكو ښكاروي اوپټوي به يي نه اوكه ويني چي خپله ږيره پر زمكه راكشوي نو دليل يي دا دي چي دده مرګ نزدی دی اوكه ويني چي دده ږيره پري سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده دمال مراد اومرتبي نقصان به وسي اوكه ويني چي دده ږيره سپينه سوي ده نودليل يي دا دي چي دده صبر اونرمي به زياته سي ليكن غمجن به وي اوكه ويني چي ږيره يي په غاښونو پريكړي ده نودليل يي دا دي چي دده دكوروالا نقصان به وسي اوكه ويني چي دده ږيره دناجوړي په وجه را رژيدلي ده نودليل يي دا دي چي ده ته دنابېره مرګ څخه بيره ده او دده مال اوعزت به هم ختم سي اوكه ويني چي ږيره ږمنځوي اوخوشبو باندي لګوي اوګلاب باندي اچوي نودليل يي دا دي چي داسي كار به كوي چي په هغه سره به خلك دده شكر ګزاره سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه څوك وينی چي دده ږيره دنامه څخه اوږده سويده نودليل يي دا دي چي مال به حاصل كړي. اوكه ويني چي په ږيره يي لاس وهلي دی اوڅه حصه يې په لاس كي پاته سوي ده اوهغه يي غورزولي ده نو دليل يي دا دي چي مال به دده دلاس څخه ځي اوكه ويني چي دږيري څه حصه يي په څه شي كي محفوظه ايښي ده نو دليل يي دا دي چي مال به په نظر كي ساتي اوكه ويني چي دده ږيره كوچني سوي ده نو كه قرضدار وي نو دقرض څخه به خلاص سي اوكه غمجن وي نو بې غمه به سي اوكه ويني چي دده ږيره ايستل سويده نودليل يي دا دي چي دده عزت به نابېره ځي اوكه ويني چي دخپلي ږيرى څخه سپين ويښته باسي نو دليل يي دا دي چي دي دنبي ﷺ اوداصحابو كرامو دسنت خلاف دی اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي كه څوك ويني چي دسر ويښته يي دحج په موسم كي په خانه كعبه كي خريلي دی نو كه قرض دار وي نو دقرض اوغم څخه به خلاص سي اوكه ويني چي سر اوږيره يي په يو ځاي خريلي دی نو دليل يي دا دي چي دده عزت به ختم سي اوكه ويني چي بي وجي دده ږيره لږ لږ كميږي نو دليل يي دا دي چي دغم اوسختي څخه په خلاص سي اوكه ويني چي دده ټوله ږيره سپينه سوي ده نودليل يي دا دي چي دده په عزت كي به لږ نقصان وسي. اوكه ښځه ويني چي دهغه ږيره ده نو دليل يي دا دي چي غمجن به سي او داسي كار به وكړي چي په هغه سره به رسوا سي اوكه سړی ويني چي دده ږيره وتلي ده نو دليل يي د ادي چي دهغه به هيڅكله زوی نه كيږي اوكه هلك وي نو دبدبي والا اوقوي به سي. اوكه نابالغ هلك خپله ږيره ويني نودليل يي دا دي چي په غم اوفكر كي به راسي اوكه ويني چي دچا ږيره يي نيولي ده اوراكش كړي يي ده نو دليل يي دا دي چي هغه سړی به دده ميراث اخلي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي ږيره په خوب كي په لسو وجو ده ١: اخستل او خرڅول ٢: لوړه مرتبه ٣ : عزت اومرتبه ۴: هيبت ۵: مروت ۲: نيكي ۷: ارام ۸: مال ۹: زوی ١٠: بزرګي. دالله تعالى فرمان دی (ولقد كرمنا بني ادم، سورة بني اسرائيل:٧٠) ترجمه: اوموږ دادم عليه السلام اولاد ته عزت وركړی دی ليكن په خوب كي دحاجيانو اودقيديانو ږيره خريل يا خرول ښه دی.

## ريګ \ شګه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي شګه پر صلاح اوخير دليل دی اوكه ويني چي په

شګه کي ګرځي نو دليل يي دا دي چي دکسب لپاره به په شغل کي مشغول سي اودشګي دکمي او زياتي مطابق به يي کوي اوکه ووينې چي شګه خوري يا يي جمع کوي نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به دخلکو څخه خير اونفع ويني. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دشګی ليدلو تعبير په څلورو وجو وی ۱: مشغول ليدل ۲: مال ۳: نفع ۴: مرتبه ليکن دمحنت سره.

## ريش\زخم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي دده پر بدن زخم دی اوپه هغه کي نو جمع سويدی نو دليل يي دا دي چي دنو په اندازه به ده ته مال حاصل سي اوکه د دې خلاف ووينې نو دده په مال کي به کمي کيږي اوکه ووينې چي نو دده دبدن څخه وتلي دی اوبيا واپس خپل ځاي ته راغلي دی نو دليل يي دا دي چي دده دمال نقصان به وسي اوانجام به يي نيك وي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ووينې چي نو روي اوخوري يي نو دليل يي دا دي چي حرام مال به خوري عرض داچه نو په بدن کي جمع کيدل دمال په جمع کيدو دليل دی. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي دده په ټول بدن زخمونه دی نو دا دغم اوفکر دليل دی.

## ريم\نو

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي نو په خوب کي ليدل دخوب ليدونکي لپاره مال دی اوکه ووينې چي دده دبدن څخه نو وتلي دي نو دليل يي دا دي چي دمال نقصان به يي وسي اوکه ووينې چي نو دبدن څخه وځي اوبيا په بدن کي ننوځي نو دليل يي دا دي چي دمال نقصان به يي وسي ليکن نتيجه به يې ښه وي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ووينې چي نو روي اوخوري يي نُو نو پر سپين اوسره زر وغيره مال دليل لري.

## ريوند(ددستونو دوا)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ووينې چي دده سره ډير ريوند دی نو دليل يي دا دي چي په غم اوفکر کي به ګرفتار سي اوکه ووينې چي دعلاج لپاره يي ريوند خوړلي دی اوپه هغه سره جوړ سوي دی نو داپه صحت تندرستي خير اونيکي دليل دی، اوکه د دې خلاف ووينې نو په غم اوناجوړي دليل دی او الله تعالی ښه علم لري.

## زن\ښځه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که ښځه په خوب کي ووينې چي د دې لور پيداسوي ده يا د دې سره ده نو دليل يي دا دي چي ديته به څه ملاو سي اودخپلوانو څخه به خوشحاله سي اوکه سړی ووينې چي دده زوی به پيدا سي حالانکه ښځه يي حامله نه ده نو دليل يي دا دي چي دده به لور پيداسي اوکه ووينې چي دده لور پيدا سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده به زوی پيدا سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که دپاچا ښځه ووينې چي د دې زوی پيدا سوي دی نو دليل يي دا دي چي ددې خاوند ته به خزانه ملاو سي اوکه پاچا ووينې چي دده زوی پيدا

سوي دی نو داپر غم اوفکر دليل دی اوکه ويني چي انجلي پيدا سويده نو دليل يې دا دي چي غمجن به سي اوکه ويني چي هلك پيداسوي دی نو دليل يې دا دي چي دده کار به ښه وي او که ځوک پيغله انجلي ويني چي دهغه لور پيدا سوي ده نو دليل يې دا دي چي دي به ښځه کوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ويني چي دده زوی پيدا سوي دی اوپه هغه ورځ يې ورسره خبري کړي دی نو دا دخوب ليدونکي پرمرګ دليل دی اوکه ويني چي انجلي پيدا سوي ده نو دليل يې دا دي چي دده په نسل کي به هلك پيداسي چي دقوم سردار به وي.

## زاغ\کارغه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کی کارغه فاسق بې دينه اودرواغجن سړی دی اوکه ويني چي ده کارغه نيولي دی نودليل يې دا دي چي دداسي سړی سره به ملاوسي چي دهغه به دکارغه صفت وی اوپه بې فايدي کار کي به مشغول سي اوکه ويني چي کارغه يې وژلي دی نو دليل يې دا دي چي په دغه ځاي کي به کافران فساديان اوغله خلک جمع سي اوکه ويني دکارغه ښکار يې کړي دی نو ديو ځاي څخه به په درواغو سره مال حاصل کړي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي کارغه په خوب کي دليدو تعبير هندوستاني مينځه ده او په خوب کي ډير کارغان ليدل لښکر دی اوکه ويني چي دکارغه څخه يې پوست ايستلي دی نو دليل يې دا دي چي دمسافري ښځي سره به زنا کوي اوکه ويني چي کارغه يې وژلي دی نو دليل يې دا دي چي دده اهل بيت ته به نقصان رسيږي اوکه ويني چي ډير کارغان په هوا کي راځي اوتيريږي نو دليل يې دا دي چي دغه ملک ته به ددغه کارغانو برابر لښکر راځي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که ځوك ويني چي کارغه اوطاؤس دده په پرتوګ کي دي نو دليل يې دا دي چي دمينځي سره به فساد کوي اوکه ويني چي دکارغه سره يې جماع کړي ده نو دليل يې دا دي چي غل سړی به بند کړي.

## زاکها\خاوري

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په ټولو خاورو کي شنه خاوره ښه ده د دې څخه وروسته سپينه او ژړه ناجوړي ده اوتوره مصيبت دی او دخاوري خوړل په مرګ دليل دی او دکالو رنګ وغيره هم په دي تعبير کي دی او په دين کي دخاوري خوړلو هيڅ نفع نسته جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خاوري په څلورو وجو دی ۱: غم اوفکر ۲: ناجوړي ۳: مصيبت ۴: د ښځو په وجه جنګ.

## ژاله\ږلي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ځوك ويني چي په ښار کي ياپه يو ځاي کي ږلۍ اوريږي نو دليل يې دا دي چي دهغه ځاي خلکو ته به دپاچا څخه غم رسيږي اوکه ويني چي باران دبجلي بريښنا او ږلۍ سره وريږي نو په دغه ځاي کي به قحط تنګي او نقصان وي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي باران د ږلۍ سره ليدل پر نعمت فراخي اوامن دليل

دی، جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي رڼلی لیدل په پنځو وجو دي ۱: بلا ۲: جنګ ۳: لښکر ۴: قحط ۵:ناجوړي.

## دیوچه\زلو\ژوره\جوکه

د ژوري په فارسي کي نوم دیوچه دی ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ژوره لالچي دښمن دی اوکه ویني چي ژوره دده دبدن څخه وینه چیښي نو دلیل یي دا دي چي دښمن به پر ده غلبه حاصله کړي اوڅونه چي یي وینه چیښلي وي دهغه په اندازه به یي دمال نقصان وسي اوکه ویني چي ژوره دده په مري کي ننوتي ده نو دلیل یي دا دي چي دښمن به دده په کور کي دننه دده سره کښیني اوکه ویني چي ژوره یي دخپل بدن داندام څخه جلا کړه اومړه یي کړه نو دلیل یي دا دي چي په دښمن به کامیابي حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي ژوره عیال دی چي دنورو مال خوري اوکه ویني چي ډیري ژوري جمع سوي دی او دده وینه چیښي نو دلیل یي دا دي چي ددغه ویني داندازي مطابق به دده دمال نقصان وسي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي دده پربدن پوری ژوره ده او دده وینه چیښي نودلیل یي دا دي چي ددښمن څخه به ده ته نقصان رسیږي.

## زانو\زنګون

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي دزنګون دلیل دخوب لیدونکي ژوند دی اوکه ویني چي دده زنګون قوي اومضبوط دی نو دلیل یي دا دي چي دده په کار کي به قوت راسي اوژوند به یي فراخ سي اوکه ویني چي پر زنګنونو پرلاره ځي نو دلیل یي دا دی چي دده کار به کمزوري وي او ژوند به باندي تنګ وي او که ویني چي دده دزنګون سترګه کمزوري یا ماته ده نو دلیل یي دا دي چي دده کار به تباه سي اوکه ویني چي دده دزنګون سترګه را ایله سوي ده نو دلیل یي دا دي چي څونه سرمایه دده سره وي هغه به یي دلاسه ولاړه سي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي زنګون په خوب کي خلکو ته کسب اوژوند دی اوکه ویني چي دده زنګون سخت او قوي سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دده کسب اوژوند به زیات سي اوکه ویني چي دده زنګون کمزوري سوي دی نو دده کسب اومعیشت به کمزوري او دده څخه به منقطع سي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي زنګون پر تکلیف مشقت اوغم دلیل دی او چي څوك په زنګون کي کمي یا زیاتي ویني نو د دې تعبیر پورته بیان سوی دی.

## زباد\کستوري\خوشبو

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي دده سره کستوري دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي با ادبه او دعقل خاوند به سي اوخلک به دده مدح او ثنا کوي اوکه ویني چي دکستوري څخه خوشبو راځي نو دلیل یي دا دي چي خلک به دده تعریف کوي اوکه ویني چي دکستور څخه هیڅ قسم خوشبو نه راځي نو دلیل یي دا دي چي دیو چا سره به نیکي کوي او پرهغه به څه احسان نه ساتي اوکه ویني چي کستوری خوري نودلیل یي دا دي چي دده زامن به با ادبه اوهوښیار وي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي کستوري په څلورو

وجو دی ۱: ادب ۲: عقل ۳: نیك كار ۴: ښه عمل.

## زبان\ژبه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي كه څوك ویني چي دده ژبه پري سوي ده اودچا سره دجنگ څخه بغیر ناقصه سوي ده او ددلیل په وخت كي دده ژبه بنده سوي ده نو تعبیر یي بد دی اوكه څوك ویني چي دده ژبه په اوږدوالي اوپلنوالي زیاته سوي ده نودلیل یي دا دي چي دده ژبه به ددلیل په وخت كي پر مقابل باندي درنده وي او لویبږي به اوپر مقابل به فتح حاصله كړي. اوكه ویني چي بغیر دجنگ څخه یي ژبه اوږده سوي ده نودلیل یي دا دي چي ډیري خبري كوونكي به وي. ابراهیم كرمانی رحمه الله ویلي دی چي كه څوك ویني چي دده دوي ژبي دی نو الله تعالی به ده ته عمل اوپوهه وركړي. اوكه ویني چي خپله ژبه یي قصدا پریكړه ددې وجي څخه چي څه خبري نه كوي نو دلیل یي دا دي چي د درواغو څخه به توبه كوي اوكه ویني چي دده دژبي څخه خطا خبري جاري دی نودلیل یي دا دي چي داسي خبره به كوي چي په هغه سره به دالله تعالی څخه راضي نه وي اوكه ویني چي دده په خوله كي ژبه ایښول سوي ده نو دلیل یي دا دي چي دچا څخه به ورته په خبرو كي قوت او دلیل حاصل سي اوكه ویني چي دچا ژبه روي نو دلیل یي دا دي چي دهغه څخه به ورته علم اوپوهه حاصله سي جابر مغربی رحمه الله ویلي دي چي كه څوك ویني چي په ژبه گونگی سوي دی نودا ددین او دنیا دفساد دلیل دی اوكه ویني چي دفقیر څخه یي ژبه پریكړي ده نودلیل یي دا دي چي فقیر ته به څه وركوي اوكه ویني چي دښځي څخه یي ژبه پریكړي ده نو دلیل یي دا دي چي هغه به بي ستره كوي او دهغه راز به ښكاره كوي اوكه ویني چي دده ژبه دتالو سره لگیدلي ده نو دلیل یي دا دي چي قرضدار به سي دانیال علیه السلام ویلي دی چي كه څوك ویني چي دده ژبه قوي او پنډه سوي ده نودلیل یي دا دي چي پر مخالف به غالب كیږي اوكه ویني چي دده ژبه زخمي سوي ده نودلیل یي دا دي چي پر چابه بهتان لگوي یا به درواغ وایي اوكه ویني چي دده پر ژبه ویښته راختلي دی نودلیل یي دا دي چي دخبري په وجه به په مصیبت كي راسي اوكه ویني چي دده ژبه پړسیدلي ده نودلیل یي دا دي چي دده دخبري په وجه به ده ته مال ملاویږي. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دی چي كه څوك ویني چي دده دژبي دوه ښاخه دی نو دلیل یي دا دي چي دی به منافق وي اوكه ویني چي بغیر دژبي څخه دی نو دلیل یي دا دي چي په ټولو كارونو كي به عاجز سي اوكه ویني چي دده دژبي سر نسته اوپری سوي دی چي خبري نه سي كولاي نو دلیل یي دا دي چي دده كار به دوكیل په لاس راځي اوكه ویني چي دده ژبه وچه سوي ده نو د دې تعبیر بد دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب كي ژبه لیدل په شپږو وجو ده. ۱: حكمت ۲: ریاست ۳: ترجمان ۴: حاجت ۵: وكیل ۶: دوست اوپه څو ژبو كي دخبرو كولو بیان به په حرف س كي راسي.

## زبرجد(یو قیمتي كاڼی)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب كي زبرجد لیدل خیر اوعافیت دی اوكه ویني چي دده

سره ډير زبرجد دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي اوکه ووينې چي زبرجد ځني ورك سوي دی نو دليل يي دا دي چي دمال نقصان به يي وسي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي زبرجد ليدل په درو وجو وي ۱: خوشحالي ۲: مال ۳: نفع.

## زبور شريف

زبور شريف د داود عليه السلام کتاب دی ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دزبور ويلو دليل دا دي چي دالله تعالی طرفته به رجوع کوي او نيك کار به کوي اوکه ووينې چي زبور په ښکاره طور وايي نو دليل يي دا دي چي پرهيزګاري تقوی اوخيرات به په رياکاري او نفاق سره کوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ووينې چي زبور ليکي نو دليل يي دا دي چي په داسي کار کي به مشغول سي چي په هغه سره به نفع حاصليږي اوکه ووينې چي زبور وايي نودليل يي دا دي چي دده کاروبار به ښه سي.

## زچر \ د کارغانو په آوازونو فال نيول

که په خوب کي ووينې چي دکارغانو په اواز فال نيسي نو د دې تعبير غرور او ددنيا درواغ دی چي په خوب اوبيداري کي دتعبير په لحاظ سره بد دی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ځوک ووينې چي دکارغانو په اوازونو فال نيسي نو دليل يي دا دي چي ددنيا په باطلولو کي به مشغول سي او ددين په لاره کي به کمزوري سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ووينې چي دکارغانو په اوازونو فال نيسي نو که طاق وي نو پر نيکي دليل دی اوکه جفت وي نو پر ناجوړي دليل دی ليکن بيابه شفا حاصله کړي.

## زخم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوك ووينې چي دده پر بدن زخم دی او دووينې نخښه ښکاره نه ده نو دليل يي دا دي چي پر زخم لګوونکي به کاميابي حاصله کړي اوخير اونفع به ورته حاصله سي اوکه ووينې چي دده د زخم څخه وينه بهيږي او دده بدن په وينو لړلي دی نودليل يي دا دي چي حرام مال به خوري اوکه ووينې چي دده بدن باندي لړل سوي نه دی نو دليل يي دا دي چي زخم لګوونکي به پر ده دګناه يا دتهمت الزام لګوي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ووينې چي دی زخمي سوي دی او په وينو لړل سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده په مال کي به نقصان واقع کيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي د زخم ليدل په دروو وجو دی ۱: کاميابي حاصلول ۲: خير اونفع ۳: دمال نقصان.

## زدن \ وهل

دانيال عليه السلام ويلي دی چي که ځوك په خوب کي ووينې چي دی په کوړو وهل سويدی او دوهلو نخښې پکي پاته دی يادی يي په ستنه پوري تړلي دی او دونه يي وهلي دي چي وينه ځني وتلي ده نو ددې تعبير بد دی. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که ځوك په خوب کي په کوړو وهل سوي دی نودليل يي دا دي چي ده ته به حرام مال حاصل سي خاصکر که ووينې چي دده دبدن څخه وينه وتلي ده اودده بدن هم په وينو لړل سوي دی اوکه دده په بدن بدحالي ښکاره سي نو

دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به دیو چا څخه فایده حاصله کړي اوبعضو اهل تعبیر بیان کړي دی چي نوي کالي به اغوندي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي دده پر ملا کوړي لګیدلي دی او وینه څني وتلي ده نو دلیل یي دا دي چي خوب لیدونکي به حرام مال حاصلوي. اوکه ووینی چي دده پرملا تازیاني لګیدلي دی اووهونکي نه معلومیږي نو دلیل یي دا دي چي دده ددین اودنیا شغل به نیك وي اوکه ووینی چي ده څوك په کوړي وهلي دی داسي چي کوړه ذري ذري سوي ده نو دلیل یي دا دي چي دده خاندان والا به پریشانه وي اوکه ووینی چي دی چا بي حسابه کوړي وهلي دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به غم رسیږي اوکه ووینی چي چا په کوړو وهلي دی نو دلیل یي دا دي چي دبي دینه اومنافق سړی څخه به غمجن سي اوکه ووینی چي کوتوال دی په کوړه وهلي دی نو دلیل یي دا دي چي پاچا به ده ته حکومت ورکړي اودده کار به نیک وي اوکه ووینی چي دی چا په کاڼی ویشتلي دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه څخه به نفع حاصله کړي اوکه ووینی چي کاڼی دده پر ملا لګیدلي دی نو دلیل یي دا دي چي څوك به دي رسوا کړي اوکه ووینی چي چا ده ته پرمخ چپلاخه ورکړي ده نو دلیل یي دا دي چي دچا څخه به خرابه خبره اوري. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي ده مړي وهلي دی نو دلیل یي دا دي چي په سفر کي به نفع حاصله کړي یابه تللی مال واپس ورته راسي اوکه ووینی چي دي مړ دی او چا دی وهلي دی نو دا ددین پر قوت باندي دلیل دی. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دوهلو خوړلو تعبیر په شپږو وجو دی ۱: نفع ۲: جنګ ۳: دمشکل کار اسانیدل ۴: سفر ۵: شرف او بزرګي ۶: حرام مال.

## زر\سره‌زر

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سره زر لیدل دسړیو لپاره دغم اوفکر دلیل دی او د ښځو لپاره نیك اوښه دی اوکه ووینی چي ده سره زر پیدا کړي دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به دده مال ورك سي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي سره زر یا سپین زر یي ویلي کړي دی نو دلیل یي دا دي چي دخلکو په پیغور کي به راسي اوکه ووینی چي سره زر اخلي او خرڅوي یې نو دلیل یي دا دي چي ده ته به غم اوفکر رسیږي اوکه ووینی چي په غټه بوجي کي یي سره زر اچولي دی اوکور ته یي وړي دی نو دلیل یي دا دي چي مال به حاصل سي اوکه ووینی چي سره زر یي خوړلي دی نو دلیل یي دا دي چي دهغه په اندازه به خپل اهل وعیال خرڅ کړي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي دسرو زرو شي په خوب کي دسړیو لپاره بد دی اوکه څوك سره زر اوسپین زر په یو ځای کي پیدا کړي نودلیل یي دا دي چي عزت او مرتبه به حاصله کړي اوکه دسپینو زروکان ووینی نو دلیل یي دا دي چي دمالدار سړی دلور سره به نکاح کوي اووایي چي زرګر په خوب کي درواغجن سړی دی اوکه ووینی چي دزرګر سره ناست دی اودهغه سره سوداکوي نودلیل یي دادي چي دده به ددرواغجن سړی سره کار راسي.

## زردالو

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي زردالو که پر وخت وي اوخواږه وي نو چي څونه یي خوړلي وي په هغه حساب به ورته اشرفي ملاویږي اوتروه زردالو په ناجوړي اوغم دلیل دی او بعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي زردالو خوړل مینځه یا مال دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي ده دزردالو مندکي ماتي کړي دی او خوړلي یي دی چي ترخي دی نودلیل یي دا دي چي ده ته به غم ورسیږي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي زردالو بي وخته ناجوړي ده اوپر وخت که تریو وي نو غم اوفکر دی اوکه خوږي وي نو په نفعي دلیل دی.

## زردي\ژړوالی

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ژړه میوه او ژړ کالي لیدل ناجوړي ده.

## زرشک(یوه میوه)

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي زرشك لیدل اوخوړل غم اوفکر دی اوکه ووینی چي زرشك په خوب کي ددرختي څخه جمع کوي نو دلیل یي دا دي چي دده به دبخیل سړی سره جنګ کیږي.

## زرنیخ\هرتال\دارو

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دارو خوري نو داپه ناجوړي او هلاکت دلیل دی اوکه ووینی چي دارو خرڅوي یا یي چا ته ورکوي نو دلیل یي دا دي چي دناجوړي څخه به په امن کي وي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی که څوك په خوب کي ووینی چي دارو ورته ملاو سوي دی نو دلیل یي دا دي چي ډیر مال به ورته ملاو سي اوپه ناجوړي کي به یي خوري اوکه ووینی چي دارو یي په یو ځاي کي جمع کړي دی نودلیل یي دا دي چي په سفر کي به ناجوړه سي.

## زره\زغره

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي ده زغره اغوستي ده نو دلیل یي دا دي چي ددښمن څخه به په امن کي وي اوکه ووینی چي زغره ځني ورکه سوي ده نودلیل یي دا دي چي دښمن به پرده غالب راځي اوکه ووینی چي چا ده ته زغره ورکړي ده اوده اغوستي ده نودلیل یي دا دي چي دده سره به څوك قهر او زبردستي کوي یابه ددښمن مغلوب کولو لپاره دده مدد کوي اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي زغره ددین قلعه ده. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دده سره زغره ده نو دلیل یي دا دي چي دي او دده اهل بیت به ددښمن دشرارت څخه په امن کي وي. اوکه ووینی چي دزغري سره یي نوره وسله هم لګولي ده نو دلیل یي دا دي چي دشریرو او منافقو خلکو دشرارت څخه به په امن کي وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي زغره په خوب کي لیدل په شپږو وجو دی ۱: ددښمن څخه امن ۲: ددین قلعه ۳: قوت ۴: مال ۵: ژوند ٦: نیکي. اوپه خوب کي زغره

جوړونکي سړی داسي سړی دی چي خلکو ته ادب ښيي.

## زعفران

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده سره زعفران دی نودليل يي دادی چي خلک به دده مدح اوثنا کوي اوکه ويني چي زعفران دده پر بدن او کالو دی نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي. ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي چا ده ته زعفران ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دمالداري ښځي سره به واده کوي اوکه ويني چي دزعفران کوټه ورسره ده او دهغه څخه خوراک خوري نو دليل يي دا دي چي مال اونعمت به ورته حاصل سي.

## زغن\ټپوس

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي ټپوس دهغه ځاي پر پاچا دليل دی اوکه ويني چي ټپوس دده تابعدار دی نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونکي به لوي سړی وي اوکه داخوب حامله ښځه ويني نو دليل يي دا دي چي زوی به يي پيدا سي چي دپاچا مقرب به وي. ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي ټپوس ليدل په څلورو وجو دی ۱: متواضع کيدل ۲: مشري ۳: زوی ۴: مال.

## زفت\دتار کولو غوندي مواد\قير

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي زفت غم اوفکر دی اوکه ويني چي دده سره زفت دی يا چا ورکړي دی نودليل يي دا دي چي په غم اوفکر کي به گرفتاره سي اوکه ويني چي ده زفت خوړلي دی دليل يي دا دي چي داولاد لپاره به ده ته غم اواندېښنه وي. اوکه ويني چي ده زفت خرڅ کړي دی يا چا ورکړي دی يا يي دکور څخه دباندي اچولي دی نو دليل يي دا دي چي دغم اوفکر څخه به خلاصي سي. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که څوك ويني چي زفت يي په زخم کي ايښي دی او زخم ښه سوي دی نو دليل يي دا دي چي دچا څخه به خير او خوشحالي ويني اوکه ويني چي دده کالي په زفتو خراب سوي دی نو دليل يي دا دي چي داسي کار به کوي چي په هغه سره به بدنامه کيږي.

## زکاة

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که څوك ويني چي ده دمال زکوة ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دده مال به زيات سي اوکه ويني چي سرسايه يي ورکړي ده نو دليل يي د ادی چي لمونځ روژي اوتسبيح به زيات کوي اوخلاصون به حاصل کړي او د قرضو څخه به خلاص سي اوکه ناجوړي وي نو شفا به حاصله کړي اوکه څوك دده دښمن وي نو پر هغه به کاميابي حاصله کړي. ابراهيم کرماني رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که څوك ويني چي دمال زکوة ورکوي نو دليل يي دا دي چي دده مال به دده په قبضه کي سي او مصيبت به ځني ليري سي ځکه چي نبی صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ويلي دی چي (حصنوا اموالکم بالزکوة) ترجمه: دخپل مال څخه زکوة ورکړي اومحفوظ يي کړي. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی که څوك ويني چي دخپل مال څخه زکوة ورکوي نو دا دمال په زياتيدو

دليل دی دالله تعالی فرمان دی (ومآ اتيتم من زكاة تريدون وجه الله فاولئك هم المضعفون، سورة الروم: ۳۹)
ترجمه: اوڅه چي تاسو خاص دالله تعالی درضا لپاره زکات ورکړي نو تاسو دغه مال دوچنده کوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي صدقه او زکوة ورکول په اتوو وجو دی ۱: بشارت ۲: خير اوبرکت ۳: مشکل کار حل کيدل ۴: مراد پوره کيدل ۵: رڼا ۲: دغم څخه خلاصون ۷: زياتوالي ۸: پر دښمن کامیابي حاصلول.

## زنګار\زنګ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي زنګ ليدل دحرام مال ليدل دی اوکه ووينې چې دچا څخه يي زنګ اخستي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به حرام مال حاصل کړي اوکه ووينې چي زنګ يي په اور ايښي دی او اور ښه بل سوي دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا سره به معامله کوي اودهغه څخه به فايده پورته کوي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي زنګ پر مال او مراد دليل دی او که ووينې چي دده بدن او کالي زنګ سوي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به دپاچا څخه نقصان رسيږي اوکه ووينې چي ده زنګ خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي حرام مال به خوري او اخير کار به ده ته به دپاچا څخه غم اوفکر ورسيږي.

## زکام\نزله

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي ده ته دزکام ناجوړي ده نو دليل يي دا دي چي يو څو ورځي به ناجوړه وي او څونه چي زکام زيات وي هغونه به يي ناجوړي زياته وي او ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي نزله يي ده نو دليل يي دا دي چي غصه به کوي اوبيا به ژر صلح کوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي زکام په دروو وجو دی ۱: لږ ناجوړي ۲: غصه کول ۳: نفع حاصلول.

## زلابيه\زلوبي

زلوبي يو قسم خوږه مټايي ده ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي زلوبي په بي اندازي کوشش سره پر ډير مال اوپه خوشحالي دليل لري اوکه ووينې چي دده سره زلوبي دی نو دليل يي دا دي چي په هغونه اندازه به ورته مال ملاو سي اوکه ووينې چي چا ده ته لږ حلوی ورکړي ده يا يي دده په خوله کي ايښي ده نو دليل يي دا دي چي دچا څخه به دخوشحالي خبره اوري. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي زلوبي يي بغير دزعفران څخه خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي اوکه ووينې چي زعفرانو والا زلوبي يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي.

## زلزله

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي مځکه حرکت کوي نو دليل يي دا دي چي دځمکي دحرکت مطابق به ددغه ملك خلکو ته دپاچا څخه غم اوفکر ورسيږي او اهل تعبير بيان کړي دی چي خلکو ته به افت رسيږي اوپه دغه ملك کي به ناجوړي راسي. اوکه ووينې چي

مځکه وغورزیدله اولاندي باندي سوه نو دلیل یي دا دي چي په دغه ملك کي به بلا اوفتنه راسي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي چي مځکه سوکه او ښوریدله اونیمه غرقه سوه نو دلیل یي دا دي چي په دغه ملك کي به داسي پاچا راځي چي دغه ملك والا ته به عذاب ورکوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي زلزله او دځمکي غرق کیدل د پاچا دطرف څخه محنت او پر لوی مصیبت دلیل دی دا دالله تعالی فرمان دی (فخسفنا به وبداره الارض، سورة القصص: ۸۱) ترجمه: موږ هغه او دهغه کور په مځکه کي غرق کړ. په هر حال په خوب کي زلزله دهغه ملك والاو لپاره په عذاب اوملامتیا دلیل دی.

## زمرد\زمروت (یو قیمتي شین کاڼی)

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي زمرود په زوی یا ورور یا پر حلال مال دلیل دی اوکه ووینې چي دده سره زمرود دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي دده به زوی راځي یا به د ورور څخه نفع حاصله کړي اوکه ووینې چي دده څخه زمرود ورك سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دده زوی به مري یا به یي مال ختمیږي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي چي زمرود په خوب کي پر مذهب اوپاك دین دلیل دی او څونه چي زیادت یانقصان په زمرود کي وي نو دهغه تعبیر دا دی چي دی به دپاك مذهب طرف ته رجوع کوي او جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي زمرود لیدل نیکه خبره وي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي زمرود په خوب کي لیدل په پنځو وجو دی ۱: زوی ۲: ورور ۳: حلال مال ۴: مینځه ۵: نیک غلام او څونه چي زمرود ښه وي دهغه په اندازه به بیان سوي دلیلونه ښه وی.

## زمستان\ژمی

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي دیخني موسم پاچا دی که په خوب کي ووینې چي یخني ده اوخلک تنګوي نو دلیل یي دا دي چي ملك والاو ته به دپاچا څخه نقصان رسیږي اوکه ووینې چي دیخني موسم دی او هوا یخه ده او چاته ضرر اونقصان نه ورکوي نو دلیل یي دا دي چي ددغه ملك خلکو ته به دپاچا څخه خیر اونفع حاصله سي اوپه خوب کي دیخني موسم پر وخت لیدل پر نصرت اوفتح مندي دلیل دی.

## زمین\مځکه\زمکه

دانیال علیه السلام ویلي دي چي مځکه په خوب کي ښځه ده اوکه ووینې چي دده سره فراخه ښه پاکه صفا مځکه ده نو دلیل یي دا دي چي دده ښځه به ستر کوونکي اوصلاح کاره وي اوپه خپلوانو کي به هغه ته دځمکي دغټ والي اوفراخوالي مطابق عزت اومرتبه حاصله سي اوکه ووینې چي په دغه مځکه کي شینکي او نامعلوم بوټي دي او پیژني چي دا دده ملکیت دی نودلیل یي دا دي چي دي به مسلمان او دیندار وي اوپه خوب کي شین ګیاه اسلام دی. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك ووینې چي په مځکه کي شین ګیاه او بوټي دي او ځاي یي معلوم وی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به فضلیت اوایمانداري حاصله سي اوکه ووینې چي پر مځکه یي

بنیاد ایښي دی اوعمارت یي باندي جوړ کړي دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به په دین اودنیا کي فضلیت حاصل سي او داخرت ثواب به ورته حاصل سي اوکه ویني چي دده مځکه په ځنګل کي دبیابان په ډول ده او دهغه مځکه یې نه ده پیژندلي نو دلیل یي دا دي چي لیري سفر به کوي اوکه ویني چي مځکه کني اوخوري یي نودلیل یي دا دي چي دخاوري خوړلو په اندازه به مال حاصل کړي اوکه ویني چي په مځکه کي ښخ سوي دی اوهلته څه کنده یاڅاه نه وي او په دغه ځای کي غایب سوي دی نو دلیل یي دا دي چي مري به اوکه ویني چي مځکه یي دڅاه یا تهه خاني په ډول کیندلي ده نودلیل یي دا دي چي له فراخه ځمکي څخه تنګي ځمکي ته تللي دی نو دلیل یي دا دي چي دنیك کار څخه به په نامعلوم کار کي اخته سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي مځکه دده سره خبري کوي اوده ته دخیر اوصلاح خوشخبري اوروي نو دلیل یي دا دي چي په دنیا کي به ډیري نیکي کوي اودمرګ څخه وروسته به یي خلک په نیکي سره یادوي اوکه ویني چي مځکه پرده فراخه سوي ده نودا دده پر ډیر عمر او دژوند پرفراخي دلیل دی اوکه ویني چي دځمکي پیمایش کوي نودلیل یي دا دي چي په سفر به ځي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي مځکه کري نو دلیل یي دا دي چي په لوی شغل کي به مشغول سي او دښځي دطرف څخه به نفع حاصله کړي اوکه ویني چي خپله مځکه ابادوي نو دلیل یي دا دي چي دده کار به اباد او نیك وي اوکه مځکه خرابه ویني نو د دې تعبیر د اول خلاف دی او دده به دچا سره جنګ کیږي اوکه خپل ځان په مځکه کي کرل سوي ویني نو دلیل یي دا دي چي دده به دچا سره شراکت وي اویا به دیوي ښځي سره نکاح کوي اوکه ویني چي اوبه راغلي او مځکه یي غرقه کړه اوفصل یي تباه کړو نو دلیل یي دا دي چي دپاچا څخه به غم حاصل کړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مځکه لیدل په څلورو وجو وي. ۱: ښځه ۲: دنیا ۳: مال ۴: ولایت.

## زنان\ښځه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ځوانه ښځه خوشحالي ده او بوډۍ ښځه دنیا ده او د دې جهان شغل دی اوپه خوب کي ښځي لیدل په قدر دخوی پر ښایست او غټوالي او کمزور والي دلیل دی او ښه ښځه په خوب کي هغه ښځه وي چي معروفه اومعلومه وي اومعلومه ښځه درزق فراخي ده اوبد شکله اوکمزوري ښځه قحط او تنګي ده او خوشحالي او ښایسته ښځي د دې جهان مراد دی اوبوډي ښځه پر ګندګي نامرادي اوبد حالي دلیل لري. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که ښځه ویني چي د دې داسي عضو تناسل دی لکه څنګه چي دسړو وي نو دلیل یي دا دي چي د دې زوی به پیداسي اودغه زوی به یي په قوم اوخاندان کي مشر او سردار وي اوکه ځوانه ښځه ویني چي دابوډي سوي ده نو دا پر خیر او ددین اودنیا پر نیکي دلیل دی اوکه ویني چي د دې عضو تناسل دی او جماع کوي نو دلیل یي دا دي چي د دې عزت او بزرګي به کمه سي اوکه ښځه ویني چي دي دسړو کالي اغوستي دی اودغه ښځه

پرهیزګاره وي نو داپه خیر اونیکي دلیل دی اوکه فسادي وي نوپه شر اوفساد دلیل دی. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دښځو سره دوستي داهل دنیا لپاره دمال زیاتوالي دی اوداهل نیکي لپاره علم دی اودنا اشنا ښځي تعبیر داشنا ښځي څخه ښه دی اوکه ویني چي ځوك دده پر ښځه ظلم کوي نودلیل یي دا دي چي ددغه ښځي اهل به مالدار وي اوکه ویني چي دده ښځه دفساد لپاره په پردي سړي پسي تللي ده نو دلیل یي دا دي چي زوی به راوړي اوخیر او نفع به حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ښځه لیدل په شپږو وجو دی ۱: واده ۲: دنیا ۳: ددې جهان شغل ۴: دنعمت پراخي ۵: قحط ۶: مالداري.

## زنار (هغه تار چي هندوان او مجوسیان یي پر ملا یا غاړه تړي)

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي دده په لاس کي زنار دی نو دلیل یي دا دي چي په دین کي به کمزوري وي اوکه ویني چي زنار یي پر ملا تړلي دی که لیدونکي پرهیزګار نه وي نو کافر به سي اوکه پرهیزګار وي نو ددښمن څخه به انصاف حاصل کړي اوکه ویني چي زنار یي پریکړي اودباندي یي وغورزوي نو دلیل یي دا دي چي دبدوکارو څخه به توبه کوي او دالله تعالی طرفته به رجوع کوي او نیکه لاره به خوښوي.

## زنبور \ مچمچۍ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مچمچۍ بد ذاته اوبد سړی دی اوکه ویني چي دی مچمچي چیچلي دی نودلیل یي دا دي چي دبد سړی څخه به غم ورته ورسیږي. اوکه ویني چي پرده ډیري مچمچۍ جمع سوي دی نو دلیل یي دا دي چي په بدو خلکو به ګرفتار سي خاصکر که مچمچي چیچلي هم وي. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي دي مچمچۍ چیچلي دی نو دلیل یي دا دي چي دڅو بدو ښځو سره به یي کار وسي اوکه ویني چي مچمچۍ دده څخه چاپیره جمع سویدی نو دلیل یي دا دي چي په دغه ملك کي به بي قیاسه لښکر راځي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مچمچۍ لیدل په شپږو وجو دی ۱: شور ۲: بد سړی ۳: لښکر ۴: ملخ ۵: دښمن ۶: هلکان.

## زنبیل \ جولۍ

زنبیل ټوکري جولي دخیر کاسه ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ښځه یامینځه ده که ویني چي دده سره زنبیل دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به خادم ملاوسي اوبعض وا یي چي زنبیل په خوب کي مال او نعمت دی. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي زنبیل په خوب کي لیدل په اتو وجو دی ۱ عورت ۲ خادم ۳ مینځه ۴ ددین مضبوطي ۵ دبدن درستي ۶ ډیر عمر ۷مال اونعمت ۸ خیر اوبرکت.

## زنجبیل \ سونډ \ شونډ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سونډ لیدل پر غم اوفکر دلیل دی او د دې خوړل ضرر اونقصاني وي. اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي سونډ پر حکمت اوبحث دلیل دی اوپه خوب کي سونډ لیدل اوخوړل پر فایده نه ورکولو دلیل دی.

## زنجیر\زنځیر

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي زنځیر پر معصیت اوګناه دلیل دی اوکه ووینې چي زنځیر مات سو او ده وغورزوی نودلیل یې دادي چي دګناه څخه به توبه کوي او دالله تعالی طرفته به رجوع کوي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي دده په څټ کي زنځیر دی نو دلیل یې دا دي چي دخلکو په مال کي به لاس وهنه کوي اوځان به دحرامو څخه بچ کوي اوکه ووینې چي دده په پښه کي زنځیر دی نو دلیل یې دا دي چي دخلکو په کورونو کي به ګناه کوي او په خوب کي زنځیر لیدل ګنهګار سړی دی.

## زنخ\زنه

زنه په خوب کي دکور سردار اوډیر عقلمند دی که ووینې چي دده زنه غټه سویده نو دلیل یې دا دي چي دکور والاوو لپاره به ذلیله سي، جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي څوك دده پر زنه باندي زنه وهي نو دلیل یې دادي چي دسرادر خاندان سره به دده خبري او بحث راسي او دده څخه به خفه سي. اوکه ووینې چي دده دزني څخه وینه وتلي ده نو دلیل یې دا دي چي ده ته به دخاندان دمشرانو څخه نقصان رسیږي اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي دده په کار اوکسب کي به نقصان راسي.

## زندان\قید خانه\جیل خانه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي دی په قیدخانه کي دی اوقیدیان یې نه وي لیدلي نو دا دده پر هلاکت دلیل دی اوکه قیدخانه معلومه وي نو پر غم اوفکر دلیل دی اوکه ووینې چي دقیدخانې بیرې دده په پښه کي پرته ده نو دلیل یې دا دي چي دده کار به تر ډیري مودي پوري وي اوپه غم اوفکر کي به وي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که خوب لیدونکي پرهیزګار نه وي نو ده ته به ددین په شغل کي غم اوفکر حاصل سي اوکه ووینې چي یو سړی لره تلوار لګول سوي دی او روان دی نو دلیل یې دا دي چي دده بندکار به پوره سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي معلومه قیدخانه لیدل مراد حاصلول دی او عاقبت به یې نیك وي دالله تعالی فرمان دی (قال رب السجن احب الی مما یدعونني الیه، سورة یوسف: ۳۳)

ترجمه: عرض یې وکړي چي اي زما ربه دکوم شي طرفته چي دوي ما غواړي دهغه څخه قیدخانه ماته خوښه ده. اوکه قیدخانې نامعلومه وي نو هغه به قبر وي لکه څنګه چي یوسف علیه السلام ویلي دی (السجن قبر لاحیآء ومنزل البلوی وتجربة الاصدقآء وشماتة الاعداء) ترجمه: په خوب کي قید خانه دژوندو قبردی اودبلا منزل دی او ددوستانو ازمآیش اوددښمنانو خوشحالي ده اوکه ووینې چي قیدخانې ته تللی دی او ژرځني راوتلي دی نو دلیل یې دا دي چي پوره مراد به حاصل کړي. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي قید خانه قبر دی.

## زنګله\ګنګرو\د لاس بنګړی

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ګنګرو جنګ دی اوکه ووینې دده سره ګنګرو دی

نو دلیل یې دا دې چې دچا سره به جنګ کوي اوکه ویني چې یو ملګري ده ته دسرو یا سپینو زرو ګنګرو ورکړې دی نو دلیل یې دا دې چې دیو مالدار سره به جنګ کوي اوکه ویني چې ګنګرو دسپینو زرو یا دپیتلو دی نو دلیل یې دا دې چې دده به دعام سړي سره جنګ کیږي.

## زهار (تر نامه لاندې دوریښتانو ځای)\سپوخسته \زیر ناف

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ویني چې دده دسپوختې ویښته نسته نو دلیل یې دا دې چې دده کار به بند سي اوکه ویني چې دده په سپوخته کې ناجوړې یا درد دی نو دلیل یې دا دې چې دتکلیف مطابق به خوب لیدونکي ته زحمت رسیږي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې سپوخته لیدل په دوو وجو ده. ۱: مال ۲: ښځه اوڅه کمې یازیاتې چې په سپوخته کې وي دهغه تعبیر به ښځې او دده مال ته رجوع کوي.

## زهر

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې زهر خوړل حرام مال اوباطل اوناحقه خون دی اوکه ویني چې دزهرو خوړلو سره دده بدن پړسیدلی دی نو دلیل یې دا دې چې حرام مال به حاصل کړي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوک ویني چې دده ټول بدن دزهرو څخه ډك دی نو دلیل یې دا دې چې یو کاربه کوي په هغه کې به سخت حرصناکه وي اوبعض اهل تعبیر بیان کړې دی چې خبره به کوي او مخ ته به ځي. اوکه ویني چې زهرو دده بدن ته تکلیف رسولی دی یا پړسیدلي دی نو دلیل یې دا دې چې دهغه مطابق به ورته غم اوفکر رسیږي اوکه ویني چې زهر یې خوړلي دی نو دلیل یې دا دې چې پرچا به غصه کوي.

## زهر (تلخ)\تریخی

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که ویني چې دی دخلکو تریخې خوري نو دلیل یې دا دې چې غصه به کوي اوکه ویني چې دپټو تریخې یې خوړلې دی نودلیل یې دا دې چې بدخویه او غصه ناك به وی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوک ویني چې دخلکو په تریخو دده بدن خراب سوي دی دلیل یې دا دی چې خلکو ته به تکلیف ورکوي اوکه ویني چې دده بدن دحیوانانو په تریخو خراب سوي دی دلیل دا دی چې دحرامو کالې به اغوندي اوکه ویني چې دده بدن په تریخې ورکولو سره خراب سوی دی نو دلیل یې دا دې چې دبدخویه اونالایقه سړي سره به دوستي کوي.

## زوبین\نیزه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې که څوك ویني چې دده په لاس کې نیزه ده اودنیزې څخه علاوه ورسره نور څه نسته نو دلیل یې دا دې چې دده به زوی پیداسي اوکه ویني چې دنیزې سره نوره وسله هم ورسره ده نو دلیل یې دا دې چې دپاچا څخه به خیر اونفع ویني او پر دښمن به کامیابه سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي چې که څوك ویني چې ده نیزه ویشتلې ده نو دلیل یې دا دې چې لویه خبره به کوي اوکه ویني چې څوک یې په نیزه زخمي کړې دی دلیل دی چې پرچا به د درواغو تهمت لګوي.

## زیتون\روغن زیتون\دزیتون تیل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي زیتون غم اوفکر دی اوکه وویني چي دده سره زیتون دی یا چا ورکړي دی دلیل یي دا دی چي دهغه په اندازه به غم اوفکر ورته وي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي دزیتون تیل پر خیر اوبرکت دلیل دی اوکه وویني چي دزیتون تیل صفا کوي اوخوري یي دلیل دی چي دهغه په اندازه به غم اوفکر ورته وي. جابر مغربي ویلي دی چي که څوك وویني چي زیتون ترخه نه دی او ډوډي یي ورسره خوړلي ده نو دلیل یي دا دي چي ده ته به په محنت سره نفع حاصله سي.

## زیره باج\مصالحه داره چکني

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مصالحه داره چکني که تروه نه وي او دخوړوالي طرفته مایل وي نو په خیر اونفع دلیل دی اوکه دتریو والي طرفته مایل وي نو پر غم اوفکر دلیل دی اوکه په دي کي زعفران هم وي نو پر ناجوړي دلیل دی اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي مصالحه داره چکني خوړل پر غم اوفکر دلیل لري.

## زیلو\غالۍ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي هواره سوي غالي پرډیر عمر او دکار په پوره کیدو دلیل دی او څونه چي غالي اوږده وي ښه وي اوکه غالي رانغښتي وي نو دعمر په نقصان دلیل دی اوکه وویني چي پر کوچني غالي ناست دی او هغه دده په کښینستو سره فراخه سوي ده نو دلیل دی چي ژوند او روزي به باندي فراخه وي اوکه غالي یي پخپل لاس رانغښتي وي اودکور په ګول کي یي ایښي وي نو دلیل یي دا دي چي خپل عزت اومال به تباه کوي اوکه وویني چي ده غالي پر ملا ایښي ده نو دلیل یي دا دي چي دده عمر ختم سوي دی. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوک وویني چي دده سره شینه اوپاکه غالۍ ده نو دلیل یي دا دي چي پر ده به نعمت فراخ سي اوکه وویني چي زړه او څیري غالي ده نو دلیل یي دا دي چي پر ده به دژوند تنګي وي اوکه وویني چي نامعلومه غالۍ یي اچولي ده نو دلیل یي دا دي چي څه دده سره وي هغه به ځني ولاړ سي اوکه وویني چي ده ته نوي غالي ملاو سوي ده او دده په کور کي اواره سوي وي نو دلیل یي دا دي چي دولت اومرتبه به حاصله کړي او دده عمر به زیات سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي غالي لیدل په شپږو وجو دی. ۱: دکار جوړیدل ۲: ډیر عمر ۳: فراخه روزي ۴: عزت اودولت ۵: دژوند دشواري ۶: ګناه.

## زیره\زنګي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ډیره زیره وویني نو ددین اودنیا پر نفع دلیل دی او جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي لږ زیره وویني نو لږ نفع ده.

## زین\کته

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي زین که دحیوان پر ملا نه وي نو ښځه ده اوکه د حیوان پر ملا یي وویني نو ددې دښه اوبد حکم په سور دی. اوکه وویني چي زین یي واغوستي

يا چا ورکړي نو دليل يي دا دي چي مينځي به اخلي يا به ښځه کوي اوډير مالداره به وي او ممکنه ده چي دچا وراثت به حاصل کړي اوکه ويني چي زين څيري سو نو دليل يي دا دي چي دده ښځه به مري يابه ناجوړه سي.

## [س]

### سار (يو مرغه دی)

سار يو خوش اوازه مرغه دی که په خوب کي ويني چي سار دده سره دی نو ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي پرمکار سړی دليل دی چي ډير سفر به کوي. اوکه ويني چي ده سار نيولي دی يا چا ورکړي دی نو دليل لي دا دي چي دمسافر سړی سره به دده صحبت وي اوکه ويني چي ده دسار غوښه خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي څونه يي خوړلي وي دهغه په اندازه به ورته خير او نفع رسيږي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي سار ليدل کافر سړی ليدل دی چي ډير درواغ وايي اوکه ويني چي ډير سارونه پر ده جمع سوي دی نو دليل يي دا دي چي په کافرو کي به گرفتار سي.

### ساطور\چاړه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چاړه بهادر او زړور سړی دی اوکه په خوب کي ويني چي دده سره چاړه ده نو دليل يي دا دي چي دده به دداسي سړی سره صحبت وي دکوم څخه چي به خير اونفع ويني اوکه ويني چي چاړه ماته سوه يا ورکه سوه نو دليل يي دا دي چي دداسي سړی څخه به جلا سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چاړه داسي سړی وی چي مشکل کار دهغه په وجه اسانه کيږي خاصکر که غټه چاړه وي.

### ساعد\مړوند

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي دلاس مړوند په خوب کي دوست اومعتبر شريك دی اوکه ويني چي دده مړوند قوي دی نو دليل يي دا دي چي ده ته به ددوستانو او شريکانو څخه خير او نفع ورسيږي اوکه ويني چي دده مړوند مات سوي دی نو دليل يي دا دي چي ددوستانو او شريکانو څخه به جلا سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي دده پر مړوند ډير وريښته دی نو دليل يي دا دي چي دوستان به ځني جلا سي اوغمجن به سي اوکه ويني چي ده دخپل مړوند څخه وريښته خريلي دی نو دليل يي دا دي چي دقرض څخه به خلاص سي.

### ساق\پنډۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پنډۍ مال اومعيشت دی اواهل تعبير بيان کړي دی چي پنډۍ دخلکو لپاره عزت اومرتبه ده. که ويني چي دده پنډي قوي ده دليل يي دا دي چي دده کار به ښه وي اوکه دده پنډي ماته سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده پر بدن به بدي وي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پنډي ليدل دسړو لپاره ښځه او د ښځو لپاره خاوند دی اوکه خپلي پنډي ديو بل سره يو ځاي ويني نو دا دخوف او د هلاکت دليل دی اوکه

ویني چي دده پر پنډي ډیر ویښتان دی نو دلیل یي دا دي چي قرضدار به سي اوکه ویني چي دپنډي څخه یي وریښته خریلي دی نو دلیل یي دا دي چي دي به دقرض څخه فارغ سي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي پنډي لیدل په څلورو وجو دی ۱: مال ۲: معیشت ۳: ډیر عمر ۴: دسړو لپاره ښځه او د ښځو لپاره خاوند.

## سایه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سایه بزرګي اوهیبت دی او دپاچا سایه هم په تعبیر کي پاچاهي ده او ددیوال سایه بزرګ سړی دی اودبي میوو درختي سایه په فساد دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك چي ویني چي په یوځاي کي ترسایي لاندي ناست دی نودلیل یي دا دي چي دده مرګ نزدی دی دالله تعالی فرمان دی (الم تر الی ربك کیف مد الظل ولو شآء لجعله ساکنا، سورة الفرقان: ٤٥) ترجمه: ته دخپل رب دقدرت طرفته نه ګوري چي ده سایه څونه لویه پیدا کړي ده اوکه غوښتي یي نوهغه به یي ایساروله. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دسایي لاندي کښینستل په پنځو وجو وي ۱: بزرګي ۲: هیبت ۳: پناه ۴: نفع ۵: مرګ.

## سابیان\څپر

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي څپر په خوب کي بد پاچا دی که ویني چي ترڅپر لاندي ناست دی نو دلیل یي دا دي چي دداسي پاچا خدمت به کوي اوکه ویني چي څپر پرده را ایله سو او ده ته یي تکلیف ونه رسوي نو دلیل یي دا دي چي پاچا به غصه باندي کوي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دي چي که ویني چي څپر دپشم یا دسوترو دی اودهغه رنګ سپین یا شین دی نو دلیل یي دا دي چي دظالم پاچا خدمت به کوي.

## سپر\ډال

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ډال په لاس کي لرل دلیل دی چي دپاچا دخلکو څخه به ورته پناه وي اوکه د ډال سره نوره وسله هم ویني نو پر داسي سړی دلیل دی چي دوستان او ورونه به دبدي څخه په حفاظت کي ساتي اوکه ویني چي ډال یي پر مځکه ایښي دی نو دلیل یي دا دي چي دده به دیو فاضل سړی سره صحبت وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ډال لیدل په شپږو وجو وي. ۱: ورور ۲: دوست ۳: قوت ۴: زوی ۵: امن ۶: د ډال د بزرګي مطابق پشت پناهي.

## سپرز\توری

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي توري لیدل مال او واده دی اوکه ویني چي دده سره دغوایي توري دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به په هغه کي څه حاصل سي اوکه ویني چي دده سره توري دی نو دلیل یي دا دي چي دبزرګ سړی څخه به ورته مال حاصل سي اوکه ویني چي دده سره دځنګلي حیوان توري دی نو دلیل یي دا دي چي دمسافر سړی څخه به ورته

مال حاصل سي اوکه ووینې چې دده سره ډیر توري دی نو دلیل یې دا دي چې دهغه په اندازه به دقلعي مال حاصلوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې هر قسم توري لیدل مال دی او دکومو څناورو غوښه چې حلاله ده دهغه توري لیدل حلال مال دی اودکوم حیوان غوښه چې حرامه ده دهغه توري لیدل حرام مال دی.

## سبزه \ شین ګیاه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې شین ګیاه دین دی خاصکر که په خپل وخت کې وي که څوك په خوب کې ووینې چې دده په مځکه کې شینکي دی نو داپه صلاح اوپاك دیني دلیل دی اوکه ووینې چې دده په مځکه کې نامعلوم واښه دی او دي هغه نه پیژني او هغه ته په تعجب سره ګوري اوپیژني چې دغه مځکه دده ملکیت دی نو داتول دده په دین او دیانت دلالت کوي اوکه ووینې چې په دغه مځکه کې معلوم واښه دی نو دا دده پر مال او دنعمت پر فراخي دلیل دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې شین ګیاه که په خپل وخت کې وی نو دده پر زهد او پرهیزګاري دلیل دی. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې شین ګیاه ښه ده اوکه ووینې چې په شین ګیاه کې مقیم دی نو دلیل یې دا دي چې ددین په لاره کې به قایم سي اوکه ووینې چې مړي په شین ګیاه کې مقیم دی نو دده پر عاقبت او د اخرت په ثواب دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چې که شین ګیاه پاکه اولویه ووینې اوپیژني چې دا دده ملکیت دی نو پر پاك دین پرهیزګاري او دده پر دیانت دلیل دی اوکه شین ګیاه ژړه اومړاوي ووینې نو د دې تعبیر داولني خلاف دی اوکه ووینې چې په شین ګیاه کې دی او دا دبل چا ملکیت وي نو دلیل یې دا دي چې دده صحبت به دپرهیزګارو او دیندارو خلکو سره وي اوکه د دې خلاف ووینې نو دده صحبت به دخرابو خلکو سره وي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې شین ګیاه لیدل په څلورو وجو دی ۱: سلامتي ۲: دین ۳: پاك اعتقاد ۴: پرهیزګاري.

## سبل \ دسترګو ناجوړي

سبل دسترګو یوه ناجوړي ده ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك ووینې چې دده په سترګو کې سبل ناجوړي ده چې د دې په وجه لیدلي نه سي نو دلیل یې دا دي چې دتاریکي مطابق به دده په دین کې نقصان وي اوکه سترګې یې اسماني رنګې وي اوپه هغه کې سبل وي نو دلیل یې دا دی چې دبدعت پرلار به وي اوکه ووینې چې په سرو سترګو کې یې سبل دي نو دلیل یې دا دي چې زوی به یې ناجوړه سي اوکه ووینې چې دسترګو څخه یې سبل ایستلي دی نو دلیل یې دا دي چې توبه به وکړي اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چې زوی به یې دناجوړي څخه ښه سي اوکه په سفر کې وي نو په سلامتي سره به واپس راسي.

## سبو \ چاټی \ ماټی \ منګی \ سړوبی

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې چاټي منافق سړی دی دچا په لاس چې مال ورکیږي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې چاټي مینځه یا خادم دی که ووینې چې نوي چاټي یې اخیستي ده نو دلیل یې دا دي چې مینځه به اخلي یا به غلام حاصل کړي

اوكه ووينې چې چاښې وركه سوي ده يا ماته سوي ده نو دليل يې دا دي چې دده مينځه يا خادم به مري اوكه ووينې چې دى په چاښې كې سپور سويدى نو دليل يې دا دي چې دده مينځه يا خادم به ناجوړه سي اوكه ووينې چې چاښې دپاكو اوبو څخه ډكه ده نو دليل يې دا دي چې دمينځې يا خادم څخه به نفع حاصلوي. جعفرصادق رحمة الله عليه ويلي دي چې په خوب كې چاښې ليدل په پنځو وجو دي. ۱: منافق مزدور ۲: ښځه ۳: خادم ۴: مينځه ۵: ددين مضبوطي.

## سبوس \ بوس \ پروړ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چې بوس په خوب كې ليدل پرمحتاجي دليل دى كه په خوب كې ووينې چې يو سړى دبوسو ډوډې خوري نو دليل يې دا دي چې په دغه ملك كې به قحط او تنګي راسي اوكه ووينې چې بوس يې دكور څخه دباندې غورزولې دى نو داپر نعمت اوفراخي دليل دى. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چې په خوب كې بوس ليدل په دروو وجو دي ۱: محتاجي ۲: قحط ۳: د ژوند تنګي.

## سپيداب \ سپيني اوبه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چې په خوب كې سپيني اوبه ليدل پر غم اوفكر دليل دى كه ووينې چې دده سره سپيني اوبه دي يا چا وركړې دي نو دليل يې دا دي چې دچاسره به بحث كوي او هميشه به غمجن وي اوكه ووينې چې دده پر مخ سپيني اوبه دي نو دليل يې دا دي چې دهغه په قدر به ددنيا سامان حاصل كړي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دي چې سپين مخې خدمتګار دى او بعض اهل تعبيرو بيان كړي دي چې دكور مالك دى او ددې ښه اوبدكيدل دكور دمالك طرفته رجوع كوي.

## سپيده مهره \ كنجكه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چې كه څوك په خوب كې كنجكه ووينې نو دليل يې دا دي چې دده پټ راز به ښكاره سي اوكه ووينې چې دكنجكو سره بازي نه سي كولاى نو دليل يې دا دي چې نه پيژندونكي كار به كوي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دي چې په خوب كې كنجكه ليدل دسړيو لپاره غم اوسختي او دښځو لپاره رسوايي اوراز ښكاره كيدل دي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چې په خوب كې كنجكه ليدل په څلورو وجو دي ۱: خراب شي ۲: درواغ خبره ۳: دراز ښكاره كيدل ۴: غم او سختي.

## ستاره \ ستارګاه \ ستوري

دانيال عليه السلام ويلي دي چې په خوب كې ستوري په بزرګانو اومالدارانو اولمر پرپاچا اوسپوږمۍ پر وزير دليل دى. كه په خوب كې زحل ستوري ووينې نو دليل يې دا دي چې دده كار به دكلي والاو سره وي او دهغوي څخه به ورته مال اونفع حاصله سي اوكه مشتري ستوري په خوب كې ووينې نو دليل يې دا دي چې دده كار به دسردار مصلح پرهيزګار اوخيرمند سره راسي اوكه مريخ ستوري ووينې نو دده كار به دښايسته اوبارعبه ښځو سره او دخادمانو سره راسي او دهغوي څخه به خير اوارامي حاصله كړي اوكه عطارد ستوري ووينې نو دده صحبت به

دهوښيار اوخبر سړی سره وي اودهغه څخه به فايده حاصله کړي اوکه ويني چي بعض ستوري دده سره خبري کوي نو دليل يي دا دي چي بزرګي اومرتبه به حاصله کړي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي دڅلورو ستورو څخه لکه عيوق عقيق سهيل کليل چي دکومو مشرکانو خلک عبادت کوي چي يو پکښي په خوب کي ويني نو دليل يي دادي چي دده صحبت به دمشرکانو سره وي اوکه ويني چي روښانه ستوري پر مځکه را ايله سوي دی اوورك سوي دی نو دليل يي دا دي چي په دغه ملك کي به يو ښوك عالم ددنيا څخه رخصت سي دا الله تعالی فرمان دی (وبالنجم هم يهتدون، سورة النمل: ١٦) ترجمه: اودغه خلک پر ستورو دهدايت لاره حاصلوي اوکه ويني چي ستوري ګرځي نودليل يي دا دي چي په بزرګانو کي به فتنه اوفساد راسي اوکه ويني چي ستوري يي په لاس کي نيولي دی نو دليل يي دا دي چي دده به زوی پيداسي اوهغه به دپاچا مقرب وي اوکه پخپل کور کي ستوري ويني نو دليل يي دا دي چي دده به زامن ډير وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ښوك ويني چي ستوري داسمان څخه ګډوډ سوي دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا اود رعايا ترمينځ به تفرق راسي اوکه ويني چي سعد ستوري په يو ځاي کي جمع سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده کار به نيك وي اوکه ستوري دده دکور څخه وتلي وي نو دليل يي دا دي چي دده زامن به دپاچا مقرب سي اوکه ويني چي ستوري دده تابعدار سوي دی نو دليل يي دا دي چي پاچاهي به حاصله کړي اوکه ويني چي ستوري خبري کوي نو دليل يي دا دي چي پاچا دوخت به منصف وي اوکه د دې خلاف ويني نو پاچا به جابر او ظالم وي اوکه ويني چي ده ستوري پخپل لستوڼي کي ايښي دی نو دليل يي دا دي چي ډير مال به حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که ښوك ويني چي په ستورو کي يو ستوري دده پربرابر حرکت کړي دی او دده په غيږ کي را ايله سوي دی نو دليل يي دا دي چي دده زوی به عزتمند او دمرتبي خاوند وی او که ويني چي دستورو عبادت کوي نو دليل يي دا دي چي ديو بزرګ ياعالم خدمت به کوي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي هغه ستوري ليدل په کومو سره چي خلک پر ځنګلي لاره معلوميږي پرخير او نفع دليل دی اودکومو ستورو چي خلک عبادت کوي دهغه ليدل پربدي اونقصان دليل لري. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ستوري ليدل په نهو وجو دی. ۱: فقهاء ۲: علماء ۳: خلفاء ۴: وزيران ۵: وران ځای ۶: خزانه ۷: جنګيالي خلک ۹: شاګردان.

## حکايت

په بغداد کي يو سړی په خوب کي وليدل چي يو روښانه ستوري پر مځکه را ايله سوي دی اهل تعبير بيان کوي چي يو عالم به ددنيا څخه ختميږي او بيا په دغه هفته کي امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله د دې فاني دنيا څخه رخصت سو.

## ستون\ستنه\پيلر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ستنه دخوب ليدونکي لپاره دولت مند اوعزتمند

سړی دی که په خوب کي ويني چي دده سره قوی ستن ده نودليل يي دا دي چي دعزتمند سړی ځخه به ورته مال حاصل سي اوکه ويني چي دده دکور ستنه را ايله سوي ده يا ماته سوي ده نو دا دده پر هلاکت دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ستن اسلام دی اوکه ويني چي ستن را ايله سوی ده نو دليل يي دا دي چي دکور مالك به هلاک سي اوکه ويني چي دده دکور ستنه نرۍ ده نو دادده ددين پر کمزوي دليل دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ستنه ليدل په پنځو وجو وي. ۱: دولت مند ۲: مرگ ۳: دبدبي والا سړی ۴: په کارولو کي قوت ۵: ولايت.

## سجاده\ځای نماز\جای نماز

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ځاي نماز ليدل ښه والي دی اوکه ويني چي په جماعت کي پرځاي نماز ناست دی نو دليل يي دا دي چي حجاز ته به په سفر ځي دالله تعالی فرمان دی (واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى، سورة البقرة: ۱۲۵) ترجمه: اومقام ابراهيم دلمانځه ځاي جوړ کړه خاص که ويني چي په جماعت کي يي اعتکاف هم کړي دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي ځاي نماز دريښم يا دسوترو دی نو دليل يي دا دي چي په اطاعت اوعبادت کي به مشغول سي اوکه ويني چي دده ځاي نماز سوزلي دی نو د دې تعبير داولني خلاف دی اوکه ويني چي دده ځاي نماز دپشميني دی نو دليل يي دا دي چي دده عبادت به دريا کاري وي.

## سجده

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي الله تعالی ته يي سجده کړي ده نو دليل يي دا دي چي پربزرگ اومالدار سړی به فتحمند سي اوکه وينی چي دالله تعالی ځخه ماسوا بل چاته يي سجده کړي ده نو دليل يي دا دي چي دزړه مرادبه يي پوره نه سي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي سردار ته سجده کوي نو دليل يي دا دي چي دپاچا ځخه به ورته غم ورسيږي دالله تعالی فرمان دی (افتعبدون من دون الله ما لا ينفعكم شيئا ولا يضركم، سورة الانبياء: ٦٦) ترجمه: ايا تاسو دغيرالله عبادت کوي چي تاسو ته نه نفع درکولاي سي اونه نقصان.

## سختن\تلل\تول کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي که څوك ويني چي دده په لاس کي تله ده او څه باندي تلي نو دليل يي دا دي چي په خلکو کي به انصاف کوي اوکه ويني چي صحيح تول کوي نو دليل يي دا دي چي په ريښتيا به حکم کوي دالله تعالی فرمان دی (وزنوا بالقسطاس المستقيم، سورة الشعراء: ۱۸۲) ترجمه: او په صحيح تلي سره وزن کوي. که ويني چي صحيح تول کوي که اهل علم وي نو قاضي به سي اوکه عالم نه وي نو دليل يي دادي چي دقاضي محتاج به سي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي صحيح تول نه کوي نو تعبير يي داولني خلاف دی.

## سخن\خبري

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي خبري کول او اوریدل دژبو په لحاظ مختلف تاویل لری که ووینی چي په عربی ژبه کي خبري کوي نو دلیل یي دا دي چي دبزرګانو څخه به عزت اومرتبه حاصله کړي او دحضور صلی الله علیه وسلم احادیث شریف به اوري اوکه په فارسي ژبه کي یي خبري کړي وي یا یي اوریدلي وي نو دبزرګانو په صحبت کي به اوسیږي او دهغوي څخه به نیکي حاصلوي اوکه په عبراني ژبه کي یي خبري کړي وي یا یي اوریدلي وی نو دلیل یي دا دي چي وراثت به حاصل کړي اوکه په هندي ژبه کي یي خبري وکړي یا واوري دلیل دی چي دبي اصله اوبد سړی سره به یي کار راسي اوکه په ترکي ژبه کي خبري کوي یایي اوري دلیل دی چي دکلي والاوو په صحبت کي به وي اوکه په خوارزمي ژبه کي خبري وکړي یا واوري دلیل دی چي خرابي خبري به اوري اوکه په سقلابي ژبه کي خبري وکړي یا واوري دلیل دی چي دده کار به د بي انصافه سړی سره راسي اوکه په یوناني یا پښتو ژبه کي خبري وکړي یا واوري دلیل دی چي په عقلي کارونو کي به مشغوله سي اوکه په رومي ژبه کي خبري وکړي یا واوري دلیل دي چي ده ته به دکم عقله دصحبت څخه غم اوفکر ورسیږي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك ووینی چي په ټولو ژبو کي خبري کوي او اوري نو که خوب دخیر اوصلاح وي نو تعبیر یي صلاح اوخیر دی اوکه دشرارت اوفساد خبري کوي نو تعبیر یي شر اوفساد دی. اوکه ووینی چي پخپلو اندامونو کي دیو سره خبري کوي نو دلیل یي دا دي چي پرخپل ځان به ریښتیني ګواهي ورکوي دالله تعالی فرمان دی (یوم تشهد علیهم السنتهم وایدیهم وارجلهم بما کانوا یعملون، سورة النور: ۲٤) ترجمه: اوپه کومه ورځ چي به ددوي ژبي او لاسونه اوپښي ددوي دعملونو ګواهي ورکوي او دکومو اندامو سره چي به خبري کوي دلیل دی چي پر بي انصافي او ظلم به وي.

## سداب (یوه دوا)

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلی دي چي سداب په خوب کی جنګ دی که ووینی چي دده سره سداب دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي دچا سره به جنګ کوي اوکه ووینی چي سداب یي خوړلي دی نو هم یي دغه تعبیر دی. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي سداب ژړ سوي دی او دي یي خوري نو دلیل یي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه ووینی چي سداب یي چا ته ورکړي دی یا یي دکور څخه دباندي غورزولي دی نو دلیل یي دا دي چي دجنګ څخه به خلاصون حاصل کړي او سداب په خوب کي لیدل غیر مفید دی.

## سر

دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي سر لیدل دقوم سرادري وي اوکه ووینی چي پري سوي سر یي اخیستي دی نو دلیل یي دا دي چي دسردار سره به دوستي ساتي او دهغه څخه به خیر اونفع حاصله کړي اوکه ووینی چي دتوري دزخم څخه بغیر یي دده سر دبدن څخه جلا کړي دی

که قرضداروي نو دقرض څخه به خلاص سي اودغم څخه به خوشحاله سي که داخوب غلام ووېني نو دليل يي دا دي چي ازاد به سي اوکه ناجوړه يي ووېني نو شفا به حاصله کړي اوکه سردار يي ووېني نو ملک به حاصل کړي اوکه ازاد اومالدار داخوب ووېني نو ښځه به کوي.
ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ډېر پري سوي سرونه ووېني نو دليل يي دا دي چي په دغه ځاي کي به ډېر سرداران جمع سي اوکه ووېني چي ددغه سرونو څخه يي وېښته يا پوست يا ماغزه ايستلي دی نو دليل يي دا دي چي ددغه سرادارانو څخه به مال حاصل کړي اوکه ووېني چي دسرونو پوست يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي دعزتمندو او سردارانو څخه به مال حاصل کړي اوکه ووېني چي دخلکو دسرونو پوست خوري نو دليل يي دا دي چي يو رئيس به پر ده غصه کوي اوکه ووېني چي ديو معلوم سړی سر يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي خپله سرمايه به خوري اوکه ووېني چي دځنګلي حيوان سر يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي مال به حاصل کړي اوکه ووېني چي دنامعلوم سړی سر يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي دي به دچا سرمايه خوري اوکه ووېني چي دچرګ سر يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په اندازه به دپاچا مال خوري اوکه ووېني چي يو سړی ده ته يو سر يا ډېر سرونه راوړي دی نو دليل يي دا دي چي ددغه ټولګي سردار به سي اوخير اونيکي به ځني حاصله کړي اوکه په خوب کي دښځي سر ووېني نو دليل يي دا دي چي دمالدارو ښځو څخه به نفع حاصله کړي اوکه ووېني چي سر يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي عمر به يي زيات سي او حلال مال به خوري اوکه ووېني چي دغوايي سر يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي په دغه کال به مال او نعمت حاصلوي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي خپل سر غټ ووېني نو دليل يي دا دي چي عزت اومرتبه به حاصله کړي اوکه ووېني چي دده دوه سرونه دی نو دليل يي دا دي چي دده کار به قوي سي اوکه خپل سر لڅ ووېني دليل دی چي دخپل کار څخه به معزول سي اوغمجن به سي اوکه پرخپل سر زخم ووېني چي وېني ځني بهېږي نو دليل يي دا دي چي دچا سره به يې جنګ وسي اوکه ووېني چي دده دسر څخه ماغزه راوتلي دی اوپه مځکه را ايله سوي دي نو دليل يي دا دي چي دده دلاسه به سرمايه ولاړه سي اوکه ووېني چي ماغزه يي بيا پرخپل ځاي ايښي دی نو دليل يي دا دي چي بيا به مال حاصل کړي اوکه ووېني چي دده سر مات سويدی نو دليل يي دا دي چي نيک کار به کوي اوکه ووېني چي دده په لاس کي پري سوي سر دی نو دليل يي دا دي چي ډېر مال به حاصل کړي.
اوکه ووېني چي دده سره نيکي خبری کوي نو دليل دی چي نيکو کار به سي اوپه کارونو کي به انصاف کوي اوکه خرابي خبری کوي نو د دې تعبير داول څخه خلاف دی اوکه خپل سر دوه ټکړي ووېني په داسي شان سره چي نيم يي په راسته لاس کي دی اونيم په چپه لاس کي نو دليل يي دا دي چي دده مور اوپلار به مري اوکه ووېني چي خپل سر يي په لاس کي دی نو دليل يي دا دي چي دسردار څخه به خير او نفع حاصله کړي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووېني چي دده سر دهاتي يا فيل دسر په ډول سوي دی نو دليل يي دا دي چي ملك به

حاصلوي اوکه ويني چي دده سر داس دسر په ډول سوي دی نو دليل يي دا دي چي دفساد اوحرامو طرفته به مايل وي اوکه ويني چي دده سر داس دسر په ډول سوي دی نو دليل يي دا دي چي دپاچا څخه به مال حاصل کړي اوکه ويني چي دده سر دخره دسر په ډول دی نودليل يي دا دي چي دخپل بخت څخه به نصيب حاصل کړي اوکه ويني چي دده سر دغوايي دسر په ډول دی نو دليل يې دا دي چي دمخلوق په نزد به خوار وي اوکه ويني چي دده سر دبوزي دسر په ډول دی نو دليل يي دا دي چي پرده به جهالت غالب راځي اوکه خپل سر دزمري دسر په ډول ويني نوحکومت به حاصلوي او دښمن به مغلوب کړي اوکه خپل سر دسپي دسر په ډول ويني نو ذلت او خواري به حاصلوي اوکه خپل سر دخنزير دسر په ډول ويني خداي مو دي وساتي په خپل فضل او کرم سره، دده ميلان به دکفر طرفته وي.

اوکه ويني چي دده سر دبلورو په ډول سوي دی نو دا دده په هلاکت دليل دی اوکه ويني چي دده سر دسروزرو يا دسپينو زرو سوي دی نو دليل يي دا دي چي مال به حاصل کړي اوکه ويني چي دده سر داوسپني يا دکانړي سوي دی نو دليل دی چي د بد سردار خدمت به کوي اوکه و ويني چي دده سره دلرګي دی نو دليل لي دا دي چي دده مرګ نژدی دی اوکه ويني چي دده سر دټيکري دی نودليل يي دا دي چي دمسخراچي سړی خدمت به کوي اوکه خپل سر دچرګانو دسر په ډول ويني نو دليل دی چي په سفر به ځي اوکه خپل سر پري سوي ويني، نو دليل دی چي ده ته به پهانسي ورکړه سي اوکه خپل سر دبدن څخه جلا سوي ويني او ده بيا پرخپل بدن ايښي دی او جوړ سوي وی نو دليل دی چي دشهيدانو مرتبه به حاصلوي اوکه ويني چي دده سره سردی او دده ښځه حامله وي نو دليل يي دا دي چي زوی به يي پيداسي.

اوکه ښځه خپل سر خريل سوي ويني نو دليل دی چي د دې خاوند به مري اوکه ويني چي سره غوښه يي دسر خوړلي ده نو دليل يي دا دي چي مال به حاصل کړي اوکه ويني چي سور کړي سر يي اخيستي دی ياچا ورکړي دی او ده خوړلي دی نو درئيس څخه به فايده پورته کوي.

جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي دسور کړه سوي سر تعبير رئيس يا سردار دی او که ويني چي کچه سر يي خوړلي دی نو دليل يي دا دي چي دسردار غيبت به کوي اوسور کړه سوی سر په خوب کي ليدل دکچه څخه ښه دی. حافظ معبر رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دسړی سر پلار دی يا سردار دی يا زوی دی اوکه خپل سر پري سوي ويني نو دليل يي دا دي چي دمور اوپلار څخه به جلاسي اوکه خپل سر پخپل لاس کي ويني نو دليل دی چي دهغو سر به ملاو سي اوکه خپل سر يي بيا پرخپل ځاې لګولي وی نو دليل يي دا دي چي دچا سرمايه به اخلي يا به قرض ورکوي اوکه ويني چي پري سوي سرونه دده سره دی او ګډيړي نو دليل يي دا دي چي ددغه ولايت سردارانو ته به غم اوفکر رسيږي اوکه پرخپله وړه دپاچا سر ويني نو لس زره درهمه به حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کی دسړی سر ليدل په دولسو وجو وي ۱: رئيس۲: سردار ۳ : پلار ۴: مور ۵: امام ۶: موذن ۷: عالم ۸: لس زره درهمه حاصلول ۹: هلك ۱۰: غلام ۱۱ : ښځه ۱۲: مالدار سړی اوکه په خوب کي ويني چي دده سر

غټ دی او نوي کالي یي اغوستي دی نو دلیل یي دا دي چي دده دوستي به دسردارانو سره وي اوکه خراب کالي یي اغوستي وي نو دلیل یي دا دي چي دسردار څخه به ورته غم رسیږي اوکه ووینی چي په تنور کي یي سرونه ایښي دی نو دده به دسردارانو دنوکرانو سره کار وسي.

### زمین سراب\شګلنه مځکه

دشګلني مځکي تعبیر بي فایدي علم اوخبره ده چي هیڅ نفع په کي نه وي ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي په شګلنه مځکه کي مقیم دی نو دلیل یي دا دي چي په باطل علم اوبي فایدي خبرو کي به مشغول وي اوکه ووینی چي دشګلني مځکي څخه خوراك کوي نو دلیل یي دا دي چي په باطل سره به ډوډي جمع کوی.

### سرا پرده\لویه پرده\پرده

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په لویه پرده کي خپل ځان ووینی اوپیژني چي دا دده ملکیت ده نو دلیل یي دا دي چي بزرګي اومرتبه به حاصله کړي او ممکنه ده چي سرداربه سي اوکه ووینی چي دپاچا په لویه پرده کي مقیم دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا څخه به عزت او مرتبه حاصله کړي اوکه ووینی چي دپاچا لویه پرده غورزیدلې ده نو دلیل یي دا دي چي دهغه سلطنت ته به زوال وي اوکه ووینی چي دپاچا لویه پرده سوزل سوي ده نو دلیل یي دا دي چي پاچا به مري اوکه ووینی چي پاچا دی دلوي پردي څخه دباندي کړي دی نو دلیل یي دا دي چي پاچاهي به حاصلوي اوملك به حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي لویه پرده لیدل په پنځو وجو دی ۱: سلطنت ۲: ریاست ۳: ولایت ۴: دولت ۵: سپاهي جوړیدل.

### سرا\سرای\هاؤس\کور

دانیال علیه السلام ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي په پردي سراي کي دي او څوک یي نه پیژني او هلته مړی دی نو دلیل یي دا دي چي دغه سراي اخرت دی او دخوب لیدونکي مرګ نژدی دی اوکه هلته تللي وي اوبیا بیرته راغلي دی نو دلیل دی چي ناجوړه به سي لیکن شفا به حاصله کړي اوکه ووینی چي معلوم سراي ته تللي دی او دهغه بنیاد دخاوري وي نو دلیل یي دا دي چي حلاله روزي به حاصل کړي اوکه دهغه بنیاد دچوني اوپخو خښتو وي نو حرام مال به حاصل کړي اوکه ووینی چي دغه سراي لوي او فراخ دی نو پرده به روزي فراخه سي اوکه کوچني سراي ووینی نو تعبیر یي داول څخه خلاف دی. ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوک ووینی چي خپل سراي خرابوي نو دلیل یي دا دي چي سمه لاره به پرځان بنده کړي او عبادت به نه کوي اوکه ووینی چي زوړ سراي یي خراب کړي دی نو دلیل یي دا دي چي په ده به دخیرات دروازي خلاصي سي اوکه نوي او پاك سراي ووینی نو دا پر تندرستي او دمور اوپلار پر ډیر عمر دلیل لري. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي په پاك اونوي سراي کي دننه دی او پیژني چي دا دده ملکیت دی نو دلیل یي دا دي چي روزي به باندي فراخه سي او عزت اومرتبه به حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي سراي په خوب کي لیدل په اوو وجو دی. ۱: دسړی لپاره ښځه او دښځي لپاره خاوند ۲: دولت ۳: امن ۴: ژوند ۵: مال ۲:

ولایت ۷: امانت او عزت.

## سرب \ قلعي \ کلايي \ سرپ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي دده سره قلعی ده نو دلیل یي دا دي چي ددنیا بد مال به حاصل کړي اوکه ووینی چي قلعی ویلي کوي نو دلیل دی چي په بدي سره به دخلکو په ژبه کي راسي.

## سرخي جامه \ سره کالي

سره کالي د سړو لپاره غم بدي اواندیښنه ده او د ښځو لپاره خیر اوخوشحالي ده که سړی ووینی چي دده ټوله کالي سره دی نو دلیل یي دا دي چي فتنه اوخونریزي به دده په لاس کیږي او دسوروالي مطابق به پر خلکو ظلم کوي.

## سرخچه \ سرې داني

سري داني په خوب کي لیدل پر ډیرمال دلیل لري اوکه ووینی چي دده په بدن سري داني راختلي دی نو دلیل یي دا دي چي مال به په غم او سختي سره حاصل کړي اوکه ووینی چي سري داني دده دبدن څخه ورکي سوي دی نو د دې تعبیر داولني خلاف دی.

## سرفه \ ټوخی \ کهانسي

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ټوخي په پنځو وجو وي۱: ترټوخي ۲: وچ ټوخي ۳: بلغمي ۴: چي وینه پکښې وزي ۵: چي صفرا پکي وزي. که په خوب کي ووینی چي دټوخي په وخت بلغم وتلي دی نو دلیل یي دا دي چي چا ته به دموجوده مصیبت شکایت کوي. یا به دمال شکایت کوي چي ورک سویدی اوکه وچ ټوخي ووینی نو دده شکایت به بي فایدي وي اوکه تر ټوخي وي نو دخپلوانو څخه به ورته شکایت وي اوکه دټوخي سره وینه ووینی نو ده ته به دزامنو څخه شکایت وي اوکه دده ټوخي دصفرا وي نو دهر چا څخه به شکایت کوي اوکه ووینی چي یو سردار ټوخیږي نو دلیل یي دا دي چي ددین غمخور به وي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي ده ته ټوخي راغلي دی نو دا پر عاجزي دلیل دی اوکه ووینی چي ټوخي دده په مري کي پاته سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دده دمرګ وخت نزدی دی اوکه ووینی چي ده ته دبوډاګانو ټوخي دی اوبلغم غورزوي نو دلیل یي دا دي چي دغم او محنت څخه به خلاصون ومومي جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوک په خوب کي ووینی چي دی ټوخیږي نو دلیل یي دا دي چي ده ته به دپاچا دطرف څخه افت رسیږي.

## سرکه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي سرکه په خوب کي حلال مال دی بابرکته دی او ددی دخوړلو تعبیر نیک دی دنبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمان دی (خیر الادام خل) ترجمه: بهترین د ګولي پوري کېدو شی سرکه ده اوبعض اهل تعبیربیان کړي دی چي په خوب کي تروه سرکه غم اوفکر دي اوپه

خوب کی سرکه فروشی جنګ کوونکي سړی دی.

## ګندګي\غائطه\سرګین\غوشیان\سوټي\خوشایي

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دغوا غوشیان مال اونعمت دی اوکه ویني چي ډیر غوشیان یي جمع کړي دی نو دلیل یي دا دي چي مال اونعمت دی اوکه دسړی لویی بولي ویني نو په حرام مال دلیل دی اوکه ویني چي په غسل خانه کي یي غوشیان اچولي دی نو دلیل یي دا دی چي ده ته به خرابه خبره رسیږي او دمال نقصان به یي وسي اوکه ویني چي په بستره کي یي پلیتي کړي ده نو دلیل یي دا دي چي دخپل مال څه حصه به خپل اولاد ته ورکوي اوکه ویني چي غوشیان یي په مځکه کي ښخ کړل نو دلیل دی چي مال به په مځکه کي پټوي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دسړی غوشیان خوري نو دلیل یي دا دي چي حرام مال به خوري اوکه ویني چي په نامعلومه ځاي کي یي غوشیان اچولي دی نو دلیل دی چي مال به په یو ځاي کي خرڅ کوي اوکه ویني چي خپل بدن یي په غوشیانو خراب کړي دی نو دلیل یي دا دي چي په ګناه کي به راسي اوکه ویني چي په خوب کي دستونه باندي لګیدلي دی نو دلیل یي دا دي چي خپل مال به په اسراف سر خرڅ کوي. دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي دسړی لوی بولي حرام مال دی او دحیوانانو غوشیان حلال مال دی او ددرندګانو غوشیان هغه مال دی چي په ظلم سره حاصل سي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي کومه پلیتي دانسان څخه جلا کیږي هغه پر نقصان دلیل لري اوکه ویني چي په پلیتي کي ډوب دی اوغرق سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دپاچا څخه به ورته غم ورسیږي اوکه ویني چي په پلیتي کي یي پښه ایښي ده اورا ایله سوي دی او دده کالي اوبدن یي خراب کړي دی دلیل یي دا دي چي دحاکم څخه به نقصان حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي غوشیان لیدل په څلورو وجو دی ۱: حرام مال ۲: دزرق فراخي ۳: په اولاد خرڅ کول ۴: دغم لیري کیدل.

## سرګین ګردان\ګونګټ

ګونګټ په خوب کي مال جمع کولو والا سړی دی ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي ګونګټ مي نیولي دی نو دلیل یي دا دي چي دده به دحرام خور سړی سره صحبت وي اوکه ویني چي ګونګټ یي وژلي دی نو دلیل یي دا دي چي حرام خوری به وژني اوکه ویني چي خوړلي یي دی نو دلیل یي دا دي چي دحرام خور مال به خوري.

## سرما\یخني

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي یخني غم اونقصان دی اوکه ویني چي یخني یي سویده نو دیخني مطابق به فقیر او تنګدسته سي اوکه یخني ورته نقصان رسولي وي نو دخپلوانو څخه به ورته نقصان ورسوي.

## سرمه\رانجه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي رانجه مال دی که ویني چي په سترګوکي یي

رانجه لګولي دی نو دليل يي دا دي چي ددين دصلاح تلاش کوونکي دی اوکه ووينې چي چا ورته رانجه ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي دهغه په انداره به خوب ليدونکي مال حاصلوي. ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي رانجه دسړو اوښځو لپاره عزت اومرتبه ده او بعض اهل تعبير بيان کړي دی چي په خوب کي رانجه پيدا کول دحق لاره اوثواب دی او جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي رانجه خرڅونکي داسي سړی دی چي ددين داصلاح لټون او کوشش کوي ځکه چي سترګه دين دی او رانجه رڼا ده.

## سرمه داني\رنجوني\درانجو کڅوړه يادبلی

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي رنجوني ښځه ده چي هر وخت دالله طرفته رجوع کوي او خلک ددين طرفته رابولي اوکه ووينې چي دده رنجوني ماته سوي ده نو دليل يي دا دي چي دده ښځه به مري. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي رنجوني ديندراه ښځه ده که ووينې چي دده رنجوني ورکه سوي ده نو دليل يي دا دي چي دښځي دصحبت څخه به جلا سي اوکه ووينې چي رنجوني يي اخيستي ده نو دليل يي دا دي چي ديندراه مينځه به اخلي.

## سرنج (يو ډول دارو)

ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي سرنج غم اوفکر دی اوکه ووينې چي سرنج ورسره دی يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي غمجن اوفکر مند به سي اوکه ووينې چي سرنج خوري نو دليل يي دا دي چي ناجوړه به سي اوکه ووينې چي سرنج يي چا ته ورکړي دی يا يي ليږلي دی نو دليل په دا دي چي دغم څخه به خلاص سي.

## سرود\غزلي\سروز\موزيک

ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي غزلي پر بي فايدي خبرو اوپه مصيبت دليل لري اوکه ووينې چي غزلي دنورو سازونو لکه باجه يا شپيلۍ سره ږغوي نو دليل يي دا دي چي فکر اومصيبت به يي زيات وي اوکه ووينې چي غزلي اوري نو دليل يي دا دي چي بي فايدي خبري به اوري. ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي که څوك ووينې چي په بازار کي غزلي وايي دليل دی چي مالدار خلک به رسوا سي اوفقيران به غمجن سي اواهل تعبير بيان کړی دی چي په خوب کي غزلي ويل يا اوريدل په شپږو وجو وي ۱: بي فايدي خبري ۲: غم اوفکر ۳: مصيبت ۴: رسوايي ۵: جنګ ۶: علم اوحکمت.

## سرونها\ښکر

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي هر قسم ښکرونه ښه دی اوخوب ليدونکي به دبزرګ څخه خير اونفع ويني که دغوا ښکر ووينې نو په دغه کال به ورته ډيره نفع وي اوکه ډير غټ وي نو زياته نفع به حاصله کړي اوکه ووينې چي ښکرونه په هوا کي زړيږي نو دليل يي دا دي چي دغه ملك والاوو ته به خير اونفع حاصله سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي که په

خوب کي ويني چي دده پرسر دوه ښکرونه دی نو دلیل یي دا دي چي دبزرګ څخه به قوت حاصل کړي اوکه خوب لیدونکي پرخپل سر ډیر ښکرونه ويني نو داپه غم اوفکر دلیل لري.
جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ويني چي یو ښکر لري نو دلیل یي دا دي چي دده کار به سم وي اوعمر به په خوشحالي سره تیر کړي اوکه ويني چي په دغه ښکر خلک وهي نو دلیل دی چي خلکو لره به بدي رسوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دځنګلي ځناورو ښکرونو پر خیر اونفع دلیل لري او دښکاري ځناورو ښکرونه د دې خلاف دی.

## سریش\سریښ\سریخ\صریخ\ګون

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سریش پر غم اوفکر دلیل لري او د دې خوړل دضرر اونقصان سبب وي اوکه ويني چي په سریښو یي څه شي مښلولی دی نو دلیل یي دا دي چي څه کار به کوي چي دی به بیا پر سمه لار راولي.

## سریشم(یو قسم سریښ چي د پوست څخه وزي)

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ويني چي دده سره سریشم دی یا چا ورکړي دی نو دلیل یي دا دي چي ده ته به دهغه په قدر ارام رسیږي اوکه ويني چي ده سریشم خوړلي دی نو دلیل یي دا دي چي دعیال په وجه به څه کار کوي چي محکم او مضبوط به وي.

## سرین\کوناټي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي کوناټي په خوب کي لیدل دخپلوانو څخه یو تن لیدل دی اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چي راسته کوناټي پر زوی اوچپه پرلور دلیل لري اوکه کوناټي کوچني اوکمزوري ويني نو تعبیر یي داول څخه خلاف دی اوکه ويني چي دده کوناټي مات سوي دی نو دلیل یي دا دي چي دده زوی به مري. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کوناټي لیدل په څلورو وجو دی. ۱: زوی ۲: قوت ۳: باغ ۴: په خپلوا نو کي یو تن.

## سطل\تال

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي تال پر خدمتګار دلیل دی اوکه ويني چي نوي تال یي اخیستي دی دلیل دی چي مینځه به اخلي اوکه ويني چي دده په تال کي سپور دی دلیل دی چي په مینځه کي به یي عیب ښکاره سي.

## سعتر (یوه ګیاه)

سعتر یو قسم ګیاه ده چي دهغه سره دمعشوقو دزلفو تشبیه ورکوي ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سعتر غم اوفکر دی اوخوړل یي جنګ دی اوبعض وایي چي د دې خوړل دمال نقصان دی اوپه خوب کي سعتر ښه نه دی.

## سفر

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ويني چي سفر یي کړي دی او دغه ځاي د اولني څخه ښه دی دلیل دی چي دده کار به نیك سي اوکه ښه نه وي نو تعبیر یي د دې خلاف دی اوکه

ووینې چې سفر یې کړې دی اومعلوم ورته نه دی چې چیرې تللې دی دلیل دی چې دخپل عیال ځخه به جلاسي یابه ددغه ځای ځخه بل ځای ته ځي اوکه ووینې چې دیو ټولګي درخصتولو لپاره تللې دی یا یو ټولګي دده درخصتولو لپاره راغلې دی نو دلیل یې دا دې چې دده حال او کار به تریو وخت پورې متغیر وي اوبیا به خپل حال ته راسي جابر مغربی رحمه الله علیه ویلې دې چې که ووینې چې پر نوې او پاك دستر خوان دی یا یې اخیستي دی دلیل دی چې دده مینځه به بد صورته وي اوکه ووینې چې دده پر دستر خوان ډوډی اونعمت پروت دی نو دلیل دی چې دمینځې ځخه به فایده حاصله کړي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلې دی چې په خوب کې دستر خوان ډیر نفعمند سفر دی اوکه دسترخوان خالي او کوچنې وي دلیل دی چې لږ نفع به اخلې اوکه ووینې چې دده دسترخوان سوزیدلې یا ورك سویدی نو دلیل دی چې دده مینځه به مري یا به یې مال ورکیږي جعفر صادق رحمه الله علیه ویلې دې چې په خوب کې دستر خوان په ځلورو وجو دی. ۱: مینځه ۲: خدمتګار ۳: سفر ۴: کسب او ژوند.

## سفوف (میده دوا)

سفوف په خوب کې خوړل غم اوفکر دی ابن سیرین رحمه الله علیه ویلې دې چې که ځوك ووینې چې سفوف یې وخوړل او دهغه ځخه یې خیر اونفع حاصله کړله نو پر ښه والي دلیل دی.

## سقا \ مشکې \ مشکیزه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلې دې چې مشکې داسې سړی دی دچا په لاس چې خیرات کیږي خاصکر که ووینې چې خلکو ته اوبه بغیر دځه طمعې او لالچ نه ورکوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلې دی چې که ځوك ووینې چې بغیر دځه لالچ ځخه مشکې توب کوي نو دلیل یې دا دې چې داخرت طرفته مایل دی اوکه ووینې چې مشك د اوبوځخه ډك دی اوچا ته اوبه نه ځنې ورکوي دلیل دی چې مال به جمع کوي. اودهغه ځخه به ارام نه حاصلوي اوکه ووینې چې دخلکو کورونو ته اوبه وړي نو دلیل یې دا دې چې دخلکو لپاره به مال جمع کوي او دهغه ځخه به ورته فائده نه وي.

## سقنقور (د شګو یو ماهی)

سقنقور یو ماهي دی چې په شګو کې وي ابن سیرین رحمه الله علیه ویلې دی چې که ځوک په خوب کې ووینې چې دده سره سقنقور دی نو دلیل یې دا دې چې ده ته به یې کارونه حاصل سي او ژر به مراد ته ورسیږي لیکن دین به یې کمزوري وي اواهل تعبیر بیان کړی دی چې سقنقور ماهي به خوب کې ښه نه دی.

## سقمونیا \ جلاب

سقمونیا یوه دست راوستونکې دوایي ده ابن سیرین رحمه الله علیه ویلې دی چې په خوب کې سقمونیا پر غم اوفکر او دمال پر نقصان دلیل لري اوکه ووینې چې دیوې ناجوړې لپاره یې خوړلې ده او شفا یې حاصله کړې ده نو پرخیر اونفع دلیل دی اوکه دسقمونیا په خوړلو سره ورته نقصان رسیدلې وي نو دمال په نقصان دلیل دی.

## سګ \ سپی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي سپي بد اومهربانه دښمن دی اوتور سپي په عربو کي دښمن دی اوسپین سپي په عجمو کي دښمن دی اوکه وویني چي سپي خوړلي دی دلیل دی چي ددښمن څخه به ورته تکلیف رسیږي اوکه وویني چي دده کالي دسپي دخولي په ناوړو خراب سوي دی دلیل دی چي ددښمن په خبره به بد حاله سي اوکه ویني چي دسپي غوښه یي خوړلي ده دلیل دی چي دښمن به دفع کړي اوکه وویني چي سپي ته یي ډوډي ورکړي ده دلیل دی چي روزي به باندي فراخه سي اوکه وویني چي سپي ورته نزدی سوي دی دلیل دی چي دښمن به یي لالچ کوي اوکه وویني چي سپي پر ده تکبیر کړي دی دلیل دی چي په دښمن به بروسه کوي اوکه وویني چي دسپي شیدي یي چیښلي دی دلیل دی چي ده ته به خوف اوبیره رسیږي اوکه وویني چي سپی ځني تښتیدلي دی دلیل دی چي دښمن به یي خطرناك وي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي که وویني چي سپی دده کورته راغلي دی دلیل دی چي دکم همته اوبدي ښځي سره به واده کوي. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دی چي ښکاري سپي ښکاره دښمن دی اوکه وویني چي دښکاري سپي په ذریعه ښکار کوي دلیل دی چي ده ته به ددښمن څخه چي دهوښیارتیا دعوه کوي خیر رسیږي اوکه وویني چي دښکاري سپي غوښه یي خوړلي ده دلیل چي وراثت به حاصل کړي اوکه وویني چي ښکاري سپي ځني لیري سوي دی دلیل دی چي دنفع مند دښمن څخه به جلا سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي سپي لیدل په څلورو وجو وی ۱: دښمن ۲ : لالچي پاچا ۳: هوښیار ۴: چغل خور سړی.

## سکبا (یو ډول خوراک)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که سکبا دبوزي دغوښي اودښه شیانو سره پوخ سوي وی نو پر ژوند خوشحالي عزت اومرتبي دلیل دی اوکه دغوا دغوښي سره یي پوخ سوي وویني نو پر مال او مراد حاصلولو دلیل دی اوکه دچرګ سره یي پوخ سوي وویني نو پر ژوند خوشحالي بزرګي او حکومت دلیل دی.

## سکوره \ دخاوري ګلاس

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که په خوب کي وویني چي چا نوي دخاورو ګلاس ورته ورکړي دی دلیل دی چي پاکه خبره به اوري اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي دخاورو ګلاس مینځه ده که وویني چي دخاورو ګلاس یي نوي اخیستي دی دلیل دی چي نوي مینځه به اخلي اوکه وویني چي دامات سوي دی دلیل دی چي مینځه به یي هلاکه سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دخاورو ګلاس لیدل په نهو وجو دی. ۱: ښځه ۲: خادم ۳: مینځه ۴: ددین پایداره کېدل ۵: دبدن درستي ۶: ډیر عمر ۷: مال ۸: پاکه خبره ۹: دښځو دطرفه وراثت حاصلول.

## سکنجبین (یو ډول شربت)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي سکنجبین که خواږه وي نو پر مال اوحلال روزي

دليل لري چي په اساني سره حاصليږي اوكه تريو وي نو په غم او فكر دليل دی. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ناجوړه ويني چي ده خواږه شربت دسكنجبين چيښلي دی دليل دی چي شفا به حاصله كړي اوكه تريو يي چيښلي وي نو دليل يي دا دي چي ناجوړي به يي اوږده سي.

## سلاح\وسله

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ويني چي وسله يي اغوستي ده او پردو خلكو ته تللي دی دليل دی چي عام خلک به باندي زباني كوي ليكن ده ته به څه خرابه خبره نه رسيږي او كه ويني چي پخپلو بدو خلكو كي دی نو دليل دی چي پر دښمنانو به كاميابي حاصله كړي او ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ځان په خوب كي دغشي ليندي سره ويني نو دليل دی چي بزرگي به حاصله كړي اوكه ويني چي دجنگ دسامان يو شي مات يا ورك سوي دی نو دا دده پر بزرگي كي دنقصان دليل دی اوكه ويني چي دچا سره جنگ كوي دليل دی چي په جنگ كي به راسي او كه ويني چي چا بوتلي نو دليل دی چي دی سړي ته به مدد رسوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي كه څوك ويني چي دي نامعلوم سړی زخمي كړي دی دليل دی چي ده ته به نقصان رسيږي اوكه ويني چي دده د زخم څخه غوښه او هډوكي مات سوي دی دليل دی چي ددغه سړی څخه به ورته مال اونعمت حاصل سي اوكه ويني چي په جنگ كي يي دچا څخه لاس پريكړي دی دليل دی چي ده ته به سخته خبره كوي او ددوي ترمينځ به جدايي راسي اوكه ويني چي دچا دبدن غټه حصه يي پريكړي ده دليل دی چي دهغه مال به اخلي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دجنگ سامان ليدل په شپږو وجو وي. ۱: قوت ۲: بزرگي ۳: دولت ۴: ولايت ۵: رياست ۶: قلعه. اووسله جوړونكي سړی په خوب كي انصاف دار پاچا دی.

## سلام كردن\سلام كول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي كه په خوب كی ويني چي دوست ورته سلام كړي دی دليل دی چي هغه انديوال به ځني خوشحالي ويني اوكه ويني چي دښمن ورته سلام كړي دی نو دليل دی چي دغه دښمن به دده انديوال سي اوكه ويني چي نامعلوم سړی ورته سلام كړی دی دليل دی چي څوك مسافر به دده دوست او اشنا سي اوكه ويني چي نامعلوم بوډا ورته سلام كړي دي دليل دی چي دالله تعالی دعذاب څخه به خلاص سي اوكه ويني چي معلوم بوډا سلام كړي دی دليل دی چي ښايسته ښځه به كوي. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ويني چي انديوال ورته سلام كړي دی او ده يي جواب نه دی وركړي دليل دی چي ددوي ترمينځ به جدايي راسي او جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي ځواني ښځي ورته سلام كړي دی دليل دی چي ددنيا بخت به حاصل كړي اوكه ويني چي په لمانځه كي دی او چپه طرفته يي سلام كړي دی نو دده كاربه دپريشاني وي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي سلام په څلورو وجو وي. ۱: امن ۲: واده ۳: بخت ۴: دمال نفع.

## سلطان \ پاچا \ بادشاه \ باچا

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې که ووينی چې پاچا سراي يا جماعت يا ښار يا کلي ته تللي دی نو دليل يې دا دي چې هغه ځاي ته به غم اومصيبت رسيږي دالله تعالی فرمان دی (ان الملوك اذا دخلوا قرية افسدوها، سورة النمل: ٣٤) ترجمه: پاچا چې کوم کلي ته داخل سي هغه خرابوي اوکه ووينې چې په جنګ کې به پاچا غالب سوي دی دليل دی چې مرادبه يې پوره سي اومطلب ته به ورسيږي اوکه ووينې چې پاچا راسته لاس ورته پريکړي دی دليل دی چې ده ته به يو قسم ورکوي اوکه ووينې چې پاچا په ښکرو وهلي دی او زخمي کړي يې دی داتول دسلطنت دزوال نخښې دی اوکه داعادل پاچا ووينې نو دعدل مطابق پر شرف اوبزرګۍ دليل دی اوکه ووينې چې پاچا غټه غالي غوړولې ده دليل دی چې ده ته به ددنيا ملك حاصل سي اوعمر به يې زيات سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چې که پاچا پخپل کارکې نيك وي دليل دی چې عمر او مرتبه به يې زياته سی اوکه مړ سوي پاچا ورين تندي او خوشحاله ووينې او دده سره خبرې کوي دليل دی چې دده کار به نيك وي او دده وران کارونه به سم سي.

## سماروغ (يو ډول واښه)

سماروغ يوه ګياه ده چې کماغ هم ورته وايي، دا په خوب کې ليدل بې فايدې ښځه ليدل دي اوکه ډير يې ووينې نو پر مال اونعمت دليل لري ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې لوی سماروغ پر زوی دليل لري او کوچنی سماروغ پر لور دليل دی.

## سماق (يو ډول دوا)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې سماق ليدل پرجنګ دليل لري اوکه ووينی چې سماق يې خوړلي دی دليل دی چې دچا سره به بحث کوي اوپه سماق خوړلوکې خير نسته.

## سمانه \ مړز

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې مړز دغلام زوی دی که په خوب کې ووينې چې مړز يې نيولي دی يا چا ورکړي دی دليل دی چې دده دغلام به زوی پيدا کيږي اوکه ووينې چې مړز دده دلاس څخه الوتلي دی دليل دی چې دده دغلام زوی به مري. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چې مړز په خوب کې مال او حلال رزق دی دالله تعالی فرمان دی (وانزلنا عليكم المن والسلوى، سورة البقرة: ٣٧) ترجمه: او موږ تاسو ته ترنجبين او مړزان را ليږلي وو. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې مړز ليدل په څلورو وجو وی. ۱: د غلام زوی ۲: حلال رزق ۳: نفع ۴: خير اومال.

## سمور (داول په ډول حيوان)

سمور داول په ډول حيوان دی چې دهغه دپوست څخه پوستين جوړيږي ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې سمور په خوب کې کافر ظالم او غل سړی دی که ووينې چې دسمور سره يې جنګ کړي

دی دلیل دی چي ددې صفت سړی سره به جنګ کوي اوځوك چي غالب سي هغه به قوي وي او که ويني چي دسمور غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دظالم مال به خوري. ابراهيم کرماني رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي سمور کافر اومالدار سړی دی او په خوب کي د دې غوښه او پوست داسي شي دی چي دزړه خواهش وی اوکه ويني چي سمور يي مړ کړو او دهغه غوښه پر مځکه را ايله سوه دليل دی چي دمسافر سړی مال به ورك سي.

### سنان\نیزه

ابن سیرین رحمة الله علیه ويلي دی چي که ويني چي دښمن يي په نيزه وهلي او غورزولي يي دی دليل دی چي پر دښمن به غالب سي اوپه دليل سره به يي قايل کړي اوکه ويني چي دده نيزه ماته يا ورکه سوي ده نو تعبير يي داولني خلاف دی او ابراهيم کرماني رحمة الله علیه ويلي دي که ويني چي دده سره چمکداره فولادي نيزه ده نو که د دې داهل څخه وي نو ولايت به حاصل کړي اوکه د دې داهل څخه نه وي نو دبزرګ سړی څخه به نفع حاصله کړي اوکه و ويني چي دده نيزه زنګ نيولي دی نو لږه نفع به ورته وي. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي نيزه ليدل په شپږو وجو وي. ۱: دليل ۲ : ولايت ۳: ډير عمر ۴: فتح ۵: رياست ۶: دنيزي دقيمت مطابق نفع.

### سنب\سم (د حیوان د پښې هډوکی)

سنب دحيوان دپښي سم دي ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي سم زوی دی که ويني چي دده سره سم دی يا چا ورکړي دی نو دليل يي دا دي چي زوی به يي پيداسي اوکه ورك سوي وي ځني نو دده زوی به غايب سي يا به مړسي. ابراهيم کرماني رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي دخره سم مال دی اوکه ويني چي دده سره ډير سمونه دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي اوکه ويني چي د ده په پښه کي سم لګيدلي دی نو دده عمر به په خوشحالي اوارام سره تير سي اوکه ويني چي سم را ايله دی نو د دې تعبير داول څخه خلاف دی.

### سنبل (یو ډول واښه)

سنبل دوريښتو په ډول ګياه ده ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي سنبل ورسره دی نو دهغه په اندازه به مال او نعمت حاصل کړي او که ويني چي دده سره وچ سنبل دی نو تعبير يي داول څخه خلاف دی او جابر مغربي رحمة الله علیه ويلي دی چي که ويني چي تازه سنبل خوري نو حلال مال به حاصل کړي يا به يي زوی پيداسي چي په دغه ملك کي به مشهور وي اوکه ويني چي سنبل يي په اور سوزلي دی نو دليل دی چي دمال نقصان به يي وسي.

### سنجاب (تر مږي غټ حیوان)

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي سنجاب مسافر اومالدار سړی دی او د دې پوستکي اوپشم او هډوکي غوښتوونکي مال دی او غوښه يي دمسافر سړی مال دی اوکه

ویني چي سنجاب یي وژلي دی او غوښه یي خوړلي ده او غورزولي ده اوپوستکي یي ور ذري ذري کړي دی نو دلیل دی چي دمسافر مال به تباه کړي یا به یي په زور اخلي او ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ویني چي د سنجاب مري یي خفه کړي ده او دمري څخه یي وینه بهیدلي ده نو دلیل دی چي دپیغلي انجلي سره به جماع کوي.

**سنجد**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي سنجد په خوب کي په محنت سره حاصلیدونکي مال دی که ویني چي سنجد یي اخیستي یا چا ورکړي دی نو مال به حاصل کړي اوکه خوړلي یي وي نو مال به په عیال خرڅ کوي جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سنجد په درو وجو دی. ۱: مال چي په محنت سره ملاویږی ۲: مال چي بغیر دمحنته حاصلیږی ۳: دبد خویه سړی څخه نفع او فایده.

**سندان**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سندان رئیس او عزتمند سړی لیدل دی که ویني چي دده سره سندان دی یا چا ورکړي دی او پیژني چي دده ملکیت دی دلیل یي دا دي چي درئیس څخه به خیر اونفع حاصله کړي او ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دسندان لیدلو دلیل دا دي چي دسردار په صحبت کي به وي اوخوشحالي به ځني حاصله کړي اوکه ویني چي سندان یي چا ته ورکړي دی یا ورك سوي دی نو دلوی سړی دصحبت څخه به جلا سي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سندان لیدل په پنځو وجو وی. ۱: رئیس۲: لمع ۳: قوت ۴: ولایت ۵: په کارونو کي بخت.

**سنګ\کاڼی\ډبره\سنګړه\مُرَغ**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کاڼی لیدل په دوو وجو دی ۱: مال ۲: رئیس او نرم کاڼی زیاته نفع ده که ویني چي ده سپین کاڼی اخیستي دی دلیل دی چي دخوش اخلاقه رئیس سره به دده صحبت وي او دهغه څخه به نفع حاصله کړي اوکه ویني چي تور کاڼی یي اخیستي دی دلیل دی چي دده به دعربو درئیس سره صحبت وي او که ویني چي سور کاڼي یي اخیستي دلیل دی چي دمفسد سردار څخه به ورته ارام رسیږي اوکه ویني چي دغره دلمن څخه یي ډیر کالي راوړي دی اولیدلي یي دی که سپین یا تور وي نو پر نفاق دلیل دی ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کاڼی لیدل سختي ده که ویني چي داوبو څخه لاندي یي ډیر کاڼی جمع کړي دی دلیل دی چي په مکر اوحیله سره به مال جمع کړي اوکه ویني چي دغره څخه یي کاڼی تراشلي دی دلیل دی چي دیو بزرګ څخه به ورته مال جمع سي اوکه ویني چي پر چا یي کاڼی اچولي دی دلیل دی چي دخپل مال څخه به په نفرت سره چا ته څه ورکوي او که ویني چي پرده چا کاڼی اچولي دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي او جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ویني چي ده پرچا کاڼی اچولي دی دلیل دی چي پرهغه به تهمت لګوي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کاڼی لیدل په څلورو وجو دی. ۱:

مال ۲: سرداري ۳: په کارونو کي سختي ۴: دمحنت ګټه.

## سنګخوره (یو ډول مارغه)

سنګخوره یو مرغه دی چي کاڼی خوري ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك وویني چي ده سنګخوره نیولي ده دلیل دی چي په کار کي به سختي ویني اونیکي به پکښي نه وي یا به دده دبي وقوف سړی سره کاروبار وي اوکه ووینی چي سنګخوره دده دلاسه والوته یا دده په لاس کي مړه سوه دلیل دی چي دمشکل کار څخه به ژر خلاص سي اوکه ووینی چي دسنګخوره غوښه یي خوړلي ده دلیل دی چي په ګټه کي به یو شي په مشکله حاصلوي.

## سواري کردن\سپرتیا کول

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي که څوک ووینی چي سپرتیا کوي دلیل دی چي دپاچا څخه به اس وسله او نعمت حاصلوی اوکه ووینی چي دسپرو سره ګرځي او سپاره دده تابعدار دي نو دلیل یي دا دي چي پر یو ټولګي به حکومت کوي اوکه ووینی چي نامعلومه سپرو ته یې ددنیا دسامان څخه څه ورکړي دی دلیل دی چي ده ته به دمسافر څخه فایده رسیږي اوکه ووینی چي معلومو سپاریانو ورته څه ورکړي دی دلیل دی داشنا یا انډیوال څخه به ورته فایده رسیږي اوکه سپاره په شنو کالو کي او پر خرابو اومانده اسونو ووینی نو د دې تعبیر داول څخه خلاف دی.

## د قرآن مجید سورتونه په خوب کي ویل

### سورة الفاتحه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که چا په خوب کي الحمد شریف وویل نو دلیل یي دا دي چي عمر به یي زیات سي او دده دکار خاتمه به په ایمان سره وي.

### سورة البقرة

که په خوب کي ووینی چي سورة البقرة یي ویلي ده نو د دې هم دغه تعبیر دی کوم چي دسورة الفاتحه دی او ددښمنانو دشر څخه به په امن کي وي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي دی به په مخلوق کي رښتیا ویونکي وي اوکه فقیر وي نو مالدار به سي که ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي که غمجن وي نو خوشحاله به سي اوکه غلام وي نو ازاد به سي.

### سورة آل عمران

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینی چي سورة ال عمران یي ویلي دی دلیل دی چي دټولو بدیو څخه به په امن کي سی او پاك به وي اوعاقبت به یي په خیر وي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي که ایت (شهد الله انه لا اله الا هو، سورة آل عمران: ۱۸) وایي نو دلیل دی چي دالله په فیصلو به راضي وي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که قرضدار وي نو دقرض څخه به خلاص سي اوخلک به یي عزت کوي ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که ایت (قل اللهم مالك الملک، سورة ال عمران: ۲٦) وایي نو دلیل یي دا دي چي بزرګي عزت او مرتبه به حاصله کړي

او مرادونه به يي پوره سي.

## سورة النساء

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ثوك ووينې چي سورة النساء وايي دليل دی چي وراثت به حاصل كړي او خپلوان او اهل بيت به يي زيات سي ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي مال او نعمت به يي ډير زيات سي.

## سورة المائدة

جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ثوك ووينې چي سوره المايدة وايي دليل دی چي شرف او عزتمند به سي ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي سوره المايدة ويل دمال او دنعمت پر زياتوالي دليل لري او بعض اهل تعبير بيان كړي دی چي په خوب كي سورة المآئدة ويل پر صحت او سلامتي دليل لري.

## سورة الانعام

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ثوک په خوب كي ووينې چي سورة الانعام وايي دليل دي چي ددنيا سعادت به حاصل كړي ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي ډير حيوانان به حاصل كړي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي د احسان او سخاوت توفيق به حاصل كړي.

## سورة الاعراف

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ثوك په خوب كي ووينې چي سورة الاعراف وايي دليل دی چي ديندار او مومن به وي او انجام به يي ښه وي ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي د سورة الاعراف ويلو دليل دا دي چي خوب ليدونكي به دكوه طور په زيارت مشرف سي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي د سورة الاعراف ويلو دليل دا دي چي خلک به ځني خوشحاله سي او د امانت حفاظت به كوي.

## سورة الانفال

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي كه په خوب كي ووينې چي سورة الانفال وايي دليل دی چي خير او صلاح به حاصله كړي.

## سورة التوبه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي ووينې چي سورة التوبة وايي دليل دی چي دگناه څخه به توبه كوي ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي دخوب ليدونكي دكار انجام به په خير سره وي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي ددين په لاره كي به بي مثاله وي.

## سورة يونس

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه په خوب كي ووينې چي سورة يونس وايي دليل دی چي رزق به باندي فراخ سي او كار به يي مراد ته ورسيږي ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي دكافرانو مكر او دجادوگرانو فريب به ځني ليري سي او پر دښمن به كاميابي حاصله كړي جعفر

صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي دده الفاظ او عبادت به ښول صحیح وي.

## سورة هود

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي که په خوب کي ووینې چي سورة هود وایي دلیل دی چي دده روزي به په زمینداري او زراعت کي وي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي کار به یي نیك وي اوپه ټولو کارونو کي به نیك بخت وي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي ددین په کارونو کي به بي مثاله وي.

## سورة یوسف

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي که په خوب کي ووینې چي سورة یوسف وایي دلیل دی چي ډیر سفر به کوي اومال به حاصلوي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دغم او محنت څخه وروسته به عزت او بزرګي حاصلوي او سر لوړي خوشحال به وي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خبرو کي به رښتوني او امانتدار وي.

## سورة الرعد

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي که په خوب کي ووینې چي سورة الرعد وایي دلیل دی چي همیشه به په عبادت اوقران کریم کي مشغول وي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سورة الرعد ویونکي به کار خیر اوعبادت ته راغب او مینه وال وي جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي دده عمر به لږ وي.

## سورة ابراهیم

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة ابراهیم وایي دلیل دی چي همیشه به په اطاعت اونیکو کارونو کي مشغول وی او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي دالله په نزد به عزتمند وي او انجام به یي ښه وي.

## سورة الحجر

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة الحجر وایي دلیل دی چي الله تعالی ته به نزدي وي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دهغه هر امید به پوره سي او صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي الله تعالی به ورته علم ورکړي او حاجت به ور پوره کړی.

## سورة النحل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة النحل وایي دلیل دی چي حلال زرق به حاصل کړی او ددیندارو دوست به وي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي چي دمحنت او افت څخه به په امن کي وي جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي الله تعالی به ورته علم ورکړي.

## سورة بني اسرائیل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي که ووینې چي سورة بني اسرائیل وایي دلیل دی چي الله تعالی

ته به نژدی والي بیا حاصل کړي اوپه دنیا کي به عزت اومرتبه حاصله کړي ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي چي پر دښمن به کامیابي حاصله کړي او دزړه مراد ته به ورسیږي جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي دده دین اواعتقاد به پاك وي.

## سورة الکهف

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة الکهف وایي دلیل دی چي دټولو مصیبتونو څخه به په امن کي وي او ددین په لاره کي به بي مثاله او اخلاص مند وي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي عمر به یې زیات وي او سعادت به حاصل کړی جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي دونه عمر به حاصل کړي چي مراد ته به ورسیږي.

## سورة مریم

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة مریم وایي دلیل دی چي دقیامت دورځي دعذاب څخه به خلاص وي او ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي دی به دخیر پر لاره وي او دحضور صلی الله علیه وسلم سنت به پر ځاي راوړي.

## سورة طهٰ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة طه وایي دلیل دی چي دښمن ته به څه خبره کوي او هغه به مغلوب کړي ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي په ملك کي به دده نوم روښانه سي اوپه نیکي سره به مشهور سي او جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي ددین په لاره کي به بي مثاله اونامدار سی.

## سورة الانبیاء

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي که په خوب کي ووینې چي سورة الانبیآء وایي دلیل دی چي الله تعالی به ورته دانبیاء علیهم السلام خوبي ورکړي ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي په دواړو جهانونو کي به نیك بخته وي او جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي عالم اوهوښیار به سي او دمشقت څخه به اسانتیا حاصله کړي.

## سورة الحج

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي که څوك ووینې چي سورة الحج وایي دلیل دی چي خپل مال به دالله تعالی په لاره کي خرڅ کړي ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي نیك اوښه کار به اختیاروي جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په زهد کي به بي مثاله وي او ددین په لاره کي به کوشش کوي.

## سورة المومنون

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة المومنون وایي دلیل دی چي دایماندارو سره به جنت ته ځي او ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي دده ددین درجي به قوي وي او خوي به یې ښه وي.

## سورة الفرقان

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي چا سورة الفرقان وایه دلیل دی چي په حق سره به

دباطلي لاري څخه جلاسي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په مخلوق کي به منصف او عادل وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دباطلي لاري څخه به دحقي لاري طرفته راسي.

## سورة النور

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ووينې چي سورة النور وايي دليل دی چي زړه به يي دعلم او حکمت څخه منور سي.

## سورة الشعراء

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب که چا سورة الشعراء ووايه دليل دی چي دی به دالله تعالی په پناه کي وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دګناه څخه به پاك وي او ددين په لاره کي به کوشش کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي الله تعالی به يي دګناه څخه ساتي.

## سورة النمل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ووينې چي سورة النمل وايي دليل دی چي عزت به حاصل کړي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي دولت او نصيب به دده موافقت کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دده مال او نعمت به زيات سي.

## سورة القصص

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي سورة القصص وايي دليل دی چي مال او نعمت به ترلاسه کړي او دالله تعالی په ذکر کي به مشغول وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي هميشه به ددين په لاره او صلاح کي کوشش کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي درحمت دروازي به باندي خلاصي سي.

## سورة العنکبوت

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ووينې چي سورة العنکبوت وايي دليل دی چي تر مرګه پوري به دالله په پناه کي وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي درنځ او بلا څخه به په امن کي وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي مخلوق ته به دده دصلاحيت او نعمت څخه نصيب وسي.

## سورة الروم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ووينې چي سورة الروم وايي دليل دی چي دده په لاس به دروم يو ښار فتح کيږي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي ددين په لاره کي به جهاد غزا او کوشش کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي خلکو ته به دده ددين څخه صلاح نصيب سي.

## سورة السجدة

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ووينې چي سورة السجدة وايي دليل دی چي په سجده کي به ددنيا څخه رحلت وکړي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي الله تعالی ته به ډيري سجدي کوي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دکار انجام به يي ښه وي.

## سورة الاحزاب

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ووینې چې سورة الاحزاب وایي دلیل دی چې مال به حاصل کړي او دښمن ته به يي ورکړي ابراهيم کرمانی رحمه الله ویلي دی چې سل اشرفي به حاصلي کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چې دا لله تعالی فرمانبرداري به کوي.

## سورة السباء

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چې که څوك ووینې چې سورة السباء وایي دلیل دی چې زاهد او عبادت کوونکي به وي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چې همیشه به دالله تعالی په عبادت کي مشغول وي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې دنیکو خلکو خوي به اختیار کړي.

## سورة الفاطر

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چې که په خوب کي ووینې چې سورة الفاطر وایي دلیل دی چې انجام به يي ښه وي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي چې همیشه به دالله تعالی په اطاعت کي مشغول وي جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چې دروازه به باندي خلاصه سي.

## سورة يٰس

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چې که څوک ووینې چې سورة یس وایي دلیل دی چې انجام به يي په خیر وي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چې عمر به يي زيات وي او دالله تعالی رحمت به حاصل کړي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې دنبي صلی الله علیه وسلم محبت به دده په زړه کي مضبوط وي.

## سورة الصٰفٰت

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چې که څوك ووینې چې سورة الصافات وایي دلیل دی چې دالله تعالی څخه به ددین دهدایت توفیق حاصل کړي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چې دصلاح او خیر پر لاره به چلیږي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې الله تعالی به ورته صالح زوی ورکړي.

## سورة ص

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که څوك ووینې چې سورة ص وایي نو مال به يي زيات سي اوعزت مند به سی.

## سورة الزمر

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چې که په خوب کي ووینې چې سورة الزمر وایي دلیل دی چې الله تعالی به دده گناه معاف کړي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چې دکار خاتمه به يي په خیر سره وي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چې دین به يي قوي وي.

## سورة مومن

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چې که په خوب کي ووینې چې سورة مومن وایي دلیل دی چې ایماندار اومخلص به وي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي چې دشریعت حفاظت به کوي او جعفر ویلي دی چې رحمت بخشش اوعطا به حاصله کړي.

## سورة فصلت

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي سورة فصلت وایي دلیل دی چي دالله تعالی په مقربو خلکو کي به سي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي همیشه به ددین په صلاح کي مشغول وي او صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي دالله تعالی څخه به ددعا غوښتونکي وي او دده دعا به قبلیږي.

## سورة حم عسق

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که چا په خوب کي سورة حم عسق وایه نودلیل یې دا دي چي داخرت دعذاب څخه به خلاص سي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دقیامت دعذاب څخه به خلاص وي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي دده عمر به زیات سي.

## سورة الزخوف

ابن سیرین رحمه الله علیه چي که په خوب کي ووینې چي سورة الزخرف وایي دلیل دی چي لمونځ او عبادت به ډیر کوي او همیشه به روژه دار اوسیږي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په قول رښتوني او نیك کرداره به وي.

## سورة الدخان

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که څوك په خوب ووینې چي سورة الدخان وایي دلیل دی چي شپه به په عبادت کی تیروي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي درښتیا ویلو کوشش به کوي جعفر صادق ویلي دی چي مالدار به سي.

## سورة الجاثیه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي سورة الجاثیه وایي دلیل دی چي توبه به کوي اوالله تعالی ته به رجوع کوي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي که گنهگار وي نو توبه به کوی.

## سورة الاحقاف

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي سورة الاحقاف وایي دلیل دی چي دمور او پلار دحکم منونکي به وي او ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دمور اوپلار سره به نیکي کوي اوډیر عجیبه شیان به وینې.

## سورة محمد صلی الله علیه وسلم

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي سورة محمد وایي دلیل دی چي په دښمنانو به کامیاب سي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دهر مصیبت اوافت څخه به په امن کي وي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په دنیا کي به دخیر توفیق حاصل کړي.

## سورة الفتح

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که ووینې چي سورة الفتح وایي دلیل دی چي دټولو دروازو څخه به ورته مدد وي.

## سورة الحجرات

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي سورة الحجرات وايي دليل دی چي خلک به په خرابو نومونو سره نه رابولي اوغيبت به نه کوي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي دچا شرمگاه ته به نظر نه کوي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دخلگو سره به ملاويږي.

## سورة الذاريات

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي سورة الذاريات وايي دليل دی چي په اطاعت اوعبادت کي په مشغول سي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي د مخلوق سره به بخشش اواحسان کوي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي روزي به باندي فراخه سي.

## سورة ق

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة قاف وايي دليل دی چي الله تعالی به ورته دخير او اطاعت په کارونو کي توفيق ورکړي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي مشکل کارونه به باندي اسانه سي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي دخپل کسب څخه به نصيب حاصل کړي.

## سورة الطور

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي سورة الطور وايي دليل دی چي پر دښمن به کاميابي حاصلوي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي الله تعالی به يي مدد کوي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په بيت الله شريف کي به عبادت کوي.

## سورة النجم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي سورة النجم وايي دليل دی چي الله تعالی به دخپل رحمت دروازي باندي خلاصي کړي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي پر دښمن به کاميابي حاصله کړي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي الله تعالی به ورته صالح زوی ورکړي.

## سورة القمر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة القمر وايي دليل دی چي پر دښمن به فتح اومدد حاصل کړي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي مشکل کارونه به باندي اسانه سي او صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي جادو به اثر نه باندي کوي.

## سورة الرحمن

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ويني چي سورة الرحمن وايي دليل دی چي ددرواغو اوحرامو څخه به پرهيز کوي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي ښه خوي او ددين لار به اختيار کړي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په دي جهان کي به مال اوپه اخرت کي به نعمت حاصل کړي.

## سورة الواقعه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة الواقعه وايي دليل دی چي

دګناهونو څخه به توبه کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي داطاعت اوعبادت توفیق به حاصل کړي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په اطاعت کي به مخ ته راسي.

## سورة الحدید

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که په خوب کي ويني چي سورة الحدید وایي دلیل دی چي دغم او سختي څخه به روزي حاصله کړي کرمانی رحمه الله ویلي دی چي داخرت لار به خوښوي او دالله تعالی درضا تلاش به کوي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي ددین په لاره کي به قابل تعریف وي.

## سورة المجادلة

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که په خوب کي ويني چي سورة المجادله وایي دلیل دی چي د ښځو سره به یي جنګ وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي ددین په لار کي به یي دچا سره جنګ وي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي دخپل اهل سره به جنګ کوي.

## سورة الحشر

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که په خوب کي ويني چي سورة الحشر وایي دلیل دی چي دده حشر به داخلاص والاوو سره وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي دده صحبت به داهل صلاح او دیندارو سره وي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي پرخپل دښمن به کامیابي حاصله کړي.

## سورة الممتحنة

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي دسورة الممتحنة ویونکي به دکار ازمایش په راستي سره کوي کرمانی رحمه الله ویلي دي چي صحبت به یي داهل صلاح سره وي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په داسي محنت کي به ګرفتار سي چي په هغه کي به مړ سي.

## سورة الصف

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که په خوب کی سورة الصف وایي دلیل دی چي د الله تعالی په لاره کي به جهاد کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي همیشه به دالله تعالی په رضا کي وي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي دعمر په اخیر کي به دشهادت درجه حاصله کړي.

## سورة الجمعة

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که په خوب کي ويني چي سورة الجمعه وایي دلیل دی چي الله تعالی به ورته توبه کول نصیب کړي او ابراهيم کرماني رحمه الله ویلي دی چي دخیر توفیق به حاصل کړي.

## سورة التغابن

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که په خوب کي ويني چي سورة التغابن وایي دلیل دی چي ډیري صدقي به ورکوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي دکمزوري مدد به کوي او جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي رښتوني اوصحیح حالاتو والا به وی.

## سورة الطلاق

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي وويني چي سورة الطلاق وايي دليل دی چي د ښځو سره به بحث کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي دحق خوي به په نظر کي ساتي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي ددين دکار لپاره به بحث کوي.

## سورة التحريم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي وويني چي سورة التحريم وايي دليل دی چي پخپل کور کي به دنفاق خبري کوي او ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي دحرامو څخه به توبه کوي او ليري به ځيني اوسي.

## سورة الملک

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي وويني چي سورة المک وايي دليل دی چي دقبر عذاب به ورته نه وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي انجام به يي ښه وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي شرف اوبزرگي به حا صله کړي.

## سورة القلم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي وويني چي سورة القلم وايي دليل دی چي خيرات او صدقي ورکول به خوښوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دټولو خلکو سره به احسان کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي الله تعالی به ورته بربادي ورکړي.

## سورة الحاقة

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي وويني چي سورة الحاقة وايي دليل دی چي دالله تعالی فرايض به په ښه طريقه پوره کوی ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دشريعت پر لاره به وي.

## سورة المعارج

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي وويني چي سورة المعارج وايي دليل دی چي خير اونيکي به کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دخير اونيکي طرفته به مايله وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دخوف اوبيري څخه به په امن کي وي.

## سورة نوح

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي وويني چي سورة نوح وايي دليل دی چي انجام به يي ښه وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي د دې تعبير په اخرت کي خلاصون دی او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دنيکو کارونو حکم به کوي.

## سورة الجن

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که په خوب کي وويني چي سورة الجن وايي دليل دی چي توبه به وباسي او دپيرياناتو دافت څخه به محفوظ وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي ديبان او ښاپيري به ورته نقصان نه سي رسولاي.

## سورة المزمل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که څوك ووینی چي سورة المزمل وايي دليل دی چي دتهجد لمونځ به خوښوي او ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دعبادت توفيق به حاصلوي.

## سورة مدثر

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که څوك ووینی چي سورة مدثر وايي دليل دی چي نیك عمل به کوي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي پاك خوي اوسمه لاره به حاصله کړي.

## سورة القيامة

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که په خوب کي ووینی چي سورة القيامة وايي دليل دی چي ددنیا څخه به په شهادت سره رحلت وکړي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي توبه به کوي او دالله تعالی ته به رجوع کوي.

## سورة الدهر

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که څوک ووینی چي سورة الدهر وايي دليل دی چي فقیرانو ته به خوراك ورکوي او دالله تعالی رضا به تلاش کوي کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په سخاوت او نعمت به دشکر توفيق حاصل کړي.

## سورة المرسلات

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي که په خوب کي ووینی چي سورة المرسلات وايي دليل دی چي ددرواغو ویلو څخه به توبه وباسي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي سمه لار به تلاش کوي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي روزي به باندي فراخه سي.

## سورة النباء

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سورة النباء ویوونکي به دالله تعالی څخه بیره او توکل کوونکي وي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دنیکي کار به کوي جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي دده به ډیر لوی کار وي.

## سورة النازعات

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که په خوب کي ووینی چي سورة النازعت وايي دليل دی چي دزکندن پر وخت به دمرګ څخه نه بیریږي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي توبه به وباسي او دعذاب څخه به په امن کي وي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي زړه به يي د مکر اوحیلي او خیانت څخه پاك وي.

## سورة عبس

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که په خوب کي سورة عبس وايي دليل دی چي خلکو ته به يي تندي تریو وی ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي ډيري روژي به نیسي او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي دکوم شي څخه بیریږي دهغه څخه به په امن اوحفاظت کي وي.

## سورة التكوير

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي په خوب كي سورة التكوير ويوونكي به دستركو ددرد څخه په امن كي وي ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دى چي دمشرق طرفته به ډير سفر كوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي دبيريدونكي شيانو څخه به په امن كي وي.

## سورة الانفطار

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي سورة الانفطار ويونكي به دالله تعالى څخه بيريږي ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دي چي دده رغبت به ددنياوي مال طرفته وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي دپاچاهانو په نزد به عزتمند او محترم وي.

## سورة المطففين

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي سورة المطففين ويوونكي به ناپ اوپيمانه صحيح ساتي ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دى چي سمه لار اوربنتيا به تلاش كوي جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي دهر چا سره به انصاف كوي.

## سورة الانشاق

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي سورة الانشاق ويونكي ته به عملنامه دقيامت په ورځ په راسته لاس وركول كيږي ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دي چي نسل به يي زيات وي.

## سورة البروج

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي ووينې چي سورة البروج وايي دليل دى چي په دنيا كي به غمجن وي او اخرت به يي ښه وي ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دي چي په اخرت كي به لوړي درجي حاصلي كړي جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي دهر قسم غمونوڅخه به خلاص وي.

## سورة الطارق

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي كه په خوب كي ووينې چي سورة الطارق وايي دليل دى چي صالح زوى به يي پيداسي ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دى چي ښايسته زوى به يي پيداسي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي د زوى په وجه به خوش قسمته اوخوشحاله وي.

## سورة الاعلى

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى كه څوك ووينې چي سورة الاعلى وايي دليل دى چي سبحان الله ولا اله الا الله به ډير وايي ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دى چي دالله ذكر به پر ژبه جاري وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي دده مشكل كار به په ده اسان سي.

## سورة الغاشية

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى كه په خوب كي ووينې چي سورة الغاشية وايي دليل دى چي دقيامت دخوف څخه به بيريږي اوتوبه به وباسي او دهغه ددهشت څخه به په امن كي وي

ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دالله تعالی په رضا کي به ثابت قدمه وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دده عزت او مرتبه به زياته سي.

## سورة الفجر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة الفجر وايي دليل دی چي په نيکو کارونو کي به مشغول وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي حج اسلام به ادا کړي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دده هيبت اوګيله به کمه سي.

## سورة البلد

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة البلد وايي دليل دی چي صدقه ورکول به پر ده واجبه وي اوخوښوي به يي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي دهر چا سره به احسان کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دافتونو اومصيبتونو څخه به په امن کي وي.

## سورة الشمس

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ځوك ويني چي سورة الشمس وايي دليل دی چي دده دلاسه به يو فاسد کار کيږي جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي دبلاګانو څخه به په امن کي وي.

## سورة الليل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة الليل وايي دليل دی چي دمال زکوة به ورکوي او سوالګري به نه پسي اخلي.

## سورة الضحی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة الضحی وايي دليل دی چي سوالګرو ته به څه ورکوي او جعفر صادق رحمه الله ويلی دی چي دغريبانو سره به مينه لري.

## سورة الم نشرح

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که په خوب کي ويني چي سورة الم نشرح وايي دليل دی چي مشکل کار به يي اسان سي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي بندي دروازي به باندي خلاصي سي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي د دواړو جهانونو نعمت به حاصل کړي.

## سورة التين

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که په خوب کي ويني چي سورة التين وايي دليل دی چي نيك خويه نيك کرداره اوښايسته به وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي خير اونفع به حاصله کړي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دسختي څخه به خلاص سي.

## سورة العلق

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة العلق وايي دليل دی چي الله تعالی به ورته علم او قرآن ويل ورکړي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي عالم اوفصيح به وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي عاجزي کوونکي اونيك خويه به وي.

## سورة القدر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که په خوب کي ووينې چي سورة القدر وايي دليل دی چي ددنيا څخه به دشب قدر دثواب سره رحلت کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي عمر به يي زيات وي اومراد به حاصل کړي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي عزت اومرتبه به يي لوړه سي.

## سورة البينة

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که په خوب کي ووينې چي سورة البينة وايي دليل دی چي ددنيا څخه به دتوبي سره رحلت کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي خلک به دخير اوصلاح په لاره را اړوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي د دې به دغه ذکر سوي تعبير وي.

## سورة الزلزلة

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوک ووينې چي سورة الزلزلة وايي دليل دی چي دچا سره به يي کار جوړ سي اوعدل اوانصاف به کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دکافرانو يو قوم به هلاک کړي.

## سوره العاديت

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که ووينې چي سورة العاديت وايي دليل دی چي دده کور والابه دده سره مينه کوي کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دخداي په لاره کي به جهاد کوي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي جهاد به کوي اوکاميابي به حاصلوي.

## سورة القارعة

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ووينې چي سورة القارعة وايي دليل دی چي دقيامت په ورځ به دده دنيکو اعمالو تله درنه وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په نيک کار کي به کوشش کوي جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي دخلکو عزت او احترام به کوي.

## سورة التكاثر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ووينې چي سورة التكاثر وايي دليل دی چي دټولو نيکو خلکو زيارت به کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دده صحبت به ددرواغجنو خلکو سره وي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي ددنيا څخه به دست بردار سي.

## سورة العصر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ووينې چي سورة العصر وايي دليل دی چي په ټولو کارونو کي به صبرناك وي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دده مال ته به ضرر اونقصان رسيږي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په تجارت کي به ورته فايده وي.

## سورة الهمزة

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوک ووينې چي سورة الهمزة وايي دليل دی چي ډيري خبري به کوي او په خلکو کي به مشهور سي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي دمال حرصناک به وي او دانجام فکر به نه کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دالله تعالی په لاره کي به مال خرڅ

کړي.

## سورة الفيل

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی که په خوب کي ووينې چې سورة الفيل وايي دليل دی چې دظالم سره به انډيوالي او مدد کوي ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهِ ويلی دی چې پر دښمن به کاميابي حاصله کړي او مراد به يې پوره سي او جعفر صادق رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې دده په لاس به فتح کيږي او پر دښمن به کاميابي حاصله کړي.

## سورة القريش

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی که څوك په خوب کي ووينې چې سورة القريش وايي دليل دی چې دبيری او دهشت څخه به په امن کي وي ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې د داسي سړی سره به صحبت ساتي چې دي به ددين په لاره کي رسوا کړي او جعفر صادق رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې دمخلوق سره به احسان کوي.

## سورة الماعون

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی که څوك په خوب کي ووينې چې سورة الماعون وايي دليل دی چې لمونځ به کوي ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې ده ته دبي دينه دصحبت څخه بچ کيدل پکار دی او جعفر صادق رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې پر دښمن به کاميابه سي.

## سورة الکوثر

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دي که څوک په خوب کي ووينې چې سورة الکوثر وايي دليل دی چې مال اونعمت به حاصل کړي ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې دبزرګانو څخه به بخشش حاصل کړي او جعفر صادق رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې ډير خيراتونه به کوي.

## سورة الکافرون

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی که څوك ووينې چې سورة الکافرون وايي دليل دی چې دبدعت پر لاره په ځي اوپه دنيا به مغروره وي ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې که غمجن وي نو خوشحاله به سي او جعفر صادق رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې دده مرګ نژدی دی ځکه چې داسورة دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اخري عمر کي وو.

## سورة النصر

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې په خوب کي دسورة النصر ويونکي به دحق په لاره کي توکل کوونکي وي.

## سورة تبت

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی که څوك ووينې چې سورة تبت وايي دليل دی چې مکار او دهوکه باز به وي او دالله تعالی دعذابو څخه به په خطره کي وي ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې دده ښځه به بدکاره وي او جعفر صادق رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چې يو ټولګي به ده ته دبدي رسولو

کوشش کوي.

## سورة الاخلاص

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوك په خوب کي ويني چي سورة الاخلاص وايي دليل دی چي ددين په لاره کي به مخلص او بي مثاله وي دعبادت توفيق به حاصل کړي او ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي دپاك دين اونيکي عقيدي خاوند به وي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي ددواړو جهانونو مراد به حاصل کړي او ژوند به يي ښه وي.

## سورة الفلق

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوك په خوب کي ويني چي سورة الفلق وايي دليل دی چي پر ده به جادو اثر نه کوي او ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي دبدي کوونکو دشر څخه به په امن کي وي.

## سورة الناس

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي ويني چي سورة الناس وايي دليل دی چي الله تعالی به يي دبد نظر څخه محفوظ ساتي اوروزي به باندي فراخوي اوکه په خوب کي ويني چي (لاحول ولا قوة الا بالله العلي العظيم) ترجمه: نسته بچ کيدل دګناه څخه اونه طاقت دنيکي مګر په توفيق دالله تعالی چي لوړ دی، وايي دليل دی چي مال اومراد به حاصل کړي، اوکه په خوب کي ويني چي دقران کريم يو ايت وايي نو د دې تعبير به دحرف قاف په بيان کي ان شاء الله بيان کړه سي.

## سوزن \ ستن

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوك په خوب کي ويني چي دده سره ستن ده اوپه هغه څه شي ګنډي دليل دی چي خواره کارونه به يي راجمع سي اومراد به يي پوره سي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی که څوك ويني چي کالي ګنډي نو دليل دی چي احوال به يي نيك سي اوکه ويني چي ستن ورکه سوي ده نو دليل دی چي احوال به يي بد سي جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي چا ستن ورکړي ده نو دليل دی چي دغه سړی به دده پر حالاتو مهربانه وي اوکه ويني چي ډيري ستني ورسره وي نو دا دده دکار خير اوصلاح ده.

## سوسمار \ سمساره

که څوك په خوب کي ويني چي سمساري خوړلي دی نودليل يي دا دي چي نقصان به حاصل کړي اوکه ويني چي سمساره يي مړه کړيده نودليل دی چي دښمن به مغلوب کړي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دسمساري غوښه خوړلو دليل دا دي چي نفع به ورته ورسيږي اوکه ويني چي سمساري دده په کور کي اواز کړي دی نو دليل دی چي دده دکور څخه به دغم اواز وزي.

## سوسن \ چنبيلی ګل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي چنبيلي پرخپل وخت ليدلو دليل دا دي چي ده ته

به څه ملاو سي او دده به زوی وسي او چینبلي بي وخته لیدل پر غم او فکر دلیل لري. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی که څوك وویني چي چا ورته چنبیلي ورکړي دی نو دلیل دی چي ددوي ترمینځ به بحث کیږي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دچنبیلي بوټي مینځه ده.

## سوګند\قسم

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي ده قسم خوړلي دی نودلیل دی چي دده دلاسه به نیك کار کیږي یابه امانت ادا کوي یا به خیرات ورکړي او دکوم شي څخه چي بیریږي دهغه څخه به په امن کي وي. اوکه ووینې چي ددرواغو قسم یې خوړلي دی نو دلیل دی چي پر ده به دالله تعالی غضب وي اوپه تکلیف کي به راسي یا به په قرضو کي ډوب سي یا به دپاچا څخه نقصان وینې ده ته توبه کښل په کارده. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینې چي په رښتیاوو یې قسم خوړلي دی دلیل دی چي ده ته دګناهونو څخه توبه کښل پکار ده چي خلاصون حاصل کړي. اوکه په درواغو یې قسم خوړلي وی نو دده دین به تباه سي او په اعتقاد کي به یې خلل راسي دالله تعالی فرمان دی (ویحلفون علی الله الکذب وهم یعلمون، سورة المجادلة: ١٤) ترجمه: او دوي قصدا په الله تعالی ددرواغو قسم خوري حالانکه دوي پوهیږي. جابر مغربي رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي ده په رښتیاوو قسم خوړلي دی نو دلیل یې دا دي چي ده ته به غم اوفکر رسیږي.

## سوراخ\سوری

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي دی په سوري کي دننه تللي دی نو دلیل دی چي دپاچا دراز څخه به خبر سي اوکه ووینې چي دده په بدن کي سوري دی او وینه څني بهیږي نو دا پر نقصان دلیل لري. جابر مغربي رحمه الله ویلي دي چي که څوك ووینې چي په بدن کي یې سوري دی نودلیل دی چي دخپل اهل څخه به په امن کي نه وي اوکه ووینې چي په کاڼي کي یې سوري کړي دی نو دلیل دی چي په اسلام کي به همیشه وي اوکه په درخته کي یې سوري کړي وی نو تعبیر یې داول څخه خلاف دی او اهل تعبیر بیان کړي دی چي دسوري مطابق به دخوب لیدونکي نقصان کیږي.

## حکایت

په حدیثو کي راغلي دی چي یو سړی د امیر المومنین ابوبکر صدیق رضي الله عنه په خدمت کي حاضر سو او دهغوي څخه یې پوښتنه وکړه چي ماپه خوب کي لیدلي دی چي دیو کوچني سوري څخه غټ غوایي راوتلي دی اوبیا یې وغوښتل چي دغه سوري ته واپس ولاړ سي لیکن نه ولاړي دوي ورته په تعبیر کي وویل چي دغه سوري خوله ده او غوایي خبره ده کله چي د خولي څخه وزي نو بیا بیرته نه سي راتلای.

## سوهان\سوان

دسوان بیان په حرف میم کي کیږي.

## سیب

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي سیب په خوب کي لیدل پر زوی دلیل دی که سور وي نو پاچا څخه دنفع دلیل دی اوکه سپین وي نو دسوداګرانو څخه دنفعي دلیل دی اوکه ژړ او تور وي نو پر ناجوړی دلیل دی او که ویني چي سپین سیب یې دوه ټکړي کړي دی نو دلیل دی چي دچا سره یي شراکت وي دهغه څخه به جلا سي اوکه ویني چي سور سیب یي ددرختي څخه شکولي دی اوخوړلی یي دی نو دا پر انجلي دلیل دی ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سیب په خیر دلیل دی اوکه سیب تریو وي نو په بده خبره دلیل دی اوکه خوږ وي نو پر خوشخبري دلیل دی. دانیال علیه السلام ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي دده سره سیب دی او ده خوړلي وي نو دلیل دی چي نفع به حاصله کړي او سیب دخوب لیدونکي په شغل اوصفت کي همت دی اوکه پاچا په خوب کي سیب ویني نو دلیل یي دا دي چي سلطنت به حاصل کړي اوکه سوداګر ویني نوتجارت به یي ښه سي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سیب لیدل په اووه وجو دی. ۱: زوی ۲: نفع ۳ : ناجوړي ۴: مینځه ۵: مال۶: حکومت ۷: دخوب لیدونکي همت او دغایب او حاضر خبر دی.

## سیر \ اوږه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي اوږه خوړل حرام مال خوړل دی ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي اوږه خوړل خراب شي دی چي خلک یي ورته د وروسته څخه وایي اوکه ویني چي پخه سوي اوږه یي خوړلي ده نو دلیل یي دا دي چي دخرابو خبرو څخه به توبه کوي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي اوږه په خوب کي لیدل غم او ژړا ده جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي اوږه په خوب کي لیدل په پنځو وجو وي. ۱: حرام مال ۲: خرابه خبره ۳: غم او فکر ۴: ژړا ۵: سختي لیدل.

## سیري \ موږنس

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ځان په موړنس ویني نو دلیل دی چي بي نیازه به وي لیکن ددین په لاره کي به کمزوري وي اوکه ځان وږي ویني نو دلیل دی چي ګناه به کوي او ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي چي ښه خوب هغه دی چي نه ځان په موړنس ویني او نه په وږي ځکه چي دادواړو دطبع خلاف دی او په دی سره طبعیت ته تکلیف رسیږي.

## سبزه \ شینکی \ شین ګیاه \ سبزي

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي سبزي ورسره دی نو دلیل دی چي دده نوم به په خیر او خوبي سره مشهور سي اوکه ویني چي دده په مځکه کي موسمي سبزي ده نو دا پر خیر اونفع دلیل لري اوکه د دې خلاف ویني نو پر نقصان دلیل دی.

## سیکي \ شراب

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي شراب حرام مال دي که ویني چي دشرابو په مینځ کي تللي دی

نو دلیل يې دادی چي په فتنه کي به راسي اوکه ووینې چي شراب چیښي دلیل دی چي دهغه په قدر به حرام مال حاصل کړي اوکه ووینې چي شراب پخوي او چیښي دلیل دی چي حرام مال به په غم اومحنت سره حاصل کړی اوکه ووینې چي دده په کور کي ډېر شراب دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به دزمیندار څخه نفع حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي شراب جوړوي او چیښي دلیل دی چي حلال او حرام مال به ګډوډوي اوکه ووینې چي شراب خرڅوي دلیل دی چي حرام شي به خرڅوي اوپه سود به يې ورکوی اوپه شرابو چیښلو کي خیر نسته او دحاکم لپاره دمعزول کیدو دلیل دی او دکجورو شراب غم او فکر دی. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي شراب په درو وجو دی. ۱: حرام مال ۲: نکاح کول ۳: د دې جهان نعمت او په خوب کي شراب خرڅونکي داسي سړی دی چي دجنګ اوفتنې غوښتوونکي وي.

## سیل\سیلاب

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سیلاب لوی دښمن دی یا ظالم پاچا دی او که ووینې چي سیلاب يې دځان څخه لیري کړي دی او بل طرف ته تللي دی دلیل دی چي پر دښمن به کامیابي حاصله کړي او غم اوفکر به ورته کم وي اوکه ووینې چي دسیلاب څخه تښتیدلي دی نو ددښمن څخه به تښتي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دیخ دریاب څخه سیلاب غم او فکر دی او دګرم دریاب سیلاب پر نفع دلیل لري او جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که جهان دسیلاب څخه ډك ووینې او معلوم ورته نه وي چي دکوم ځاي څخه راغلي دی نو دلیل يې دا دي چي الله تعالی به په دغه ملك عذاب رالیږي دالله تعالی فرمان دی (فارسلنا علیهم الطوفان، سورة الاعراف: ۱۳۳) ترجمه: اوموږ پر هغوي طوفان راولیږي اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي که په خوب کي ووینې چي سیلاب مځکه خرابوي دلیل دی چي ددغه ځاي خلکو ته به دپاچا څخه دتاوان بیره وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سیلاب لیدل په څلورو وجو وي. ۱: لوی دښمن ۲: ظالم پاچا ۳: غایب لښکر ۴: مصیبت فتنه او سختي.

## سیماب\پاره

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي ډېر خلک په خوب کي سپین زر وینې اوپه وییښه يې حاصل کړي او ډېرخلک داسي دی چي په خوب کي سپین زر وینې او په ویښه غم اوفکر حاصلوي ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي صحیح سپین زر رښتوني خبر دی او کوټه سپین زر درواغجن خبر دی اوکه سپین زر په تیلي کي وي نو دلیل دی چي څوك به ورسره امانت ایږدي. دانیال علیه السلام ویلي دی چي که پیاله یا لوټه یا تالي دسپینو زرو ووینې چي ډېر شیان يې دسپینو زر پیدا کړي دی نو دلیل دی چي دهغه په اندازه به خزانه حاصله کړي اوکه ووینې چي دسپینو زرو دکان څه حصه يې حاصله کړي ده نو دلیل يې دا دي چي ددغه ملك څخه به ښځه کوي او په خوب کي دسپینو زرو ټکړي داسي سړی دی چي دهغه په حق کي

خرابه خبره کوي.

## سيمرغ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي سيمرغ ويني نو دليل دی چي دخوش طبيعته او بزرګ سړی سره به انډيوالي کوي اوکه ښځه سيمرغ ويني نو دليل دی چي ښايسته ښځه به کوي اوکه ويني چي سيمرغ ورسره خبري کوي دليل دی چي دپاچا وزير به سي اوکه ويني چي دسيمرغ سره يي جنګ کړي دی دليل دی چي دلوي سړی سره به جنګ کوي اوکه ويني چي دسيمرغ غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به دلوی سړی څخه مال حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي ده ښځه سيمرغ وژلي ده دليل دی چي دپيغلي ښځي سره به واده کوي اوکه ويني چي سيمرغ دده دلاسه الوتلي دی دليل دی چي ښځي ته به طلاق ورکوي اوکه ويني چي دسيمرغ بچي يي نيولي دی دليل دی چي دده به بي وقوفه زوی پيداسي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي سيمرغ پاچا دی اوکه ويني چي سيمرغ په کوڅه کي راکښته سوي دی او کوڅي والاوو وژلي دی دليل دی چي ددغه ملك پاچا به هلاک سي اوکه ويني چي دسيمرغ څخه بيريدلي دی دليل دی چي دپاچا څخه په انعام حاصل کړي.

## سينه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي سينه په خوب کي شريعت دی دالله تعالی فرمان دی (افمن شرح الله صدره للاسلام، سورة الزمر: ۲۲) ترجمه: ايا دچا سينه الله تعالی داسلام لپاره خلاصه کړي ده. که په خوب کي ويني چي دده سينه فراخه سوي ده دليل دی چي ټول کارونه به يي سم سي اوکه ويني چي سينه يي تنګه سوي ده دليل دی چي دده په دين کي به خلل وي اوکه ويني چي دده پر سينه شين خط ليکل سويدی دليل دی چي الله تعالی به ورته کرامت ورکړي اوکه ويني چي دده پر سينه اسماني رنګ خط ليکلي دی دليل دی چي دده په دين کي به خلل راسي اوبغير دکلمې شهادت څخه به مري اوکه ويني چي دده دسيني څخه ويښته خريل سوي دی دليل دی چي دده قرض به ادا سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي په سينه کي يي ساه بنده سوي ده اوساه نه سي اخيستلاي دليل دی چي دين او دنيا به باندي فراخه سي اوکه ويني چي دده سينه ګرمه ده اونور بدن يي يخ دی دليل دی چي دده زړه به دچا سره لګيدلي وي. دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك ويني چي دده سينه تنګه ده دليل دی چي زړه تنګی به وي اوکه سينه فراخه ويني دليل دی چي خوشحاله به وي. اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي که کافر خپله سينه فراخه ويني نو مسلمان به سي دالله تعالی فرمان دی (فمن يرد الله ان يهديه يشرح صدره للاسلام، سورة الانعام: ۱۲۵) ترجمه: الله چي چاته هدايت کول وغواړي نو دهغه سينه دهدايت لپاره خلاصه کړی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي سينه ليدل په اوو وجو ده ۱: حکمت اوعلم ۲: سخاوت ۳: ايمان ۴: کفر ۵: اعتقاد ۲: مرګ ۷: بخل.

# [ ش ]

## شادي \ خوشحالي \ ښادي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي خوشحالي ويني نو پر غم اوفکر دليل دی او که ويني چي څوك خوشحاله سوي دی دليل دی چي دهغه څخه به ورته غم اوفکر ورسيږي اوکه مړي په خوب کي خوشحاله ويني دليل دی چي دده حال به ښه سي او خاتمه به يي په نيکي سره وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي بي وجي خوشحاله دی دليل دی چي دده مرګ نزدی دی دالله تعالی فرمان دی (حتی اذا فرحوا بما اوتوا اخذنهم بغتة، سورة الانعام: ٤٤) ترجمه: تردی پوري چي هغه وخت دوي په ورکړه سوو باندي خوشحاله سو نو موږ دوي اچانك ونيول.

## شادروان \ توشک \ کوربچه \ نالي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کی ويني چي فراخ توشک يي غوړولي دی اوپيژني چي دده خپل دی دليل دی چي دهغه دفراخي مطابق به عيش اوډير عمر حاصل کړي اوکه ويني چي ددوستانو سره په ښار کي يا په لوړځاي کي پر توشک ناست دی نو داپر مال نعمت او رزق اوپر ډير عمر دليل دی اوکه ويني چي په نا اشنا ځاي کي دده لپاره توشك غوړولي سوي دی او دامعلوم نه وي چي دچا دی دليل دی چي دده احوال به بدل سي اوپه سفر کي به مري. اوکه کوچني توشك په خوب کي ويني نو پرلږ رزق اولږ عمر دليل دی اوکه ويني چي توشک يي ټول کړي او پرځان يي لوړ کړي دليل دی چي دخپل ځاي څخه به نا اشنا ځاي ته ځي اوکه ويني چي پرتوشک ديو سړي تصوير جوړ سوي دی اوهغه سړی پيژني اوخبري ورسره کوي دليل دی چي هغه به ددراغو تعريف کوي. اوکه ويني چي توشك يي خرڅ کړي يا چا ورکړي دی نو د دې تعبير بد دی. دانيال عليه السلام ويلي دی چي که څوك ويني چي توشک يي غوړولي دی نو دا دده دکار پر ښه والي اوډير عمر دليل دی اوکه ويني چي توشك کوچني وو او ترده لاندي غټ سو دليل دی چي پر ده به روزي فراخه سي اوکه د دې خلاف ويني دليل دی چي روزي به باندي تنګه سي اوکه ويني چي فراخه توشک غوړيدلي وو او ده راټول کړي دکور پرکټ يي کښيښودي دليل دی چي خپل دولت اوبخت به تباه کړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي توشك زوړ او خيري دی دليل دی چي ددنيا په عيش کي به مشغول سي اوکه ويني چي توشک تور يا اسماني رنګ دی نو پر غم اوفکر دليل لري اوکه ويني چي توشک ژړ دی نو پر ناجوړي دليل دی اوکه سپين توشک ويني نو داپه نعمت او دحلالي روزي په فراخي دليل لري. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي نامعلوم توشک په نامعلوم ځاي کي يا ويني چي معلوم توشک دچا په کور کي غوړول سويدی دليل دی چي دکور مالک ته به نعمت اوروزي حاصل سي اوکه ويني چي توشك يي په نامعلوم

ځاي کي غوړولي دی اوناست دی باندي دلیل دی چي په سفر به ځي اوپه هغه کي به مال اونعمت حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي توشك لیدل په څلورو وجو دی ۱: روزي اومال ۲: ډیر عمر ۳: نفع ۴: ژوند.

## شاخ\ښاخ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ښاخونه لیدل دخوب لیدونکي په ورونو زامنو اوخپلوانو دلیل لري که ووینې چي ددرختو ښاخونه ډیر اوګڼ دی دلیل دی چي دده خپلوان او کور والابه ډیر سي اوکه د دې خلاف ووینی نو تعبیر یي هم خلاف دی اوکه ووینې چي دخپلې درختي څخه یي ښاخ پریکړي دی دلیل دی چي دخپل کور والاوو څخه به څوك جلا سي اوکه ووینې چي دده درختي ښاخ وچ سوي دی دلیل دی چي دده دخپلوانو څخه به څوك هلاک سي اوکه ووینې چي درخته دبل چا ده نو تعبیر یي هم بل چاته رجوع کوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي دخرما ددرختي ښاخ یي پیدا کړي دی یا چا ورکړي دی دلیل دی چي دده به زوی پیداکیږي اوکه ووینې چي دښاخ څخه یي خوړلي دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به زوی مال خوري.

## شانه\ږمونځ\ګمونځ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ږمونځ داسي سړی دی چي حسب نسب یي نه وي اوپه دین کي یي نفاق وي اوکه په خوب کي ووینې چي سر او ږیره ږمونځ کوي دلیل دی چي دغمونو څخه به خلاصون حاصل کړي او دقرض څخه به خلاص سي اومراد ته به ورسیږي او ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ووینې چي ږیره ږمونځوي او څه ویښته دباندي را باسي دلیل دی چي دخپل مال څخه به زکوة وباسي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي ږمونځ په خوب کي موافق دوست په کار خیر کي دی او وریښته ږمونز کول مراد حاصلول دی اوږمونځ جوړونکي داسي سړی دی چي دده دزړه څخه غم اوفکر لیری کوي اود قرض څخه یي خلاصوي او بعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي ښایسته خلک دی دچا په دیدار سره چي سترګي روښانه کیږي.

## شانه (بنی آدم)\اوږه (د انسان)

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دسړی اوږه ښځه ده اوکه ووینې چي دده اوږه قوي اوغټه ده دلیل دی چي ښځه به کوي اوکه ووینې چي ده دغوایي یا دبوزي اوږه پیداکړي ده نو داهم دښځي د حاصلیدو دلیل دی اوکه ووینې چي دده اوږه ماته سوي ده دلیل دی چي ښځه به یي مري. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ووینې چي داوږه غوښه یي پورته سوي ده او رګونه یي ښکاره کیږي دلیل دی چي په دغه کال به ورته ډیر غم وی اوکه د دې خلاف ووینې نو تعبیر یي خلاف دی اوکه ووینې چي دده په اوږه کي سیاهي ده دلیل دی چي پر دغه کال به افت اومصیبت وي اوکه په اوږه کي سوروالي یا توروالي ووینې دلیل دی چي په دغه کال به دنرخو ارزاني وي اوکه ژړوالي پکښې ووینې نو پر ناجوړي دلیل دی او که د دې پر غاړه ډیري کرښې

وويني دليل دی چي په دغه کال به ډير مرګونه کيږي.

## شاه رود (يو قسم باجه)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي شاه رود ددنيا پر بازيو مستي او پر درواغجنو او محاله خبرو دليل لري اوکه وويني چي شاه رود ږغوي دليل دی چي په درواغو به خوشحاله وي اوکه دشاه رود سره شپيلي اونوري باجي هم وويني نو بيا پر مصيبت دليل لري او ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که وويني چي شاه رود يي مات کړي دی او غورزولي يي دی دليل دی چي ددرواغجنو څخه به توبه کوي او جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که وويني چي شاه رود ږغوي دليل دی چي دلوی ښځي سره به ملاو سي او دهغه څخه به عزت اومرتبه حاصله کړي.

## شاه اسپرغم (يو بوټي)\نيازبو (يو بوټي)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك وويني چي نيازبو شين پاك اوخوشبوداره دی نو پر بزرګي دليل دی اوکه ژړ اومړاوي يي وويني نو پر ناجوړي دليل دی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي نيازبو په شپږو وجو دی. ۱: عزت اوبزرګي ۲: زوی ۳: دوست ۴: ښه خبره ۵: دعلم مجلس ۶: نيك نامي او مدح ثنا.

## شاهين\باز

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي وويني چي بازيي نيولي دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي ده ته به دپاچا څخه يا د ډير ظالم مشر څخه نفع حاصله سي ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي باز ډير هوښيار سړی دی اوکه وويني چي باز يي نيولي دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي دده به دهوښيار سړی سره صحبت وي. اودهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي باز ليدل په څلورو وجو دی. ۱: عزت اومرتبه ۲: زوی ۳: مال او نعمت ۴: حکومت.

## شب\شپه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کي وويني چي توره اوخرابه شپه ده نو تعبير ددی غم اوفکر دی اوکه وويني چي شپه روښانه اوسپوږمي والاده دليل دی چي خوشحاله به سي او ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که وويني چي په توره شپه کي ګرځي او لاره ځني ورکه ده او دسمي لاري په نيت ځي دليل دی چي په دين کي به ورته استقامت حاصل سي.

## شب يماني\خاوري

خاوري په خوب کي ليدل غم اوفکر دی اوخوړل يي په هلاکت دليل لري جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که خاوري په خوب کي دلمر په ډول ځليدونکي وويني نو پر خير او دکارونو په فراخي دليل دی او د دې خلاف دکارونو پر بنديدو دليل دی.

## شبان\شپانه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دغوايي يا بوزي يا خرڅونکي ليدل دهر شی تعبير

دهغه په اندازه مطابق دی داس خرڅوونکي پر ولايت او بزرگي او دخرڅوونکي په تخت او دغوايي پيوونکي په سفارت نعمت اوفراخی اودبوزي څروونکي پرحلال رزق مال اونعمت دليل لري. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي شپانتوب کوي اوليوه دده درمي څخه يوه بوزه وړي ده دليل دی چي باچا په دغه ملک خراب کړي او درعايا حال به برباد سي دانيال عليه السلام ويلي دی چي دبزو دشپانه توب کولو دليل دا دي چي ددغه بزو په شمار به مشر سي اوکه ويني چي شپانه ورته څه ورکړي دی دليل دی چي ده ته به دمشر څخه نفع حاصله سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي شپانه نصيحت کوونکي سړی دی او دخلکو دمال حفاظت کوونکي دی اودهر کار ښه والي پر خلکو ښکاره وي.

## شب بازي کردن \ د شپې بازي کول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دشپي بازي اومستي خوشحالي ده ليکن درواغ او بي کاره ده اوکه ويني چي د شپي بازي دساز اوشپيلي سره کوي نو دا پر غم اوفکر دليل دي.

## شب برگ (يو ډول بوټی)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي شب برگ گمراه اومحرومه سړی دی اوکه ويني چي دده سره شب برگ دی دليل دی چي دده صحبت به دگمراه سړی سره وي اوکه ويني چي شب برگ يي خوړلی دی دليل دی چي ددغه سړی دکار څخه به ده ته فايده وي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي شب برگ يي ددرختي څخه پريکړي ده يا درخته وچه سوي ده دليل دی چي دگمراه سړي دصحبت څخه به جلا سي اودده ښه والي به په دي کي وي.

## شپش \ شپږي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي شپږي يي مړي کړي دی دليل دی چي دښمن به مغلوب کړي اوکه ويني چي نامعلومي شپږی دی دليل دی چي دده دښمن به کمزوري سي اوکه ويني چي ډيري شپږي په ده جمع سوي دی او دي يي چيچلي دی دليل دی چي خلک به ورته پيغور ورکړي يا به دده دمال نقصان وسي اوکه ويني چي شپږي دخلکو وينه چيښي نو دويني تعبير مال دی.

## شپشه \ کوني (يو ډول خزنده)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي کوني يو حيوان دی چي دگرمي په ورځو کي دپشم په کالو او پوستين کي وي او دا تباه کوي د دې ليدل گاونډي دی که ويني چي کوني دده کالي خوړلي دی دليل دی چي دده دمال نقصان به وسي اوکه ويني چي کوني دپشم مال تباه کړي دی دليل دی چي دده دکورڅخه به غل څه وړي اوکه ويني چي کوني يي مړ کړي دی دليل دی چي غل به نيسي اومال به ځني اخلي.

## شبه \ کوچنی مريی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي شبه ورسره دی يا چا ورکړي

دی دلیل دی چي لور به یي پیداسي ورنه غمجن به سي او په دین کي تور شبه خیرن دی جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سپینه او شنه شبه لیدل په خیر اونفعي دلیل لري او بعض وایي چي ژړه شبه په ناجوړي دلیل لري.

## شتافتن \ ځغستل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که ځوك ووینې چي دیو کار لپاره ځغلي دلیل دی چي په دغه کار کي به پښیمانه سي اوکه ووینې چي دهغه څخه پښیمانه سو او ویي ځغستل دلیل دی چي دغه کاربه ژر وکړي او جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي په یو کارکي ځغستل دتاخیر دلیل دی او تاخیر کول په ژر کولو دلیل دی.

## شتالنگ \ گیټي

په خوب کي گیټي جنگ دی که په خوب کي ووینې چي دگیټي سره بازي کوي او دشور شرابي اواز راځي دلیل دی چي دده به جنگ کیږي اوکه دبازیو په وخت کي چپ وي نو حرام مال به حاصل کړي.

## شراب \ شربت

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دخوږو شربتو چیښل لکه دسیب شربت دانار شربت دمالټي شربت او داسي نور په شپږو وجو وي ۱: دین ۲: نفع ۳ : فایده مند علم ۴: ډیر عمر ۵: دژوند خوشحالي ۶: دالله تعالی ذکر، لیکن کوم شربتونه چي تروه وي لکه دریواس شربت دلیمبو شربت دنارنج شربت اوداسي نور په خوب کي لیدل غم اوفکر دی اوترخه شربتونه لکه دمورو شربت او دزوفا شربت چیښل ددین او دنیا دفایدي دلیل دی او دکومو شربتونو خوند چي معتدل او خوشبودار وي لکه دعود شربت دبنفشي شربت او دگل شربت چیښل په خیر اوخوشحالي اوتعریف دلیل لري. جابرمغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي کوم شربتونه په خوب کي ددوایي په طور وچیښي هغه ددین پر صلاح دلیل لري او کوم چي ددوایي لپاره نه وي هغه ددنیا په خیر اوصلاح دلیل لري.

## شرابي (یو ډول لوښی)

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي ده شرابي اخیستي دی دلیل دی چي مینځه به اخلي اواهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي شرابي خادم دی اوکه ووینې چي دده شرابي مات سوي یا ورك سویدی دلیل دی چي مینځه یا خادم به یي مري. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي شرابي لیدل په نو وجو دی. ۱: ښځه ۲: خادم ۳: مینځه ۴: ددین مضبوطي ۵: ددنیا اصلاح ۶: ډیر عمر ۷: مال اونعمت ۸: خیر اوبرکت ۹: د ښځو دطرف څخه دمال حاصلیدل.

## شرم

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي شرم دایمان څخه دی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویلي دی چي (الحیاء من

الایمان) حیا دایمان څخه دی. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که ووینې چي په یو کار کي شرم کوي دلیل دی چي په دغه کار کي به خیر اوصلاح وی اودایمان زیاتوالي به وي او په داسي کار کي شرم کول چي په هغه کي خیر اوصلاح وي دایمان په نقصان دلیل لري.

## شستن\پریولل

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي خپل ځان دویالي یا دحوض یا ددریاب په اوبو سره پریول دغم اوفکر څخه دخلاصون دلیل دی اوکه داخوب قیدي ووینې نو ازاد به سي که قرضدار یې ووینې نو دقرض څخه به خلاص سي اوکه ناجوړي ووینې نو شفا به حاصله کړي اوکه دټول بدن سره په اوبوکي نه وي ناست نو کار به یې تمام نه سي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي خپل ډوډي یې پریولی ده دلیل دی چي دده خپلوان به دغمونو اوفکرونو څخه خلاص سی اوکه ووینې چي خپل ځان یې په نمکینو اوبو پریولي دی دلیل دی چي غم به ورته ورسیږي اوکه ووینې چي پاك کالي یې په خرابو اوبو سره پریولي نو دا دده دکار پر تباهي او ددین پر فساد دلیل دی اوکه ووینې چي ځان په یخو او خرابو اوبو سره پریولي دلیل دی چي توبه به کوي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي په یخو اوبو سره مخ او لاس پریول په څلورو وجو دي. ۱: توبه ۲: عافیت ۳: دقید څخه خلاصون ۴: دبیري څخه په امن کي اوسیدل اوپه ګرمو اوبو سره مخ لاس پریول غم اوفکر دی اوپه خوب کي مخ لاس پریول په قول دجعفر صادق رحمه الله په اتو وجو وي. ۱: دمراد حاصلیدل ۲: دناجوړي څخه شفا ۳: مال حاصلول ۴: حج ۵: خوشحالي ۶: امن ۷: ددین صفایي ۸: دضرورت پوره کیدل.

## شش\پیپړه\سږي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي سږي لیدل خوشحالي ده اوکه ووینې چي چا ورته سږي ورکړي دی دلیل دی چي هغه ته به نیکي رسوي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ووینې چي دحلال یحوان اومه یا پخ کړي سږي یې خوړلي دي نو دلیل یې دادي چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي.

## شطرنج

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شطرنج کول بهتان او دروا غ خبره ده اوکه ووینې چي په شطرنج کولو کي یې مخالف مغلوب کړي دی دلیل دی چي پرچا به په درواغو غلبه کوي اوتهمت به باندي لګوي او ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شطرنج کول پر جنګ دلیل لري او اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي شطرنج کول نیکي اوخیر نه دي.

## شعر

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که په خوب کی ووینې چي شعر یا غزل یادچا مدح یا صفت کوي یا غیبت کوي دلیل دی چي بې فایدي خبري به کوي دالله تعالی فرمان دی (والشعراء یتبعهم

الغاون، سورة الشعراء: ٢٢٤) ترجمه: ګمراه خلک دشاعرانو پیروي کوي. لیکن که دتوحید یا نعت یا دهوښیارتیا خبري کوي نو ښه دی اوګنهګار به نه سي.

## شغال\ګیدړ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي دګیدړ په طلب کي ګرځي او حیران دی او نیولي یي نه سي نو دلیل دی چي ناجوړه به سي اوکه ووینې چي ګیدړ ورسره بازي کوي دلیل دی چي پر ښځه به عاشق سي اوکه ووینې چي دګیدړي غوښې خوري دلیل دی چي که ناجوړه وي نو شفابه حاصله کړي که قرضدار وي نو قرض به یې اداسي اودګیدړي ویښته پوست او هډوکي په خوب کي لیدل مال دی.

## شفتالو

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي شفتالو لیدل ناجوړي ده که په خپل موسم کي وي نو لږ نقصان دی اوکه شفتالو ژړ نه وي او خوږ وي نو پر مینځه دلیل دی اوکه پخپل وخت وي نو ده ته به مال ملاو سي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي شفتالو په پنځو وجو وي. ۱: مینځه ۲: زوی ۳: ناجوړي ۴: مال ۵: مسافر سړی دطرف څخه نفع. اوکه ووینې چي دشفتالو زوني یي ماتي کړي دی او په خوراك کي تریخي دی نو په غم اوفکر دلیل دی او که خوږي وي نو دلیل دی چي دبې اصله سړی څخه به دهغه په اندازه مال اونفع حاصله کړي.

## شکار\ښکار

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي دغرني بوزي یا غوا یا دځنګلي خر ښکار کوي او غوښه یي خوري نو داتول په ښه والي دلیل لري اوکه ووینې چي ښکار یي غورزولي دی دلیل دی چي مال غنیمت به حاصل کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي په جال سره چي کوم ښکار ونیسي نو داپه نقصان دلیل دی اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي ښکار دخپل معاش او روزي تلاش کوونکي دی.

## شکر\شکري\خوږې

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي لږ شکري پاکه خبره ده یا خپل زوی یا ورور یا دوست مچول دی اوکه ډیري شکري ووینې نو په مال او حلال رزق دلیل دی حضرت ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي ډیري شکري ښه نه دی او خرڅول یي ښه دی لیکن د دې حاصلول او اخیستل بد دی او جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي شکري لیدل په پنځو وجو وي. ۱: پاکه خبره ۲: مچول ۳: نفع ۴: زوی ۵: مال.

## شکر ګزاردن\شکر کول

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي دالله تعالی شکر ادا کوي نودا دده ددین په درستي قوت مرتبې مال او ددواړو جهانونو په سعادت دلیل دی دالله تعالی فرمان دی (لئن شکرتم لازیدنکم، سورة ابراهیم: ۷) ترجمه: که تاسو شکر وکړي نو زه به تاسو ته نور زیات درکړم.

## شکستن\ماتول

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که په خوب کي ووینې چي څه شي یې مات کړي دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به دده نقصان وسي اوکه مات سوي شي دبل چا وي دلیل دی چي دهغه نقصان به خوب لیدونکي ته واپس کیږي اوکه ووینې چي دده داندامونو څخه یو اندام مات سوي دی دلیل دی چي دده یو ځوك خپل چي دده داندام سره تعلق لري هغه ته به غم اومصیبت ورسیږي اوکه ووینې چي دږغ دساز څخه لکه باجه رباب او شپیلۍ څخه یې یو مات کړ نو دا کار پر خوشحالي دلیل دی.

## شکم\نس

ددي په تعبیر کي داهل تعبیر دري قولونه دی دانیال علیه السلام ویلي دی چي نس په ظاهر اوباطن کي مال دی ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي نس زوی دی ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي نس په خوب کي پر خپلوانو دلیل دی که ووینې چي نس یې غټ سوی دی نو دا دمال پر زیاتوالي زوی او خپلوانو دلیل دی اوکه ووینې چي نس یې کوچني سوي دی او په پوست کي یې څه نقصان دی دلیل دی چي دده دمال او زوی نقصان به وسي اوکه ووینې چي څه په نس کي دی ټول یې دباندي را ایستلي دی او پریولي یې دی او بیا یې پرخپل ځای ایښي دی دلیل دی چي دده حال به نیک سي اومطلب به یې حاصل سي اوکه ووینې چي دده دنس څخه زوی راوتلي دی دلیل دی چي داسي زوی به یې وسي چي دده داهل بیتو عزت او مرتبه به زیاته کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي خپل نس پړسیدلي ووینې نو دلیل دی چي ډیر مال به ورته حاصل سي اوکه خپل نس ځیري ووینې نودلیل دی چي مصیبت به ورته رسیږي اوکه پر خپل نس ویښته راختلي وي دلیل دی چي پر ده به دعیال دطرف څخه قرضه راځي اوکه خپل نس خریلي ووینې دلیل دی چي بې غمه به سي او دقرض څخه به خلاص سي اوکه ووینې چي دده په نس کي سوري دی دلیل دی چي دده عیال به دده مال خوري.

## شکنبه\لری\نس\معده

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دحلالي غوښې والا حیوان لری پر حلال مال دلیل دی اوکه لری دغوشیانو څخه ډك ووینې نو پر حرام مال دلیل دی اوکه ووینې چي پوخ سوی لری یې خوړلي دی نو دا پر خیر اونفع دلیل دی.

## شکنجه\زولنې

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شکنجه په ذلت او عاجزي دلیل لری اوکه ووینې چي ده ته دشکنجي څخه تکلیف رسیدلي دی نو بیا یې هم دغه تعبیر دی اوکه ووینې چي دشکنجي څخه ورته تکلیف نه دی رسیدلي نو تعبیر یې داول څخه خلاف دی اوکه ووینې چي دی پاچا په شکنجه کي راخیژولي دی دلیل دی چي دپاچا څخه به ورته تکلیف رسیږي.

## شکوفه درختان\غوټۍ

ددرختو غوټي پخپل وخت کي په تعبیر کي ښه دی او ژړه غوټي په تعبیر کي دسري اوسپني

څخه په کمه درجه کې ده او ګلنار په خوب کې ناوې ده او ددرختو غوټې دهغه دقد په کوچنيوالي مطابق پرپاکه خبره دليل دی. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چې که ويني چې په موسم کې ددرختو غوټې خورې دليل دی چې ددغه درختو دمالکانو څخه به پاکه خبره اورې او دهغوی څخه به خير اونفع حاصله کړي او که ويني چې غوټې بويوي دليل دی چې خلک به يې تعريف کوي.

## شل شدن \ شل کيدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوک ويني چې بدن يې څيرى سوی دی او دکور په کټ کې را ايله سو او ولاړيدی نه سي دليل دی چې دبدو کارونو څخه به توبه کوي او که خوب ليدونکې مفسد وي نو د دې تعبير داولني خلاف دی او جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چې که ويني چې په اندامونو کې يې يواندام بې کاره سوی دی دليل دی چې دده خپلوانو ته چې دده سره نسبت لري افت به ورته ورسيږي.

## شلغم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې شلغم غم اوفکر دی اوکه ويني چې ده چا ته شلغم ورکړي دی دليل دی چې هغه ته به تکليف رسوي او جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې پوخ شلغم داوم څخه ښه دی او ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چې که څوك ويني چې دځان څخه يې لرې کړي دی دليل دی چې دغم اوفکر څخه به خلاص سي.

## شلوار \ پرتوګ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې پرتوګ په خوب کې عجمي مينځه ده يا خرابه ښځه ده چې واده به ورسره کوي او که ويني چې نوي پرتوګ يې اغوستي دی نو عجمي مينځه به اخلي اوکه دپرتوګ اغوستو پر وخت يې ښځې ته وکتل دليل دی چې دښځې سره به جنګ کوي اوکه ويني چې چا ورته پرتوګ ورکړي دی دليل دی چې خادمان به يې زيات سي اوکه ويني چې نوي پرتوګ يې پيداکړي دی دليل دی چې نوي خادم به حاصل کړي اوکه ويني چې خيرن پرتوګ ورسره دی دليل دی چې دالله تعالی څخه به عذاب حاصل کړي دالله تعالی فرمان دی (سرابيلهم من قطران وتغشى وجوههم النار، سورة ابراهيم: ۵۰) ددوی پرتوګونه به دتار کولو وي. او ددوی مخونه به اور پټ کړی وي اوکه ويني چې سور پرتوګ يې اغوستي دی دليل دی چې عزت منده ښځه به کوي اوکه ويني چې دده سره ژړ پرتوګ دی دليل دی چې ناجوړه به سي اوکه ويني چې شين پرتوګ ورسره دی دليل دی چې خلک به يې ملامت کړي او د ښځو لپاره رنګداره پرتوګ ښه دی اوکه ښځه ويني چې نوي پرتوګ يې اغوستي دی دليل دی چې خاوند به کوي اوکه و ويني چې پرتوګ يې ورك سوي دی دليل دی چې مينځه يا خادم به يې وتښتيږي اوکه ويني چې ده د ښځو پرتوګ اغوستي دی دليل دی چې دښځې څخه به ورته ذلت ورسيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې پرتوګ په دروو وجو دی ۱: ښځه

۲: مينځه ۳ : دکور مزدور.

## شلوار بند\پرتوګاښ\واګه

پرتوګاښ دسړي په شرمګاه دليل دی که ويني چي دده پرتوګ سخت او مضبوط دی نو دعضو تناسل په سختي اومضبوطي دليل دی اوکه ژړ پرتوګاښ ويني نو دعضو تناسل په کمزوري دليل دی.

## شمار کردن\شميرل\حساب\حسابول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دچا سره شميرل کوي دليل دی چي په محنت کي به اخته سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي شميرل څونه اسانه وی محنت به کم وي او دعددونو تعبير ديوه څخه ترسلو او زرو پوري په حرف عين کي بيان سوي دی.

## شمشير\توره

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په تيکی کي توره ښځه ده اوبغير د تيکی څخه مال مراد او حکومت دی اوکه ويني چي دده په لاس کي توره ده دليل دی چي زوی به يي پيداسي اوکه ويني چي توره د تيکی څخه دباندي ده نو بيا يي هم دغه تعبير دی اوکه ويني چي توره په تيکی کي ده او تيکی ماته سويده او توره سلامته ده دليل دی چي زوی به يي سلامت وسي او دهغه مور به مړه سي اوکه ويني چي دده په لاس کي لڅه توره ده او پر چا يي پورته کړي ده دليل دی چي دده چا ته دويلو لپاره ديوې خبري سوچ کړي دی اوکه ويني چي په توره يي څوك وهلي دی خو زخمي کړي يي نه دی دليل دی چي د هغه سړي په باره کي به يي ژبه خلاصه سي اوکه ويني چي توره دده په څټ کي راځړيږي دليل دی چي دولايت زمه واري به باندي راسي اوکه دتوري تيکي اوږد وي نو دولايت احتمال نه لري اوکه ويني چي دتوري تيکي لنډ دی نو ولايت به ورته حواله کړي اوکه دتوري تيکي لنډ وي اومات سوي وی نو ولايت به دده دقبضي څخه ولاړ سي اوکه ويني چي بغير دجنګ څخه يي څوك په توره ووهي نو دليل دی چي مشهوربه سي. ابراهيم کر مانی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي پخپل لاس کي يي توره رازړولي دی دليل دی چي زوی به يي راسي اوکه زوی يي نه وي نو حکومت به حاصل کړي. اوکه ويني چي چا ورته ډيري توري ورکړي دی دليل دی چي مالداربه سي اوکه ويني چي توره او تيکی دواړه مات سوي دی دليل دی چي زوی او دهغه مور دواړه به مري. اوکه ويني چي چا په توره وهلي دی او وينه ځني بهيدلي ده او کالي يي باندي خراب سوي دی دليل دی چي پرده به دحرام مال تهمت ولګول سي اوکه ويني چي چا توره ځني اخيستي ده دليل دی چي په حکومت کوم کار دی هغه به ځني واخسته سي اوکه ويني چي توره يي پخپله ملاپوري تړلي ده دليل دی چي عمر به يي زيات وي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي داوسپني توره ورسره ده دليل دي چي کار به يي پاييدار وي او که ويني چي دشيشي توره ورسره ده دليل دی چي دلويی ښځي څخه به ښه والي ويني اوکه دملغلرو توره ورسره وي نو دليل يي دا دي چي داهل دينو په عمل سره به قوت حاصل کړي اوکه ويني چي دلرګي توره

ورسره ده دلیل دی چي کاربه یي کمزوري سي اوکه ویني چي دتیکري توره ورسره ده دلیل دی چي دپاچا دبیبیانو څخه به قوت حاصل کړي اوکه ویني چي دده دتوري تیکۍ ماته سوي ده دلیل دی چي دده په اهل بیتو کي به څوك مري اوکه ویني چي دده سره په دوه مخه تیره توره ده دلیل دی چي دده کار به روان وي اوکه دلاجوردو توره ورسره وي نو دلیل دی چي کاربه یي کامیابه سي اوکه ویني چي دده توره دهنداری په ډول ځلیږي دلیل دی چي خوب لیدونکي به دسردارانو مهرباني اوعزت حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي توره لیدل به پنځو وجو وي. ۱: زوی ۲: ولایت ۳: دلیل ۴: نفع ۵: په دښمن باندي کامیابي حاصلول اوپه خوب کي توره جوړونکي قوي اوفصیح ژبي سړی دی.

## شمع \ ډیوه \ څراغ \ بلب

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شمع دولت دی او دعزت مرتبي عیش اونعمت فراخي ده که په خوب کي ویني چي روښانه شمع ورسره ده دلیل دی چي دخوب لیدونکي دولت اونعمت به زیات سي اوکه ویني چي شمع یي بله کړي دی او پخپل کور کي یي ایښي ده دلیل دی چي په دغه کال به پر ده نعمت فراخ وي او تجارت به یي جاري وي او بعض اهل تعبیر ویلي دی چي دده ښځه به ښایسته وي اوکه ویني چي چا ورته روښانه شمع ورکړي ده دلیل دی چي عزت اودولت به حاصل کړي اوکه ویني چي دده سره دسپینو زرو په شمعدان کي شمع ده دلیل دی چي دښه اصل ښځه به کوي او که ویني چي شمعدان دسرو زرو دی دلیل دی چي دشاهي خاندان څخه به ښځه کوي اوکه شمعدان دقلایي ویني دلیل دی چي ددرمیانه درجي قبیلي څخه به ښځه کوي اوکه ویني چي شمعدان دتانبي دی دلیل دی چي بی اصله ښځه به کوي اوکه ویني چي شمعدان داوسپني دی دلیل دی چي دمضبوط اصل ښځه به کوي اوکه ویني چي شمعدان دخاورو دی دلیل دی چي دعامو خلکو څخه به دیوي ښځي سره واده کوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوک ویني چي بله سوي شمع یي په لاس کي ایښي ده او ناڅاپه مړه سوي ده دلیل دی چي ښځه به یي مري اوکه ویني چي بله سوي شمع دده په لاس کي ده او چا مړ کړي دی دلیل دی چي یو سړی به پر ده حسد کوي اوکه ویني چي دشمعي رڼا کمه سویده دلیل دی چي دده عزت اومرتبه به کمه سي، دانیال علیه السلام ویلي دی چي که څوك ویني چي دده په لاس کي بله شمع ده دلیل دی چي که ښځه یي وي نو زوی به یي پیداسي اوکه ویني چي په ښار کي ډیر شمعان بل دی دلیل دی چي ددغه ځاي پاچا به عادل اوانصاف داروي او قاضي به انصاف دار پرهیزګار اوهوښیار وي او په دغه ښارکي به ډیره خوشحالي وي اوکه په جماعت کي ډیري شمعي ویني دلیل دی چي دهغه ځاي خلک به په عبادت او دعلم په حاصلولو کي پوره مشغول وي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شمع لیدل په څوارلسو وجو وي. ۱: پاچا ۲: قاضي۳: زوی ۴: ناوي ۵: حکومت ۶: مشري ۷: واده ۸: سرای ۹: مالداري ۱۰: علم ۱۱: نامداره ښځه ۱۲: ښایسته ښځه ۱۳: ژوند ۱۴: پر لیدونکی دلیل دی.

## شناوري کردن \ لمبېدل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي په صفا اوبو کي لمبيدل په حيله اوتدبير سره دکسب طلب دی اوکه ووينې چي په صفا اوبو کي لمبيدلی دی او ډوب سوي دی دليل دی چي ددنيا په مال کي به غرق سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي که څوك ووينې چي په درياب کي لمبيږي اوغاړي ته نه دی رسيدلي دليل دی چي پاچا به يې دعمل څخه منع کړي او که ووينې چي لمبيدل ورته اسان دی دليل دی چي کار به يې په اساني سره وسي اوکه ووينې چي لمبيدل ورته ګران دی دليل دی چي کاربه يې ګران سي او که ددرياب غاړه ونه وينې دليل دی چي قيد به سي اوکه ووينې چي پر اوبو باندي يې غلبه کړي ده او دي پکي مړ سوي دي دليل دی چي ددښمنانو دلاسه به هلاک سي او که ووينې چي د ډوبيدو څخه بچ سوي دی دليل دی چي ددنيا دکارونو څخه به لاس اخلي او داخرت په کار کي به مشغول سي اوکه ووينې چي په اوبو کي ډوب سويدی دليل دی چي غم به ورته لاحق سي اوکه ووينې چي داوبو دلاندي څخه ځمکي ته راغلي دی دليل دی چي دغم څخه به خلاصون حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي ددرياب څخه په لمبيدو دباندي راوتلي دی او کالي يې اغوستي دی دليل دی چي دپاچا دکارونو څخه به خلاصون حاصل کړي او که د دې خلاف ووينې نو تعبير يې هم خلاف دی اوکه ووينې چي تر غټې ويالي په لمبيدو راوتلي دی اوغاړې ته راغلي دی دليل دی چي دغټ شغل څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه د دې خلاف ووينې نو دليل يې دی چي په شغل کي به وي.

## شنګرف (دپاري او ګوګړو مرکب)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي شنګرف په خوب کي غم اوفکر دی که ووينې چي دده سره شنګرف دی دليل دی چي غم به حاصل کړي اوکه ووينې چي شنګرف يې خوړلي دی دليل دی چي ناجوړه به سي اوکه ووينې چي په شنګرف سره يې څه تصوير جوړ کړي دی دليل دی چي ددنيا په بازيو کي به مشغول سي او پردي به عاشق سي اوکه په خوب کی وينې چي په شنګرف سره څه ليکي که قران کريم يا دعا يا دتوحيد خبري يې ليکلي وي نو پر نيکي دليل دی اوکه د دې خلاف وي نو په نقصان دليل دی.

## شهادت دادن \ ګواهي \ شاهدي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي رېښتوني ګواهي ښکاره کوي دليل دی چي دغمونو څخه به خلاص وي اوعاقبت به يې ښه وي جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که مصلح وي او ووينی چي رېښتوني ګواهي ورکوي دليل دی چي دمرګ پر وخت به شهادت حاصل کړي اوکه خوب ليدونکي مفسد وي نو توبه به کوي او پر ګناه به پښيمانه سي اوکه خوب ليدونکي مشرك وي نو دليل دی چي مسلمان به سي او عاقبت به يې په خير سي.

## شاه بلوط (يو ډول درخته)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ووينې چي دده سره دشاه بلوط ميوه ده دليل دي چي

غمجن به سي او جابر مغربی رحمة الله علیه ويلي دی چي كه څوك ويني چي دده سره دشاه بلوط ميوه ده يا چا وركړي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به دبخيل سړی څخه نفع حاصله كړي.

**شهد\ګبين\شات\عسل**

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي كه څوك ويني چي شهد دموم سره دی نو د دې تعبير ميراث او حلال غينمت دی اوكه ويني چي ګبين ورسره دی دليل دی چي دهغه په اندازه به خوب ليدونكي دمړي څخه ميراث حاصلوی چي حلال به وي ابراهيم كرمانی رحمة الله علیه ويلي دی چي كه څوک ويني چي ګبين ورسره دی دليل دی چي دهغه په اندازه به قدر علم اوپوه حاصله كړي اوكه ويني چي ددغه ګبين څخه خلكو ته څه وركوي اوهغوي يي خوري دليل دی چي خلک به دده دعلم څخه فايده حاصله كړي او كه د دې خلاف ويني نو نفع به نه حاصلوي او اهل تعبير بيان كړي دی چي ګبين په تعبير كي قران مجيد دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب كي ګبين ليدل په پنځو وجو وي. ۱: ميراث ۲: غنيمت ۳: علم ۴: قران مجيد ۵: فراخه روزي.

**شهرستان\دښار ديوال**

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي كه څوك ويني چي دښار په ديوال كي دننه تللي دی دليل دی چي دين به يي مضبوط سي او انجام به يي ښه وي اوكه ويني چي دښار پر ديوال ساكن سويدی دليل دی چي دپاچا په خدمت كي به وي اوخير اونفع به حاصله كړي. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب كي دښار ديوال ليدل په اووه وجو وي. ۱: پاچا ۲: رئيس ۳: عام خلک ۴: ددين قوت ۵: امن ۶: فتح حاصلول ۷: دكارونو مضبوطي.

**شهر\ښار**

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي كه څوك ويني چي ښار ته تللي دی دليل دی چي دده دين به قوي وي اوددين كار به يې پوره سي او خپل مراد ته به ورسيږي اوكه ويني چي دښار څخه دباندي راغلي دی يا چا دښار څخه ايستلي دی نو د دې تعبير د اول څخه خلاف دی اوكه څوك خپل ځان په مناره ياښار كي ويني نو دا دده پر هلاكت دليل دی اوكه ويني چي دي ديو ښار څخه بل ښار ته ايستل سوي دی دليل دی چي ښځي ته به طلاق وركړي او دده ښځه به بل خاوند كوي اوكه ويني چي په يو ښار كي مقيم سوي دی دليل دی چي ښځه به ځني جلاسي اوكه ويني چي دمسلمانانو دښار څخه تللي دی دليل دی چي درښتوني دين څخه به درواغجن دين طرفته مايل سي او ممكنه ده چي دكافري ښځي سر به واده كوي اوكه دګرم ملک په يو ښار كي واوره اويخني ويني نو داپه قحط او تنګي سره پر واده دليل دی اوكه ديخ ملک يو ښار كي دا ويني نو پر فراخي اودنعمت په ارزاني دليل دی اوكه ويني چي يو ښارته تللي دی اوهغه ښار يي خوښ سوي دی دليل دی چي عزت اومرتبه به حاصله كړي اوكه ويني چي دكلي څخه ښار ته تللي دی دليل دی چي خير اونفع به ورته حاصله سي اوكه ويني چي دښار څخه كلي ته تللي دی دليل دی چي مراد به يي پوره نه سي دالله تعالی فرمان دی (ربنا اخرجنا من

هذه القرية الظالم اهلها، سورة النسآء: ۷۵) ترجمه: اي خدايه موږ د دې کلي څخه وباسه چي د دې اوسيدونکي ظالمان دی اوکه ووينې چي په ښار کي ورك سويدی نو د دې تعبير ښه دی اوکه ووينې چي دښځو ښار ته تللي دی دليل دی چي په دغه ښار کي به فتنه اومصيبت راسي اوکه ووينې چي ښارته ښايسته ښځي راغلي دی دليل دی چي په دغه ښار کي به نعمت اوفراخي وي اوکه ووينې چي دښځو ښارته دننه تللي دی دليل دی چي دپاچا غلامان به هلته ځي اوظلم اوبې انصافي به کوي اوکه ووينې چي ښځي پټ مخ ښار ته دننه تللي دی دليل دی چي په دغه ښار کي به ناخوښي خبري کيږي اوکه په خوب کي ښار دمشرق دطرفه ووينې نو دمغرب دطرف څخه ښه دی. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي دهندوستان ښار ووينې نو دليل يې بد دی اوکه خپل ځان دترکستان په ښار کي ووينې نو پر دښمن به کاميابي حاصله کړي اوکه ځان دبلغار اوشقلان په ښارونو کي ووينې نو دده سره به خيانت وسي اوکارونه به يې پټ وي اوکه خپل ځان دماوراء النهر په ښارونو کي ووينې نو عزت مرتبه اوامن به حاصل کړي اوکه خپل ځان په خوارزم کي ووينې نو دده کار به بند سي اوکه دعراق په ښارونو کي خپل ځان ووينې نو دولت اومرادبه پوره کړي اوکه دخراسان (اوسني افغانستان) په ښارونو کي خپل ځان ووينې نو کار به يې په اساني سره پوره سي اوکه ځان په ښار فارس کي ووينې نو دده ناسته ولاړه به دپرهيزګاره خلکو سره وي اوکه دکرمان په ښارونو کي خپل ځان ووينې نو دده خاندان به ډېر سي اوکه خپل ځان دحجاز په ښارونو کي ووينې نو حج به کوي اوکه ديمن په ښارونو کي خپل ځان ووينې نو دا پر سلامتي اوامن دليل دی اوکه دمصر په ښارونو کي خپل ځان ووينی نو خوشحاله به سی اوکه خپل ځان د اذربايجان په ښارونو کی ووينی نو په کارونو کي به غم مصيبت اوتکليف پورته کوي اوکه خپل ځان دارمينيا په ښارونو کي ووينې نو مراد به يې پوره سي اوکه دمغرب په ښارونو کي خپل ځان ووينې نو دده په کارونو کي به نقصان راسي اوکه خپل ځان دفرنګيانو په ښارونو کي ووينې نو دده ددنيا کارونه به ښه سي ليکن دين به يې کمزوري وي اوکه خپل ځان دشيروان په ښارونو کي ووينې نو دليل دی چي کار به يې نيك سي.

## شهرهايي مفردين\يو يو ښار ليدل

ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوک په خوب کي خپل ځان په مکه شريفه کي ووينې نو دليل دی چي عزت مرتبه اومدد به حاصل کړي اوکه خپل ځان په مدينه منوره کي ووينې دليل دی چي دده صحبت به دسوداګرو سره وي او دهغوي څخه به نفع حاصله کړي. اوکه خپل ځان په يمن ښارکي ووينې دليل دی چي دبيري او دهشت څخه به په امن کي وي اوکه خپل ځان په طايف کي ووينې نو دليل دی چي ډېر سفرونه به کوي اونيك به سي اوکه په بصره کي ځان ووينې نو دعالمانو سره دناستي شرف به حاصل کړي اوکه په واسطه کي ځان ووينې نو ديندراه اوپرهيزګاره به سي اوکه ځان په کوفه کي ووينې دليل دی چي دعامو خلکو څخه به نيکي

حاصله کړي اوکه خپل ځان په بغداد کي ويني نو مالداره به سي اوپه تجارت کي به نفع حاصله کړي اوکه خپل ځان په حلوان کي ويني نو خوشحاله ژوند به تير کړي اوپه خوب کي اصفهان ليدل دسردار څخه په نفعي دليل دی اوموصل ليدل پر مراد حاصليدو دليل دی او دمشق ليدل پر فراخه روزي او حلب اوانطاکيه دمشر څخه پر نفعي دليل لري اوبيت المقدس ليدل پر عزت اومراد حاصلولو دليل دی او اخلاط ليدل دکار په پښيماني دليل دی او قيصريه ليدل پر نفع دليل دی اوکه په قلعي کي خپل ځان قيد ويني نو دده کار به بند کړه سي اونفلس ليدل پرکار دليل دی او ګنجه ليدل دنعمت پر زياتوالي دليل دی او تبريز ليدل دغم څخه دخلاصون دليل دی اورنګان پر غم دليل دی او همدان ليدل پر مرتبه دليل دی اوقزوين ليدل پر دوستي دليل دی او ری ليدل په قسم خوړلو دليل دی او ګرګان ليدل په جنګ کي دماتيدو دليل دی اودهستان ليدل په فکر مندي دليل دی اودبسطام ليدل خوشحالي ده اوبيساوه ليدل دمال پر نقصان دليل دی او مرو ليدل دکار پر نه پوره کيدو دليل دی اونيشاپور ليدل دبزرګ سړي سره په صحبت حاصليدو دليل دی او که خپل ځان په طوس ښار کي ويني دليل دی چي خير اونفع به حاصله کړي اوکه په بلخ کي خپل ځان ويني دليل دی چي پپ دښمن به کاميابي حاصله کړي اوکه په سمر قند کي خپل ځان ويني دليل دی چي په خلکو کي به نامدارسي اوکه په غزني کي خپل ځان ويني دليل دی چي په خلکو کي به مشهور سي اوکه خپل ځان په کاشغر کي ويني نوغمجن به سي اوکه په اسکندريه کي خپل ځان ويني دليل دی چي داسي کاربه وکړي چي په هغه سره به پښيمانه سي اوکه په اندلس کي خپل ځان ويني دليل دی چي دده سره به خيانت وکړي اوکه خپل ځان په حصار کي ويني دليل دی چي کار به يي بند سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ښارونه ليدل په څلورو وجو وي ۱: دين ۲: ظاهريدل ۳: خوشحاله ژوند ۴: ښځه چي نکاح به ورسره وکړي.

## شونيز \ توره دانه \ کلونجي

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کلونجي پرغم اوفکر دليل دی اوددې خوړل دضرر او نقصان سبب دی اوکه ويني چي ډير کلونجي ورسره دی نو په غم کي به ګرفتار سي.

## شوربا \ ښوروا

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ښوروا دغوښي سره وي او خوند يي ښه وی نو دنفعي دليل دی اوکه د دې خلاف ويني نو دغم اوفکر دليل دی.

## شيراز \ چکه \ مستې

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي مستې غم او فکر دی اوکه تروه وي نو غم به يي زيات سخت وی اوکه ويني چي مستې خرڅوي يا چا ورکړي دی او دهغه څخه يي څه خوړلي نه وي نو دليل يي دی چي خوشحالي به حاصله کړي. ابراهيم کرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي مستې په خوب کي ليدل خرابه خبره ده چي په هغه سره به غمجن سي.

## شير \ شيدې

دانيال ﷺ ويلي دی چي په خوب کي تازه او خوږې شيدي دمال پر زياتوالي دليل دی اوکه تروې وي نو تعبير يي د دې خلاف دی اوکه ويني چي تازه شيدې يي چيښلي دی نو دهغه په اندازه به حلال مال حاصل کړي اوکه ښځه ويني چي په تيانو کي يي شيدي جمع سوي دی دليل يي دی چي زوی به يي پيداسي اوکه سړی ويني چي شيدي باسي اودهغه پر ځاي وينه راځي دليل دی چي حرام مال به حاصل کړي اوکه ويني چي دخپلو تيانو څخه شيدي چيښي دليل دی چي په کار کسب کي به يي نقصان وسي اوکه سړی ويني چي دی ماشوم دی او شيدي چيښي دليل دی چي مراد به يي پوره نه سي اوکه ښځه ويني چي بچي ته شيدي ورکوي دليل دی چي دپاچا څخه به مال حاصل کړي او که ښځه ويني چي بچي دشيدو څخه ليري کوي اوبيا شيدي ورکوي نو دا پر نقصان دليل دی. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي دځنګلي حيوانانو شيدي لږ مال دی که ويني چي دځنګلي خر شيدي چيښي نو دا پر خوبي او صلاحيت دليل دی اوکه ويني چي داوښ شيدي چيښي دليل دی چي دمشر څخه به مال حاصل کړي اوکه ويني چي دهوسۍ شيدي چيښي دليل دی چي روزي به باندي فراخه سي اوکه ويني چي دبوزي شيدي چيښي دليل دی چي دښځي څخه به مال اونعمت حاصل کړي اوکه ويني چي دپړانګ شيدي چيښي دليل دی چي پر دښمن به کاميابي حاصله کړي اوکه ويني چي دزمري شيدي يي چيښلي دی دليل دی چي دلوی سړي څخه به حرام مال حاصل کړي اوکه ويني چي دميښي شيدي يي چيښلي دی دليل دی چي مال به حاصل کړي اوکه ويني چي دخري شيدي يي چيښلي دی دليل دی چي ناجوړه به سي اوشفا به حاصله کړي اوکه ويني چي دسوي شيدي چيښي دليل دی چي دښځي څخه به نفع حاصله کړي اوکه ويني چي د خنزيري ښځي شيدي چيښي دليل دی چي احمق او بيوقوف به سي اوکه ويني چي دګيدړي شيدي چيښي دليل دی چي دچا سره به مکر اوحيله کوي اوکه ويني چي دشرمښ شيدي چيښي دليل دی چي اولاد به ورسره خيانت کوي اوکه ويني چي دبوزي شيدي چيښي دليل دی چي حلال مال به حاصل کړي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ددا سي حيوان شيدي ايستل چي غوښه يي حلاله وي پر حلال مال دليل لري او دکومو غوښه چي حرامه ده دهغه شيدي پرغم او فکر دليل لري او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي شيدی ليدل په دروو وجو دی. ۱: حلال رزق ۲: مال اوزوی ۳: غم اوفکر.

## شيره

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دانګورو شيره ددنيا خير اونفع ده دالله تعالی فرمان دی (فيه يغاث الناس وفيه يعصرون، سورة يوسف: ۴۹) ترجمه: ددې څخه خلک فايدي پورته کوي اودا نښتيځي اوکه ويني چي دانګورو څخه شيره نښتيځل وي دليل دی چي دلوی پاچا نزدی سړی به سي اوکه ويني چي تازه شيره خوري دليل دی چي دهغه په اندازه به حلال رزق

حاصل کړي اوکه ویني چې دشیرې خوند تریو دی دلیل دی چې په غم اومحنت سره به روزي حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چې که څوك ویني چې شیره ورسره ده نو خیر او نفع ده اوکه ویني چې د انگورو څخه شیره ونښتیځي او غورزوي یي دلیل دی چې ډیر مال به حاصل کړي اوشیره چې څونه تازه اوخوږه وي هغونه به نفع زیاته وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چې په خوب کي شیره لیدل په څلورو وجو وي. ۱: حلال مال ۲: ډیر نعمت ۳: علم او حکمت ۴ : بغیر دمحنت څخه نفع.

## شیریني‌ها\متهاياني\خوږې

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چې په خوب کي متهاياني واده خوشحالي اوحلال رزق دی اوکه ویني چې یو چا متهايي ورکړي ده دلیل دی چې دهغه څخه به روزي حاصله کړي اوکه ویني چې متهايي یي خوړلي ده دلیل دی چې نفع به حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چې په خوب کی متهايي لیدل په څلورو وجو وي. ۱: نفع ۲: حلال مال ۳: علم ادب هوښیارتیا او حکمت ۴: ښایسته مینځه.

## شیر\ببر شیر\زمری

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چې په خوب کي زمري دښمن دی که ویني چې دزمري سره یي جنگ کړي دی دلیل دی چې ددښمن سره به جنگ کوي او څوك چې کامیابي حاصلوي هغه به غالب سي اوکه ویني چې دزمري څخه تښتیدلي دی او زمري ورپسي گرځی نو دلیل دی چې دچا څخه بیریږي دهغه څخه به په امن کي سي اوکه ویني چې دزمري غوښه خوري دلیل دی چې دپاچاهانو څخه به مال حاصل کړي اوپر دښمن به کامیابي حاصله کړي او دزمري غوښه خوړل دپاچا څخه انعام حاصلول دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي چې په خوب کي زمري پاچا دی اوکه ویني چې دزمري د بدن څه شي یي پخ کړي دی یا چا ورکړي دی او ده خوړلي دی دلیل دی چې ددښمن دمال څخه به څه خوري اوکه ویني چې دزمري سره یي جماع کړي ده دلیل دی چې دخرابو خبرو څخه به خلاصون پیداکړي اوپه مراد به ورسیږي اوکه ویني چې ده زمري په ترخ کي نیولي دی دلیل دی چې ددښمن سره به صلح کوي اوکه ویني چې نر زمري دده سره جماع کوي دلیل دی چې دپاچا څخه به ذلت حاصل کړي اوکه ویني چې په ده پسي زمري راروان دی اومخکي سوي دی ځني دلیل دی چې دپاچا څخه به ورته نقصان رسیږي. دانیال علیه السلام ویلي دی چې که څوک په خوب کي ویني چې دزمري سر یي پیدا کړي دی دلیل دی چې پاچاهي به حاصله کړي اوکه ویني چې پاچا ورته زمري ورکړي دی دلیل دی چې ده ته به پاچاهي ورکړي یا پخپل ملك کي به ورته څه ولایت ورکړي اوکه ویني چې دزمري پر سر ناست دی دلیل دی چل مرتبه اودولت به یي زیات سي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چې په خوب کي نر زمري پاچا دي اوښځه زمري دپاچا ښځه ده اوکه ویني چې دښځي زمري څخه شیدي لوشي دلیل دی چې دپاچا منشي به سي اوکه بوډي ښځه داخوب ویني نو دپاچا دزوی دایي به سي اوکه ویني چې زمري یي دملا څخه نیولي دی دلیل دی چې پر هغه باندي به

کاميابي حاصلوي اوکه ويني چي زمري خوړلي دی دليل دی چي ددښمن څخه به ورته نقصان ورسيږي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي زمري دي په ترخ کي نيولي دی دليل دی چي دپاچا مقرب به سي اوکه د دې خلاف ويني نو دپاچا به باندي اعتماد وي ليکن په خوب کي دزمري غوښه پوست اوهډوکي پر دښمن دليل دی او که ويني چي دزمري غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دښمن به په اساني سره په واک کي راولي او که د دې خلاف ويني نو تعبير يي هم خلاف دی جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي زمري ليدل په درو وجو وي. ۱: پاچا ۲: زړه ور دښمن ۳: زبردست دښمن.

## شير خشت (قبض ماتونکی دوا)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي شيرخشت حلاله روزي ده اوکه ويني چي شيرخشت يي جمع کړي دی دليل دی چي په سفر کي به مال حاصل کړي اوکه ويني چي شير خشت يي خوړلي دی دليل دی چي په عيال به مال خرخ کړي او عوض به حاصل کړي اوکه ويني چي شير خشت ورسره دی دليل دی چي په تجارت کي به نفع حاصلوي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي شيرخشت ليدل په درو وجو وي. ۱: حلال مال ۲: دژوند فراخي. ۳: دزړه مراد حاصلول.

## شيشه \ ښيښه \ بوتل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي بوتل ښځه ده او وايي چي خادم دی چي دښځو خدمت کوي ليکن پايدار به نه وي اوکه په خوب کي ويني چي چا ورته خالي بوتل ورکړي دی دليل دی چي فقيره ښځه به کوي اوکه ويني چي په دغه بوتل کي دګل بنفشه تيل دی نو پر ديندارہ ښځي دليل دی. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دتيلو بوتل مالداره ښځه ده او که ويني چي دهغه څخه يي تيل پر سر مښلي دی دليل دی چي دښځي دمال څخه به ده ته څه حاصل سي اوکه ويني چي دهغه څخه يي دسيب يا دانارو وغيره شربت چيښلي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به ورته دښځي مال ورته حاصل سي اوکه ويني چي بوتل دشيشي او پاك دی دليل دی چي دپرهيزګاري او ښايستي ښځي سره به واده کوي اوکه ويني چي بوتل مات سوي دی دليل دی چي ښځي ته به طلاق ورکوي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي بوتل ورسره دی اوپه هغه کي ياڅه خوړ شي دی دليل دی چي خوش طبعيته او موافقه ښځه به غواړي او که ګلاب تروه ويني نو تعبير يي داول خلاف دی اوکه په بوتل کي يو ښه شي ويني نو دليل دی چي پرهيزګاره اوښايسته ښځه به کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي بوتل ليدل په درو وجو وي. ۱: ښايسته ښځه ۲: مينځه ۳: دکور خادم.

## شيطرج (يو ډول دوا)

شيطرج يوه دوا ده چي په خوب کي د دې خوړل دضرر او نقصان سبب نه دی.

# [ ص ]

## صابون\سابون

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي خپل کالي په صابون سره پريولي دليل دی چي دبدوکارونو څخه به منع سي اوکه په خوب کي ويني چي صابون يي خوړلي دی نو دليل دی چي حرام مال به خوري اوکه ويني چي چا ته يي صابون دخوړلو لپاره ورکړي دی دليل دی چي خپل مال به چا ته دخوړلو لپاره ورکوي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوک ويني چي ډير صابون ورسره دی او خپل کالي يي پريمنځلي دی دليل دی چي مراد به يي پوره سي اوکه ويني چي خپل لاس يې په صابون سره پريولي دی دليل دی چي دخلکو څخه به جلا اوسيږي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دصابون اخيستل دخرڅولو څخه ښه دي اوکه سپين صابون وي اوپر اور خوشبويي کوي نو تعبير يي ډير ښه دی او په خوب کي صابون جوړونکي سردار دی.

## صرافي کردن\صرافي\صراف

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي صراف عالم دی اوکه څوك په خوب کي ويني چي صرافي کوي نو تعبير بيانوونکي دی دپوښتني کوونکي حالت ته خيال وکړي که خوب ليدونکي پرهيزګاره او ديندار وي دليل دی چي څه ددين موافق وي هغه به خوښوي اوکه پوښتنه کوونکي څه ليکل ويل نه پيژني دليل دی چي حيران به سي او په فضولياتو کي به مشغول سي او ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي صرافي کوي دليل دی چي په خيانت او دخلکو په غيبت کي به مشغول سي اوبيان کوي چي په خوب کي صراف فضول خبري کوونکي سړی دی چي هرڅه دخپل نقصان لپاره کوي.

## صاروج\ليو کول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ليو يي کړي دی دليل دی چي دخلکو سره به پاکه خبره کوي او په خوب کي ليو کوونکي خوش طبعه سړی دی جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي دچا لپاره يي ليو کړي دی دليل دی چي دهغه مدد به کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ليو کول په درو وجو دی. ۱: پاکه خبره ۲: امداد کول ۳ : دهغه سړی رضا تلاش کول.

## صاعقه\بريښنا\تکه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي صاعقه اور دی چي درويځو څخه راوځي که څوك په خوب کي ويني چي دوريځي څخه اسماني بجلي را ايله سوي ده دليل دی چي دهغه به اندازه به دالله تعالی عذاب پر دغه ځاي والاو وي دالله تعالی فرمان دی (ويرسل عليها حسبانا من السمآء فتصبح صعيدا زلقا، سورة الکهف: ۴۰) ترجمه: اوپر دوي بي داسمان څخه عذاب راوليږي بيا به يو هوار ميدان پاته سي دغه ملك والا ته توبه کښل پکار دی چي عذاب ځني ليري سي. ابراهيم کرمانی

رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دهوا څخه اور دباران په ډول وريږي دليل دی چي په دغه ملک کي به دپاچا دطرف څخه مصيبت او خونريزي کيږي اوکه ويني چي بجلي را ايله سوه او دي يي وسوزی دليل دي چي خوب ليدونکي به دپاچا دعذاب څخه هلاک سي.

**صبح \ سهار \ سپېدې**

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي په صبح صادق سره ټوله دنيا روښانه سوي ده دليل دی چي ددغه ملك اوسيدونکي ته به امن حاصل سي اوکه ويني چي دسهار څخه وروسته تياره سوي ده نو ددې تعبير داولني خلاف دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني سهار سوي دی اوسور دی او مځکه د دې دعکس څخه سره سوي ده دليل دی چي په دغه ملك کي به قتلونه او خونريزي کيږي اوکه دسهار رنګ ژړ ويني نو په ناجوړي دليل دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي سهار ليدل دهغه ملک دخلکو پر قوت او ددين پر صلاحيت دليل دی.

**صبر ايلوا (يو ډول دوا)**

ايلوا په خوب کي داسي عالم دی چي دهغه مقصد دعلم څخه مال حاصلول وي که ويني چي ايلوا يي خوړلي ده دليل دی چي داسي قسم عالم به سي اوکه ويي نه خوړل نو تعبير يي داولني خلاف دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ايلوا خوړل پرغم اودفکر دليل دی چي ده ته به ورسيږي.

**صحبت \ ملګرتيا**

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي دمصلح اوپرهيزګاره سړی سره ملګرتيا ويني دليل دی چي دده ژوند به په ايمانداري اودرستي سره وي اوکه د دې خلاف ويني نو دده پر تباه کاري او په فساد دليل دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي دده ملګرتيا دپاچا سره ده دليل دی چي علم اوعقل به حاصل کړي اوکار به يي په انتظام سره وي او که خپله ملګرتيا دمشر سړی سره ويني نو ده ته توبه ايستل پکار دی اوکه ويني چي دمشر سره يي ملګرتيا ده دليل دی چي په دنيا به مغرور وي.

**صحرا \ ځنګل**

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ځنګل ليدل دپاچا دطرفه نيکي اوخوشحالي ده دځنګل دغټ والي په اندازه اوکه ځنګل بې اندازي ويني اوپه هغه کي ډير خس وخاشاك ويني او خپل ځان پکي ګرزيدونکي ويني دليل دی چي دده ملګرتيابه دظالم پاچا سره وي او دهغه مقرب به وي اوکه ځنګل شين ويني دليل دی چي دده ملګرتيا به دعالم اوفاضل سړی سره وی اودهغه څخه به فايده حاصله کړي.

**صحف \ صحيفې \ ورقي \ پاڼي د کتاب**

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي د ابراهيم عليه السلام صحيفي وايي دليل دی چي څوک به ورته دنيکي لاره ښيي او دخطا څخه به يي منع کړي خاصکر که دکتاب څخه

یې هم داویلي وي اوکه سرسري توري یې ویلي وي نو دده ملګرتیا به دمنافقانو او ریاکارو سره وي او جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که مسلمان وویني چي ده صحیفي خلاصي کړي دی او صحیفه ابراهیم علیه السلام وایي دلیل دی چي دده عقیده به پر دین اسلام وي او ګبر او یهودیان به نه خوښوي او دهغوي سره به محبت نه کوي.

## صحیفه \ خط \ کاغذ

دصحیفي دري معني دي ۱: خط ۲: کاغذ ۳: پرده. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك وویني چي پر صحیفي یې څه لیکلي دی دلیل دی چي وراثت به حاصل کړي اوکه وویني چي دچا پرصحیفه یې دځان لپاره څه لیکلي دی دلیل دی چي ددیندار اوامانتدار سړی څخه به څه حاصل کړي اوکه ووینې چي په صحیفه یې په ښین خط سره څه لیکلي دی دلیل دی چي دمصیبت وهلي څخه به څه حاصل کړي اوکه پر صحیفي یې څه نه وي لیکلي نو وراثت به نه حاصلوي.

## صدف \ سیپي

ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي سیپي ښځه ده که وویني چي دده سره سپي ده دلیل دی چي ښځه به کوي یا به مینځه اخلي اوکه وویني چي سپي ورکه سوي ده دلیل دی چي دده خادم به وتښتیږي.

## صدقه \ خیرات

په صدقه ورکولو کي داهل تعبیرو اختلاف دی ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که وویني چي یو عالم صدقه ورکوي دلیل دی چي دده دعلم څخه به خلکو ته نفع ورسیږي اوکه وویني چي پاچا صدقه ورکوي دلیل دی چي ده ته به ډیره نفع وي اوکه وویني چي څوك پیسه دار صدقه ورکوي دلیل دی چي شاګردانو ته به کار ښیي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي صدقه ورکول امن اودغم اوسختي څخه خلاصون دی جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که قرضدار وویني چي صدقه ورکوي دلیل دی چي د قرض څخه به خلاص سي که غلام وي نو ازاد به سي که قیدي وي نو خلاصون به حاصل کړي اوکه بي دینه وویني چي صدقه ورکوي دلیل دی چي مسلمان به سي مقصد دا چي په خوب کي صدقه ورکول ددواړو جهانونو سعادت دی.

## صراط \ پل صراط

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك وویني چي په لاره کي ولاړ دی دلیل دی چي خراب کارونه به دده په لاس سم سي ځکه چي صراط نیغه لار ده دالله تعالی فرمان دی (ویهدیک صراطا مستقیما، سورة الفتح: ۲) ترجمه: اوتاته به سیده لاره وښیو اوکه وویني چي پر پل صراط تیر سوي دلیل دی چي دلوی مصیبت اومرګ څخه به په امن کي وي اوکه وویني چي دپل صراط څخه دوږخ ته را ایله دی دلیل دی چي په غم بلا اومصیبت کي به راسي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي وویني چي دپل صراط څخه لیري سوي دی دلیل دی چي داخرت

لپاره به نيك عمل كوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي پل صراط ليدل په ښپږو وجو وي. ۱: سمه لار ۲: مشكل كار ۳: بيره ۴: دپاچا دطرفه ارام ۵: گناه ۲: نفاق.

## صفه \ ډبه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي ډبه مور اوپلار دی اوكه ووينې چي دده دكور ډبه پاكه نوې او لوړ قميته ده نو دا پر ډير عمر او دمور او پلار د ذات پر سلامتيا دليل دی اوكه ووينې چي ډبه را ايله سويده اوخرابه ده دليل دی چي دده مور اوپلار به هلاک سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه څوک ووينې چي دډبه په راسته طرف كي نقصان راغلي دی دليل دی چي دده پلار به ناجوړه سي اوكه ووينې چي چپه طرف ته پكښي سپور سوي دی دليل دی چي دده مور به ناجوړه سي اوكه مور او پلار يي نه وي نو پر غم او فكر دليل دی.

## صلوة او سلام \ درود شريف

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوك ووينې چي پر نبی ﷺ باندې درود شريف وايي دليل دی چي د ده مرادونه به پوره سي او روزي به باندې فراخ سي او عادت به يي په خير سره وي او جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه په خوب كي ووينې چي درود شريف ډير وايي دليل دی چي حج به وكړي او كه نبی ﷺ په خوب كي ووينې دليل دی چي دنبی ﷺ طريقي به په ځاي راوړي.

## صليب \ چليپه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ووينې چي ده صليب اخيستي دی يا چا وركړي دی نو دليل يي دا دي چي دده په دين كي خلل دی او دده رغبت به دكافرانو طرفته وي اوكه ووينې چي صليب دده په څټ كي دی نودليل يي دا دي چي دده اعتقاد خراب دی اوكه ووينې چي صليب پرستي كوي نو دليل يي دا دي چي دالله تعالى سره شريك نيسي په ذات كي اوكه ووينې چي چا صليب وركړي دی اوده مات كړي دی يا يي دكور څخه دباندې غورزولي دی نو دليل يي دا دي چي دين اسلام به دده په زړه كي مضبوط وي او دكافرانو دښمن به وي او كه ووينې چي صليب يي مچ كړي دی او خوښوي يي نو د دې تعبير داول خلاف دی.

## صمغ \ كنډوري \ كونډوري

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي ددرختي كونډري پاته سوي خوراك دی كه په خوب كي ووينې چي دده سره كونډري دی يا چا وركړي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به دچا پاته سوي مال خوري اوكه ووينې چي كونډري يي چا ته وركړي دی نو دپاته سوي مال څخه به چا ته څه وركړي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي كونډري لږ نفع ده چي ده ته به ددرختي سره دنسبت په لرلو حاصله سي دارنگه كه په خوب كي دبادامو كونډري وخوري نو دبخيل سړي څخه به نفع حاصله كړي اوكه دزردالو كونډري وخوري نو دناجوړي سړي څخه به نفع حاصله كړي اوكه دكيكر كونډري وخوري يا يي دځان سره وساتي نو دځنگليانو څخه به نفع حاصله كړي.

## صنج (یو ډول تماشه)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي صنج باطلي او دروغ خبري دی اوکه ویني چي دده په مخکي صنج ږغوي دلیل دی چي په باطلو او دروغو سره به خوشحاله وي اوکه ویني چي دصنج سره رباب او شپیلۍ هم ده نو پر غم اوفکر دلیل دی چي دغه ځاي والاته به رسیږي اوکه ویني چي صنج یي غوږزولي دي نو دباطلو او دروغجنو څخه به توبه وکړي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي صنج ږغول په پنځو وجو وي. ۱: بدي خبري ۲: بي فایدي کار ۳: اسباب ۴: غم او فکر.

## صندل (یو ډول خوشبوداره دوا)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوک ویني چي صندل ورسره دی یا چا ورکړي دی دلیل دی چي خلک به دده مدح او صفت کوي اوکه ویني چي سپین صندل ورسره دی دلیل دی چي دلوی سړی څخه به انعام حاصل کړي او چي څونه صندل زیات وي دهغه په اندازه به خوب لیدونکی زیاته نفع حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي صندل لیدل په څلورو وجو وي. ۱: تعریف او شاباسي ۲: خیر او برکت ۳: عزت اومرتبه ۴: نفع.

## صندوق\بکس

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي صندوق ښځه ده اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خوب کي صندوق عزت اومرتبه ده اوکه ویني چي غټ صندوق یي اخیستي دی یا چا ورکړي دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به عزت اومرتبه حاصله کړي. اوکه ویني چي دده صندوق ورك یا مات سوي دی دلیل دی چي مرتبه به یي کمه سي او جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي پاك صندوق ورسره دی دلیل دی چي دده ښځه به ښایسته اوپاکه وي او دزوړ صندوق تعبیر د دې خلاف دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي صندوق لیدل په دروو وجو وي. ۱: عزت اومرتبه ۲: قدر او دمرتبه لوړوالي ۳: ښځه.

## صورت\شکل\مخ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك ویني چي دده مخ په بل شکل بدل سوی دی دلیل دی چي دده حالات به په لیدل سوي شکل بدل سي اوکه ویني چي بیا پخپل شکل سو نو دلیل دی چي دالله تعالی طرفته به رجوع وکړي اوکه په خوب کي خپل شکل بل شان ویني دلیل دی چي هر سړی به ځني مخ اړوي او جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي دبل سړی یا حیوان په شکل سوي دی دلیل دی چي بي مذهبه او دروغجن به وي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي تصویر لیدل په الله تعالی پوری دروغ دی.

## صوف\وړی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دوړي کالي ددنیا خیر اونفع ده خاصکر دپرهیزګاره سړی لپاره اوکه ویني چي دصوفیانو دبدن څخه یي دوړي کالي ایستلي دی دلیل دی چي دده رغبت به دګناه او خطا طرفته وي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که څوک

ويني چي صوفي سوي دی او دوړي کالي يي اغوستي دی او دصوفيانو سره ديره سوي دی دليل دی چي داهر څه به په ويښه ويني اوکه ويني چي صوفيانو دځان څخه ليري کړي دی نو د دې تعبير د اول څخه خلاف دی اوکه ويني چي صوفي سوي دی يا دصوفيانو سره ناست دی دليل دی چي منافقانه عبادت به کوي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي صوفي جوړيدل په څلورو وجو وي. ۱: ددنيا څخه لاس اخيستل ۲: دمخلوق څخه په ډډه کيدل ۳: دعبادت هميشوالي ۴: دچا څخه طمع نه لرل.

## صيقل\دوسلي صفا کول

صيقل په خوب کي پاچا دی او دبعضو په نزد وزير دی که ويني چي وسله صفا کوي که داهل اصلاح څخه وي نو پاچاهي به حاصله کړي يا به دپاچا مقرب سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي وسله صفا کوونکي داسي سړی دی چي په خپل لاس حق دباطل څخه جلا کوي.

## صيني\چيني لوښي \ د شيشي لوښي

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چيني لوښي خادمه ښځه ده که چيني لوښي پاك او صفا ويني دليل دی چي ښايسته خادمه ښځه ده اوکه چيني لوښي تور ويني دليل دي چي خادمه به يي بد شکله وي اوکه ويني چي دده سره چيني سامان دی يا ده اخيستي دی دليل دی چي خادمه ښځه به کور ته راولي يا به دده ښځه يامينځه مري يا به تښتي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چيني سامان ليدل په درو وجو وي ۱: خادمه ښځه ۲: مينځه ۳: د ښځو څخه نفع.

# [ض]

## ضرابي\روپۍ مهر کول

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي روپي مهر کوونکي داسي سړی دی چي خپلي خبري ښايسته کوي او په فخر يي بيانوي اوکه ويني چي د روپي مهر کولو کار کوي دليل دی چي يو څو بي اصله خبري به ښايسته اوخوږي کړي او وايي به يي اوکه ويني چي روپي جوړوي دليل دی چي سختی اوناخوښي خبري به کوي چي خلک يي واوري نوخفه به څني سي.

## ضعيف\کمزوري

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کمزوري دمرتبي نقصان دی که ويني چي دده سر کمزوری سوي دی دليل دی چي عزت اومرتبه به يي کمه سي اوکه ويني چي دده سترګه کمزوري سوي ده دليل دی چي ښځه يا خادمه به يي کمزوری سي اوکه ويني چي دده غوږ کمزوري سوي ده دليل دی چي ښځه يا خادمه به يي کمزوري سي اوکه ويني چي دده پزه کمزوري سوي ده دليل دی چي عزت اومرتبه به يي کمه سي اوکه ويني چي دده دين کمزوري سويدی دليل دی چي بي فايدي خبري به کوي اوکه ويني چي څټ يي کمزوري سوي دی دليل

دی چي امانت به نه ادا كوي اوكه ويني چي دده دملا تير كمزوري سوي دی دليل دی چي دخلكو غيبت به كوي اوكه ويني چي دده لاس كمزوري سوي دی دليل دی ښځه به يي ناجوړي سي اوكه ويني چي دده مړوند كمزوری دی دليل دی چي مور يا زوی به يي پيداسي اوكه ويني چي دده مټ ياسينه كمزوري ده دليل دی چي دده تدبير او رايه به بي كاره وي اوكه ويني چي دده ګوته كمزوري ده نو دده لور به ناجوړه سي اوكه ويني چي دده ګېډه كمزوري سوي ده دليل دی چي دده دملاتړ سړی به كمزوري سي اوكه ويني چي دده كوناټي كمزوري سوي دی دليل دی چي دده په خپلوانو كي به ديو مشر سړی حال خراب وي اوكه ويني چي دده ورون كمزوري سوي دی نو دمال نقصان به يي وسي اوكه ويني چي دده بدن كمزوري سوي دی دليل دی چي غمجن به سي.

## ضياع \ جايداد

ضياع دزميندارۍ جايداد كه ويني چي پخپله مځكه كي يي تخم كرلي دی دليل دی چي دده حالات به ښه سي اوكه ويني چي دده په ځمكه كي په خپل موسم كي څه راشنه سوي دی نو دليل يي دا دي چي ددين په لاره كي به نيك وی. اوكه ويني چي خپل ټول جايداد يي خرڅ كړي دی اوقيمت يي اخيستي دی دليل دی چي په مصيبت اوغم كي به راسي اوكه د دې خلاف ويني نو پر خير اوصلاح دليل دی اوكه ويني چي دده جايداد اباد دی دليل دی چي دابادي مطابق به ددنيا مال حاصل كړي او كه د دې خلاف ويني نو دمال پر نقصان دليل دی اوكه ويني چي سيلاب دده مځكه خرابه كړي ده دليل دی چي دپاچا څخه به ورته نقصان رسيږي.

## [ ط ]

## طاس \ طشت \ تالی \ پياله

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب كي تالي مينځه يا نوكره ده كه ويني چي دده تالي ماته سوي ده دليل دی چي دغه ښځه به دده څخه جلا سي يابه مړه سي. ابراهيم كرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب كي تالي نيك عادت والا مينځه ده اوكه ويني چي چا تالي ور كړي ده او په هغه كي اوبه دی او ده چيښلي دی دليل دی چي زوی به يي پيداسي اوكه ويني چي تالي ماته سوي ده اواوبه ځني بهيدلي دی دليل دی چي مينځه به يي مړه سي او زوی به يي پاته سي اوكه ويني چي اوبه بهيدی اوتالي روغه پاته سوه دليل دی چي زوی به يي مري مينځه به يې پاته سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب كي تالي ليدل په څلورو وجو وي. ۱: ښځه ۲: مينځه ۳: زوی ۴: د ښځو څخه نفع.

## طابع \ مهر \ ټاپه

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي كه په خوب كي ويني چي ده ته مهر وركړه سوي دی چي پخپله خزانه مهر ولګوي دليل دی چي عزت اومرتبه اوبزرګي به حاصله كړي ځكه چي مهر لګول د كوټه دلګولو څخه ښه او قوي وي. ابراهيم كرماني رحمه الله عليه ويلي دی چي كه ويني چي

پاچا یا امیر ورته مهر ورکړي دی چي په خپله خزانه يي ولګوي دليل دی چي خپل مال به هغه ته حواله کړی اوکه خوب ليدونکي ددی قابل نه وي نو دخپل قدر مطابق به عزت او مرتبه حاصله کړي.

## طاعون\وبامرض

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي طاعون پر فتنه اوبلا دليل دی که په خوب کي ويني چي دده پر بدن دطاعون ناجوړي ده نو په فتنه اوبلا کي به راسي، جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي طاعون پر جنګ او دجنګ پر ميدان دليل دی.

## طاوس

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي نر طاوس دعجمو پاچا دی اوکه ويني چي دده سره نر طاوس دی دليل دی چي دپاچا څخه به مرتبه اومال حاصل کړی اوکه ښځه طاوسه ويني او پوهيږي چي دده خپله ده دليل دی چي عجمي ښايسته اومالداره ښځه به کوي او دهغه څخه به زوی اومال حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي طاوس دکوتري سره يوځاي سوي دی دليل دی چي غلط کار به کوي. دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي طاوس فسادي ښځه ده اوکه ويني چي طاوس ورسره خبري کوي دليل دی چي ولايت به حاصل کړي اوکه طاوس او زمري يو ځاي ويني دليل دی چي يو څوك پردی به دده دعيال سره فساد کوي. اوکه ويني چي طاوس دده دکور څخه الوتلي دی دليل دی چي ښځي ته به طلاق ورکړي اوکه ويني چي طاوس يي وژلي دی دليل دی چي دپيغلي انجلي سره به واده کوي اوکه ويني چي دده په لاس کي طاوس دی دليل دی چي مال اونعمت به حاصل کړي اوکه ويني چي دطاوس بچي يي نيولي دی دليل دی چي لور به يي پيداسي اوکه ويني چي طاوس دده دلاسه الوتلي دی دليل دی چي دپاچا څخه به جلا سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي طاوس په دوو وجو دی. ۱: دعجمو پاچا ۲: مال اوخزانه.

## طباخ\باورچي\اشپز

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي باورچي حرصناك سړی دی که ويني چي دباورچي کار کوي او پخکړي خوراك يي مزيدار دی نو خير اونيکي به ويني اوکه د دې خلاف ويني نونقصان به وي.

## طباق\رکيبي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي رکيبي خادم دی چي دخوشحالي په وخت دمجلس خدمت کوي او څوك چي ورته ګوري خوشحاليږي که ويني چي دده سره غټه رکيبي ده دليل دی چي دارنګه خادم به حاصل کړي اوکه ويني چي رکيبي ماته سوي ده دليل دی چي دخوب ليدونکي خادم به مري. ابراهيم کر مانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي رکيبي په اور کي پرته ده سوزيدلي ده دليل دی چي دده مينځه يا خدمتګار به دطاعون يا دسرسام په مرض کي

مبتلا سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي رکیبي لیدل په څلورو وجو وي. ۱: دکور خادم او مجلس ۲: مینځه ۳: فایده ۴: هدیه.

## طبل\دپړی

ددي بیان په حرف "ت " کي سوي دی.

## طبیب\ډاکټر\داکتر

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك وویني چي طبیب دناجوړي علاج کړي دی اوتندرست دی دلیل دی چي څوك به دفساد دلاري څخه اصلاح ته راولي اوکه وویني چي په هغه ناجوړي نوره هم سخته سوي ده نو د دې تعبیر داولني خلاف دی اوکه وویني چي خلکو ته یي دارو ورکړیدی اوپه هغه بي نفع وسوه دلیل دی چي علم او نصیحت به ورکوي او خلک به دده نصیحت قبول کړي او دده په علم به عمل وکړي اوکه دده دارونفع مند نه وي نو تعبیر یي د دې خلاف دی او په خوب کي ډاکټري کول دپرهیزګاره سړی لپاره ددین او اخرت سمه لار ده او دمفسد سړی لپاره دبدن درستي او کسب او ژوند دلیل دی.

## طعام\خوراک

دانیال علیه السلام ویلي دی چي که و ویني چي خوراك اوشربت ده ته ملاو سوي دی د دې تعبیر بد دی مګر دمالیدي وغیره او حلوا چي اصل یي غوړي اوشهد دی د دې دواړو تعبیر مال دی. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي کوم خوراك مشکل او بي مزه وي دهغه تعبیر غم او فکر دی او تریو پر ناجوړي دلیل دی او خوږ خوراك پر عیش او خوشحالي دلیل دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که ووینی چي په سرو زرو او سپینو زرو یي خوراك اخیستي دی دلیل دی چي دمال نقصان به یي وسي اوکه ووینی چي دده په کور کي خوراك دی اوټولو خوړلي دی دلیل دی چي عمر به یي په عیش سره تیر سي. اوکه ووینی چي دونه خوراك یي کړیدی چي د ولاړیدو نه دی نو دا دده پر مرګ دلیل دی اوکه ووینی چي مړي خوراك کوي دلیل دی چي دغه خوراك به ګران وي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي که ووینی چي فقیر ته یي خوراك ورکړي دی دلیل دی چي دغم ترس او بیري څخه به خلاص سي اوکه ووینی چي کافر ته یي خوراك ورکړي دی دلیل دی چي ددښمنانو په کارونو کي به الله تعالی دده مدد کوي.

## طعن\نیزه وهل

که ووینی چي څوك یي په نیزه وهلي دی او دهغه په بدن کي ننوتلي ده دلیل دی چي دا سړی دهغه زخم مطابق دهغه سره پخپل زړه کي دښمني لري. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي نیزه وهل خرابه خبره کول دی او که ووینی چي څوك یي په نیزه وهلي دی او زخمي کړي دی دلیل دی چي هغه به په خبرو تنګوي اوکه زخمي سوي نه وي نو تعبیر یي د دې خلاف دی.

## طلاق

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي که څوك ووینی چي ښځي ته یي طلاق ورکړي دی او دغه یوه

ښځه یي وي دلیل دی چي دعزت اومرتبي څخه به معزول سي اوکه ددغه ښځي څخه علاوه بله ښځه هم وي نو دلیل دی چي دده په عزت اومرتبي کي به کمي راسي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي که ووینی چي ښځي ته یي طلاق ورکړي دی دلیل دی چي داسي کار به وکړي چي په هغه سره به پښیمانه سي. اوپه خوب کي خلع کول یعنی دښځي څخه مال اخیستل او طلاق ورکول مالداري ده دالله تعالی فرمان دی (وان یتفرقا یغن الله کلا من سعته، سورة النسآء: ۱۳۰) ترجمه: اوکه ښځه او سړی جلا سي نو الله تعالی به هریو دخپلي فراخي څخه بي نیازه کړي.

## طلع \ دخرما ګل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي یو یا دوه یا دري دخرما ګلان یي اخیستي دی دلیل دی چي زوی به یي پیداکیږي اوکه ووینی چي ګل یي خوړلي دی دلیل دی چي ډیر مال او نعمت به حاصل کړي اوکه ووینی چي دخرما ډیر ګلونه ورسره دی اونه یي پخپله خوري اونه یي بل چا ته ورکوي نو دلیل دی چي پاچا به دده مال واخلی او اخر کار به خوشحاله سی جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چي دخرما ګل لیدل په څلورو وجو وي. ۱: زوی ۲: رحمت ۳: نفع ۴: په زور مال اخیستل.

## طلق ابرک \ ځلیدونکي کاڼي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي ابرک په کارونو کي لږ سخته سرمایه ده ځکه چي د دې جوهر دکاڼی څخه نه دی اوکه ووینی چي دیو ځاي څخه یي ډیره سرمایه جمع کړي ده دلیل دی چي ده ته به دسفر څخه په مکر اوچم سره مال حاصل سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي میده سوي ابرك یي پرخپل بدن مږلي دی اوپه اور کي ننوتلي دی او اور ورته نقصان نه دی رسولی دلیل دی چي دپاچا بدي به دده څخه لیري وي اوکه ووینی چي ابرك یي خوړلي دی دلیل دی چي مال به په تکلیف سره حاصل کړي او که ووینی چي ابرك ځني ورك سوي دی دلیل دی چي مال به یي ورك سي.

## طنبور \ نغاره

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي پخپل کور کي نغاره ږغوي دلیل دی چي هلته به غم او مصیبت وي اوکه ووینی چي نغاره ماته سوي ده نو توبه به کوي اوکه ناجوړه ووینی چي نغاره ږغوي نو دده مرګ نزدی دی اوکه دنغاري اواز یي اوریدلي وي دلیل یي دا دي چي دبیهوده خبرو په اوریدو به خوشحاله وی.

## طوطي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي طوطي زوی یا غلام دی اوکه څوك په خوب کي ووینی چي دده دلاسه طوطي الوتلي دی دلیل دی چي دده زوی یا غلام به په سفر ځي اوکه ووینی چي طوطي ورسره خبري کوي دلیل دی چي داسي خبره یا کار به کوي چي په هغه سره به خلک تعجب کوي او ښځه طوطی پیغله انجلي ده او د زمردین په ډول طوطي که ووینی نو

دلیل دی چي دپیغلي ښځي سره به واده کوي اوکه ویني چي ښځه طوطي یې وژلي ده نو دلیل دی چي دپیغلي ښځي سره به واده کوي اوکه ویني چي دده دخولي یا دلوی اودس مات دځاي څخه طوطي راوتلي دی نو دده به زوی پیدا سي چي دده په ډول کي به خرابي خبري کوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي طوطي په خوب کي لیدل په درو وجو وي. ۱: زوي یا غلام ۲: پیغله انجلي ۳: پرهیزګاره شاګرد.

## طوق\دغاړي هار\امیل\هار\هاړ\لاړ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي په غاړه کي یې دسرو یا سپینو زرو هار دی دلیل دی چي ولایت به حاصل کړي اوپه هغه کي به انصاف کوي اوکه داوسپني هار ویني دلیل دي چي بي دیانته به وي او په دین کي به یې خرابي وي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خپله غاړه کي هار ویني دلیل دی چي ددرواغجنو دعوی به کوي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که په غاړه کي دسرو زرو هار ویني دلیل دی چي ولایت به حاصل کړي اوکه دتانبي یا داوسپني وي دلیل دی چي دچا سره به جنګ کوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دغاړي هار لیدل په شپږو وجووي. ۱: حج ۲: ولایت ۳: جنګ ۴: امانت ۵: غلام۶: مینځه.

## طیلسان\شال\پټو\پړونی\څادر

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي شال په قدر مشري اومرتبي دلیل دی که ویني چي ده سره نوي پاك شال دی دلیل دی چي مرتبه به یې زیاته سي او که د دې خلاف ویني دلیل دی چي قدر به یې کم سي اوکه ویني چي پټو یې څیري سوي دی یا سوزلي دی دلیل دی چي دده یو څوك خپل به مري. دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کی پټو لیدل امانت دیانت او ددین قوت دی که ویني چي شال پاك دی دلیل دی چي امانت به ادا کړي اوکه شال خیرن وي دلیل دی چي دده پر ذمه به امانت وي اوکه ویني چي ژړ پټو یې اخیستي دی دلیل دی چي سخت غم به ورته راسي جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي سپین پټو پرهیزګار هلك دی او سور پټو دلیل دی چي زوی به یې عیش پسنده وي اوکه تور وي نو دده زوی به یا عالم یا قاضي یا خطیب وي جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي پټو لیدل په لسو وجو وي. ۱: عزت اومرتبه ۲: ولایت ۳ زوی ۴: دولت ۵: مشري ۶: مال ۷: نفع ۸: علم ۹: دین ۱۰: توره.

# [ظ]

## ظالم\ظلم

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که څوك ویني چي پر ده ظلم سوي دی دلیل دی چي هغه سړی به پرده کامیابي حاصلوي اوکه ویني چي پاچا پر ده ظلم کړي دی دلیل دی چي پاچا به دده دمزاج برابر سي اوکه ویني چي ده پر پاچا ظلم کړي دی دلیل دی چي دپاچا څخه به نقصان

حاصل کړي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي که سردار ووينې چي ده پر چا عاجز باندي ظلم کړي دی دليل دی چي دغه عاجز به ده ته خبري کوي او که سردار ووينې چي پر غلام باندي يې ظلم کړي دی دليل دی چي د سردار څخه به هغه ته مصيبت غم او بلا رسيږي.

### ظلمات\تاريکي

ددي بيان په حرف "ت " کي تېر سوي دی.

## [ ع ]

### عاج\دفيل غاښ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دهاتی غاښ دولت دی که ووينې چي دده سره دهاتی غاښ دی دليل دی چي دپاچا څخه به مال حاصل کړي او که ووينې چي دهاتي غاښ دده څخه ورك سوي دی دليل دی چي دده مال اودولت به ورك سي، جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که ووينې چي دده په صندوق کي دهاتي غاښ دی دليل دی چي دخپلوانو څخه به مالداره ښځه کوي او که ووينې چي دده سره دهاتي دغاښ دوات دی دليل دی چي پاچا به ورته په انعامي طور مينځه ورکړي او مرتبه به حاصله کړي. او که ووينې چي دهاتي غاښ مات سو يا ورك سو دليل دی چي ښځه يا مينځه به يې مړه سي او څونه چي دهاتي غاښ سپين او پاك وي هغونه به مال زيات وي.

### عاريت کردن\په سوال ورکول

ابن سيرين رحمه الله ويلی دی چي که ووينې چي چا ته يې څه شي ورکړي دی که هغه شي ښه وي نو ددواړو پر ميني اومحبت دليل دی او که هغه شي ښه نه وي نو تعبير يې ښه نه دی.

### عاشق

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ووينې چي دی عاشق او حريص دی نو پر فساد او بدي دليل دی که شي حلال او ښه وي نو پرخير او صلاح دليل دی او که ووينې چي په ښايسته صورت عاشق سويدی که په دغه عشق کي دحرامو نيت وي. نو پرشر اوفساد دليل دی او که نيت يې حلال وي نو پرخير اوصلاح دليل دی. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی که ووينې چي دمعشوق څخه يې دزړه مراد حاصل کړي دی نو پر خير اونفع دليل دی.

### عالم

که جاهل سړی ووينې چي عالم يا فقيه سوي دی دليل دی چي خلک به ورته پيغور ورکوي او خندا به ورپسي کوي او که عالم يافقيه ووينې نو علم به يې نور هم زيات سي. که ووينې چي قاضي يا حکيم يا خطيب يا عالم ژوندي يا مړ که دخوفناك اوبيريدونکي ځاي څخه تير سوي وي دليل دی چي دهغه ځاي خلک به په امن کي وي او دهغه پاچا به عادل وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ووينې چي خلکو ته علم زده کوي حالانکه داهل علمو څخه نه وي دليل دی چي دهغوي څخه به تښتي او که عالم وي نو پر عزت او مرتبي دليل دی او که ووينې چي څه

اخلي او علم ښيي دليل دی چي رشوت به اخلي. جعفر صادق رحمه‌الله علیه ويلي دی چي په خوب کي عالم په څلورو وجو وی. ۱: دولت ۲: قاضي ۳: حکيم ۴: خطيب.

## عبادت \ طاعت

ابن سيرين رحمه‌الله علیه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي دالله تعالی عبادت کوي نو د دې تعبير خلاف دی. جابر مغربی رحمه‌الله علیه ويلي دی چي که ووينې چي په جماعت کي عبادت کوي دليل دی چي د دې جهان خير به حاصل کړي اوکه ووينې چي په مکروه ځاي کي عبادت کوي نو تعبير يې د دې خلاف دی.

## عجوزه \ بوډۍ \ سپين سري

ددې تعبير به ان شآء الله په حرف "ك" کي بيان کړو.

## عدد \ حساب \ شمار \ شمېر

ابن سيرين رحمه‌الله علیه ويلي دی چي که ووينې چي افغانۍ يا درهم يا اشرفي يا روپې ده ته چا ورکړې ده دليل دی چي خير اونيکي به وينې دالله تعالی فرمان دی (من جآء بالحسنة فله عشر امثالها، سورة الانعام: ۱٦۰) ترجمه: چا چي يوه نيکي وکړه دهغه لپاره يو په لس ده. د دې وجې ځخل اهل تعبير بيان کړي دی چي دلسو اصل ديو څخه دی. ابراهيم کرمانی رحمه‌الله علیه ويلي دی چي يو عدد نيك دی او ددوو عدد غم او فکر دی ليکن پر دښمن به کاميابي حاصله کړي (ثاني اثنين اذهما في الغار، سورة التوبة: ٤۰) ترجمه: ددوه څخه دويم کله چي په غارکي وو. که ددرې دشمار عدد ووينې نو بد دی او دهغه څخه به ورته فايده نه وي دالله تعالی فرمان دی (الا تكلم الناس ثلاثة ايام، سورة ال عمران: ٤۱) ترجمه: چي دخلکو سره تر درو ورځو پورې خبرې مه کوه. د درو لفظ په جدايي دلالت کوي ځکه چي داطاق عدد دی او دڅلورو عدد نيك دی کله چي ورسره بل شي شامل نه وي (ما يكون من نجوى ثلثة الا هو رابعهم، سورة المجادلة: ۷) ترجمه: ددروو کسانو په خبرو کي هغه څلورم دی. که پنځه لمونځونه خوب ليدونکي قايموي نو دپنځو عدد نيك دی، او الله جل‌جلاله آسمانونه او مځکي په شپږو ورځو کي جوړ کړل ځکه نو دا عدد هم نيک دی، او داوو عدد ليدل بد دی (سبع سموات طباقا، سورة الملك: ۳) اوه اسمانونه طبقي طبقي، او اته عدد هم بد دی دالله تعالی فرمان دی (سبع ليال وثمانية ايام، سورة الحاقة: ۷) اووه شپې او اته ورځې. او دنهو عدد هم بد دی دالله تعالی فرمان دی (تسعة رهط يفسدون، سورة النمل: ٤۸) نهه ټولګي فسادي کوونکي. که دلسو عدد ووينې نو ښه دی او ددين اودنيا مراد به يې حاصل سي دالله تعالی فرمان دی (تلك عشرة كاملة، سورة البقرة: ۱۹٦) هغه دا پوره لس دی اوکه ديولسو عدد ووينې نو دده کارونه به ښکاره سي او ددولسو عدد ليدل ښه دی دالله تعالی فرمان دی (ان عدة الشهور عند الله اثنا عشر شهرا،

سورة التوبة: ٣٦) دمياشتو حساب دالله په نزد دولس دی اوکه ددريالس عدد ووينی نو بد دی او دڅورلسو عدد نيك دی اوکه دپنځلسو عدد ويني نو دده کارونه به ګډوډ سي اوکه دشپاړسو عدد ويني نو دده مراد به ډير وخت پس پوره سي اوداوولسو عدد ليدل بد دی اوکه داتلسو عدد ويني نو دده مراد به پوره نه سي اوکه دنولسو عدد ويني نو دده کار به دخلکو سره وسي دالله تعالی فرمان دی (الواحة للبشر عليها تسعة عشر، سورة المدثر: ٢٩ – ٣٠) پر دوي انسانان بيروونکي نولس دی او دشلو عدد ليدل ښه دی او پر دښمنانو به کاميابه سي دالله تعالی فرمان دی (عشرون صابرون، سورة الانفال: ٣٧) شل سړی صبر کوونکي اوکه ددیرشو عدد ويني نو دده تعلق به دحاکم سره وي (ووعدنا موسى ثلثين ليلة واتممنها بعشر، سورة الاعراف: ١٤٢) او موږ دموسی سره دديرشو شپو وعده کړي وه او هغه موږ په لسو پوره کړه. اوکه دڅلوېښتو عدد ويني نو دده کار به بند نسي اوکه دپنځه ويشتو عدد ويني نو په غم او سختي دليل دی دالله تعالی فرمان دی (الف سنة الا خمسين عاما فاخذهم الطوفان، سورة العنكبوت: ١٤) پنځوس کم زره کاله چي هغوي طوفان نيولي و اوکه دشپيتو عدد ويني دليل دی چي دده پر ذمه به قسم وي ده ته پرلپسي دوي مياشتي روژي نيول پکار دی يا شپيتو فقيرانو ته به خوراك ورکوي دالله تعالی فرمان دی (شهرين متتابعين من قبل ان يتماسا فمن لم يستطع فاطعام ستين مسكينا ذلك لتؤمنوا بالله ورسوله، سورة المجادلة: ٤) ديو بل مسح کولو څخه مخکي پرلپسي دوي مياشتي روژي دي وساتي اوکه څوك دانه سي کولای نو شپيتو مسکينانو ته دي خوراك ورکړي دا ددی لپاره چي تاسو په الله او دهغه په رسول ايمان وساتي. اوکه داوياوو عدد ويني نو کار به يي ډير وخت پس سي اوکه داتياوو عدد ويني نو پر ده به تهمت ولګول سي او په کوړو به ووهل سي دالله تعالی فرمان دی (فاجلدوهم ثمانين جلدة، سورة النور: ٤) او دی اتيا کوړي ووهئ. اوکه دنوي عدد ويني نو دليل دی چي دغتمانو څخه به ديو څو ښځوسره نکاح کوي (تسع وتسعون نعجة ولي نعجة واحدة، سورة ص: ٢٣) دهغه يو کم سل ميږي او زما يوه مېږه ده. اوکه دسلو عدد ويني نو مدد او کاميابه به سي دالله تعالی فرمان دی (مائة صابرة يغلبوا مائتين، سورة الانفال: ٦٦) سل ثابت قدمه پر دوه سوه غالب راځي. که پاچا ويني چي دده سره سل سواريان دی دليل دی چي پر دښمنانو به کاميابه سی اوکه ويني چي دده سره سل سواره دی دليل دی چي پرده به دزنا تهمت لګيږي او سل کوړي به وهل کيږي دالله تعالی فرمان دی (فاجلدوا كل واحد منهما مائة جلدة، سورة النور: ٢) په هغوي کي هر يو سل کوړي ووهئ. او که ويني چي ده ته چا سل داني دغنمو يا داوربشو يادبل شي ورکړي دی دليل دی چي ده ته به خير اوبرکت حاصل سي اوژوند به باندي فراخ وي دالله تعالی فرمان دی (فى كل سنبلة مائة حبة والله يضاعف لمن يشآء، سورة البقرة: ٢٦١) په هر يوه وږي کي سل داني دی اوالله تعالی دوچنده کوي دهغه چا لپاره چي وغواړي اوکه ددوه سوو عدد ويني

نو پر دښمنانو به کامیابه سي اوکه ددرو سوو عدد وويني نو په زمانه کي به دده مراد پوره سي دالله تعالى فرمان دی (ولبثوا فى كهفهم ثلث مائة سنين وازدادوا تسعا، سورة الكهف: ۲۵) او دوي په غار کي دري سوه کاله وو. اوکه دڅلورو سوو عدد وويني دليل دی چي پر دښمنانو به کامیابه سي لکه چي نبي عليه السلام ويلي دی (خير الجيوش اربعة الف وخير المنام اربعة مائة) ښه دلښکرو څخه څلور زره دی اوښه خوب څلور سوه دی. که دپنځو سوو عدد وويني نو دده کار به معطله سي اوکه دشپږو سوو عدد وويني دليل دی چي خوشحاله به سي او مراد ته به ورسيږي اوکه داووه سوو عدد وويني دليل دی چي دده کار به سخت وي او اخر دا چه پوره به سي اوکه داتو سوو عدد وويني دليل دی چي پر دښمن به کامیابه سي اوکه دنهو سوو عدد وويني نوهم دغه تعبير يي دی اوکه د زرو عدد وويني دليل دی چي عزت به حاصل کړي او دښمن به مغلوب کړي دالله تعالى فرمان دی (وان يكن منكم الف يغلبوا الفين باذن الله، سورة الانفال: ٦٦) که تاسو یو زر وای نو دالله په حکم به پر دوي دوو زرو غالبه کیدای. او ددوو زرو ليدل بد دی او که ددروو زرو عدد وويني نو دا دکاميابي حاصلولو دليل دی دالله تعالى فرمان دی (بثلثة الف من الملئكة منزلين، سورة آل عمران: ١٢٤) دري زره فرشتي راکښته سوي اوکه دڅلورو زرو عدد وويني نو پر قوت او مدد دليل دی اوکه دپنځو زرو عدد وويني نو دليل دی چي ښه اومبارك به سي او که دشپږو زرو عدد وويني نو هم دغه تعبير يي دی اوکه داووه زرو عدد وويني دليل دی چي کار به يي فراخه سي اوکه داتو زرو عدد وويني دليل دی چي کار به يي په انتظام سره وي او که دنهو زرو عدد وويني نو تعبير يي بد دی اوکه دلسو زرو عدد وويني دليل دی چي کامیابه به سي اوکه دشلو زرو عدد وويني نو هم دغه تعبير يي دی. او که ددیرشو زرو عدد وويني نو مدد او کاميابي به ډير وخت پس حاصله کړي اوکه دڅلويښتو زرو عدد وويني نو مدد او کاميابي به حاصله کړي اوکه دپنځوسو زرو عدد وويني نو په غم او سختي کي به عاجز سي دالله تعالى فرمان دی (مقداره خمسين الف سنة، سورة المعارج: ٤) دهغه مقدار پنځوس زره کاله دی اوکه دشپیتو زرو عدد وويني نو دا پرښادي او خوشحالي دليل دی اوکه داويا زرو عدد وويني دليل دي چي پردښمن به کامیابه سي اوکه داتيا زرو عدد وويني دليل دی چي دده کارونه به پټ وي اوکه دنوي زرو عدد وويني نو پر دښمن به کامیابه سي اوکه دیو لك عدد وويني نو دا پر دښمن دکاميا بي دليل دی دالله تعالى فرمان دی (وارسلنه الى مائة الف او يزيدون، سورة الصافات: ١٤٧) او موږ دی دیو لك بلكي دزياتو طرفته وليږی.

### عدد\مسور\نسک

دمسورو په تعبير کي داهل تعبير اختلاف دی ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي مسور خوړل ښه دی ځکه چي ابراهيم عليه السلام به مسور خوښول. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي مسور خوړل بد دی ځکه چي کله بني اسرائيل په من اوسلوی خوړلو سره تنګ

سول نو هغوي دالله تعالی څخه مسرور اوږه اوپياز وغوښتل او جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي مسرور خوړل مال دی چي د ښځو دطرف څخه ملاويږي خاصکر که پخکړي وي اوکه اومه وي نو پر غم او فکر دليل دي.

**عراوه (دکلانيولوآله)**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي عراوه يي دکافرانو په ښار کي اچولي ده دليل دی چي دکافرانو دښمن به وي اوکه ويني چي عراوه يي دمسلمانانو په ښارکي اچولي ده دليل دی چي داسلام په باره کي به فضول خبري کوي اوممکنه ده چي دمسلمانانو لپاره به بد دعا کوي اوکه ويني چي ده عراوه يوځای اچولي ده نو دليل دی چي دهغه ځاي والاوو غيبت يا به هغوي ته ښکنځل کوي.

**عرش\تخت**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي تخت په خوب کي مالدار بزرګ يا غوښتل سوي مال دی اوکه ويني چي تخت ښايسته دی دليل دی چي دده به دمالدار سړی سره صحبت وي اوعزت او مرتبه به يې وي اوکه تخت سپك ويني دليل دی چي دخلکو په مخکي به ذليله سي اوکه ويني چي پخپله پر تخت ناست دی دليل دی چي دلوی سړی سره به ملاويږي او عزت او مرتبه به ځني حاصلوي اوکه ويني چي دتخت څخه لاندي راغلي دی نو د دې تعبير داول خلاف دی جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تخت ليدل په پنځو وجو وي ۱: دبزرګ سره ملګرتيا ۲: لوړوالي ۳: مرتبه ۴: عزت ۵: مشري.

**عرعر\دچيړ درخته**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دده سره د چيړ درخته ده دليل دی چي دده ملګرتيا به د اصل سړی سره وي او دچيړ درخته په تعبير کي داسي سړی وي چي لږ او ډيره نيکي کوي.

**عرق\خوله**

که څوك په خوب کي ويني چي دده دبدن څخه خوله بهيږي دليل دی چي دهغه په اندازه به نقصان يي وسي خاصکر که خوله پر مځکه څڅيدونکي ويني ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي کالي يي په خولو لانده سوي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به مال پخپل عيال خرڅ کوي اوکه ويني چي خپله خوله چيښي دليل دی چي خپل مال به خوري که خوله سپينه او خوشبوداره ويني دليل دی چي مال به يي حلال وي او که د دې خلاف ويني نو مال به يي حرام وي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خوله کيدل پر مراد پوره کيدلو دليل دی که ويني چي دي خوله سويده دليل دی چي مراد به يي پوره سي او که ناجوړي ويني چي ده خوله کړيده دليل دی چي شفا به حاصله کړي.

**عروسي\واده کول**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده ناوي واده کړي ده ليکن

هغه يي ليدلي نه ده اودهغه نوم نه پيژني دليل دی چي مري به يا مړ به يې کړي اوکه ويني چي ناوي يې کورته راوستي ده او دهغه سره بيده سوي دی دليل دی چي بزرګي به حاصله کړي او کوم شي چي دده په ملکيت کي نه وي دده ملکيت به سي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي دواده سره باجه سازونه او شپيلۍ وي نو پر مصيبت دليل دی او جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که ښځه په خوب کي ويني چي د دې واده سويدی او دخاوند کره يي بيولي ده دليل دی چي د دې عمر ختم دی اوکه ويني چي خاوند يي بيولي دی او د دې سره يي ښه سلوك کړي دی نو پر خير اونفع دليل دی.

## عزل\معزول کيدل

که په خوب کي ويني چي يو څوك بوډا يي معزول کړي دی دليل دی چي بي حرمتي به ويني او که ويني چي ځوان يي معزول کړي ده نو د دې تعبير د اولني خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي سردار معزول سوي دی نو دا ددين پر جوړښت دليل دی اوکه ويني چي ديو کار څخه يي معزول کړي دی نو دليل يې دا دی چي دبدو څخه به منع سي او داصلاح لاره به اختيا رکړي.

## عسس\کوتوال

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي دکوتوال سره نيک خلک دی دليل دی چي ده ته به خير اونفع حاصله سي اوکه ددي خلاف ويني نو پر شرارت او نقصان دليل دی اوکه ويني چي کوتوال دی نيولي دی اونقصان يي ور رسولي دی دليل دی چي دپاچا دنوکرانو څخه به ورته غم ورسيږي اوکه ويني چي دکوتوال څخه ورته ملامتيا نه ده رسيدلي نو پرخير او نيکي دليل دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي کوتوال دده څخه کالي ايستلي دی يا يي دی قيدخاني ته اچولي دی دليل دی چي خوب ليدونکي ته به دپاچا دسړو څخه نقصان رسيږي اوبي حرمتي به ويني اوکه په خوب کي ويني چي دکوتوال څخه تښتيدلي دی او چا نه دی نيولي دليل دی چي ده ته به لږ غم رسيږي.

## عصار\ښتيځل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك ويني چي شيان ښتيځي دليل دی چي په تعريف والا کار کي به مشغول سي او دده کار به په نيکي اوښوالي سره مشهور وي.

## عصاء\لکړه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي لکړه بزرګ عزتمند سړی دی که ويني چي دده په لاس کي لکړه ده يا چا ورکړي ده دليل دی چي دلوی سړی څخه به عزت اومرتبه حاصله کړي اوکه و ويني چي دده لکړه په مدد سره ولاړه ده دليل دی چي دکوم شي په تلاش کي دی هغه به دلوی سړی په مدد سره حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که څوک ويني چي لکړه دده په لاس کي اوږده سوی ده دليل دی چي مرادبه يي پوره سي اوکه لنډه سوي وي نو تعبير يي داولني خلاف دی اوکه ويني چي خپله لګړه يي چا ته ورکړي ده دليل دی چي هلاک

به سي او که ووينې چې لکړه دده سره خبرې کوي دليل دی چې زوی به يې پيداسي جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې لکړه ليدل په دروو وجو وي ۱: لوی سرای ۲: پاچا ۳: قوت او طاقت.

## عصيده (يو ډول حلوا)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې هغه حلوی ښه ده په کومه کې چې زعفران نه وي او دا په خوب کې ليدل مشکل کار دی چې په محنت او مشقت سره حاصليږي اوکه ووينې چې دحلوا يوه ګوله يې په خوله کې ايښې ده دليل دی چې ښه خبره به اوري اوکه ووينې چې ډيره حلوی يې خوړلي ده دليل دی چې په جنګ سره به مال اصل کړي.

## عطا\بخشش\ورکړه\پيرزوينه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې که څوك په خوب کې ووينې چې ده ته يو څه شي په بخشش کې ملاو سوي دی نو تعبير بيانوونکې ته معلومول پکار دی چې څه قسم شيان به ورته ملاو سي سره زر يا سپين زر يا کالي او بخشش ورکوونکې نامعلوم سړی دی که معلوم؟ که معلوم سړی وي نو ده ته به ددنيا دطرف څخه ذلت ملاويږي اوکه بخشش دخطا په وعدې وي نو دا ټول درواغ دی اوکه ووينې چې بخشش يې اخيستي دی اوبيا يې واپس ورکړي دی نو ددې رجوع دبخشش ورکوونکې دنيکې اوبدې طرفته کيږي. اوکه ووينې چې ده ته ميوه يا کالي يا څه خوړ شي په بخشش کې ملاو سوي‌دی دليل دی چې ده ته به دهغه سړی سره تعلق او ملاپ حاصل سي اوکه ووينې چې بخشش ورکوونکې عيسايي يا يهودي دي او دهغه بخشش ښه وي او ده په خوښه اخيستي وي دليل دی چې دده ايمان به په خطره کې وي اوکه يهودي يا عيسايي په خوب کې ووينې چې ده ته مسلمان بخشش کړي دی او ده په خوښه اخيستي دی دليل دی چې مسلمان به سي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چې که ووينې چې ده ته چا بخشش ورکړي دی او ده شکريه ادا کړي ده نو دده دمال پر زياتوالي او تندرستي دليل دی اوکه شکريه يې نه وي ادا کړي نو تعبير يې داول خلاف دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چې که ووينې چې بخشش يو ښه شي دی او بخشش ورکونکې بد سړی دی نو د دې تعبير بد دی.

## عطر\خوشبويي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې که څوك ووينې چې دده سره خوشبو ده او ده ته دهغه علم دی اوپخپله عالم سړی دی دليل دی چې دده دعلم څخه به خلکو ته فايده حاصله سي اوکه خوب ليدونکې مالدار وي نو دده دمال څخه به خلکو ته فايده رسيږي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چې که په خوب کې ووينې چې دده سره عطر دی دليل دی چې دده به خلک تعريف کوي اوافرين به باندې وايي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې عطر ليدل په نهو وجو وي ۱: نيك تعريف ۲: نيکه خبره ۳: فايده ورکوونکې علم ۴: نيك طبعيت ۵: دعلم مجلس ٦: سخي سړی ۷: عقلمند سړی ۸: پاك دين ۹: ښه خبر.

## عطار \ عطر خرڅونکي

که په خوب کي ووینې چي عطاري کوي دليل دی چي خلک به يې شکريه ادا کوي او که ووینې چي پرخلکو باندي خوشبويي خرڅوي دليل دی چي وعده خلافي به کوي اسماعیل اشعث رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینې چي دده محبت او دوستي دعطر فروش سره ده دليل دی چي خلک به دده مدح اوصفت کوي اومشهور به وي.

## عطسه \ پرنچی \ اتریش \ پرنجی

ابن سيرين رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ووینې چي ده ته پرنجي راغلي دی او ده الحمد لله ویلي دی که ناجوړي وي نو ده ته به دطبيب ضرورت وي اوکه تندرست وي نو دده به دچا څخه مراد پوره کيږي او پر ده به احسان کوي او که ووینې چي دري پرنجي يې کړي دی نو دا پر خوشحالي او نيکي دليل دی اوکه ووینې چي ډير پرنجي يې کړي دی دليل دی چي دده مراد به په مشکله سره پوره کيږي اوکه ووینې چي دپرنجي سره يې دپزي څخه اوبه وتلي دی دليل دی چي زوی به يې پيداسي اوکه ووینې چي پرنجي يې کړي دی او دپزي څخه يې اوبه جاري سوي دی دليل دی چي خلک به دده په باره کي خرابي خبري کوي اوکه ووینې چي پرنجي يې کړي دی او يو شي په ټوپ سره د پزي څخه دباندي څني وتلي دی دليل دی چي دهغه ټوپ وهونکي شي دجوهر مطابق به دده زوی پيداسي چي دهغه حيوان مطابق به يې غټ والی او کوچني والی وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي پرنجي په اساني سره راغلي وی دليل يې دی چي مال به په اساني سره حاصل کړي اوکه په مشکله راغلي وي نو مال به په مشکله سره حاصل کړي.

## عقل

ابن سيرين رحمه الله علیه ویلي دی چي که عقل دسړي په شکل کي ووینې او ده ته ووايي چي زه ستا عقل يم او دي يې پيژني چي دا دده عقل دی که خوب ليدونکي د دې خبري اهل وي دليل دی چي دده به دپاچا د زوی سره ملګرتيا جوړه سي او دهغه څخه به خير ووینې اوپاچا به دي خوښوي او دمهرباني په نظر به ده ته ګوري. ابراهيم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي چي که عقل دسړي په شکل کي ووینې دليل دی چي دده نصيب به دده طرفته رخ کوي او عزت اومرتبه او دولت به حاصل کړي. دانيال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي عقل بخت اودولت دی که خپل عقل سړي په شکل کي ووینې او ده ته ووايي چي زه ستا عقل يم دليل دی چي بخت او دولت به دده تابع سي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي عقل اوروح مور او پلار دي که هغه ژوندي وي دليل دی چي ددوي ديدار به کوي اوکه مړه وي دليل دی چي دده دطرف څخه به دعا او صدقي هغوي ته وسي. په حديث شريف کي راغلي دی چي يو سړی دنبی علیه السلام په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړي چي ماپه خوب کي ليدلي دی چي زما مال اوروح زما څخه جلا سوي دی او دواړه دسړي په شکل سوي دی او زما کورته راغلي دی اوموږ دري سره ناست يو او په شربت چيښلو کي مشغول يو نبي علیه السلام يې په تعبير کي وويل چي عقل د دې جهان قسمت

دي او روح دهغه جهان قسمت دی ستا کار به په مراد سره پوره سي. اوکه وويني چي عقل او روح جنګ اوشور کوي دليل دی چي خوب ليدونکي به دپاچا سره جنګ کوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي عقل اوروح ليدل په څلورو وجو وي ۱: نصيب او دولت ۲: مور او پلار ۳: دپاچا زوی ۴: مال اونعمت.

## عقيق (قيمتي کاڼی)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي وويني چي دده سره عقيق دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي دلوی سړی ملګري به سي او دهغه څخه به خير حاصل کړي اوکه وويني چي عقيق دده څخه ورك سويدی د دې تعبير د اول خلاف دی اوکه وويني چي دده سره دعقيقو کوټه ده او دهغه څخه څه خوري دليل دی چي دده زوی به راسي چي شرف بزرګي او مرتبه به حاصله کړي.

## علک \ کندر (يو ډول دوا)

که څوك وويني چي ده کندر پر اور ايښي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به يي دمال نقصان وسي اوکه وويني چي کندر يي ژوولي دی دليل دی چي په جنګ او بحث سره به مال حاصلوي.

## علم \ نښان \ جنډی \ بيرغ

جنډه په خوب کي هوښيار سړی دی يا پرهيزګار امام يا داسي سړی چي خلک يي تابعداري کوي که وويني چي دده په لاس کي جنډه ده دليل دی چي دداسي سړی سره به اشنا سي او دده څخه به راحت حاصل کړي اوکه وويني چي جنډه دده دلاسه څخه را ايله سوي ده يا ورکه ده نو د دې تعبير د اول خلاف دی ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي وويني چي دده سره غټه سپينه جنډه ده دليل دی چي دده صحبت به دمالدار مشر سړی سره وي او دهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي اوکه وويني چي دده سره شنه جنډه ده دليل دی چي پرهيزګار او ديندار به سي اوکه وويني چي ده سر توره جنډه ده دليل دی چي قاضي يا خطيب به سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي جنډه ليدل په څلورو وجو ده. ۱: سردار ۲: سفر ۳: مرتبه ۴: ښه حالات.

## عمارت \ ابادي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوک په خوب کي وويني چي ده په وران ځاي کي دجماعت يا دمدرسي يا دخانقاه عمارت جوړ کړي دی نو دا ددين پرصلاح او داخرت په ثواب دليل دی اوکه وويني چي په وران ځاي کي يې دځان لپاره عمارت جوړ کړي دی لکه سرای يا دکان وغيره دليل دی چي ددنيا فايده به حاصله کړي اوکه وويني چي معلوم ځاي ويران سوي دی دليل دی چي په بلا اومصيبت کی به ګرفتار سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي وويني چي په مشهور اومعروف ځاي کي مقيم سوي دی نو دهغه ځاي دابادي اوعمارت مطابق خير اونفع به حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي عمارت ليدل په څلورو وجو وي. ۱: ددنيا درستي ۲: خير اونفع ۳: مراد حاصليدل ۴: دبندو

کارونو خلاصول اوبرکت.

## عماري\ کجاوه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که په خوب کي ویني چي په کجاوه کي ناست دی او کجاوه دقچر یا اس ده او روان دی دلیل دی چي عزت اومشري به حاصله کړي او که ویني چي کجاوه را ایله سوي ده یا دهغه څخه دباندي سوي ده نو د دې تعبیر داول خلاف دی. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي چاپه کجاوه کي کیښینولي دی دلیل دی چي دسردار سره به ملاو سي اوکار به یې لوړ وي او عزت او مرتبه به یې زیاته سي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي کجاوه لیدل په اووه وجو وي. ۱: بزرګي ۲: عزت ۳: مرتبه ۴: ریاست ۵: لوړوالي ٦: ولایت ۷: دسردار سره ملاقات.

## عمود\ګرز (یو ډول د جنګ وسله)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي ګرز په خوب کي لیدل ریښتوني اوسم سړ دی او اهل تعبیر بیان کړي دی چي سختي خبري دي که ویني چي څوک یې په ګرز وهلي دی یا ویني چي دده سره داوسپني ګرز دی دلیل دی چي دپاچا څخه به ورته قوت او مدد حاصل سي اوکه ویني چي چا دده دلاسه ګرز اخیستي دی نو تعبیر یې خلاف دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ګرز لیدل په دروو وجو وي. ۱: ریښتوني سړی ۲: سختي اوخرابي خبري ۳: یو څوک بزرګ سردار.

## عناب\مرغۍ\مرغړي\ملغړي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي دده سره مرغړي دی او خوړلي یې دي دلیل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي او که ویني چي ده چا ته مرغړي ورکړي دی دلیل دی چي دده څخه به هغه سړی ته مال رسیږي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ویني چي ددرختي څخه مرغړي جمع کوي دلیل دی چي دهغه په اندازه مال به په غم او تکلیف سره حاصل کړي.

## عنبر (یو ډول خوشبویي)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي دده سره عنبر دی دلیل دی چي دهغه په اندازه نفع به حاصله کړي اوکه ویني چي ده چا ته عنبر ورکړي دی دلیل دی چي هغه سړی به دده څخه نفع حاصله کړي اوکه ویني چي عنبر ځني ورك سوي دی دلیل دی چي دمال نقصان به حاصلوي اوکه ویني چي دچا پر مخ یې عنبر مښلي دی دلیل دی چي دهغه سره به نیکي کوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي عنبر لیدل په څلورو وجو وي. ۱: نفع ۲: مراد حاصلیدل ۳: مطلب حاصلول ۴: نیك تعریف.

## عنقا (یو ډول ساز)

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که څوك په خوب کي ویني چي عنقا ږغوي دلیل دی چي په

درواغو اوبي فايدي خبرو به خوشحاليږي که ناجوړه ووينې چي عنقا مات سوي دی يا يي غورزولي دی دليل دی چي ددرواغو څخه توبه کوي اوکه ناجوړه ووينې چي عنقا رغوي دليل دی چي دغه ناجوړه به ژر مړ سي.

## عنکبوت \ غڼه \ جولاګی \ سپایډر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي غڼي ليدل ضعيف ګمانه اوګنهګار سړی ليدل دی اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي جولاګی په خوب کي ليدل خوښي ده اوکه ووينې چي جولاګي دده څخه ليري سويدی دليل دی چي دجولاګي څخه به ليري او جلا سي.

## عود (يو ډول خوشبو لرونکی لرګي)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چي ده چا ته لاندي عود سوزلي دی دليل دی چي دهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي او په خوب کي عود پاکيزه طبع او ښايسته سړی دی ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ووينې چي دده سره اوم عود دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي دپاچا څخه به دعود په قدر انعام اخلي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي عود ليدل په څلورو وجو دی ۱: ښايسته سړی ۲: ښه خبره ۳: تعريف او شاباسي ۴: مال او نفع.

## عودسوز \ دعودو انګیټۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دعود انګيټي عقلمنده مينځه يا عقلمند غلام دی اوکه دعودو سوزلو انګيټي دکلايي وي نو غلام يامينځه به يي داصله عيسايي وي او که دتانبي وي نو داصله به يهوديان وي اوکه داوسپني وي نو د اصله به مجوسيان وي اوکه ووينې چي دعودو انګيټي ماته يا ورکه سويده دليل دی چي دده غلام يا مينځه به هلاک سي.

## عورت \ شرمګاه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ووينې چي دده شرمګاه لڅ دی اوټول خلک ورته ګوري دليل دی چي دده راز به خلکو ته ښکاره سي اوکه ووينې چي خپل شرمګاه يي بيا پټ کړي دی دليل دی چي فورا به يي راز پټ سي او اهل تعبيرو بيان کړي دی چي که ووينې چي دده دشرمګاه څه حصه لڅه ده او ده پټه کړيده اوچا ليدلي نه دی دليل دی چي که ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي که قرضدار وي نو دقرض څخه به خلاص سي اوکه په بيره کي وي نو په امن کي به سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ووينې چي دده شرمګاه لڅه ده او شرميدلي دی دليل دی چي دبد حال څخه به ښه حال ته راسي اوکه ووينې چي ده قصدا خپل شرمګاه لڅه کړي ده دليل دی چي داسي کار به وکړي چي په هغه سره به دسزا حقدار وي يا به ورته يو افت رسيږي چي خلک به عبرت ځني واخلي.

## عيد \ اختر \ يخ تېر

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي لوی اختر دی دليل دی چي دده به دعقلمند سړی سره کار راسي اوکه کوچني اختر ووينې دليل دی چي دده صحبت به

دعبادت كوونكي اوپرهيزګار سره وي او ددين نفع به ځني حاصله كړي ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ويني چي اختر دی او خلكو ځان ښايسته كړي دی اوراوتلي دی دليل دی چي كه قيدي وي نو ازاد به سي اوكه دعزتمندو او شريفانو څخه وي نو مرتبه به يي ښه زياته سي.

## دهه \ عاشوره \ لسمه د محرم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه په خوب كي دعاشوري ورځ ويني نو مراد تـه بـه ورسيږي دالله تعالى فرمان دی (اليوم اكملت لكم دينكم واتممت عليكم نعمتي، سورة المائدة: ٣) نن ما دين پر تاسو باندي كامل كړي او خپل نعمتونه مي پر تاسو پوره كړه. اوكه په خوب كي دكال يا دمياشتي يا ورځي شروع ويني دليل دی چي دغـه كال يا مياشت يا ورځ بـه پر ده مباركـه وي او پر خير اوصلاح دليل لري.

# [غ]

## غار

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي په غار كي مقيم سوي دی دليل دی چي په يو سخت كار كي به ګرفتار سي او كه ويني چي غارته ننوتلي دی او ژر ځني راوتلي دی دليل دی چي په سخت كار كي به ګرفتار سي او ژر به خلاصون ځني حاصل كړي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ويني چي دي غار ته ننوتلي دی او غار روښانه سويدی دليل دی چي دی به قيد سي او بعضي وايي چي په سخت كار كي به ګرفتار سی اوكه ويني چي دغار څخه دباندي راوتلي دی دليل دی چي ناجوړه به سي اوشفا به حاصله كړي.

## غارت \ لوټمار \ چور

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه په خوب كي ويني چي دده مال اونعمت خلكو لوټ كړي دی دليل دی چي په غم اومصيبت كي به ګرفتار سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ويني چي داسلام لښكر دكافرانو ملك واخيستي او لوټ يي كړو دليل دی چي پركافرانو به غم او مصيبت راځي او كه ويني چي دكافرانو لښكر مسلمانانو لوټ كړی دليل دی چي مسلمانان به په غم اوفكر كي اخته سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي لوټ مار ليدل په څلورو وجو وي ١: جنګ ٢: نقصان ٣: غم او فكر ۴: دنرخونو ارزاني.

## غاليه (يو ډول خوشبودار پوډر)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي غاليه هوښيار او مشهور سړی دی اوكه ويني چي چا ورته غاليه وركړي دی دليل دی چي هغه سړی به دده څخه ادب اوهو ښيارتيا زده كړي او ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي غاليه دحج ښښه ده اواهل تعبير بيان كړي دی چي غاليه مال دی چي دسردار څخه به ملاو سي اوكه ويني چي ده غاليه حاصله كړيده دليل دی چي دسوداګر سړی يا ښځي څخه به نفع حاصله كړي اوكه ويني چي چا دده پر سترګه غاليه مړلي

دی لیل دی چي دهغه پرځای به دي حق ګزاري کوي اوخلک به دده لپاره دعا کوي اوکه ويني چي چا دده دغوږ څخه لاندي غالیه مږلي دی دلیل دی چي پرده به ددرواغو تهمت لګوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي غالیه لیدل په پنځو وجو وي. ١: ادب او هوښیارتیا ٢: تعریف او شاباسی ٣: داسلام حج ۴: مال او مراد ۵: خیر او نفع.

## غایب

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي ویني چي په سفر کي غایب سوي دی او نژدی راغلي دی دلیل دی چي دغایب خط یا خبر به راځي اوکه دخپل کور څخه غایب سوي وي دلیل دی چي دده خپلوانو ته به دده خط یا خبر راځي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دده غایب دسفر څخه واپس راغلي دی دلیل دی چي دده کار به پوره سی اوکه ویني چي غایب تریو تندي او فکرمند دی نو تعبیر یي خلاف دی اوکه ویني چي دده غایب سپور دسفر څخه واپس راغلي دی دلیل دی چي دده غایب به ژر دسفر څخه دنعمت او مال سره واپس راسي اوکه غایب عاجزه پیاده او لڅ ویني دلیل دی چي په لاره کي به غایب ډاکوګان ووهي او مفلس به واپس راسي.

## غبار\ګرد\دوړه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي ګرد دده پر شي باندي پروت دی دهغه په اندازه به مال حاصل کړي اوکه ویني چي ګرد دمځکي څخه تر اسمانه پوري دی دلیل دی چي ددغه ځاي خلک چي کوم کار کوي دهغه څخه به منع سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دده مخ دګرد څخه ډك دی دلیل دی چي غم اوعذاب به ورته ورسیږي دالله تعالی فرمان دی (وجوه یومئذ علیها غبرة ترهقها قترة، سورة عبس: ٤٠ – ٤١) په هغه ورځ به پر مخونو ګردونه وی او پر هغوي به تاریکه غالبه وي.

## غربال\غلبیل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي غلبیل لوي نوکر دی که ویني چي دده سره غلبیل دی نو نوکر به حاصل کړي اوکه ویني چي دده غلبیل مات سوي دی نو نوکر به یي تښتي یا به مري. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي په غلبیل سره غله صفا کوي دلیل دی چي دده دکار څخه به خلکو ته فایده وي او ده ته به نقصان وي اوکه دځان لپاره څه باندي صفا کوي نو نفع به حاصله کړي او جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي غلبیل لیدل په درو وجو دی ١: نوکر ٢: دوست ٣: هوښیار شاګرد.

## غرق شدن\غرقیدل\ډوبېدل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي په دریاب کي غرق سویدی اومړ سوي دی دلیل دی چي پاچا به یي مړ کړي اوکه ویني چي په اوبو کي ډوب سوي دی اوبیا بیرته راختلي دی او مړ سوي نه دی دلیل دی چي ددنیا دکارڅخه به لاس واخلي او ددین اصلاح او داخرت لاړ به

تلاش کړي. جابرمغربی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي حيوانات په کور يا دوکان يا باغ کي غرق سوي دی دليل دی چي په يو مشکل کار کي به عاجز سي او اخر دا چي خلاصون به حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي غرقيدل يا ډوبيدل په څلورو وجو وي ۱: ډير مال ۲: بخت ۳: دبي مذهبه خلکو سره ملګرتيا ۴: نفع.

## غزا کردن \ غزا کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي دالله تعالی په لاره کي غزا کوي دليل دی چي دده او دده دخپلوانو کار به نيك سي او ټول به بي نيازه سي دالله تعالی فرمان دی (ومن يهاجر فی سبيل الله يجد فی الارض مراغما کثيرا وسعة، سورة النساء: ۱۰۰) او څوک چي دالله په لاره کي هجرت وکړي نو پر مځکه به ډيره نفع اوفراختيا حاصله کړي. اوکه ويني چي دغزا څخه يي مخ اړولي دی دليل دی چي دخپلوانو څخه به مخ اړوي دالله تعالی فرمان دی (فهل عسيتم ان توليتم ان تفسدوا فی الارض وتقطعوا ارحامکم، سورة محمد: ۲۲) ايا نژدی دی چي تاسو ته حکومت ملاو سي او پرمځکه فساد کوي اوقطعه دصله رحمي کوي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي غزا ته تللي دی دليل دی چي دولت نعمت اوبزرګي به حاصله کړي دالله تعالی فرمان دی (وفضل الله المجاهدين علی القاعدين اجرا عظيما، سورة النساء: ۹۵) اوالله تعالی جهاد کوونکي ته پرناستو خلکو باندي لوی اجر ورکړي دی، اوکه ويني چي ددغه ملك خلک دغزا لپاره دباندي وتلي دی دليل دی چي عزت او مرتبه به حاصله کړي او خلک به مغلوب کړي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي دکافرانو سره يوازي جنګ کوي دليل دی چي پردښمنانو به کاميابي حاصله کړي او حلاله روزي به ورته ملاو سي او عمر به يي زيات سي دالله تعالی فرمان دی (ولا تحسبن الذين قتلوا فی سبيل الله امواتا بل احياء عند ربهم يرزقون فرحين بما اتاهم الله من فضله، سورة آل عمران: ۱۶۹ – ۱۷۰) او کوم خلک چي دالله په لاره کي قتل سوي دی هغوي مړه مه ګڼئ بلکه دوي دخپل رب په نزد ژوندي دی رزق ورکړه کيږي څه چي الله تعالی دوي ته پخپل فضل سره ورکړي دی دوي په هغه خوشحاله دي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي غزا کول په شپږو وجو ده. ۱: خير او برکت ۲: دنبی عليه السلام سنت ادا کول ۳: پر دښمن باندي کاميابه کيدل ۴: دناجوړي څخه شفا ۵: دپاچا اطاعت ۶: غنيمت حاصلول.

## غسل کردن \ لمبېدل \ غسل کول \ لامبل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دی په درياب کي لمبيدلي دی دليل دی چي غم اوفکر به يي کم سي او که ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي او که قرضدار وي نو دقرض څخه به خلاص سي او دبيري څخه به په امن کي سي او که قيدي وي نو خلاص به سي اوکه ويني چي په لړو اوبو کي لمبيدلي دي او مخ او لاس يي پريولي دی دليل دی چي خير اونفع به حاصله کړي اوکه ويني چي دجنابت غسل يي کړي دی دليل دی چي کار به يي

ختم سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دجنابت څخه غسل کول دليل لري چي ددرواغو څخه به پاك سي او څه زيات اونقصان چي دجنابت په غسل کي ښکاره سی پر درواغجن دين دليل لري.

## غل (داوسپني طوق)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي داوسپني طوق کفر دی او دده ميلان ناحق طرفته دی اوکه ويني چي دده په غاړه کي داوسپني طوق دی دليل دی چي کافر به مري اوکه ويني چي دده طوق دسپي په غاړه پوري تړل سوي دی دليل دی چي منافق به وي اوکه ويني چي دده په غاړه کي طوق اوپه پښو کي بيړي دی دليل دی چي کافر به وي او دمسلماني به په درواغو دعوی کوی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي دده په لاسونو کی طوق دی نو دا دده پر بخل دليل دی دالله تعالی فرمان دی (وقالت اليهود يد الله مغلولة غلت ايديهم ولعنوا بما قالوا، سورة المائدة: ٦٤) يهودو وويل چي دالله تعالی لاس تړل سويدی ددوي لاس به وتړل سي او ددوي دوينا په وجه پر دوي لعنت دی. او دغل څخه مراد بخل دی ابن عباس رضي الله عنه ويلي دی چي اهل تعبير وايي چي که صالح سړی په غاړه کي طوق ويني نو دبدو کارونو څخه به لاس اخلي.

## غلاف شمشېر \ دتوري غلاف \ تېکی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دتوري تيکي ښځه ده که ويني چي دتوري تيکي ماته سوي ده اوتوره سلامته ده دليل دی چي زوی به يي سلامت پيداسي او دهغه مور به مړه سي او دچاړي دتيکي هم داحکم دی.

## غلام

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي دي غلام سوي دی دليل دی چي په سخت کارکي به گرفتار سي اوکه ويني چي غلام يي اخيستی دی نو دا دده دکار پر بهتري دليل دی او ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي غلام واده دی دالله تعالی فرمان دی (فبشرنٰه بغلام حليم، سورة الصافات: ١٠١) او مورږ هغه ته دصبرناك زوی زيری ورکړ. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي که ويني چي ده دغلام يا مينځی په خرڅولو سره، سره زر يا سپين زر واخيستل نو تعبير يي بد دی اوکه نور څه واخلي نو ښه دی.

## غلبه کردن \ کامیابېدل \ غالب کېدل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي پرخپل دښمن غالب سويدی دليل دی چي پر دښمن به غالب سي او که د دې خلاف ويني نو دښمن به ورباندي غالب سي.

## غم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي غم واده او خوشحالي ده اوکه ويني چي غمجن سويدی دليل دی چي خوشحالي به حاصله کړي او خپل مراد ته به ورسيږي. جابر مغربی رحمه الله

ويلي دی چي که ويني چي غمجن سويدی دليل دی چي دهغه په اندازه به مال اخلي اوکه ويني چي دغم څخه خلاص سو نو تعبير يي داول خلاف دی.

## غنيمت\پہ جنگ کي مال نيول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي غنيمت حاصلول که دکافرانو مال وي نو دليل دی چي گراني به وي اوکه ويني چي مسلمانانو دکافرانو دملك څخه غنيمت راوړي دی دليل دی چي کوم ملك ته يي غنيمت راوړي دی هلته به نعمت او دنرخ ارزاني وي اوکه ويني چي کافرانو دمسلمانانو دملك څخه غنيمت راوړي دی دليل دی چي ده ته به دهغه په اندازه غنيمت حاصل سي.

## غواص\لامبووهونکی\لمبېدونکی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که څوك ويني چي ده په درياب کي غوټه وهلي ده اوملغلري يي را ايستلي دی نو دهغه په اندازه به علم پوهه او دپاچاهي دمال څخه خوشحالي حاصله کړي اوکه ويني چي په درياب کي يي غوټه وهلي ده او څه يي نه دی را ايستلي دليل دی چي دعلم په زده کولو کي به مشغوله سي ليکن فايده به څني پورته کړي اوکه ويني چي ددرياب دبيخ څخه يي ملغلري را ايستلي دی نو عالم اوفاضل به سي او خوب ليدونکي به دپاچا څخه نفع حاصله کړي.

## غوره\بادرنگ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کي ويني چي بادرنگ يي په موسم کي خوړلي دی دليل دی چي يو شي به په غم او محنت سره حاصل کړي ليکن کاميابه به نه وي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي بادرنگ خوري نو غمجن به سي اوکه ويني چي بادرنگ يي خرڅ کړي دی يا يي چا ته ورکړي دی او دهغه څخه يي خوړلي نه دی دليل دی چي غم به يي کم سي اوکه ويني چي بادرنگ يی دغوښي سره پوخ کړيدی نو غوره دی. دغوك يعني چونگښي او چرمښکي تعبير به په حرف (و) کي په تفصيل سره بيان سي.

# [ ف ]

## فاخته\گگوشتو

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي گگوشتو ناقص دينه او بد اخلاقه ښځه ده چي دچا سره موافقت نه کوي اوکه ويني چي دده سره گگوشتو دی دليل دی چي دغه شان بي دينه ښځه به کوي اوکه ويني چي د گگوشتو غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به دښځي مال اخلي او حج به کوي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي گگوشتو درواغ ويوونکي زوی دی، اوکه ويني چي گگوشتو دده پرکور يو اواز کړي دی دليل دی چي دغايب خبر به اوري، اوکه ويني چي دوه اوازونه يي کړيدی نو دا دښه والي دليل دی او که دري اوازونه يي کړي وي، نو ډير ښه دی اوکه ويني چي گگوشتو او کارغه دواړه دده کور ته

راغلي دی دليل دی چې غل به دده کورته راسي اوسامان به يوسي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چې ګګوشتو په خوب کې ليدل په دروو وجو دی. ۱: ښځه ۲: زوی ۳: خادم يا مزدور.

## فال ګرفتن\فال نيول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې که ووينې چې فال يې نيولی دی او فال ښه ختلی دی دليل دی چې پر دښمن به کامیابه سي او که ووينې چې فال ګيري کوي دليل دی چې ډيری کوپړې به خوري. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې فال نيول په درو وجو دي. ۱: پر دښمن کامیابيدل ۲: ضرورت پوره کيدل ۳: مراد. که فال نيك وي او که بد وي نو تعبير يې د هغه خلاف دی.

## فالوده

فالوده که دزعفرانو سره وي نو ناجوړي ده او دفالودي ليدل ځومره چې ورته رسيدلي وي دهغه په اندازه به ورته غم اوفکر ورسيږي اوکه ووينې چې فالوده يې په خله کې ايښې ده دليل دی چې پاکيزه خبره به کوي اوکه ووينې چې ده دفالودي ګوله چاته ورکړې ده دليل دی چې ده ته به پاکيزه خبره کوي يا به دده لپاره څوك کار کوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې فالوده ليدل په څلورو وجو دي.۱: پاکيزه خبره ۲: مال ۳: نفع ۴: په هغه کار کې جنګ چې په مشکله سره به کيږي.

## فام\نقش

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې که څوك په خوب کې ووينې چې دده پر مخ نقش دی دليل دی چې حج به کوي اوکه لمونځ يې قضاوي نو ادا به يې کړي اوکه دده پر ذمه امانت وي نو ادا به يې کړي او که قرضدار وي نو دقرض پر ادا کيدو دليل دی.

## فتنه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې که ووينې چې فتنه ديو ځاي څخه ليري سوي ده دليل دی چې دهغه ملك خلک به دالله تعالی طرفته رجوع کوي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چې که په لسو شيانو کې يو ووينې دليل دی چې په هغه ملك کې به بلا راسي ۱: تاريکه ۲: اور ۳: يخه هوا ۴: ګرمه هوا ۵: دلمر اوسپوږمې توروالي ۶: ګرد غبار ۷: باران ۸: درخته دبيخه ايستل ۹: سره يا توره وريځ ۱۰: سره او ژړ کالي اغوستل.

## فراخي\پراخي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې که څوك ووينې چې دتنګ ځاي څخه فراخ ځاي ته راغلي دي يا باندې دسختې څخه اساني سوي ده دليل دی چې دغم څخه به خلاصون حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چې که ووينې چې کور باندي فراخ سوي دي دليل دی چې پر عيال به يې روزي فراخ سي اوکه ووينې چې کور باندي تنګ سوي دی اوبيا فراخ سوي دی دليل دی چې دشريعت او ددين پر لاره به سم سي غرض داچې دتنګو شيانو فراختيا په ټولو کارونو کې دفراخي اوبرکت دليل دی.

## فراش \ فرش غوړولو والا

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي فرش غوړولو والا دلیل دی چي دچا لپاره ښځه تلاش کوي.

## فرج \ شرمګاه \ ښځینه عورت

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي دده د ښځو په ډول شرمګاه دی دلیل دی چي ذلیله او عاجزه به سي او که ویني چي ده سره چا جماع کړي ده دلیل دی چي دهغه څخه به یي حاجت پوره سي اوکه دوي ښځي ویني چي دهغو یو ډول شرمګاه ده دلیل دی چي هغه دواړي ښځي به دیو سړی ښځي سي. ابراهیم کرماني رحمه الله علیه ویلي دی چي که ویني چي د دې شرمګاه د اوسپني یا دتانبي ده دلیل دی چي دمراد حاصلولو څخه به نا امیده سي اوکه سړی ویني چي دده دښځي شرمګاه شاته ده دلیل دی چي هغه ښځه به داسي شي خوښوي چي په هغه کي دالله رضا نه وي اوکه ښځه ویني چي د دې شرمګاه پري سوي ده دلیل دی چي پر دښمن به کامیابه سي اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه ماهي راوتلي دی دلیل دی چي لور به یي پیداسي اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه پیشو وتلي ده دلیل دی چي د دې به غل اوډاکو زوی پیداسي اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه مار راوتلي دی دلیل دی چي د دې به ناکاره لور پیداسي او که ویني چي د دې دشرمګاه څخه مار وتلي دی دلیل دی چي د دې به زوی پیداسي چي د دې دښمن به وي اوکه ویني چي لړم ځني وتلي دی نو هم دغه تعبیر یي دی اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه چینجي یا میږي وتلي دی دلیل دی چي کم همته زوی به یي پیداسي اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه ډوډي وتلي ده دلیل دی چي مفلسه اوتنګدسته به سي اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه کوتره وتلي ده دلیل دی چي خاوند به ورسره ډیرمینه لري اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه وینه وتلي ده دلیل دی چي خاوند به ورسره دحیض په حالت کي جماع کوي او که ویني چي د دې څخه نو وتلي دی دلیل دی چي د دې به نیك اوپرهیزګاره زوی پیداسي اوکه ویني چي د دې دشرمګاه څخه توري اوبه وتلي دي نو د دې تعبیر د اول خلاف دی اوکه ویني چي د دې څخه قي وتلي دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي اوکه ویني چي د دې څخه اور وتلي دی دلیل دی چي زوی به یي پاچا سي اوکه ویني چي چا د دې شرمګاه شلولي دیه دلیل دی چي دهغه څخه به نفع حاصله کړي. اسماعیل اشعث رحمه الله علیه ویلي دی چي که ښځه ویني چي ددې څخه ډیر وینښته راختلي دی دلیل دی چي دخپل زوی په وجه به غمجنه سي اوکه ویني چي وینښته باندي نسته نو خوشحالي به وي اوکه پړسوب باندي ویني نو مال به حاصل کړي. اوکه ښځه ویني چي د دې دشرمګاه پر ځاي عضو تناسل دی که حامله وي نو زوی به یي پیداسي لیکن ژوندي به پاته نه سي اوکه ویني چي د دې څخه ملغلري او موتي وتلي دی دلیل دی چي عالم او پرهیزګاره زوی به یي پیداسي.

## فرجي (يو قسم كالي)

فرجي يو ډول قميص او كالي دي، ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوك په خوب كي وويني چي دده قميص پاك دی دليل دی چي دغم څخه به خوشحالي اوبزرګي حاصله كړي اوكه خيرن او زوړ يي ووينې نو تعبير يي داول خلاف دی. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی چي كه څوك ووينې چي د وريښمو كالي يي اغوستي دی دليل دی چي نيك به وي او دپرهيزګارو خلكو سره به وي او كه دسوترو او دريښمو كالي وي نو ددين پر زياتوالي دليل دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه ووينې چي ده دښځو قميص اغوستي دی دليل دی چي ملامتيا به ورته رسيږي اوكه ووينې چي په هغه كي يي دچا سره جماع كړي ده دليل دی چي دچا سره يي جماع كړي وي دهغه څخه به يي مراد پوره سي اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي كه په خوب كي ووينې چي ده سور قميص اغوستي دی نو دا پر ديانداري امانت او پرهيزګاري دليل دی اوكه تور وي نو دعالم لپاره خير اونفع ده او دجاهل لپاره ښه تعبير نه دی اوكه ژړ يي اغوستي وي يا يي په ترخ كي وي نو پر مصيبت غم اوفكر دليل دی.

## فرزند\زوی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه څوك ووينې چي لور يي پيدا سوي ده دليل دی چي ده ته به خير اوخوشحالي ورسيږي اودكور والاوو څخه به خوشحاله سي اوكه ووينې چي زوی يي پيدا سوي دی دليل دی چي لور به يي پيداسي اوكه انجلي ووينې نو زوی به يي پيداسي جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي څوك ووينې چي دده زوی وو او هغه چا تښتولي دی دليل دی چي ناجوړه به سي او اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي كه ووينې چي ده هلك حاصل كړي دی يا چا وركړي دی نو دنا اميده ښځي ځاي څخه به ورته يو شي ملاو سي.

## فرعون

فرعون په پخوا زمانه كي دمصر دپاچا لقب وو ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه په خوب كي ووينې چي دپخواني زماني دفرعونيانو څخه پخواني ظالم پاچا ښارته راغلي دی اوپه ښار كي بيره رامنځ ته سوي ده دليل دی چي دفرعون ملعون خوي به په دغه ښار كي ښكاره سي اوكه ووينې چي پخواني نيك پاچا ښارته راغلي دی دليل دی چي دهغه پاچا دعدل خوي به په دغه ښار كي ښكاره سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه ووينې چي فرعون ملعون ده ته بخشش يا انعامي كالي وركړي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به دظالم پاچا څخه مال حاصل كړي يا به دلوی سړی څخه حرام مال حاصل كړي.

## فرمودن\حكم كول\فرمان وركول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه په خوب كي ووينې چي ده ته چا دديګ پخولو حكم وركړی دي دليل دی چي په كوم كار كي وي قايم به وي اوكه څوك ورته ووايي چي ديګ وګرځوه چي ونه سوزي مطلب يي دادی چي احتياط كوه اوكه ورته ووايي چي ډوډي ماته كړه يعني ورونه خوشحاله ساته اوكه ورته دغنمو خرڅولو لپاره ووايي يعني ډوډی غواړي اوكه ورته ووايي

چي ملا وتړه يعني دکار څخه فا يده پورته کړه اوکه د تاخير کولو ورته ووايي يعني پر دښمن به کاميابي حاصله کړي اوکه ورته ووايي چي په اور کي مه ځه يعني دمال حفاظت وکړه چي فقير نه سي اوکه د ډيوي بلولو ورته ووايي يعني مال خرڅ کړه اوکه ورته ووايي چي بستره اواره کړه يعني طلب کوه او که ورته ووايي چي تخم کره يعني دمخلوق سره نيکي کوه اوکه ورته ووايي چي غسل وکړه يعني توبه وباسه او دالله تعالی طرفته رجوع وکړه اوکه ورته ووايي چي څه وخوره يعني دحلال رزق ګوله خوره.

## فرودآمدن\کښته راتلل\کښته کېدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي دغر يا ديو ځاي څخه لاندي راکښته سوي دی دليل دی چي شرافت اوبزرګي به يي ختمه سي او دمال نقصان به يي وسي اوکه ويني چي دځيني له خاني څخه لاندي را کښته سوي دی دليل دی چي دده په دين کي به نقصان وي خاصکر که ځينه دخاوري وي او که دچوني وي نو دمال نقصان دی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي دغره څخه لاندي راکښته سويدی که دپاچا سره وي نو دهغه څخه به جلاسي او دده په عزت او مرتبه کي به نقصان وسي او که دغونډي څخه لاندي کښته سوي وي دليل دی چي دهغه لوړوالي مطابق به يي په نعمت کي نقصان وسي.

## فروختن\خرڅول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي کوم شي ددين په لاره اوشريعت کي ډير عزيز وي دهغه خرڅول بد دی اوکه په خوب کي ويني چي ده قران مجيد خرڅ کړي دی دليل دي چي دين اسلام به دده په نزد خوار او ذليل وي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي چي که ويني چي ده خپل غلام خرڅ کړيدی دليل دی چي دده عزت او بزرګي به دښځو دطرف څخه وي او دي به بدنام سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي ده يو شي خرڅ کړي دي نو هغه شي به سپك وي.

## فزوني\زياتی\زياتوالی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که دخير او صلاح زيادتي وي نو نيک دی او په کومو شيانو کي چي شر اوفساد وي دهغه زيادت بد دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په بدن کي زيادت ليدل ددې خبري دليل دی چي په بدن کي نقصان نسته او څونه چي زيادت ويني دهغه په اندازه به يي مال اونعمت زيات سي. اوکه دبدن دزيادت څخه ده ته نقصان ورسيږي نو پر غم ناجوړي او نقصان دليل دی.

## فستق\پسته

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي پسته مال اونعمت دی اوکه ويني چي دده سره دپستي مغز دی او خوړلي يي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به مال اونعمت حاصل کړي اوکه ويني چي ده سره دپستي مغز دی نو دبخيل سړی څخه به نفع حاصله کړي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي ده ته چا دپستي مغز ورکړي دی نو پر مال اونفع دليل دی.

## فقاع خوردن \ داوربشو شراب چيښل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي داور بشو شراب چيښل پرخير او نفع دليل دي چي دخادم څخه به ورته حاصل سي اوکه ويني چي دده کوزه را ايله ده او دی هم را ايله دی دليل دی چي ده ته به نقصان رسيږي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي داوربشو شراب چيښل دخلکو خدمت کول دی او داوربشو شراب خواړه اونفع ده او تروه اوبي خونده نقصان او ضرر دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب داوربشو شراب چيښل په څلورو زجو وي. ۱: نفع ۲: ښکلول ۳: خدمت کول ۴: بد سړی.

## فقيه \ ديني عالم \ دفقه شريفي عالم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي فقيه اوفاضل سويدی او دده خبره دمخلوق په نزد خوښه اومقبوله ده دليل دی چي شرافت اوبزرگي به حاصله کړي او دده نوم به په ملك کي په نيکي سره مشهور سي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که ان پړهه (امي) سړی په خوب کي خپل ځان فقيه ويني نو سخت را گيرونکي سپاهي به سي اوکه خپل ځان پوره عالم ويني نو قاضي به سي.

## فلاخن \ مچغونه \ مچغوزه

ابن سيرين رحمه الله ويلی دی چي که ويني چي ده څوك په مچوغنه ويشتلي دی دليل دی چي هغه سړی ته به ښراوي کوي اوکه ويني چي دي چاپه مچوغنه ويشتلي دی دليل دی چي هغه سړی به ده ته ښراوي کوي اوکه ويني چي دمچوغني په کاڼي دده بدن زخمي سوي دی دليل دی چي دخيرونه به ورته افت رسيږي اوناجوړه به سي.

## فلوس \ پيسې \ نقدي \ روپۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي پيسه جنگ او دښمني ده اوکه ويني چي د سره پيسه ده دليل دی چي دچا سره به جنگ کوي اوکه ويني چي دده سره ډيري پيسي دی نو په سخت غم کي به اخته سي اوکه ويني چي پيسي يي دخپل کور څخه دباندي غورزولي دی دليل دی چي دغم او فکر څخه به خلاص سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي پيسي ليدل پر غريبي دليل دی.

## فندق (يو قسم ميوه)

فندق دبيري برابر يو مشهور دولايت ميوه ده داپه خوب کي ليدل مال دی که څوك په خوب کي ويني چي دده سره فندق دی دليل دی چي دبخيل سړی څخه به نفع حاصله کړي اوکه ويني چي دده سره دفندق ډيران دی نو دچا سره به يي جنگ کيږي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي دده سره دفندق خوږ مغز دی دليل دی چي حلال مال به حاصل کي.

## فنک (يو ډول حيوان)

فنك يو ځناور دی چي دهغه دپوست څخه پوستين جوړيږي ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي فنك مالدار مسافر دی او دمخلوق څخه غريب طبعه سړی دی او ددي پوست ويښته

او هډوکي غوښتونکي دی او غوښه يي دمالدار مسافر مال دی اوکه ويني چي فنك دده تابعدار نه دی دليل دی چي فايده به نه حاصلوي اوکه ويني چي فنك يي مړ کړي دی او پوست يي ځني ايستلي دی او غوښه يي غورزولي ده دليل دی چي دمسافر سړی مال به ورك کړي او که ويني چي پر ده ډير فنك جمع سوي دی اودهغو څخه يي تکليف نه دی ليدلي دليل دی چي ديو ټولګي څخه به نفع حاصله کړي.

## فواق\اټکي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي ده ته اټکي راغلي دی دليل دی چي ده ته به غصه راځي اوښکنځل او خرابي خبري به کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي ده ته د ډوډي خوړلو په وخت يي اټکي راغلي دي دليل دی چي ناجوړه به سي اوکه ويني چي پرلپسي اټکي ورته راغلي دی دليل دی چي بي وجهي به پر چا غصه کوي اوکه ويني چي دده داټکي سره اواز لوړ سوي دی دليل دی چي درواغ به وايي او په دغه درواغو به ملامت وي اوکه ويني چي اټکي نرم او کرار وو دليل دی چي پرچا به غصه کوي ليکن ژر به يخ سي او که ويني چي داټکي سره يي هر څه دباندي ايستلي دی دليل دی چي دده مرګ نژدی دی.

## فوده\وچه خميره

فوده يا وچه خميره چي ډوډي ځني جوړيږي داپه خوب کي ليدل غم او فکر دی اوکه ويني چي خوړلي يي دي دليل دي چي ديو کار په وجه به فکرمند سي او داپه خوب کي ليدل دخپلوانو سره جنګ دی او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي دا په خوب کي ليدل په پنځو وجو وي ۱: ناجوړي ۲: غم ۳: جنګ ۴: خلاصون ۵: دعيال سره ناموافقت.

## فوطه\د لاس دسمال\دستمال\دسمال

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دسمال او دهغه کالي خوشحالي او اساني ده اوکه ويني چي دسمال دسوترو دی دليل دی چي په دين او دنيا کي به خوشحالي حاصله کړي که نوي اوفراخه وي اوکه زړه اوخيري وي نو ددې تعبير داول خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دسمال دنيك سړی لباس دی که ويني چي ددسمال کالي يي اغوستي دی او خوب ليدونکي پرهيزګار وي نو دا دده دستر پر زياتيدو دليل دی اوکه خوب ليدونکي مفسد وي نو دليل دی چي توبه به کوي او دسمي لار لټون به کوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که پاچا ددسمال کالي ويني دليل دی چي عدل اوانصاف به کوي اوکه قاضي ويني چي ده ددسمال کالي اغوستي دی دليل دی چي په ريښتيا سره به فيصله کوي اوکه مشرك يي ويني نو مسلمان به سي اوکه بد کار يي ويني نو توبه ګار به سي اوکه غل يي ويني نو توبه به وباسي اوسمه لار به حاصله کړي.

* * *

# [ق]

## قاضي\شرعي حاكم\جسټس

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب كي ووينې چي قاضي سوي دی او په خلكو حكومت كوي او د دې اهل نه دی نو په غم او مصيبت كي به گرفتار سي او دده دلاسه به مال ولاړ سي اوكه په سفر كي وي نو ډاكوگان به يې ووژني اومال به يې ضايع سي اوكه عالم او هوښيار وي نو قاضي به سي اوكه خوب ليدونكي عالم او ځوان وي نو دسفر څخه به په سلامتي سره بيرته راسي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك معلوم قاضي په خوب كي ووينې نو دعالمانو او ددين دبزرگانو مرتبې ته به ورسيږي اوكه نامعلوم قاضي ووينې چي ناست دی اودي دچا سره لانجه لري او هغه ددوي تر مينځ حكم كړي دی نو چي څه حكم يې كړي وي هغه به كيږي دالله تعالى فرمان دی (والله يحكم لا معقب لحكمه، سورة الرعد: ٤١) او الله تعالى به ددوي ترمينځ حكم كوي او دهغه حكم څوك نه سي ماتولای او په بل ځای كي دالله تعالى فرمان دی (يقص الحق وهو خير الفاصلين، سورة الانعام: ٥٧) اوهغه حقه خبره كوي او هغه دټولو فيصلو كوونكو څخه ښه دی. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ووينې چي قاضي پر ده حكم كړي دی نو هغه به كيږي څه چي ده ليدلي وي اوكه ووينې چي دقاضي په لاس كي تله ده دليل دی چي په خلكو كي به په رښتيا حكم كوي اوكه ووينې چي قاضي ورته دمحبت او شفقت په نظر سره كتلي دی او په مهرباني اوخاطر سره يې ورسره خبره كړي ده دليل دی چي ده ته به په عالمانو كي عزت او مرتبه حاصله نه سي او خوار او ذليل به سي.

## قافله

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ووينې چي دقافلي سره كورته راځي دليل دی چي دده بندكار به پوره سي او دخپلوانو څخه به ليري سي.

## قالب\غالب

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه په خوب كي دڅپلكو يا دموزي قالب ووينې نو دليل يې پر ښځه اوخادم دی چي دده كار سموي اوكه ووينې چي دده سره قالب دی دليل دی چي ده ته به خادم ملاويږي اوكه ووينې چي قالب مات سوي ياسوزل سوي دی دليل دی چي دده دكور خادم به هلاك سي. جابرمغربي رحمة الله عليه ويلي دی چي كه ووينې چي دده سره ډير قالبونه دی دليل دی چي دخادمانو څخه به ورته خير اونفع حاصله سي اوكه ووينې چي پخپله څپلكي جوړوي يا موزي گنډي دليل دی چي ښه به سي.

## قالين\غالۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك ووينې چي دده لپاره لوی قالين اوار سوي دی اوپيژني چي دده خپل دی نو دا پر ډير عمر او درزق پر فراخي دليل دی اوكه ووينې چي په

پردي ځاي کي پر غالۍ ناست دی او دهغه ځاي دمالك ورته علم نسته دلیل دی چي دنیا به باندي بدله سي او په سفر کی به مري. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي پر کوچني او تنګه غالي باندی ناست دی دلیل دی چي عمر به یي لنډ او روزي به باندي تنګه سي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي غالۍ یي نغښتی ده او پر اوږه یي ایښي ده دلیل دی چي دیو ځاي ځخه به بل ځاي ته ځي اوعمر به یي لږ وي او ځونه چي غالي غټه او فراخه وي دده روزي اوژوند به زیات او ښه وی اوکه ویني چي پر کوچني غالي ناست دی او دده ځخه لاندي فراخه سوي ده دلیل دی چي روزي به یي فراخه سي اوکه د دې خلاف ویني نوعیش اوروزي به یي په سختی سره حاصلیږي اوکه ویني چي غالي اواره ده او ده پخپل لاس نغښتي ده اودکور په کټ کي یي ایښي ده دلیل دی چي خپل دولت اوخپل ځان به تباه کړي اوکه ویني چي غالي یي پر شا ایښي ده او وړي یي دلیل دی چي ډیره ګناه به کوي. دانیال علیه السلام ویلي دی چي که ویني چي غالي کوچني اوشنه ده دلیل دی چي روزي به یي تنګه وي لیکن عمر به یي ډیر وي اوکه ویني چي دده سره پاکه او شنه غالي ده دلیل دی چي روزی به یي فراخه سي اوکه ویني چي دچا په کور کي یي غالۍ اچولی ده دلیل دی چي دکور مالك ته به دولت او مرتبه حاصله سي اوکه ویني چي په نامعلوم کور کي پر غالي پروت دی دلیل دی چي سفر به کوي او مال او نعمت به حاصلوي.

## قبا\چوغه\چپنه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي دسوترو چوغه پناه او په سفر تلل دی اوکه ویني چي دسوترو فراخه چوغه یي اغوستي ده نو دغمونو ځخه به خلاص سي اوکه ویني چي دوریښمو چوغه یي اغوستي ده نو دا دده په حق کي مکروه ده اوکه دوسلي سره یي اغوستي ده نو دلوی سړی ځخه به شرف اوبزرګي حاصله کړي ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي چوغه یي اغوستی ده او جنګ ته تللي دی دلیل دی چي پر دښمن به کامیابي حاصله کړي اوکه وینی چي شنه چوغه یي اغوستي ده دلیل دی چي رڼا به حاصله کړي او که اسماني رنګ وي نو مصیبت دی اوکه توره وي نو غم اوفکر دی اوکه درباندي کرښی وي نو دده کار به په انتظام سره وي اوکه چوغه زړه او ځیري وي نو ښځي ته به طلاق ورکوي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي دده چو غه عنابی ده که ددغه چوغي اهل وي نو پر غم اوفکر دلیل دی اوکه ویني چي دپوست توره اوپلیته چوغه یي اغوستي ده دلیل دی چي خوب لیدونکي به دمالداري ښځي سره واده کوي اوکه ویني چي د اول پوستکي چوغه یي اغوستي ده دلیل دی چي دپرهیزګاري ښځي سره به واده کوي اوکه چوغه دخنزیر دپوست وي نو دمالداري ښځي سره به واده کوي.

## قباله\چیک\قواله\سند\اسناد

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که ځوك په خوب کي ویني چي دده سره چیك یاخط دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به ورته هوښیارتیا حاصله سي اوکه ویني چي پاچا ورته خط یا چیك

ورکړي دی دلیل دی چي دی به دیو ولایت حاکم کړي او که ویني چي قاضي ورته چیك ورکړي دی دلیل دی چي دشریعت علم به ورته حاصل سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي چیك په شپږو وجو وي. ۱: ریاست ۲: حکمت او هوښیارتیا ۳: نفع ۴: ولایت ۵: دلیل ۶: قوت.

## قبان\دتلي لړ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي قبان خونخوار سړی دی اوپه خوب کي دتلي لړ اوریدل دی او ډنډه یي دحکم تیرولو په وخت زیادتي ده. جابرمغربی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي قبان قاضي دی او که ویني چي دده سره قبان دی نو دده به دقاضي دوکیل سره ملګرتیا وی او که ویني چي پر قبان یو شي پخوي نو دده صحبت به دقاضي سره وي.

## قبیله

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي دقبلي طرف یي پریښي دی او دمشرق طرفته لمونځ کوي دلیل دی چي دنبی علیه السلام دلاري سره به مینه نه لري او که ویني چي قبله نه پیژني دلیل دی چي ددین په لاره کي به حیرانه اوپریشانه سي.

## قبه\ګنبد

ددي بیان په په حرف ك کي راځي ان شاء لله تعالی.

## قدح\پیاله

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که په خوب کي ویني چي پیاله دګلابو دشربت ډکه ده او دهغه څخه یي چیښلي دی دلیل دی چي ښځه به کوي یا به مینځه اخلي او دده کره به نیك او پرهیزګاره زوی پیداسي او که ویني چي اوبه یي توي کړي دی او پیاله پاته سوه دلیل دی چي زوی به یي مري او ښځه به یي سلامته پاته سي. او که ویني چي پیاله ماته سوه او اوبه توي سوي دی دلیل دي چي زوی اوښځه دواړه به یي مري او که ویني چي پیاله ده او ده اوبه څني چیښلي دي دلیل دي چي دده کره به بدکرداره زوی پیداسي اوده ته به څني تکلیف وي او که په خوب کي خاني پیاله ویني دلیل دی چي دده به زوی نه کیږي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي پیاله لیدل په دروو وجو وي. ۱: ښځه ۲: مینځه ۳: خادم چي دهغه ضرورتونه په کور کي مشترک وي.

## قدیه\وچه غوښه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي وچي غوښه که دبوزي وي نو په غنیمت دلیل دی او که دآس وي نو دسپاهیانو خلکو څخه به غنیمت حاصل کړی او که دځنګلي ځناورو غوښه وي نو دځنګلي سړو څخه به غنیمت حاصل کړي او دوچي کړي سوي غوښي په خوړلو کي ښه والي نسته.

## قران خوندن قرانکریم ویل

په خوب کي قرانکریم ویل پر حاکم دلیل دی که په خوب کي درحمت اوزیري ایت دالله تعالی

دطرفه وي نو واجب دی چي خيرات وکړي او دالله تعالی شکر ادا کړي اوکه ووینی چی دعذاب ایت وايي نو دالله پر غصي اوغضب دليل دی توبه دي وکړي او دالله طرفته دي رجوع وکړي او که ووینی چي دقصو او مثالونو ايت يي ويلي دی دليل دی چي گناه به کوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ووینی چي نيم قران کريم يي ويلي دي نو دليل يي دا دي چي نيم عمر يي تير سوي دی اوکه ووینی چي دقران کريم حافظ سوي دی دليل دی چي دامانت خيال به ساتي اوکه ووینی چي ده دقران کريم اواز اوريدلي دی دليل دی چي دده کار به ددين پر لاره کي نيک وي اوکه ووینی چي چا دده قران کريم ويلي دی او په هغه نه پوهيږي دليل دی چي دده زړه ته به غم او فکر ورسيږي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که ووینی چي پوره قران کريم يي ختم کړي دی دليل دی چي مرادبه حاصل کړي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي دده عمر اخر ته رسيدلي دی اوکه ووینی چي قران کريم په لوړ اواز وايي دليل دی چي کار به يي پورته سي اوپه خلکو کي به مشهور سي اوکه ووینی چي کوم ايت يي ويلي دی ده ته ياد دې نو ددغه ايت تفسير ددې تعبير دی. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي که ووینی چي دقرانکريم څلورمه حصه يي ويلي دی دليل دی چي کاربه يي ښه سي اوکه ووینی چي دسورة اعراف څخه يي ترسورة مريم پوري ويلي دی نو دمخلوق ترمينځ به مشهور سي اوکه ووینی چي دسورة مريم څخه يي ترسورة الناس پوري قران مجيد ويلي دي نو دده ټول مرادونه به پوره سي اوکه ووینی چي دقرانکريم پوره سيپاره يي ويلي ده دليل دی چي کال اومياشت به باندي مبارکه سي اوکه ووینی چي دقرانکريم اووه سيپاري يي ويلي دی نو دغم اوفکر څخه به خلاص سي او که څوك قران خوان نه وي او ووینی چي قران کريم يي ويلي دی دليل دی چي دده مرگ نزدی سوي دی دالله تعالی فرمان دی (اقراء كتابك كفى بنفسك اليوم عليك حسيبا، سورة الاسراء: ١٤) خپل کتاب ووايه نن ته دخپل ځان دحساب لپاره پوره يي. اوکه ووینی چي لڅ دی اوقران کريم وايي دليل دی چي خواهشمند به وي اوکه په پاك اوناپاك ځاي کي يي وايي اوگرځي دليل دی چي دده عقيده گډه وډه ده جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دقران مجيد ويل په څلورو وجو وي ۱: دافت څخه سلامتي حاصلول ۲: دفقيري څخه وروسته دولت ۳: دزړه مراد پوره کيدل ۴: بيداري او پرهيزگاري حاصلول دگنهگارو لپاره او دهغوی لپاره عذاب اوسزا دقيامت دورځي دليل قائميدل.

## قرباني کردن\قرباني کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووینی چي داوښ يا غوا يا بوزي قرباني يي کړي ده دليل دی چي که غلام وي نو ازاد به سي اوکه په غم بلا اوتکليف کي گرفتار وي نو شفا به حاصله کړي اوکه بند وي نو خلاصون به حاصل کړي اوکه فقير وي نو مالدار به سي که په بيره کي وي نو په امن به سي او که قرضدار وي نو قرض به يي ادا سي اوکه حج يي نه وي کړي نو حج به وکړي اوکه ووینی چي خلک دقرباني لپاره ځنگل ته تللي دی دليل دی چي دغه

خلک دیو شي څخه بیریږي دهغه څخه به په امن کي سي اوکه په قید کي وي نو خلاصون به حاصل کړي اوقحط اوتنګي به یې په فراخي سره بدله سي خاصکر که دا خوب لوی اختر ته نژدی وي نوتعبیر به یې ژر ښکاره سي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ووینی چي دقرباني غوښه یې په خلکو کښي تقسیم کړي ده دلیل دی چي دلته به مالدار سړی مري اومال به یې تقسیموي اوکه ووینی چي خلکو غوښه پټه کړیده دلیل دی چي په الله تعالی پوري به درواغ وایي اوپه خوب کي قرباني زیري دی دالله تعالی فرمان دی (وبشرنه باسحق نبیا من الصلحین وبرکنا علیه وعلی اسحق، سورة الصافات: ۱۱۳) ترجمه: او موږ هغه ته داسحاق نبی زیري ورکړي چي دنیکو خلکو څخه وو اوموږ هغه ته او اسحاق ته برکت ورکړي اوکه ښځه خوب ووینی نو دهغه به نیك زوی پیداسي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دقرباني تعبیر په څلورو وجو وي. ۱: بیره ۲: مرادونه اوحاجتونه حاصلیدل ۳: خیر اوبرکت ۴: دقحط او تنګي لیري کیدل.

## قرابه \ دشرابو بوتل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دشرابو بوتل بدشکله بوډي ښځه ده چي هغه ته مال او دزړه دخوښي شیان سپاري اوکه په قرابه کي اوبه یا دګلابو شربت یا یو داسي شي وي چي دهغه خوړل او چیښل حلال دی نو دغه بد شکله بوډي ښځه به حلال خوره وي اوکه ووینی چي په قرابه کي یو داسي شي وي چي مستي راوستوونکي وي نوهغه بوډي ښځه به حرام خوره وي جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك ووینی چي دده سره قرابه ده دلیل دی چي دبوډي ښځي سره به یې دمحبت ملاقات کیږي اودا بوډي به بد شکله وي اوکه ووینی چي دقرابي څخه یې اوبه یا شربت چیښلي دی دلیل دی چي ده ته به دبدشکله بوډي څخه نفع فایده ورسیږي او که دقرابي څخه یې یو ترش شي اخیستي وي نو دلیل دی چي څه غم او فکر به کوي او دخالي قرابي څخه څه خیر او شر نه رسیږي اوکه ووینی چي قرابه ماته سوه دلیل دی چي ددی بدشکله بوډي څخه به جلا سي.

## قرنفل \ لونګ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي خوب کي لونګ نیك صفت دی او که ووینی چي دده سره ډیر لونګ دی او خلګو ته یې ورکوي دلیل دی چي په دغه ملک کي به خلک دده صفت کوي او دده نوم به په نیکي سره مشهور سي اوکه ووینی چي لونګ خوري دلیل دی چي ده ته به غم فکر اومصیبت رسیږي.

## قز \ ښام \ ریښم \ وریښم \ ابریشم

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي ریښم او ابریشم سپین ووینی دلیل دی چي ددی جهان نعمت به حاصل کړي اوکه ژړ وي نو پر ناجوړي دلیل دی او دپخو ریښمو لیدل داومو ریښمو څخه ښه دی اوکه ووینی چي دده ریښم یا ابریشم سوزلي دي یا ورك سوي دی دلیل دی چي ده ته به

نقصان رسيږي اوکه ويني چي دده سره سپين ريښم يا ابريشم دی او دده دی نو خير او نفع به حاصله کړي اوکه شنه وي نو ښه دی اوکه سره وي نو دسړو لپاره ښه نه دی اوکه تور يا اسماني رنګ وي نو پرغم اوفکر دليل دی اوکه ويني چي دده سره هر رقم وريښم دی چي ده ته به هر قسم سامان حاصل سي او ريښم دسړو لپاره په دين کي مکروه دی او دښځو لپاره ددين په بابت کي ښه دی.

## قسط \ دوايي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي دتر ځان لاندي قسط سوزوي او هغه دود کوي دليل دی چي خلک به دده مدح اوثنا کوي او دده نوم به په ملك کی په نيکي سره مشهورسي اوکه دود خراب او ناخوښه وي نو تعبير يي ددی خلاف دی جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي قسط خوړل پرغمجن کيدو دليل دي.

## قسمت کردن \ تقسيمول \ وېش کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي په يو ټولګي کي څه تقسيموي دليل دی چي به خلکو کي به دانصاف لحاظ کوي اوکه ويني چي خپل مال په خير او صلاح سره تقسيموي دليل دی چي دده به زامن وسي او خپل مال به په هغو کي تقسيموي اوکه ويني چي خپل مال په شرارت اوفساد سره تقسيموي دليل دی چي مال به يي تباه سي اوکه ويني چي دچا مال يي دهغه په رضا سره تقسيم کړي دی دليل دی چي صلاح اوفساد به دده طرفته رجوع کوي.

## قصاب

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که نامعلومه قصاب وي نو ملك الموت فرشته ده که ويني چي قصاب کور يا کوځي ته راغلي دی دليل دی چي هلته به څوك مري اوکه ويني چي دی قصاب دی حالانکه دا دده پيشه نه ده دليل دی چي څوک به مړ کوي اوکه ويني چي دقصاب سره دی دليل دی چي دده صحبت به دظالم سړی سره وي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي قصابي کوي حالانکه دی قصاب نه وي دليل دی چي غم اوفکر به ځني ختم سي اوکه قصاب ويني نو په حقه به وينه ځني تويوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي نامعلوم قصاب دده کور يا کوځي ته راغلي دی دليل دی چي په دغه ځاي کي به نابېره مرګ ښکاره سي.

## قصه گفتن \ قصه ويل \ قصه خواني کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي نامعلومه قصه وايي دليل دی چي دظالمانو دخوف او بيري څخه به په امن کي سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي خلکو ته قصي وايي او دا قصه نيکه وي نو پرخير اوصلاح دليل دی اوکه قصه خرابه وي نو پرشر اوفساد دليل دی جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي قصه بيانوي دليل دی چي کار به يي نيک سي او مراد به يي پوره سي اوقصه بيانونکي نيك طبعه سړی دی.

## قضیب\شاخ\ښاخ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي ده ته چاتازه اونري ددرختي ښاخ ورکړي دی او ورکوونکي معلوم دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به ورته خیر اونفع حاصله سي اوکه ویني چي ښاخ نري او وچ دی نو څه شي به ورته ملاویږي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دتروي میوي والا درختي ښاخ ده ته چاورکړي دی دلیل دی چي دهغه سړی څخه به ورته غم او فکر رسیږي اوکه دخوږي درختي وي دلیل دی چي خیر اونفع به حاصله کړي.

## قطایف\حلوا

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي ته چا دچیني او بادامو والا حلوا ورکړي ده او ده دهغه څخه یې خوړلي ده دلیل دی چي مال اونعمت به ورته په اساني سره حاصل سي اوکه په دي کي دغوزانو انګورو او دچوارو رس وي نو پر لړه نفع دلیل دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي حلوی لیدل په څلورو وجو ده. ۱: ښه خبره ۲: حلال مال ۳: نفع ۴: نفع چي بغیر دتکلیف څخه به حاصله سي اوکه وګوري چي دچیړ تیل یې دکور څخه دباندي غورزولي دی دلیل دي چي توبه به وباسي.

## قطران\درنځړ تیل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي درنځړ تیل حرام دی اوکه ویني چي دده سره درنځړ تیل دی اودهغه څخه یې خوړلي دی دلیل دی چي حرام مال به حاصل کړي اوکه کالي یې باندي خراب سوي وي نو دحرامو کالي به اغوندي اوبعضي وایي چي دمال په وجه به په محنت او بلا کي راسي.

## قفا\پر څټ چپلاخه خوړل\څټ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي که په خوب کي پرخپل څټ ویښته ویني دلیل دی چي قرضدار به سي اوکه ویني چي دڅټ څخه یې ویښته خریلي دی نو قرض به خلاص کړي اوکه ویني چي چا ورته پر څټ چپلاخه ورکړي ده اوپړسیدلي دی دلیل دی چي ده ته او دده سړیو ته به فایده وي اوکه ویني چي نا اشنا ورته پر څټ چپلاخه ور کړي ده دلیل دی چي دنا اشنا څخه به نفع حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي ده پر څټ داسي چپلاخه خوړلي ده چي ویني ځني بهیږي نو په چا به دعوی کوي اونقصان به حاصلوي. اوکه ویني چي ده خپل څټ ځیري کړي دي نودلیل دی چي دده عیال به دده سره خیانت کوي اوکه ویني چي پر خپل څټ یې ځنګلي لګولي دی دلیل دی چي یو شي به اخلي اوضمانت نامه به لیکي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دده مخ وروست سوي دی نو دلیل دی چي دی به دخلکو څخه کرکه کوي.

## قفس\پنجره

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي دده سره پنجره ده دلیل دی چي په یو ځاي کي به ګرفتاره سي او اهل تعبیر بیان کړي دی چي په خپلوانو کي به دچا سره قید خاني ته ځي اوکه

وويني چي پنجره ماته سوي يا ورکه سوي ده دليل دی چي قيدخاني دتنگي څخه به خلاص سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کی پنجره ليدل په درو وجو ده ۱: قيد خانه ۲: تنگ ځای ۳: دپټ فرش ځاي.

## قفل\جرنده\قلف

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي جرنده ددين او ددنيا دکارونو پر ښه کيدو دليل دی اوکه وويني چي جرنده ورخلاصه سوي ده دليل دی چي کارونه به باندي فراخ سي اوممکنه ده چي حج اسلام به وکړي اوکه وويني چي جرنده نه ده خلاصه سوي دليل دی چي کار به يي ډير وخت پس فراخ سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چي که وويني چي پريو ځاي مضبوطه جرنده لگيدلي ده دليل دی چي خپل مال به مصلح سړی ته حواله کړي اوکه وويني چي دده جرنده کمزوري ده نو تعبير يي د دې خلاف دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي جرنده په شپږو وجو ده ۱: دکار جوړيدل ۲: قوت ۳: دليل ۴: نفع ۵: ښځه ۶: په نيک سړی بروسه کول.

## قلعه

قلعه شاهي محفوظ ځاي په فارسي کي ديته دژ وايي د دې بيان په حرف دال کي سوي دی.

## قلم

دقلم په تعبير کي داهل تعبيرو اختلاف دی ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي قلم امر حق دی او الله تعالی ته دقلم اولوح محفوظ محتاجي نسته. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي قلم يوه فرښته ده چي دالله تعالی په حکم کار کوي که ثوك قلم په هغه شکل کي وويني کوم چي دهغه دی دليل دی چي دعاقل پاچا سره به يي کار وسي دقلم په باره کي دالله تعالی فرمان دی (ن والقلم ومايسطرون، سورة ن: ۱ –۲) گواه دی قلم اوڅه چي هغه ليکي. اوکه وويني چي په لاس کي يي قلم را اخيستي دی دليل دی چي فاضل زوی به يي پيداسي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي که وويني چي قلم دده په لاس کي دی او څه باندي ليکي دليل دی چي څه به زده کړي دالله تعالی فرمان دی (علم الانسان ما لم يعلم، سورة العلق: ۵) انسان ته يي هغه څه وښودل کوم چي هغه نه پيژندل. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي قلم ليدل په پنځو وجو وي. ۱: امر حق تعالی ۲: فرښته ۳: دولت ۴: دکارونو حقيقت.

## قليه\ښوروا

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي کومه ښوروا په اوبو کي پخه سوي وي هغه بغير داوبو دښوروا څخه ښه ده او څونه چي ښوروا مزيداره وي دهغه په قدر به نعمت ښه وي اوکه ښوروا دغتي غوا دغوښي وي او ده خوړلي وي دليل دی چي په دغه کال به دخوف اوبيري څخه په امن کي وي او که وويني چي ده دگډي يا دبزي دبچي دغوښي ښوروا خوړلي ده دليل دی چي لږ مال به حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که وويني چي ده داس دغوښي ښوروا خوړلي ده دليل

دی چي دپاچا څخه به په تکليف او سختي سره مال حاصل کړي اوکه داوښ دغوښي ښوروا يي خوړلي وی دليل دی چي دلوی سړی څخه به مال حاصل کړي اوکه دماهي دغوښي ښوروا يي خوړلي وي. دليل دی چي د ښځو په وجه به په مکر سره مال حاصل کړي اوکه خوب ليدونکي مفسد وي نو پر غم اوفکر دليل دی که ويني چي دداسي حيوانانو دغوښي ښوروا يي خوړلي ده دکومو غوښه چي حرامه وي دليل دی چي حرام مال به خوري.

## قمح \ ګرز

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کوچني ګرز غلام يا مينځه ده او غټ ګرز ليدل دډکولو اله ده اوکه ويني چي ده کوچني ګرز اخيستي دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي خوب ليدونکي به کوچني غلام يا کوچني مينځه اخلي اوکه ويني چي دده ګرزمات دي يا ورك سوي دی دليل دی چي دچا سره دده ناسته وه نو دهغه سړی دملګرتيا څخه به جلا سي اوکه ويني چي دده ګرز دسپينو زرو وی نو دده به دنيك سړی سره صحبت وي اوکه داوسپني وي نو دده به دقوي اوبهادر سړی سره صحبت وي او دهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي.

## قند \ ګوړه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي ده قند خوړلي دی دليل دی چي په تادي سره به داسي کار کوي چي په هغه سره به پښيمانه سي اوکه ويني چي چا دګوړي ټوکړه دده په خله کي ايښي ده دليل دی چي ده ته به بوسه ورکوي. اوکه ويني چي قند يي په بوجي کي ايښي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي اوکه ويني چي قند خرڅوي دليل دی چي ده ته به نقصان رسيږي او دقند اخيستل دهغه دخرڅولو څخه ښه دی.

## قنديل \ فانوس

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي په خوب کي بل کړی فانوس دعبادت توفيق دی خاصکر که صفا رڼا وي که په خوب کي ويني چي دده په کور کي بل سوي فانوس رازړيږي دليل دی چي دپرهيزګاري اونيکي ښځي سره به واده کوي اوکه دا خوب ښځه ويني نو اطاعت او عبادت به ډير کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي روښانه فانوس ليدل په څلورو وجو وي ۱: واده کول ۲: دعبادت توفيق ۳: دبندوکارونو خلاصول ۴: او مړ سوي فانوس په خوب کي لږه نفع ده.

## قنوت

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي څوك په خوب کي ويني چي دعايي قنوت وايي دليل دی چي خلک به دده مدح اوصفت کوي اومراد به يي پوره سي. اوکه مصلح او پرهيزګار سړی يي په خوب کي ووايي دليل دی چي دهغه به ټول مرادونه پوره سي اوکه خوب ليدونکي مفسد وي دليل دی چي دبزرګ يا رئيس په ذريعه به دده دنياوی کارونه پوره سي.

## قنينه \ بوتل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي بوتل خادم دی چي هغه ته دکور چابي حواله وي

اوکه ووینې چې دده سره بوتل دی او په هغه کې اوبه یا ګلاب یا داسې شی دی چې دهغه خوړل حلال وی او ده خوړلې وی دلیل دی چې ده ته به دخادم څخه شی حاصل سی اوکه ووینې چې بوتل مات یا ورک سوی دی دلیل دی چې دده خادم به تښتې. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلې دی چې په خوب کې بوتل خادم دی چې دهغه په لاس کې دکور ټول شیان دی.

## قیامت

دقیامت په خوب کې دلیدلو تعبیر په حرف را «رستیخیز» لفظ کې تفصیلې بیان سوی دی.

## قیر \ تارکول \ ډمبر

ابن سیرین رحمه الله ویلې دی که په خوب کې ووینې چې دده سره تارکول دې دلیل دی چې دهغه په اندازه به نعمت او روزي حاصلوي. جابر مغربی رحمه الله ویلې دی که ووینې چې دده سره ډیر تار کول دی او کور ته یې راوړې دی دلیل دی چې دهغه په اندازه به کورته نعمت وړې اوکه ووینې چې دکور څخه یې دباندې اچولې دی د دې تعبیر خلاف دی اوکه ووینې چې تارکول یې خوړلې دی دلیل دی چې حرام شی به خوري او بعض اهل تعبیر ویلې دی چې ده ته به غم رسیږي.

## قی کردن \ قي‌وهل \ باقی‌وهل

ابن سیرین رحمه الله ویلې دې که څوك په خوب کې ووینې چې ده قی وهلې دی او په اسانې سره یې قی وهلې دی دلیل دی چې توبه به وباسي او که ووینې چې قی یې ونه سو وهلاي اوواپس خپل ځاي ته تللې دی دلیل دی چې په توبه کې به تاخیر کوي او انجام به یې عذاب وي اوبعضو ویلې دی چې ده ته به مصیبت او نقصان ورسیږي اوکه ووینې چې قې وهې او خوري یې دلیل دی چې دبخل په وجه به پخپل عیال خرچ نه کوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلې دی چې که ووینې چې قی وهی او دهغه خوند تریو او ناخوښه وي دلیل دی چې دتوبې ایستلو څخه وروسته به ګناه کوي اوکه ووینې چې دقی کولو په وخت کې دده دنس څخه څه شی په ژبه راغلې دی دلیل دی چې ناجوړه به سي اوکه ووینې چې بلغم وتلې دی دلیل دی چې دناجوړې څخه به شفا حاصله کړي اوکه ووینې چې ډیره وینه وتلې ده دلیل دی چې مال به حاصل کړي اوکه ووینې چې ژړې اوبه وتلې دی دلیل دی چې دغم څخه به په امن کې سي اوکه ووینې چې ژړې اوبه وتلې دی دلیل دی چې هلاک به سي. جابرمغربی رحمه الله ویلې دی په خوب کې قی په شپږ وجو دی. ۱: توبه ۲: پښیمانې ۳: نصرت ۴: دغم څخه خلاصون ۵: امانت واپس ورکول ۶: بند کارونه خلاصیدل اوکه چیرې دی قی ووهې اوبیرته یې وخوري نو دلیل دی چې چا ته به څه ورکړي او بیرته به یې ځنې وانه خلي.

# [ ک – ګ ]

## کاچي (یو قسم خوراک)

ابن سیرین رحمه الله ویلې دی که څوك په خوب کې ووینې چې ده دروغن کنجد اودروغن بادام

سره کاچي خوړلي دی نو دهغه په اندازه به خير اونفع حاصله کړي اوکه دروغنو او ګبين سره يي خوړلي وي نو دهغه په اندازه به خوشحالي حاصله کړي. اوکه دروغنو اومستو سره يي خوړلي وي نو لږ نفع به ورته حاصله سي اوکه دتريو شي سره يي خوړلي وي نو پرغم اوفکر او انديښني دليل دی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي دخوږ شي سره يي کاچي خوړلي دي دليل دی چي په اساني سره به ورته مال حاصل سي اوکه دتريو شي سره يي خوړلي وي نو دتريو والي مطابق پرغم اوفکر دليل دی.

## کارد\چاړه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چاړه زوی دی او چاړي تيکي ښځه ده که په خوب کي ويني چي دده په لاس کي چاړه ده او پيژني چي دا دده ده نو دده کره به زوی پيد اسي اوکه دچړي سره نوره وسله هم ويني نو مرتبه اوبزرګي ده. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي وسله يي تړلي ده اوپه لاس کي يي چاړه جوړول زده کړي نو دښو دليل دی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي چاړه يي دتيکی ځخه دباندي را ايستلي ده دليل دی چي دده دښځي به زوی پيداسي اوکه ويني چي چاړه په تيکي کي ماته سوي ده دليل دی چي دده دپلار يادمور په خپلوانو کي به څوك مري اوکه ويني چي خپل بدن يي په چاړه زخمي کړي دی دليل دی چي دبدن دزخم مطابق به ورته نقصان رسيږي اوکه ويني چي په چاړه يي يو شي تراشلي دی دليل دی چي خير اونفع به حاصله کړي اوکه ويني چي په چاړه کي سپور سوي دی يا زنګ باندي لګيدلي دی يا پکښي څه عيب ښکاره سويدی دليل دی چي دده دمال نقصان به وسي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چاړه ليدل په اوو جوده. ۱: دليل ۲: زوی ۳: کاميابي ۴: پناه ۵: ورور ۶: توانايي ۷: ولايت.

## کارزار کردن\جنګ کول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي جنګ کول دطاعون مرض دی که څوك په خوب کي ويني چي جنګ کوي نو دليل دی چي دطاعون دمرض بيره ده اوکه په جنګ کي يي دښمن مغلوب کړي وي نو دليل دی چي دمرض ځخه به خلاص سي اوکه په جنګ کي دښمن پر ده غالب سوي وي نو دطاعون په مرض کي به هلاک سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي چي ويني چي په ميدان کي دچا سره په توره جنګ کوي اويوپکښي خلاص سي نو پردښمني دليل دی او چاچي خلاصون حاصل کړي وي هغه ته په دوهم باندي دکاميابي حاصلولو دليل دی او که په نيزي سره جنګ کوي نو هم يي دغه تعبير دی اوکه په غشي ليندي سره جنګ کوي نوپه دوي کي به زباني خبري کيږي.

## ګازري کردن\دوبي توب کول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي دوبي توب کوي حالانکه دوبي نه وي نو پر توبي دليل دی او دعبادت توفيق به حاصل کړي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي کالي دپريولو په وخت خيري دي دليل دي چي توبه به ماتوي او که ويني چي خيري کالي يي ګنډلي

دي دليل دی چي بيا به توبه کوي اوکه ويني چي کالي يې په پريولو سره سپين سوي دي دليل دی چي دتوبي په وجه به خلاصون حاصل کړي اوکه ويني چي کالي يي پريولي دی اوسپين سوي نه دي دليل دی چي هميشه به په ګناه کي اخته وي جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دوبي داسي سړی دی چي دهغه دلاسه خيرات اونيکي دواړه دګناهونو دکفاري لپاره وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي دوبی داسي سړی دی چي دخلکو دزړونو څخه فکرونه او غمونه ليري کوي، ددې وجهي څخه اهل تعبير بيان کړي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي کالي پريولي دليل دی چي دغم او فکر څخه به خلاص سي اودګناهونو څخه به توبه وکړي خاصکر که کالي سپين سوي وي او خيري باندي پاته سوي نه وي.

## کار دنيا کردن\ د دنيا کار کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوك په خوب کي ويني چي ددنيا کار کوي نودا دده ددين پر فساد اونقصان دليل دی اوکه ويني چي ددين کار کوي نو دا ددين پر صلاح او ددې دنيا پر نيکو احوالو دليل دی اوکه ويني چي دده ددنيا کارونه ښه دی دليل دی چي دده مرګ نزدی سوي دی اوکه ددې خلاف ويني نو دده عمر اوږددی اوکه ويني چي په داسي کارکي مشغول دی چي ده ته يا بل چاته ځني نفع نسته دليل دی چي داسي کار به کوي چي په هغه کي به خير او نفع نه وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی که ويني چي دچا سره دکار لپاره تللي دی او په لاره کي ناست دی دليل دی چي دي ددين مخالف دی دالله تعالی فرمان دی (فرح المخلفون بمقعدهم خلاف رسول الله، سورة التوبة: ۸۱) وروسته پاته کيدونکي دنبی عليه السلام په خلاف کښېښستلو سره خوشحاله سره.

## کاروان\ قافله

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي دقافلي سره په لار کي دی اوقافلي والا مصلح او پرهيزګار دی نو دا دده دکار په خير اوصلاح دليل دی اوکه ويني چي قافلي والا مفسد اوبد خويه دی نو تعبير يي ددې خلاف دی. اوکه ويني چي سپور دی اوپوره سامان ورسره دی نو دليل دی چي ده ته به نعمت حاصل سي اوکه ويني چي په قافله کي پياده دی او سامان ورسره نسته نو تعبير يي خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي د قافلي سره کورته راغلي دی دليل دی چي کارونه به باندي فراخ سي اوکه د دې خلاف ويني دليل دی چي کارونه به يي بند سي.

## کاريز\ داوبو نالي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي پر معلوم ځاي داوبو نالي ويني دليل دي چي دخپلوانو سر به مکر اوحيله کوي دا تعبير هغه وخت دی کله چي دکاريز کښلو په وخت کي اوبه نه وزي اوکه اوبه وزي اوجاري سي نو دمقرره کاريز کښلو حکم دي په لحاظ کي وساتي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی که ويني چي دکاريز څخه اوبه اخلي دليل دی چي په

مکر اوحیلي سره به مال جمع کوي خاصکر که کاریز یې کښلي وي نو څونه چې اوبه واخلي دهغه په اندازه به نفع حاصله کړي اوکه ووینې چې دکاریز څخه اوبه په منګي کې اچوي نو پر داسې مال دلیل دي چې هغه به خرچ کوي اوکه ووینې چې کاریز ته ایله سوي دی دلیل دی چې په مکر او حیله کې به راسي. جابر مغربي رحمة الله عليه ویلي دی که ووینې چې په کاریز باغ اوبه کوي دلیل دی چې دخپلې ښځې سره به جماع کوي او په خوب کې کاریز لیدل داسې سړی لیدل دی چې ددنیا کار په چل او حیلې سره کوي.

## کاسه

ابن سیرین رحمة الله عليه ویلي دی چې که دلرګي کاسه او په هغه کې دخوراك څه شي وي او ده خوړلي وي نو دهغه په اندازه به په سفر کې حلاله روزي حاصله کړي او دتیکرې کاسه په خوب کې روزي ده اوخالي کاسه عاجزي ده. ابراهیم کرماني رحمة الله عليه چې دخوراك کاسه برکت اونفع والا خادم دی دچا په لاس چې خیرات کیږي او دصلاح په وخت دمال تقسیم وي اودسرو یا سپینو زرو کاسه چې دخوراك شي پکښې وي پر حرام رزق دلیل دی اودسکي او دقلایي کاسه لږه مشتبه روزي ده او دشیشې کاسه هم پردې دلیل لري او خالي کاسه پر فقیرۍ دلیل لري. جابر مغربي رحمة الله عليه ویلي دی چې که ووینې چې په خپله پیاله کې خوش ذایقه او خوږ شي لري دلیل دی چې نعمت اومال به حاصل کړي اوکه ناخوښه اوتریو شي وي نو پر غم اوفکر دلیل دی.

## کاغذ

ابن سیرین رحمة الله عليه ویلي دی چې په خوب کې کاغذ مال اوبزرګي دده که ووینې چې دده سره سپین اوپاك کاغذ دی دلیل دی چې دهغه په اندازه به مال اوبزرګي حاصله کړي اوکه ووینې چې دده کاغذ په اوبو کې وروست سوي دی یا په اورکې سوزول سوي دی دلیل دی چې دهغه په اندازه به یې بزرګي اومال کې نقصان وسي. ابراهیم کرماني رحمة الله عليه ویلي دی چې په خوب کې کاغذ علم اوپوه ده که خوب لیدونکي پرهیزګار وي او ووینې چې دده سره ډیر کاغذونه دی دلیل دی چې په فضل او علم کې به شهرت حاصل کړي اوکه خوب لیدونکي مفسد اوجاهل وي چې په فضل اوعلم کې به شهرت حاصل کړي اوکه خوب لیدونکي مفسد او جاهل وي نو ددې تعبیر خلاف دی جعفر صادق رحمة الله عليه ویلي دی چې په خوب کې کاغذ لیدل په څلورو وجو وي ۱: ښځه ۲: عزت ۳: دولت ۴: مکر او حیله.

## کافور

ابن سیرین رحمة الله عليه ویلي دي چې په خوب کې کافور لیدل دپاک نفس او حق لار او راستي دلیل دی که چیرې ووینې چې کافور سوزي او دهغه څخه خراب بوي راځي نو دلیل دی چې نیکي به کوي او په هغه به احسان کوي اوکه ووینې چې دده سره لږ کافور دی دلیل دی چې دخوشحالي زیرې به باندې وسي اوکه په خوب کې ډیر کافور پیداسي دلیل دی چې ډیر مال اونفع به حاصله کړي جعفر صادق رحمة الله عليه ویلي دی چې کافور په خوب کې په اووه وجو دی ۱: عالم سړی

۲: ښځه ۳: دوست ۴: ښایسته منځه ۵: مال او دولت ۶: تعریف او شاباسي اوښې خبري ۷: دنفس تابعدار کیدل.

**کافور \ سپرغم (یو قسم بوټی)**

ددي ګل او بوټي ژړ دی او ددې څخه دکافور خوشبویي راځي که په خوب کي ووینې چې کافور یا سپرغم یې کرلي دی نو دده مدح او ثنا به دټولو خلکو په ژبو وي اوکه ووینې چې کافور یا سپرغم یې دیو ځای څخه ایستلي دی نو ددغه ځای څخه به دده تعریف ختم سي اوکه ووینې چې خوړلي دی نو دغم اوفکر دلیل دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې په خپل وخت په خوب کي کافور یا سپرغم لیدل په درو وجو وي ۱: تعریف او شاباس۲: لږ نفع ۳: پاکه خبره اوریدل.

**کافر**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې که څوك په خوب کي ووینې چې کافر دی دلیل دی چې دده دین دکفر طرفته راغي او که ووینې چې داور او هوا عبادت کوي دلیل دی چې دالله تعالی ګنهګار به سي اوکه ووینې چې په اور کی نور او شغلي دی دلیل دی چې حرام مال به تلاش کوي او خپل دین به دحرام مال په بدله خرڅوي جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کي کافر لیدل په دروو وجو دی. ۱: دکفر طرفته رغبت ۲: دخلکو سره صحبت ۳: دبې عقیدو خلکو سره کښینستل او پر هغه دالله څخه رسوا کیدل.

**کام \ تالو**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چې دده تالو او ددننه خله دونه غټه سوي ده چې مري دهغه دغټوالي څخه بنده سوي ده دلیل دی چې په دنیا به حریص وي او دخلکو غیبت به کوي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چې دده تالو لاندي شونډو ته رارسیدلي دی دلیل دی چې کارونه به یې بند سي. اوکه ووینې چې دده تالو اوږد دی او هغه یې پریکړي او غورزولي یې دی نو دلیل یې دادی چې حرص اولالچ به پریږدي او دخلکو غیبت به نه کوي.

**کامه \ تروي اوبه**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کي هر قسمه تروي اوبه پر غم اومصیبت دلیل لري که په خوب کي ووینې چې تروي اوبه یې چیښلي دی دلیل دی چې دهغه په اندازه به ورته غم او فکر رسیږي اوکه ووینې چې چا ته یې تروي اوبه ورکړي دی او هغه چیښلي دی دلیل دی چې هغه سړی به دده څخه خفه سي او غم اوفکر به یې کم سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کي تروي اوبه چیښل په درو وجو وي. ۱: غم او فکر ۲: نقصان ۳: جنګ او بحث.

**ګیاه \ واښه**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې واښه په خوب کي لیدل ډیرمال دی اونعمت دی خاصکر که دغنمو بوس وي اوکه ووینې چې دده سره ډیر واښه دی او کورته یې وړي دلیل دی چې ډیر حلال مال اونعمت به حاصل کړي اوکه داوربشو بوس ووینې نو تیر سوي مفاد به کم حاصل

کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ویني چي دونبو اینبیدو ځاي ته تللي دی اوپيژني چي دا دده ځاي دی دلیل دی چي مالدار به سي او ددوارو جهانونو مرادبه حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که ویني چي دونبو په ډیران کي اور لگیدلي دی او وانبه سوزل سویدی دلیل دی چي پاچا به تاوان باندي اچوي او دده څخه به مال اخلي اوکه ویني چي حیوانان دده وانبه خوري نو په کوشش سره به خپل مال ورك کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي وانبه لیدل په دریو وجو وي. ۱: حلال مال ۲: دژوند کسب ۳: دزړه مراد او خوشحالي.

## کاهو\ورخاړي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ویني چي خوږ ورخاړي دهغه په موسم کي خوري نو پر غم او اندیښني دلیل دی اوکه ویني چي ورخاړي تریخ دی نو پر نقصان او ضرر دلیل دی او که ویني چي ورخاړي تریخ وو اوښه نه وو نو دچا سره به بحث کوي.

## گاورس\باجره

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ویني چي باجره خوري دلیل دی چي مال او مراد به حاصل کړي او که ویني چي دده سره ډیره باجره ده دلیل دی چي دهغه په اندازه به مال په تکلیف سره حاصل کړي اوکه ویني چي باجره یي خرڅه کړي ده دلیل دی چي نقصان به ورته ورسیږي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي که ویني چي دده سره باجره ده دلیل دی چي لږ مال اولږ خیر او نفع به حاصله کړي.

## گاو\غویي\غوا

دانیال علیه السلام ویلي دی که ویني چي پر غوایي ناست دی او غوایي دده دی دلیل دی چي دپاچا څخه به ورته کار ملاوسي او دهغه څخه به ډیره نفع حاصله کړي خاصکر که غویي تور وي اوکه ژړ وي نو دلیل دی چي ناجوړه به سي اوکه ویني چي غویي دده دکور څخه وتلي دی دلیل دی چي الله تعالی به پرده دخیر او رزق دروازی خلاصي کړي لیکن غم به دي نه پریږدی. اوکه ویني چي دده سره ډیر غوایان دی دلیل دی چي دده به ډیر غلامان وي اوهغه به دده په کار کي کوشش کوي اوکه ویني چي غوایي په ښکر وهلي دی او دکور څخه یي دباندي کړي دی دلیل دی چي ده ته به دغلامانو څخه نقصان رسیږي اوخپل ځان به معزول کړي. اوکه ویني چي دده دغوایي دري سرونه دی او پرهر یوه سر یو ښکر دی دلیل دی چي دهریوه ښکر په عوض کي به دده غلام یو کال کار کوي اوکه دهغه دبدن په اندامونو کي یو اندام زیات ویني دلیل دی چي دده کار به زیات سي اوکه نقصان پکښي ویني نو تعبیر یي خلاف دی ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي غویي کار دی او دده پوست دکار کوونکي میراث دی او دده لکي او اخستل خرڅول یي هم کار کوونکي دی اوکه ویني چي دغویي لکي یي کورته راوړي ده دلیل دی چي ډیر مال به حاصل کړي او روزي به یي فراخه سي اوکه پخپله کوڅه کي ډیر غویان ویني دلیل دی چي سردار به سی او دده په کار کی په خیر اوبرکت ښکاره سی. اوکه ویني

چي دي غوبي په ښکر وهلی دی او غورزولي يي دی نو که خوب ليدونکي کار کوونکي دی نو معزول به سي اوکه سوداګر وي نو پره نقصان دليل دی اوکه پاچا وي نو دملک څخه به ځي او که ووينې چي دي غوبي په ښکر وهلي دی او را ايله سوي نه دی دليل دی چي څوك به پر ده شرف اوبزرګي حاصله کړي او دده په معزول کولو کي به کوشش کوي. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهِ ويلي دي چي که ووينې غوبي يي ذبح کړي دی او دهغه غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دغوبي مالک به مړ کړي او دهغه مال به اخلي اوکه ووينې چي پردی غوبي يې مړ کړي دی دليل دی چي يو څوك لوی سړی به په دغه ځای کي مري اوکه ووينې چي غوايان په يوې کي دی دليل دی چي بې اندازي مال به ورته حاصل سي. اسماعيل اشعث رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی که ووينې چي دغوبي سره جنګ کوي دليل دی چي دده به دسردار سره جنګ کيږي. ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چي په خوب کي غوبي کال دی که غوا ووينې دليل دی چي په دغه کال کي به فراخي او نعمت وي اوکه غوا مانده وي نو تعبير يي خلاف دی او دغوا غوښه په دغه کال کي مال او فراختيا ده اوپوست يي ذخيره ده اوکه ووينې چي دغوا څخه يي شيدي اخيستي دی او چيښلي يي دی دليل دی چي مال به يي زيات سي اوکه داخوب غلام ووينې نو ازاد به سي اوکه فقير يي ووينې نو مالدار به سي اوکه ازاد يي ووينې نو په خلکو کي به بې نيازه سي اوکه ذليل يي ووينې نو عزتمند به سي اوکه ووينې چي دده غوا حملداره ده نو پر اميد واري دليل دی. حافظ معبر رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی که ووينې چي دڅورب او چاغ غوايي غوښه يي اخيستي ده دليل دی چي په دغه کال کي به دمالداري ښځي سره واده کوي اوکه ووينې چي دغوا څخه يي شيدي اخيستي دی او چيښلي يي دی دليل دی چي ډير مال به جمع کوي او دهغه څخه به پخپله نه خوراک نه کوي. اوکه ووينې چي غوا دده سره خبري کوي دليل دی چي ژوند به يي فراخ سي اوکه ووينې چي غواده ته راغله دليل دی چي دغه کال به پرده مبارک سي اوکه ووينې چي غوا مخ ځني اخستی دي دليل دی چي دغه کال به په ده خراب وي اوکه ووينې چي پر غوا سپور وو او را ايله سو دليل دی چي حال به يي متغير سي اوکه ووينې چي دغوا سره جنګ کوي دليل دی چي په ملك کي به دچا دښځي سره جنګ کوي اوکه ووينې چي پر دغه مځکه غواګاني لوټ کيدي دليل دی چي په دغه کال کي به مال اونعمت حاصل کړي اوکه ووينې چي غوا خوله باندي لګولي ده دليل دی چي عيال به ورسره خيانيت کوي اوکه ووينې چي غوا نابېره د ده کور ته راغله دليل دی چي نابېره به مال حاصل کړي اوبې غمه به سي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چي په خوب کي دغوا ليدل په شپږو وجو وي ۱: حکومت ۲: مال ۳: بزرګي ۴: رياست ۵: نيکي ۶: نيك کال.

**ګاو دشتي \ ځنګلي غوا**

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهِ ويلي دی چي په خوب کي ځنګلي غوايي مالدار سړی يا ډير مال دی اوکه ووينې چي ده په ښکار کي ځنګلي غوايي نيولي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به مال او نعمت حاصل کړي اوکه ووينې چي دوه ځنګلي غوايان د يوبل سره جنګ کوي دليل دی چي

دوه بدکار به ديوبل سره جنګ کوي او ځنګلي غواپه تعبير کي ښځه ده اوکه ويني چي دځنګلي غوا غوښه يي خوړلي ده دليل دادی چي دښځو په وجه به مال حاصل کړي اوکه ويني چي دځنګلي غو ابچي يي نيولي دی دليل دی چي زوی به يي پيداسي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي دځنګلي غوايي غوښه خوري دليل دی چي قوت او دولت به حاصل کړي اوکه ويني چي دځنګلي غوايي ډير ښکرونه دی دليل دی چي دهر يو ښکر په عوض کي به ورته دولت اوقوت حاصل سي.

## ګاوميش\ميږه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ميږه عزت والا سړی دی چي خلکوته ځني فايده وي خاصکر که دده تابعداره وي.

## ګاو چشم (يو قسم وابښه)

ګاو چشم ديو قسم وابښه نوم دی داپه خوب کي نيکه مينځه ليدل دی ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ښځه ويني چي ګاو چشم يي کالي وشکوله او خاوند ته يي ورکړه نو دليل دی چي ښځي ته به طلاق ورکړي اوکه ويني چي غلام ته يي ورکړه غلام به تښتي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که په خپل موسم کي ويني نو دده کره به زوی پيداسي اوبي موسمه بد دی اوکه مړاوي وي نو زوی به يي ناجوړه سي اوکه زوی نه وي نو دی به غمجن به سی.

## ګاوزبان (يو ډول دوا)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ګاوزبان خوړل جنګ دی او د دې په خوړلو کي او ليدلو کي خير نسته.

## ګوشت پخته\پخ کړي غوښه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي پخ کړي غوښه دکبابو څخه ښه ده که ويني چي دچيلي دغوښي کباب يي خوړلي دی دليل دی چي دلوی سړی څخه به نفع وي اوکه ويني چي دځنګلي ځناور دغوښي کباب يي خوړلي دی دليل دی چي دمشرانو څخه به ورته خير او نفع حاصله سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي پخ کړې غوښه او دغوښي کباب پر نفع دليل دی.

## کبر (يو بوټي)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك ويني چي کبر جمع کوي دليل دي چي غمجن به سي خاصکر که په وخت وي اوکه ويني چي کبر خوري دليل دی چي دده غم او فکر به زيات سخت وي او دکبر په خوړلو کي هيڅ قسم نفع نسته.

## ګبر شدن\اتش پرست کيدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي اتش پرست سوي دی دليل دی چي اخرت به پريږدي او ددنيا طلبګار به سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي اتش پرست سوي دی او په اتش کده کي يي ځاي اخيستي دی دليل دی چي خوب ليدونکي به

دبدعتیانو او بي دینو په صحبت کي اوسیږي او دنفس دخواهشاتو او داهل فساد تابع به وي اوکه ووینې چي داتش پرستي څخه پښیمانه سو اومسلمان سو دلیل دی چي دګناه څخه به توبه وباسي او دالله تعالی طرفته به رجوع وکړي او په کار خیر کي به مشغول سي.

## کبک\زرک\زرکه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي زرك ښایسته ښځه یا ښایسته مینځه ده که په خوب کي ووینې چي ده زرکه نیولي ده دلیل دی چي ښځه به کوي اوکه ووینې چي چا ورته زرکه بخشش کړي ده دلیل دی چي ده ته به ښایسته ښځه کوي اوکه ووینې چي دزرك ښکار یې کړي دی دلیل دی چي ښایسته مینځه به حاصله کړي اوکه ووینې چي دزرك غوښه یې خوړلې ده دلیل دی چي لوي لباس به ورته حاصل سي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چي ده دزرکي مري خفه کړي ده دلیل دی چي دمنځي پیغلتوب به ماتوي جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي نر زرك زوی دی اوښځه زرکه ښځه او یا موافقه مینځه ده که ووینې چي زرکه دده څخه الوتلې ده دلیل دی چي ښځي ته به طلاق ورکوي یا به دده مینځه تښتي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي زرکه لیدل په څلورو وجو وي. ۱: هلک ۲: دوست ۳: قربانیدل۴: دزړه مطلب او مراد.

## کبوتر\کوتره

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کی کوتره ښځه یامینځه ده که څوك په خوب کي ووینې چي ده کوتره نیولي ده دلیل دي چي ښځه به کوي او دده کره به انجلي پیدا کیږي اوکه ووینې چي ډیري کوتري یې نیولي دی دلیل دی چي دهغه په اندازه به ښځي کوي یا به مینځه اخلي اوکه ووینې چي ده دکوتري غوښه خوړلې ده دلیل دی چي دښځو دمال څخه به فایده اخلي اوکه ووینې چي دکوتري بچي یې نیولي دی دلیل دی چي د ښځو څخه به نفع حاصله کړي او بعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چي دکوتري بچي غم اوفکر دی چي ده ته به دښځي دطرفه رسیږي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چي دده په کور کي ډیري کوتري دی دلیل دی چي دده به ډیر زامن وي او وایي چي ده ته به دښځو دطرفه ډیر مال حاصل سي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کوتري ازادي ښځي دی که ووینې چي دچا کوتري یې په حیله سره نیولي دی نو دهغه په اندازه به مال په مکر او چم سره حاصل کړي اوکه ووینې چي کوتره دهوا څخه دده خواته راغله او دده تابعداره ده دلیل دی چي دنامعلوم ځاي څخه به ورته نفع حاصله سي اوکه ووینې چي ده کوتري ته دانه ورکړي ده دلیل دی چي ښځي ته به دخیر تلقین کوي اوکه ووینې چي ډیري کوتري جمع سوي دی اودي پیژني چي دده دی نو دا پر سرداري او ریاست دلیل دی او په خوب کي سپیني کوتري دنورو په نسبت ښه دي اوکه ښځه په خوب کي شنه کوتره ووینې دلیل دی چي خاوند به کوي یا به یې لور پیداسي او په خوب کي کوتربازي بیهوده کار دی او وایي چي په خوب کي دکوترو کوټه دښځو ځاي دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کوتره لیدل په پنځو وجو ده. ۱: ښځه ۲: مینځه ۳: مال

۴: دغایب خط ۵: ریاست او اهل تعبیر بیان کړي دی چي دکوترو په خوب کي لیدل دهري یوی کوتري په عوض په ویښه یو درهم پیدا کول دی.

## کتاب خواندن \ کتاب ویل

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که څوك په خوب کي ویني چي دتفسیر کتاب وایي دلیل دی چي ددین لاري او پرهیزګاري طرفته به مایل سي اوبند کارونه به باندي خلاص سي اوکه ویني چي دفقهي کتاب وایي دلیل دی چي دناکاره کارونو څخه به منع سي اوکه ویني چي دتاریخ کتاب وایي دلیل دی چي دپاچا په نزد به صاحب رایه سي اوکه ویني چي داصولو کتاب وایي دلیل دی چي په داسي کارکي به مشغول سي چي نفع به په تکلیف سره حاصله کړي اوکه ویني چي دتوحید کتاب وا یي دلیل دی چي دعلمایي دین سره به مشغول سي او دي به داسي کار وکړي چي په هغه سره به ددین فایده وي اوکه ویني چي دفضایلو تسبیح او دتهلیل کتاب وایي دلیل دی چي دده پر ژبه به دخیر او صلاح خبري جاري سي اوکه ویني چي دقیصو کتاب وایي دلیل دی چي د اولیایي کرامو او انبیاوو علیهم السلام په خبرو به حرص کوي که ویني چي د نجوم کتاب وایي دلیل دی چي دجهان صلاح به ورته حاصله سي اوکه ویني چي دنحو او ادابو کتاب وایي دلیل دی چي ددنیا په کارکي به مشغول سي او خلک به دده ثنا او صفت کوي اوکه ویني چي درسایلو کتاب وایي دلیل دی چي دواده په صلاح کي به مشغول سي اوکه ویني چي دطبایع کتاب وایي دلیل دي چي دشیانو په طلب اودهغه په پیرندګلو کي به مشغول سي. اوکه ویني چي دشعر کتاب وایي که غزل او مدح وي نو دلیل دی چي په داسي کار کي به مشغول سي چي خلک به یي ملامت کړي اوکه نعمت اوتوحید وایي دلیل دی چي نیک به سي اوکه ویني چي دتعبیر کتاب وایي دلیل دی چي پر سردار باندي به دیوي غټي خبري احسان کوي او دهغه څخه به څه حاصل کړی اوکه ویني چي کتاب دعوة وایي دلیل دی چي په داسي عمل کي به مشغول سي چي خلک به ورته هوښیار وایي لیکن ددین فایده به یي نه وي اوکه ویني چي دحساب کتاب مصاحب او قضا وایي دلیل دی چي په سفر به ځي اونفع به حاصله کړي اوکه ویني چي دحساب کتاب وایي دلیل دی چي همیشه به غمجن وي اوکه ویني چي دخندا او فساد کتاب وایي دلیل دی چي دټولو کارونو څخه خراب کار به کوي اوکه ویني چي دبدي او غیبت کتاب وایي دلیل دي چي دخلکو عیبونه به لټوي او په دي کي به بد نام سي.

## کتان \ السي دوا

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي السي حلال مال دی اوکه ویني چي د السي تخم خوري دلیل دی چي ټول مال به حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي السي لیدل په دروو وجو وي: ۱: حلال مال ۲: نفع ۳: شرارت.

## کتف \ اوږه

اوږه په خوب کي صبر او دسړی ښایست دی ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دده

اوږه سمه ده نو پر مال او دښايست پر زياتوالي دليل دی او که اوږه ماته اوکمزوري ويني نو ددي تعبير ددې خلاف دی. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دي که اوږه قوي اوسمه ويني نو امانت به ادا کوي اوکه ددې خلاف ويني نو بد ديانتي به کوي اوکه ويني چي دده پر اوږه ډير ويښته دي دليل دی چي دده پر ذمه به امانت او دخلکو حق وي اوکه اوږه دويښتو څخه صفا ويني دليل دی چي امانت به ادا کوي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي که ويني چي دده پر اوږه ويښته نسته نو دنامعلوم ځاي څخه به مال حاصل کړي.

### کتيرا \ ګوند \ کنړ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که په خوب کي ويني چي دده سره کتيرا دی يا چا ورکړي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به دبخيل پاته سوي مال حاصل کړي اوکه ويني چي کتيرا خوري دليل دی چي مال به خوري. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کتيرا په دروو وجو ده ۱: دخلکو پاته سوي مال ۲: لږه نفع ۳: داسي کار به کيږي چي دهغه څخه به خوب ليدونکي ته فايده وي.

### ګچ \ چونه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي چونه جنګ دی که ويني چي چا ورته چونه ورکړي ده دليل دی چي په جنګ کي به راستي کوي اوکه ويني چي ده چاته چونه ورکړي ده نو د دې تعبير داول خلاف دی. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي چونه سختي ده او کوم انسان چي په چونه جوړ کړي ويني نو دټول بدن د اور کېدو دليل دی ځکه چي چونه په اور پخيږي اوکه ويني چي چونه يي خوړلي ده دليل دی چي دده دمرګ بيره ده.

### کحال \ رانجه خرڅوونکی

په خوب کي رانجه خرڅونکي ليدل دتيرو سوو کارونو پر صلاح دليل دی اودهير سوي کارونو يادول دی که ويني چي رانجه خرڅوي او دده دواړو دسترګو لپاره فايده مند دي دليل دی چي خلک به دنيکو کارونو طرفته رابلي او خلکو ته به دده څخه فايده حاصله سي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي رانجه خرڅوي دليل دی چي جلا سوي، دوستان به جمع کوي او په خلکو کي به دنيکي لار ګوري اوکه دده دارو فايده مند نه وي نو ددې تعبير داولني خلاف دی.

### ګدايي کردن \ خير غوښتل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي خير غواړي دليل دی چي ده ته به خير اونفع زياته وي او دهر چا سره به په مزي سره ژوند تيروي ليکن خلک به يي ملامتوي اوکه ويني چي دخلکو پر دروازو خير غواړي او څوک ورته څه نه ورکوي دليل دي چي دده کار به بند سي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خير غوښتل په څلورو وجو دی ۱: خيرات ۲: نفع ۳: ژوند ۴: عزت اومرتبه.

## کدو \ کدو

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي دکدو پر موسم پخپل کورکي دکدو بوټي ووینې دلیل دی چي عزت اومرتبه به یې زیاته سي اوکه ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي که غلام وي نو ازاد به سي که کافر وي نو مسلمان به سي اوکه مسافر یې ووینې نو په سلامتي سره به خپل وطن ته واپس راسي اوکه فاسق یې ووینې نو توبه به وباسي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی که ووینې چي دده سره کدو دی دلیل دی چي دپرهیزګاري ښځي څخه به نفع حاصله کړي اوکه ووینې چي ده دکدو بوټي دبیخه ایستلي دی دلیل دی چي دسرداري ښځي څخه به نفع حاصله کړي اوکه ووینې چي پوخ سوي کدو یې خوړلي دی دلیل دی چي مراد به یې پوره سي او دطاعت توفیق به حاصل کړي.

## دګرمي دانې \ ګرمکي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ګرمکي مال اوخواهش دی که څوك په خوب کي ووینې چي دده پر بدن ګرمکي ښکاره سوي دی او لږ خارښ کوي اوپه هغه کي نو دی دلیل دی چي مال به په تکلیف سره حاصل کړي جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که ووینې چي دده پربدن ګرمکي وي او ټولي ختمي سوي دی دلیل دی چي دده جمع کړه سوي مال به ورك سي اوبعض اهل تعبیر بیان کړی دی چي که دده بدن ګرمکي او تور دی نو پر حرام مال جمع کولو دلیل دی.

## کرباسو \ نولي

نولي په خوب کي لیدل داسي سړی دی چي په خلکو کي فساد اوشور او شر اچوي ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که څوک په خوب کي ووینې چي ده نولي نیولي دی دلیل دی چي یو سردار به یې ځان ته نزدی کړي اوکه ووینې چي دده څخه نولي تښتیدلي دی دلیل دی چي یو څوك مفسد به دده دخوا څخه تښتي اوکه ووینې چي نولي یې وژلي دی دلیل دی چي ددغه مفسد حال به تباه سي اوکه ووینې چي دنولي غوښه یې خوړلي ده دلیل دی چي دمفسد سړی څخه به حرام مال خوري.

## ګربه \ پیشي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي پیشي فسادي غل دی که څوك په خوب کي ووینې چي معلومه پیشي دده کورته راغلي ده دلیل دی چي مشهور غل به دده کورته راځي او که نامعلومه پیشي ووینې نو نامعلوم غل به وي اوکه ووینې چي دکور څخه یې څه شي خوړلي دی یا وړي دی دلیل دی چي غل به دده دکور څخه څه شي وړي اوکه ووینې چي پیشي یې وژلي ده دلیل دی چي غل به وژني یا به یې مغلوب کوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ووینې چي دپیشي غوښه یې خوړلي ده دلیل دی چي دهغه په اندازه به ورته دغله مال حاصل سي اوکه ووینې چي دپیشي سره جنګ کوي او پیشي دی نوکاري کړي دی دلیل دی چي ناجوړه به سي اوکه پیشي یې مغلوب کړي وي دلیل دی چي دناجوړي څخه به شفا حاصله کړي او که دي پشي خوړلي وي دلیل دی چي ناجوړي به یې اوږده سي اوبعض اهل تعبیر بیان کړي

دی چي پیشي په تعبیر کي خادم دی. دانیال علیه السلام ویلي دی چي کوم سړی پیشي پـه خوب کـي دسهار څخه مخکي ویني نو هغه به شپږ ورځی ناجوړي وي اوکه غلام په خوب کي ویني چي ده دپیشي څخه شیدي لوشلي دی او ویي چیښل نو ازاد به سي او دکوم کور څخه چي ازادي حاصله کړي دیوي ښځي سره به واده کوي اوکه ازاد ویني چي دپیشي شیدي یي چیښلي دی دلیل دی چي دده به دچا سره جنګ کیږي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي پیشي په اوو وجو وي. ۱: غل ۲: چغل خور ۳: نوکر ۴: ناجوړي ۵: مهربانه ښځه ۶: حاسد ۷: جنګ او شر.

## کرته\کرتی

کرته کوچني کالي چي په عربی کي ورته قرطق وایي داپه خوب کي اغوستل دسفر قوت دی که کرته شنه وي نو دیو سړی څخه به پناه اوقوت حاصل کړي. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي که څوك په خوب کي ویني چي ده سپینه کرته اغوستي ده دلیل دی چي دغم اوفکر څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه ویني چي ژړه کرته یي اغوستي ده نو پر ناجوړي دلیل دی اوکه ویني چي ده اسماني رنګه کرته اغوستي ده دلیل دی چي پر ده مصیبت راځي اوسره کرته ددنیا پر عیش او عشرت دلیل دی. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی که ویني چي ده دریښمو کرته اغوستي ده دلیل دی چي دلوی سړی څخه به شرف اوبزرګي حاصله کړي لکن په دین کي به کمزوري وي اوکه ویني چي کرته سوزل سوي یا ورکه سوي ده نو دده په پناه اوقوت کي به نقصان وسي. جعفرصادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي کرته لیدل په څلورو وجو وي. ۱: قوت ۲: پناه ۳: سفر ۴: دکارونو بندوبست.

## ګرد\دوړه

ددې تعبیر په حرف غین کي بیان سوي دی.

## ګردن\څټ

دانیال علیه السلام ویلي دی چي په خوب کي څټ لیدل دامانت او ددین ځاي دی که ویني چي دده څټ غټ سوي دی دلیل دی چي دی به دامانت په ادا کولو کي قوي او ددین په حفاظت کي به دیانتدار وي که ویني چي دده څټ لنډ اوکمزوری دی دلیل دی چي په امانت ادا کولو کي به عاجز سي اوکه ویني چي مار دده پر څټ پیچل سوي دی دلیل دی چي دمال زکوة نه ورکوي دالله تعالی فرمان دی (سيطوقون ما بخلوا به يوم القيمة، سورة آل عمران: ۱۸۰) ترجمه: ددوي په څټونو کي به دقیامت په ورځ طوق اچول کیږي ددوي دبخل په وجه اوکه خپل څټ درونډ ویني حالانکه دده پر څټ څه شي نه وي نو دلیل دی چي ناجوړه به سي اوکه ویني چي دده پر څټ بوج دی او ده ته درونډ نه معلومیږي نو دا ددین پر درستي اوپر اوږده عمر دلیل دی. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی که ویني چي دده څټ قوی او غټ سوي دي دلیل دی چي امانت به په ښه رقم سره ادا کوي اوپه کار کي به قوي سي اوکه خپل څټ اوږد ویني دلیل دی چي دده

پرذمه به امانت ډير وخت وي او دخپلي ګواهي څخه به منع سي اوکه خپل څټ لنډ ويني دليل دی چي دخپلي ذمي څخه به امانتونه ژر ليري کړي اوکه خپل څټ تور ويني نو په امانت کي به خيانت کوي اوکه خپل څټ مات سوي ويني دليل دی چي دخپل مراد څخه به منع سي او دده په دين کي به خلل راسي ځکه چي هيڅ امانت ددين څخه لوی نه دی اوکه پرخپل څټ ويښته ويني دليل دی چي دامانت ادا کولو په وجه به قرضداره سي اوکه دخپل څټ څخه ويښته وخريي دليل دی چي قرض به يي خلاص سي اوکه دڅټ څخه غوښه پري سوي ويني دليل دی چي دچا مال به دده سره وي اوهغه به ورک سي اوکه څټ لنډ ويني دليل دی چي په امانت کي به خيانت کوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که ويني چي دخپل څټ غوښه خوري نو ددې تعبير خلاف دی اوکه ويني چي دچا پر څټ ناست دی نو پر دښمن به کاميابي حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي څټ ليدل په پنځو وجو وي. ۱: امانت ۲: توانايي ۳: خيانت ۴: قرض ۵: ناجوړي.

## ګردن بند \ ګلوبند \ غاړه بند

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي که ويني چي دده سره دسپينو ملغلرو ګلوبند دی دليل دی چي الله تعالی به ورته علم ورکړي او څونه چي دګلوبند ملغلري رڼا کوي علم اوپوهه به يي هغونه زياته وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي دده ګلوبند دسرويا سپينو زرو دی او بيش قيمته ملغلري پکښي پېيل سوي دي دليل دی چي شرف اوبزرګي به حاصله کړي. او ممکنه ده چي دده پر ذمه به امانت وي اوکه دده ګلوبند اوږد سوي وي دليل دی چي امانت به ادا کوي اوکه ويني چي دده ګلوبند لنډ سوي دی دليل دی چي په امانت کي به خيانت کوي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي که ويني چي ده خپل ګلوبند دملغلرو څخه پېيلي دی يا پېيل سوي ګلوبند دده په غاړه کي دی دليل دی چي ولايت اومرتبه به حاصله کړي اوکه دده ګلوبند اوږد وي نومرتبه به حاصله کړي اوکه لنډکي وي نو تعبير يي داولني خلاف دی اوکه ويني چي دده سره ډير ګلوبندونه دي نو په علم کي به ډير کامل سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دسرو زرو ګلوبند ليدل په شپږو وجو دی. ۱: حج ۲: ولايت ۳: جنګ ۴: امانت ۵: علاج ۶: مينځه. او دسروزرو ګلوبند حج دی او دسپينو زرو ګلوبند مينځه ده.

## ګردن زدن \ څټ وهل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که ويني چي دده څټ پريکړه سوي دی او دده سر دبدن څخه جلا سويدی که غلام وي نو ازاد به سي که ناجوړه وي نوشفا به حاصله کړي که قرضدار وي نو قرض به يي اداسي که په بيره کي وي نو په امن کي به سي اوکه کافروي نو مسلمان به سي اوکه دڅټ پريکيدو په وخت دده سر دبدن څخه جلا سوي نه وي نو ددې تعبير د اول خلاف دی اوکه څټ پريکوونکي معلوم سړی وي نو کوم شي چي لوړ بيان سوي دی دڅټ پريکوونکي څخه به ده ته رسيږي اوکه پريکوونکي ماشوم اونابالغ وي دليل دی چي که ناجوړه وي نو مري

به ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دي چي كه څڼ پريكوونكي سړی تندرست ازاد اومالدار وي دليل دی چي دنيك بختي څخه به په بدحالي كي راسي او مال او نعمت به ځني ليري سي اوكه فقير وي نو دده دكارونو انجام هلاكت دی غرض داچي دفقيرانو اوخواري كښو په خوب كي څڼ پريكول نيك دی او دمالدارو او صاحب نعمت لپاره بد دی.

## گرده \ پښتورگي

گرده په خوب كي پټ مال دی چي ده ته به ملاويږي او خرچ كوي به يي اوكه ويني چي دده سره ډير پښتورگي پاخه او سره كړي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به پټ مال حاصل كړي اوكه دده سره دحلال ځناور پښتورگي وي نو پر حلال مال دليل دی اوكه دحرامو ځناورو پښتورگي وي نو پرحرام مال دليل دی ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي پښتورگي پيدا كول پټ مال دي اوبعض اهل تعبير بيان كړي دی چي په خوب كي پښتورگي زوی دی ځكه چي دزوی سرمايه مني ده چي دپښتورگو څخه وځي اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دي كه و ويني چي ده دآس پښتورگي پخ كړی دي او خوړلي يي دی دليل دی چي دلوی سړی څخه به مال حاصل كړي اوكه وويني چي دده سره دغويي پښتورگي دی دليل دی چي مال اونعمت به حاصل كړي اوكه وويني چي دده سره دبزي پښتورگي دی دليل دی چي په دغه كال به ددښمن څخه مال اونعمت حاصل كړي اوكه وويني چي ده اومه پښتورگي خوړلي دی دليل دی چي حرام مال به حاصل كړي اوكه وويني چي دده سره پښتورگي دی او خوړلي يي نه دی نوداولني په نسبت يي فايدي كمي دی.

## گردون \ گاډی \ موټر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي كه وويني چي په گاډي كي ناست دی او گاډي ښه چليږي دليل دی چي شرف اوعزت به حاصل كړي اوكه وويني چي گاډي بغير دغوايانو ولاړدی او دی په گاډي كي دی دليل دی چي په غم سختي اوناجوړي كي به راسي اوكه وويني چي پاچا ورته دخپلو گاډيانو څخه يو گاډی وركړي ده دليل دی چي خوب ليدونكي به دپاچا څخه مرتبه او عزت حاصل كړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي گاډي ليدل په اتو وجو دی. ۱: ولايت ۲: عزت اومرتبه ۳: لوړوالي ۴: بزرگي ۵: هيبت ۲: خوشحالي ۷: پورته والي ۸: په كارولو كي اساني.

## گرسنگي \ لوږه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي لوږه دمړيدو څخه ښه ده اوپه اوبو موړوالي دتندي څخه ښه دی اوكه وويني چي وږی دی او دخوراك څه شي ورسره نسته دليل دی چي ده ته به ددنيا په مال كي حرص اولالچ كم وي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی كه وويني چي وږي وو او څه يي وخوړل او موړ سو دليل دی چي دگناه څخه به توبه كوي او چي څه يي خوړلي وي اوهغه خواږه اومزه دار وي دليل دی چي پر توبه به ثابت قدم وي اوكه تروه اوبي خونده وی نو پر توبي ماتولو او پر گناه دليل دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي لوږه په

ځلورو وجو ده ۱: نقصان ۲: حرص۳: جرم اوګناه ۴: دخلکو څخه طمع لرل.

## کرسۍ\چوکۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي کرسي ليدل علم دی او دعقل دخاطره دا رقم ضرور دی چي الله تعالی په قران مجيد کي ويلي دی (وسع کرسيه السموات والارض، سورة البقرة: ۲۵۵) اودهغه کرسي ترمځکي او اسمانونو پراخه او خپره ده ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چي دکرسي څخه مراد علم دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چي کرسي دالله تعالی قدرت او حد دی اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي دکرسي تعبير دادی چي کامل اوعاقل به سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي دکرسي تعبير مطيع امام دی يا پرهيزګار زاهد باکماله دی يا عادل او هوښيار پاچا دی څنګه چي په حديثو کي ذکر سوي دی دليل دی چي داهل دينو او عالمانو لپاره نيك دی او خوب ليدونکي به دعادل پاچا څخه خير اونيکي ويني او مال به يي زيات سی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کرسي ليدل په شپږو وجو دی. ۱: عدل ۲: انصاف ۳: عزت اوشرف ۴: مرتبه ۵: ولايت ۶: قدر اوعزت. که څوک ويني چي په اسمان کي پرکرسي ناست دی دليل دی چي دده کار به لوړ سي او قدر عزت اومرتبه به حاصله کړي اوټولو مرادونو ته به ورسيږي اوپه خلکو کي به بزرګ عزيز اومکرم سي او په مخلوق کي به عدل او انصاف ښکاره کړي اوکه هغه کرسي کومه چي ترکاڼ يا نجار جوړوي په خوب کي ويني دليل دی چي خوب ليدونکي به ښځه کوي اوکه ويني چي غټه اوپاکه کرسي يي اخيستي ده اوپر هغي ناست دی دليل دی چي ښځه به کوي اودهغه څخه به مال اونعمت حاصل کړي. اوکه ويني چي پرکرسي ناست دی دليل دی چي پيغله ښځه به کوي اوکه ويني چي کرسي ترده لاندی ماته سوي ده دليل دی چي ښځه به يي مري اوکه ويني چي دده کرسي زړه او کوچني ده دليل دی چي دده ښځه به ذليله عاجزه او فقيره وي اوکه ويني چي ده سره کرسي ده او ناست باندي نه دی دليل دي چي دخدمت لپاره به کورته يو ښځه راولي.

## کرفس (يو بوټي دوا)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي که په خوب کي ويني چي ده کرفس په موسم دهغه کي خوړلي دی دليل دی چي غمجن به سي اوکه ويني چي کرفس ورسره دی او خوړلي يي نه دی دليل دی چي ده ته به نقصان کم وي ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کرفس په درو وجو دی. ۱: غم اوفکر ۲: په دنيا کي جنګ ۳ : مکروه شي خوړل.

## کرک

کرك يو مرغه دی د دې تعبير په ښځي سره کوي که مسافر کرك په خوب کي ويني دليل دی چي ښځه به کوي يامينځه به اخلي اوکه ويني چي کرك دده دلاسه څخه الوتلي دی دليل دی چي ښځي ته به طلاق ورکړي اوکه ويني چي کرک يي وژلي دی او دهغه غوښه يي خوړلي ده نو دهغه په اندازه به دښځي څخه ميراث حاصل کړي.

## ګرګس\ټپوس

ټپوس مردار خور مرغه دی ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چي ټپوس دمرغانو سردار دی اوقوي او تيز دی او په مرغانو کي ډير عمر والادی که ووينې چي دده سره ټپوس دی دليل دی چي دبزرګ سړی څخه به نفع حاصله کړي اودپاچا څخه به مال او درخواست حاصل کړي او دټپوس دهډوکي يا دسرى کړي غوښي هم دغه تعبير دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چي ټپوس دی نيولي دی او اسمان ته يي نژدی بيولي دی دليل دی چي ليري سفر به کوي اوډير مال اونعمت به حاصل کړي ليکن دده په دين کي به فساد وي اوکه ووينې چي دي ټپوس دهوا څخه راغورزولي دی نو دشرف او بزرګي څخه به را ايله سي اوکار به يي خراب سي اوکه ووينې چي ټپوس دی اسمان ته خيژولي دی او دي هلته مقيم سوي دی دليل دی چي په سفر به ځي اوهلته به مری اوکه بيا واپس مځکي ته راغلي وي نو دپاچا څخه يا دپاچا داهل څخه يا به دخپلوانو څخه بزرګي حاصله کړي او په خوب کي بغير دپنجو ټپوس دفرشتو ليدل دی ځکه چي حاملين عرش فرشتي دټپوس په شکل دی اوکه ووينې چي ټپوس دده پرسر باندي ښکار کوي دليل دی چي خوب ليدونکي به سوداګري کوي اوکه ووينې چي دي دټپوس سره جنګ کوي او پر ده غالب سوي دی دليل دی چي دلوی سړی سره به جنګ کوي او هغه به باندي غالب کيږي اوکه د دې خلاف ووينې نو دښمن به مغلوب کړي. اوکه په خوب کي دټپوس بچي ووينې که ښځه لري نو زوی به يي پيدا سي او که ښځه نه لري نو دمالداري پيغلي انجلي سره به واده کوي اوکه ووينې چي پر ټپوس ناست دی نو دليل دی چي دی به پانسي کيږي. دانيال عليه السلام ويلي دی که ووينې چي په کوڅه کي ټپوس راکښته سوي دی دليل دی چي هلته به پاچا کښته کيږي اوکه ووينې چي په کوڅه کي يي ټپوس وژلی دی دليل دی چي ددغه ملك پاچا به معزول يا هلاک سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ټپوس ليدل په شپږو وجو وي. ۱: بزرګي ۲: حکم ۳: رياست ۴: ثنا اوتعريف ۵: مرتبه ۶: امر ونهي کول.

## ګرګ\ليوه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ليوه درواغجن او ظالم پاچا دی که ووينې چي دليوه سره جنګ کوي دليل دی چي دده به دباچا سره يا دبل چا سره جنګ کيږي اوکه ووينې چي دليوه شيدي يي چيښلي دی دليل دی چي ده ته به ترس او بيره وي يا ديو کار پوره والي به په ده سره وي او که ووينې چي دليوه غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به د ظالم پاچا څخه مال اونفع حاصله کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چي ليوه يي وژلي دی دليل دی چي مسلمانان به مخ ځني اړوي او هيڅ خير به يي نه وي اوبعض وايي چي دښمن به مغلوب کړي اوکه ووينې چي دليوه سر يي پيدا کړي دی يا چا ورکړي دی نو شرف او بزرګي به حاصله کړي اوکه ووينې چي ليوه دده کورته راغلي دی اونقصان يي کړيدی دليل دی چي ده ته به دپاچا څخه نقصان رسيږي اوکه ووينې چي نقصان يي نه دی کړي نو دمهربانه پاچا څخه به نفع حاصله کړي اوپاچا به دده ميلمه سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چي

لیوه دده په بستره کې پټ سوي دی دلیل دي چې پاچا به دده دعیال سره فساد کوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې په خوب کی لیوه لیدل په درو وجو وي. ۱: ظالم پاچا ۲: درواغجنه ښځه ۳: که ښځه لیوه وي نوکمزوري دښمن دی.

## گرمابه\حمام\غسل خانه\تشناب\بات روم

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چې په خوب کې حمام غم اوفکر دی اوخپل ځان پریول واده او خوشحالي ده اوترمي اوبه ښې دی او سختې گرمي اوبه بدي دی اوکه ویني چې حمام ته تللي دی اوغسل یې کړیدی او خپل ځان یې ښه پریولي دی دلیل دی چې دغم اوفکر څخه به خلاص سي اوکه ویني چې حمام ته تللي دی اوغسل یې نه دی کړي نو دښځو دطرفه څخه به دده زړه ته غم اوفکر رسیږي ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ویني چې حمام ته تللي دی او ځان یې په چونه ښه صفا کړي دی دلیل دی چې دبیرې څخه به په امن کې سي اودغم څخه به خلاص سي او دناجوړي څخه به شفا حاصله کړي اودقرض څخه به خلاص سي اوکه مالدار وي نو ددې فایدو څخه به محروم وي او په مال کی به یې نقصان وسي اوکه ویني چې چونه یې مږلي ده او غسل یې نه دي کړي نو کار به یې پوره نه سي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که ویني چې حمام ته تللي دی اومخ لاس او بدن یې پریولي دی او دباندي راوتلي دی دلیل دی چې دغم څخه به خلاص سي اوکه ویني چې په کوڅه یا کورکې حمام دی دلیل دی چې هلته به بې حیا ښځه ښکاره سي اوکه ویني چې حمام ته تللي دی اودغسل محتاج نه دی دلیل دی چې غمجن او قرضدار به سي اوکه ویني چې حمام ته ولاړي اوغل دده کالي وړي دی اودي لڅ سو نو دیو کار په وجه به غمجن او رسواسي جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې په خوب کې حمام لیدل په شپږو وجو وي. ۱: ښځه ۲: غم اوفکر ۳: دین ۴: ناکاره والي ۵: دوست ۶: قرض. او حمام والا په تعبیر کې ښځه ده اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چې دکور مالک دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ویني چې دحمام والا کار کوي که سړی وي نومالداره ښځه به کوي او دښځې په کارونو کې به مشغول سي اوکه ښځه وي نو ددې صفت خاوند به کوي.

## کرمان\چینجی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که په خوب کې ویني چې دده په نس کې ډېر چینجي دی او دده دنس څخه خوراك کوي دلیل دی چې دنورو عیال به دهغه مال راوړل غواړي اوکه ویني چې اوږده چینجي دده پر بدن پراته دی او دده پر بدن ډېر چینجي دی دلیل دی چې ډېر مال عیال او دولت به ورته حاصل سي اوکه ویني چې چینجي یې دخپل بدن څخه غورزولي دی دلیل دی چې خپل عیال به دځان څخه لیري کړي او دهغوی خبر به نه اخلي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ویني چې دده دبدن ډېره حصه چینجو خوړلي ده دلیل دی چې دده عیال به دده مال خوري اوکه ویني چې چینجو دده بدن ته نقصان رسولي دی دلیل دی چې ده ته به یې دخاندان څخه نقصان اوضرر رسیږي اوکه ویني چې دده دپزي یا غوږ یا خلي یا دپاخاني دسوري څخه چینجي وتلي دی دلیل دی چې مال اوعیال به یې زیات سي اوکه ویني چې چینجي دده دبدن

څخه راوزي اومري دليل دی چي دده عيال به هلاک سي يا به دده څخه جلاسي اوکه ويني چي ډير چينجي دده دکور وغيره دچت څخه را ايله کيږی نو دليل دی چي دهغه په اندازه به مال او نوکران حاصل کړي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چينجي ليدل په درو وجو وي. ۱: عيال ۲: نوکران ۳: غوښتلي مال.

## گره افگندن\غوټه ورکول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي تار ته يي غوټه ورکړي ده دليل دی چي په کوم کار بروسه کوی دهغه څخه به ليري سي اوکه ويني چي دتار غوټه يي بيا خلاصه کړي ده دليل دی چي په هغه کار به بروسه نه لري اوکه ويني چي يو شي يي مضبوطه غوټه کړيدی دليل دی چي تر يرڅه وخت پوري به په هغه شي کي انتظار وي او دارقم چي ژر به نه سي خلاص که څه هم هغه شي ددنيا سره تعلق لري يا ددين سره تعلق لري. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي غوټه ورکول دکارونو دبنديدو دليل دی او څونه چي غوټه سخته وي هغونه به دکارونو بنديدل سخت وي اوکه ويني چي غوټه نه سي خلاصولاي دليل دی چي دده کار به بند وي.

## گرو کردن\گانړه کول\گرو ورکول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي په يو ځاي کي گانړه دی يا يي خپل بدن په يو شي کي گانړه کړي دی دليل دی چي پخپلو کړو گناهونو باندي به بيريږي اوکه ويني چي خپل زامن او عيال يي دچا سره گانړه کړي دی دليل دی چي پرده به ظلم اوبي انصافي کيږي اوکه ويني چي خپل ځان يي دچا سره گانړه کړي دی دليل دی چي مظلوم به وي اوممکنه ده چي ثوك به باندي ظلم کوي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي خپل ځان يي گانړه کړي دی نو دا ددين پر فساد دليل دی دالله تعالی فرمان دی (کل نفس بما کسبت رهينة، سورة المدثر: ۳۸) ترجمه: هر يو نفس په خپل کسب کي گانړه دی اوکه ويني چي ددنيا څه شي يي دچا سره گانړه کړيدی دليل دی چي دچا سره به دسامان په باره کي خبري کوي اونقصان به حاصل کړي.

## کروبه (يو ډول تخم)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي دده سره کروبه ده دليل دی چي غمجن او فکرمند به سي اوکه ويني چي کروبه يي خوړلي ده دليل دی چي دچاسره به جنگ کوي او غم به ورته رسيږي ځکه چي ددې خوند تريخ او ناخوښه دی.

## گريختن\تښتيدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تښتيدل خلاصون دی که ثوك په خوب کي ويني چي ددښمن څخه يا دخوړونکي حيوان څخه تښتيدلي دی دليل دی چي دشر او بيري څخه به په امن کي سي اوپر دښمن به کامیابه سي ځکه چي موسی عليه السلام په خوب کي ليدلي وو چي دوي دفرعون ملعون څخه تښيدلي دی بيا دوي دفرعون دشرارت څخه خلاصون حاصل کړي او اخير

دوي کامیابي باندي حاصله کړه. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ووینی چي ددښمن څخه پټ سوي او تښتیدلی دی او دښمن یي لیدلي دی دلیل دی چي فکر مندبه سي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که ووینی چي خلک تښتي دلیل دی چي ده ته به دلوی سړی څخه تهمت حاصل سي دالله تعالی فرمان دی (یوم ترونها تذهل کل مرضعة عما ارضعت، سورة الحج: ۲) ترجمه: په کومه ورځ چي ته یي ووینی نو هره یوه شیدي ورکوونکي به خپل بچي هیر کړی اوکه ووینی چي سړی دښځو څخه تښتي که ښځي مصلحه اوپرهیزګاره وي نو پربدي دلیل دی اوکه مفسدي وي نو پرنیکي دلیل دی جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي تښتیدل خوشحالي ده په شرط د دې چي په هغه ځای کي به دغم اومصیبت اواز وي.

## ګریستن\ژړل

که په خوب کي ووینی چي دده پر مخ د ژړا نښي دی دلیل دی چي دنیك کار په وجه به ورته خلك پیغور ورکوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي ژړل دخوب لیدونکي لپاره خوشحالي او دالله تعالی بخشش دی که په خوب کي ووینی چي دګناه یا دعلم په محفل یا دقران په ویلو کي یي ژړلي دی یا په بله موقع چي د دې سره مشابه وي نو دالله تعالی پر کرم دلیل دی چي پخپل فضل سره به پر ده رحمت کوي او دده ګناهونه به وبخښي اوکه ووینی چي ژړلي یي دی او اوښکي دده دسترګو څخه نه دی تللي دلیل دی چي دتیر سوي کار په نه کولو به افسوس کوي اوتوبه به وباسي اوکه دیو کړل سوي کار په مصیبت یي بغیر دزاري څخه ژړلي وي نو خوشحالي اوراحت به حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی که ووینی چي ژړلي یي دی اوبیا یي خندلي دی دلیل دی چي دده مرګ نزدی دی دالله تعالی فرمان دی (هو اضحکک وابکی، سورة النجم: ۴۳) ترجمه: هغه تا خندوي او ژړوي.

## کری\کوڼ کیدل

کوڼ کیدل په خوب کي فقیري بدحالي اوعاجزي ده ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي کوڼ کیدل ددین تباهي غم اوفکر دی او کارونه به باندي بند سي اومراد به یي پوره نه سي دالله تعالی فرمان دی (صم بکم عمی فهم لا یرجعون، سورة البقرة: ۱۸) کاڼه دی ګونګیان دی او ړانده دي او دوي رجوع نه کوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي کوڼ کیدل بي نوایي او دکارونو پر بندیدو دلیل دی اوکه ووینی چي په غوږونو اوري نو دکارونو په خلاصولو دلیل دی او دزړه مراد اومقصد ته به ورسیږي او دالله تعالی درحمت څخه به حصه حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي کوڼ کیدل په څلورو وجو وي. ۱: فقیري ۲: ددین تباهي ۳ : غم او فکر ۴: دکارونو بندیدل او نامرادی.

## ګژ\د شهدو ګبین\ګبین

دشهدو ګبین په خوب کي منافق او بي خبره سړی دی اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي په

خوب کي دشهدو ګبين حلاله روزي ده چي مخلوق ته بغير دڅه احسان څخه حاصليږي دالله تعالى فرمان دى (وانزلنا عليكم المن والسلوى، سورة البقرة: ۵۷) اوموږ پر تاسو من اوسلوى راوليږل. اوکه ووينې چي په ګبين کي ډير شهد دى او خوړلي يي دى او چاته يي ورکړي نه دى دليل دى چي ده ته به حلال مال رسيږي او دهغه څخه به خير ويني اوکه د دې خلاف ووينې دليل دى چي ددغه مال څخه به ورته خير اوخوشحالي نه رسيږي.

## کزا کند\ريښمي کالي\وريښمين کالي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دى که څوك په خوب کي ووينې چي ريښم يي اغوستي دى دليل دى چي ښځه به کوي او پر دښمانو به غالب کيږي اوکه داخوب ښځه ووينې دليل دى چي خاوند به کوي او دهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دى که ووينې چي ده دريښمو کالي اغوستي دى دليل دى چي مالداره او پرهيزګاره ښځه به کوي اوکه په خوب کي ووينې چي شنه ريښم يي اغوستي دى دليل دى چي مصلحه اوپرهيزګاره ښځه به کوي اوکه سره يي اغوستي وي نو عيش پرسته ښځه به کوي اوکه تور وي او خوب ليدونکي قاضي يا خطيب وي نوپر نيکي دليل دى اوکه نوي وى نو هغه ښځه به ګنهګاره وي اوکه زاړه وي نو هغه ښځه به پليته او ناکاره وي.

## کژدم\لړم\عقرب\بيچو

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دى چي په خوب کي لړم کمزوري دښمن دى چي خلک تنګوي او دهغه په نزد دوست او دښمن برابر دى اوکه څوك په خوب کي ووينې چي لړم چيچلي دى دليل دى چي دښمن به ورته بدرد وايي اوپه هغه سره به غمجن سي اوکه ووينې چي ده لړم وژلي دى دليل دى چي پر دښمن به کاميابه سي اوکه ووينې چي لړم دوژلو څخه بيرته بيا ژوندي سو اوده ته تکليف ورکول غواړي دليل دى چي په دښمن به کاميابه سي اوبيا به دښمن دده مقابله کوي اوکه ووينې چي دده په لاس کي لړم دى دليل دى چي ازارى به وي اوپه خلکو پسي به خبري کوي او په خلکو کي به جنګ اوفتنه اچوي. اوکه ووينې چي لړم يي پوخ کړي يا وريت کړي او خوړلي يي دى دليل دى چي ددښمن مال به خوري اوکه ووينې چي لړم يي په خوله کي ايښي دى اوخوړلي يي دى دليل دى چي دښمن دده په کورکي دى اودده سره ناسته پاسته ساتي اوکه ووينې چي لړم دده په کالو کي دى نو همدغه دغه تعبير يي دى. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دى که ووينې چي دلړم څخه بيريدلي دى او دي لړم چيچلي دى دليل دى چي ددښمن څخه به ورته غم حاصل سي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دى چي دښځي سره به جماع ونه سي کړاي اوکه ووينې چي لړم دده په قميص کي دى دليل دى چي ددښمن څخه به ورته نقصان رسيږي اوکه ووينې چي لړم دده په پرتوګ کي دى دليل دى چي دښمن به دده دعيال يا دده دمينځي سره فساد کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دى چي په خوب کي لړم ليدل په درو و جو دى. ۱: دښمن ۲: حاسد ۳: عيب پيدا کولو والا.

## كژدم خوره \ لړم خوړونكی حيوان

ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي كژدم خوره عقلمند عاجز بردبار با ارام او خوږ زبانه دښمن دی اوهغه په دښمني كي سخت دی اوكه ويني چي لړم خور چيچلي دی نو دپورته ذكر سوي قسم دښمن څخه به په امن كي وي اوكه ويني چي يو شي دلړم خور په ډول وو اودي څني بيريدلي دی دليل دی چي څوك به دښمن ګڼي حالانكه هغه به دده دښمن نه وي.

## ګرز \ ګاجره

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي ګاجره غم او انديښنه ده اوكه څوك په خوب كي ويني چي ګاجره يي اخيستي ده او خوړلي يي دي نو غم به ورته رسيږي جابر مغربی رحمه الله ويلی دی كه ويني چي ګاجري خوړي دی نو پر لږ غم دليل دی اوكه ګاجره په غوښه كي پخ كړي وخوري نو پر نفع دليل دی چي په غم او سختي سره به حاصله سي اوبعض اهل تعبير بيان كړي دی چي په خوب كي ګاجره خوړل ناجوړي ده او دسري كړي ګاجرو ليدل هم ښه نه دي او ښه هغه دی چي په خوب كي ګاجره په غوښه كي پخه سوي وي.

## ګزيدن \ چيچل \ خوړل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی كه په خوب كي ويني چي دی چا خوړلي دی دليل دی چي دده مينه او محبت به دهغه په زړه كي زياته وي اوكه ويني چي چا دی په غصي اودښمنۍ سره خوړلي دی دليل دی چي ده ته به دهغه څخه نقصان رسيږي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی كه ويني چي خر دی خوړلي دی دليل دی چي دی به په خطره كي وي اوكه اوښ خوړلي وي نو ده ته به دسفر څخه نقصان وي اوكه غوايي خوړلي وي نو په دغه كال كي به ورته نقصان رسيږي اوپه خوب كي دټولو درندګانو خوړل په څلور وجو وي. ۱: نقصان ۲: دښمن ۳: جنګ ۴: مال اومرتبه.

## كشتي ګرفتن \ پرزول كول \ غېږ ايستل \ كشتي كول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی كه په خوب كي ويني چي دچا سره يي پرزول كړي دی اوهغه يي را پرزولي دی دليل دی چي حال به يي نيك سي او پر هغه به غالب سي اوكه ويني چي پخپله را ايله سوي دی نو د دې تعبير داول څخه خلاف دی اوكه په پرزولو كي دواړه برابر وو نو ددواړو خير اوشر به برابر وي ليكن په ښكاره به ديو بل سره مينه كوي.

## كاسني (يو ډول هندي بوټی)

ابن سيرين رحمه الله او جابرمغربی رحمه الله دواړو ويلي دی چي په خوب كي كاسني غم اوفكر دی.

## كشت‌ورز \ زميندارى \ باغواني \ كښتګر \ كښتګري

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي زميندارۍ پر الله تعالی توكل او حلاله روزي ده نيكي اوفاضل نيك صورته سړی دی اوكه ويني چي دتخم كرلو لپاره يي مځكه اړولي ده دليل دی چي خيرات اوصدقي به وركوي او ددې فن استاذانو ويلي دی كه ويني چي دزميندارۍ كار كوي نو پر ناجوړي دليل دی. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی كه ويني چي مځكه يي

اړولي ده اوتخم يي پکښي اچولي دی او بيايي جمع کړي دی دليل دی چي بزرگي نعمت او مرتبه به حاصله کړي اوکه ووينې چي تخم يي کرلي دی اوباران باندي سويدی نو څه چي مور بيان کړي دی هغه به ښه اوډير ښه وی اوکه ووينې چي دکرلو څخه ورته څه نه دی حاصل سوي او دا هم معلوم نه وي چي باران څنگه وي نو پرغم اوفکر دليل دی اوکه ووينې چي باجره يي کرلي ده نو دليل دی چي لږمال به حاصل کړي. دانيال عليه السلام ويلي دی که ووينې چي پخپله مځکه کي يي تخم کرلي دی دليل دی چي ښځه به کوي اوکار به يي سم سي اوکه سوداگر خپله مځکه ناکرلي ووينې نو دليل دی چي نقصان به ويني يا به دچا سره جنگ کوي اوکه ووينې چي نامعلومه مځکه يي کرلي ده اوتخم يي پکي کرلي دی دليل دی چي په جهاد کولو او خيرات او صدقو ورکولو به خواهشمند وي اوکه خپله مځکه کرل سوي ووينې دليل دی چي نعمت به باند فراخه سي اوکه غنم يا اوربشي يا درختي يي پخپله مځکه کي کرلي وي نو چي څونه يي کرلي وي هغونه پر عزت اومرتبې دليل دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي زمينداري ليدل په پنځو وجو ده ۱: حلاله روزي طلب کول ۲: خير او نفع حاصلول ۳: ناجوړي ۴: عزت او مرتبه ۵: ژوند.

## کشت‌زار\پټی\کښت

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي دکرل سوي پټي راپاريدل چي معلوم وي اوپه معلوم ځاي کي يي پخپل موسم ووينې نو دخلکو پر زامنو دليل دی اوکه ووينې چي پټي يي ريبلي دی دليل دی چي خلک به په جنگ کي مړه کيږي. دانيال عليه السلام ويلي دی که ووينې چي په معلوم پټي کي دی دليل دی چي ددين او دنيا دښوالي عمل به کوي اوکه ووينې چي پټي يي وکرل اوويي ريبل او غله يي ځني واخيستل دليل دی چي ارمان به يي پوره سي اوکه ووينې چي په پټي کي روان دی دليل دی چي دغازيانو سره به جهاد ته ځی. جابر مغربی رحمه الله ويلی دی چي په خوب کي دپټي ريبل پر جنگ دليل دی اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی که ووينې چي پټي ته تللي دی او خلکو شين ريبلي دی دليل دی چي په مصارفو کي به ځي اوکه ووينې چي په پټي کي اور لگيدلي دی او هر څه يي سوزلي دی دليل دی چي په دغه ملك کي به قحط راځي. اوکه ووينې چي خپل پټي اوبه کوي دليل دی چي دده دلاسه به داسي کار کيږي چي په هغه سره به يي ددين او ددنيا نفع وي اوکه ووينې چي اور راغلي دی او پټي يي سوزلي دی دليل دی چي دپاچا څخه به ورته نقصان رسيږي اوکه ووينې چي پټي ته يوه لويه واله راغلي دی دليل دی چي په دغه ملك کي به قحط اوتنگي وي اوکه ووينې چي دغنمو دوړو څخه پر مځکه داني غورزيدلي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به دپټي والا نقصان کيږي اوکه نه پيژني چي دغه پټي دچا دی دليل دی چي نقصان به دخوب ليدونکي کيږي دالله تعالی فرمان دی: (نسائکم حرث لکم فأتوا حرثکم انی شئتم، سورة البقرة: ۲۲۳) ستاسو ښځي ستاسو پټي دی څنگه چي راتلل غواړئ ورته راځئ. اوکه پټي په موسم کي شين ووينې دليل دی چي په دغه ملک کي به نعمت فراخ وي اوکه مځکه دده وي دليل دی چي مراد به يي پوره سي اوکه پر

وخت پټي وريبي اووړي كورته راوړي نو پهر مصيبت دليل دی اوكه ووينې چې ددوستانو سره پټي ته تللي دی دليل دی چې جهاد ته به ځي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چې په خوب كي پوخ پټي ريبل دهغه موسم پر ښه والي او نفعي دليل دی اوكه كچه اوشين وي نو پر ناجوړي دليل دی. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چې پر وخت پټي ريبل دليل دی چې دالله تعالى حكم به پر ځاي راوړي او دفقيرانو په حق كي دخيرات پر توفيق دليل دی دالله تعالى فرمان دی (واتوا حقه يوم حصاده، سورة الانعام: ۱۴۱) ترجمه: دريبلو پر خپل وخت دهغه حق ادا كړئ. كه داسي وسي چې ليدلي يې وی اوريبلي يې وی دليل دی چې انجام به يې ښه وي.

## كشتن\وژل\قتلول\مړ كول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی كه ووينې چې ځوك يې وژلي دی او سر يې ځني پريكړي دی دليل دی چې دمالدار سړی ځخه به ورته خير او نيكي رسيږي اوبعض اهل تعبير بيان كړي دی چې قاتل به پر مقتول باندي ظلم كوي اوكه ووينې چې دي چا وژلي دی دليل دی چې عمر به يې زيات سي. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی كه ووينې چې دی چا وژلي دی نو پر خير اونفع دليل دی اوكه ووينې چې ديو ټولګي خلكو په ظلم سره وژلي دی دليل دی چې عمر به يې زيات سي او دپاچا ځخه به ورته خير اونفع رسيږي دالله تعالى فرمان دی (ومن قتل مظلوما فقد جعلنا لوليه سلطانا فلا يسرف في القتل، سورة الاسراء: ۳۳) ترجمه: او ځوك چې قتل كړل سو په ظلم سره نو موږ دهغه ولي ته غلبه وركړيده چې هغه به په قتل كي زياتي نه كوي. اوكه ووينې چې ځوك يې په ظلم سره وژلي دی دليل دی چې ګنهګار او ظالم به وي او الله تعالى به پر ده ځوك مقرر كړي چې دی به تنګوي دالله تعالى فرمان دی (ولا تقتلوا اولادكم، سورة الانعام: ۱۵۱) ترجمه: او خپل اولاد مه قتلوي. اوبعض وايي چې پر زامنو ظلم كول هرقسم ددنيا عزت دی اوكه ووينې چې ځوك يې ووژي او دهغه دبدن ځخه وينه وبهيده نودهغه په اندازه به مال حاصل كړي اوكه دهغه بدن په وينو خراب ووينې دليل دی چې دخپل مال ځخه به هغه ته څه وركوي او كه ووينې چې وينه بهيدلي ده دليل دی چې دقاتل دين به برباد سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی كه ووينې چې حيوان يا دمځكي چينجي وغيره يې وژلي دی دليل دی چې پر دښمن به كامياب سي او ځوك چې ددغه حيوان طرفته منسوب وي هغه به مغلوب كړي اوقاتل په وينو خراب ليدل بې وفا اوظالم سړی ليدلي دی.

## كشتي\كښتۍ\آبګوټ

دانيال عليه السلام ويلي دی چې په خوب كي كشتي ليدل غم اوفكر يا قيدخانه ده يا داسي كار دی چې دهغه په كولو سره به ورته غم او تكليف رسيږي خاصكر كه كشتي ددرياب ځخه دباندي نه وي وتلي يا په درياب كي پاته سوي وي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی كه ووينې چې په كشتي كي دی او دهغه ځاي ځخه په سلامتي سره دباندي وتلي دی دليل دی چې دغم ځخه به يې

خلاص سي دالله تعالی فرمان دی (فانجینه ومن معه فی الفلك المشحون، سورة الشعراء: ۱۱۹) ترجمه: اوموږ هغه ته اودهغه ملګرو ته په ډکي کشتي کي خلاصون ورکړ. اوکه ووینې چي کشتي په دریاب کي تباه سوه دلیل دی چي دیو قوم دلاسه به هلاک سي اوکه ووینې چي دده کشتي پر مځکه پاته سوي ده نو په غم اوفکر کي به ګرفتار سي او ژر به ځني خلاص سي. اوکه ووینې چي کشتي غرقه سوي ده او دي سلامت پاته سوي دی دلیل دی چي مال به بي ورك سي او پخپله به بچ سي اوکه ووینې چي کشتي ماته سوي ده او هرڅه غرق سوي دی دلیل دی چي لوی مصیبت به باندي راځي اوکه ووینې چي په کشتي کي پر لوړ ځاي ناست دی او کشتی په اوبو کي روانه ده دلیل دی چي په سفر به ځي اوکه ووینې چي کشتیاني ولاړي دی دلیل دی چي په سفر به ځي او ډیر وخت به پکښي وي بلکه په دغه سفر کي به مقیم سي اوکه ووینې چي په کشتی کي ناست دی او ښه هوا راغلي ده اوکشتي په ښه شان سره چلوي دلیل دی چي دغمونو او فکرونو څخه به خلاص سي اوکه ووینې چي کشتي ولاړه ده او دهر طرف څخه څپې راځي دلیل دی چي ده ته به سختي پیښه سي او دهلاکت بیره به ورته وي دالله تعالی فرمان دی (وجاءهم الموج من کل مکان، سورة یونس: ۲۲) ترجمه: او پر هغوي دهر طرفه داوبو څپې راغلي. اوکه ووینې چي کشتي مخکي روانه ده او دي ورته رسیدلي نه سي دلیل دی چي په مشکل کار کي به راسي او اخر به خلاصون حاصل کړي دالله تعالی فرمان دی (فانجیناه واصحاب السفینة، سورة العنکبوت: ۱۵) ترجمه: موږ هغه ته اوکشتي والا ته خلاصون ورکړ. او که ووینې چي په کشتي کي څه شي نه وو او خالي رواني وي دلیل دی چي پاچا به سفیران یوځای لیږي. اوکه ووینې چي کشتۍ غرقه سوي ده دلیل دی چي دغه سفیران به خلک انتظاروي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی که ووینې چي کشتي په دریاب کي غرقه سوي ده او پیژني چي دغه کشتي دده څخه وه دلیل دی چي ده ته دهلاکت بیره نسته. اوکه ووینې چي په کشتي کي ناست دی او دپاچا څخه بیریږي دلیل دی چي دپاچا مقرب به سي اودکشتي دغټ والي مطابق به ورته نفع حاصله سي اوکه په کشتي کي په امن سره ناست وي دلیل دی چي دپاچا څخه به ورته بیره وي اوکه ووینې چي کشتي ددریاب بیخ ته تللي ده دلیل دی چي دپاچا څخه به ورته ډیر قوت وي اوکه ووینې چي کشتي نه چلیږي نو تعبیر یي خلاف دی. اسماعیل اشعث رحمه الله علیه ویلي دی که ووینې چي په کوچنۍ کشتي کي ناست دی اوهغه په دریاب کي نه سي تللي دلیل دی چي غم اوفکر به ورته زیات وي اوکه ووینې چي کشتي په اوبو کي روانه ده دلیل دی چي په سفر به ځي اوژر به بیرته راځي اوکه خپله کشتي پر وچه ولاړه ووینې نو په یو کار کي به عاجز سي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کشتي لیدل په اتو وجو ده. ۱: زوی ۲: پلار ۳: سپرلي ۴: خوشحالي ۵: امن ۶: عیش ۷: مالدار.

**کشف \ شمشتي**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي شمشتي لیدل پرهیزګار عالم دی چي دهغه په

صحبت کي نفع ده که څوك په خوب کي ويني چي دده سر شمشتي ده يا دده کورته راغلي ده دليل دی چي دده به دپرهيزګار سړی سره صحبت وي اوکه ويني چي دشمشتي غوښه يي خوړلي ده دليل دي چي دهغه په اندازه به علم حاصل کړي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی که ويني چي شمشتي دغوشيانو په ځاي کي ده دليل دي چي په عام صحبت کي به حاضر سي. او که شمشتي يي په جماعت يا دعزت په ځاي کي ليدلي وي دليل دی چي پرهيزګاربه سي او دده به دعالمانو اوپرهيزګارو اوبزرګانو په نزد حرمت وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي شمشتي ليدل په درو وجو ده. ۱: پرهيزګار ۲: عالم سړی ۳: هغه سړی چي په کارونو کي کاريګري کوي.

## کشکاب\جوشانده

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوک ويني چي دعناب او بنفشي جوشانده يي دچيني سره چيښلي ده نو لږ حلال مال به ورته حاصل سي او دزړه څخه به يي غم اوفکر ليري سي اوکه ويني چي جوشانده يي ونه چيښله نو ددې تعبير داول خلاف دی.

## کشمش\وڅکي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کشمش په مال اونعمت دليل دی که ويني چي دده سره کشمش دی يا چا ورکړي دی او ده خوړلي دی دليل دی چي هغونه خيراونفع به هغه سړی ته رسوي اوکه ويني چي دکشمش څخه يي اوبه ايستلي او چيښلي دي که عالم وي نو علم به يي نور زيات سي اوکه سوداګر وي نو مال به يي زيات سي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی که ويني چي دده سره دکشمشو ډيران دی که عالم وي نو دده دمال پر زياتيدو دليل دی اوکه کاريګروي نوده ته به پوره مال په کسب سره حاصل سي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کشمش ليدل په درو وجو دی. ۱: نفع ۲: حلال مال ۳: کسب.

## کشنيز\ګشنيز\دڼيا

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي دده سره دڼيا وي او خوړلي يي ده دليل دی چي ده ته به دهغه په اندازه علم او فکر وي.

## کعب\د پښي ګيټی\بجلکه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ګيټي ليدل پر مقام باندي تعبير لري که ويني چي دګيټي سره بازي کوي نو په جنګ دليل دی اوکه ويني چي دده سره ډير ګيټي دی دليل دی چي هغونه به ورته غم اوفکر وي اوکه ويني چي دده دپښې ګيټي مات دی دليل دی چي زوی به يي مري يا به ورته غم رسيږي اودګيټو تعبير جنګ مکر اوحيله دی. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي دګيټو سره بازي کول پر حقير او ذليله دښمن او پر جنګ دليل دی جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ګيټي په پنځو وجو ده ۱: مقام ۲: ښځه ۳: زوی ۴: مال ۵: خبري دالله تعالی قول دی (وکواعب اترابا وکاسا دهاقا، سورة النبأ: ٣٤) او ځواناني همزولي ښځي او

پیالي دشرابو ډکي. اوکه حلالي غوښي دخاروي دګیتي دځان سره ویني نو پر حلال مال باندي دلیل دی اوکه برعکس یعني مخالف ویني نو دحرام مال دلیل دی.

## کعبه شریفه \ بیت الله \ خانه کعبه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلی دی چي په خوب کی کعبه شریفه لیدل خلیفه داسلام لیدل دي اوچي په کعبه شریفه کي څه زیاتي یا نقصان ویني هغه به په خلیفه داسلام کي وي اوکه ویني چي دکعبي شریفي طواف یي کړي دی نو دده ددین پرصلاح دلیل دی او خلیفه داسلام به خوشحالي حاصله کړي اوکه ویني چي احرام یي تړلي دی او مخ یي دکعبي طرفته دی نو دده دصلاحیت پر زیاتوالي دلیل دی اوکه ویني چي دده کور کعبه سوي ده اوخلک یي زیارت ته راځي دلیل دی چي دامانت حفاظت به کوي او عزت اومرتبه به حاصله کړي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی که پاچا ویني چي کعبي ته تللي دی دلیل دی چي دخلیفه څخه به بزرګي حاصله کړي اوکه ویني چي کعبه را ایله سوه یا سوزل سوي ده دلیل دي چي دخلیفه حال به خراب سي اوکه ویني چي ده دکعبي څخه یو شي راخیستي دی نو دخلیفه څخه به ورته فایده وي اوکه لمونځ یي پکښي کړي وي نو دخلیفه ګانو څخه به دده کار ښه سي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي دکعبي اصل ایمان اومسلماني ده اوکه خپل ځان په کعبه کي ویني دلیل دی چي ددښمن دشرارت څخه به په امن کي وي او دده دعا به قبوله سي دالله تعالی فرمان دی (ومن دخله کان امنا، سورة آل عمران: ۹۷) او څوك چي په دي کي داخل سي هغه به په امن کي سي. اوکه ویني چي حجر اسود مچوي دلیل دی چي حج به کوي اوکه ویني چي دنبی علیه السلام دقبر مبارك زیارت کوي یا یي مقام ابراهیم لیدلي دی دلیل دی چي حج ته به ځي او په سلامتي سره به بیرته راځي اوکه خپل ځان دکعبي شریفي پر چت ویني نو پربي مذهبه کیدو دلیل دی. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کعبه لیدل په څلورو وجو وي. ۱: خلیفه ۲: امام ۳: ایمان اومسلماني ۴: دهر طرفه څخه دبیري په امان.

## کفتار \ کوني چانچر (یو ډول حیوان)

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کوني چانچر خرابه پلیته او بدکاره ښځه ده که ویني چي کوني چانچر یې تړلي دی دلیل دی چي بده ښځه به کوي اوکه ویني چي ددې غوښه یي خوړلي ده دلیل دی چي په ده به جادو کیږي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دکوني چانچر شیدي یي چیښلي دی یا دده سره یې هډوکي یا پوست دی دلیل دی چي ددغه ښځي څخه به فایده حاصله کړي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی که ویني چي کوني چانچر دده سره خبري کړي دی دلیل دی چي ښځه به ورسره بد زباني کوي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کوني چانچر لیدل بد دي.

## کفچه \ دلرګي چمچې \ دلرګي کاچوغه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دلرګي څمچې دکور حکومت دی که ویني چي

دده سره نوي اوپاکه دلرګو ځمچې ده دليل دی چي دده خادم به پرهيزګار وي اوکه دلرګي ځمچي زړه اوماته سوي ووينې نو تعبير يې داول خلاف دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که ووينې چي دده دلرګي چمچي ماته ياورکه سوي يا سوزلي ده دليل دی چي دده خادم به مري يا به ناجوړی سي.

## كفچه اتش \ اور لړونی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که ووينې چي دده سره اورلړوني دی دليل دی چي ده ته به خدمتګار حاصل سي اوکه ووينې چي اور لړوني ورك سوي دی دليل دی چي خدمتګار به يې مري يابه ځني ځي.

## كفش \ پيزار \ بوټ \ څپلۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي پيزار ښځه ده که ووينې چي ده نوي پيزار په پښو کړي دی دليل دی چي ښځه به کوي يا به مينځې اخلي اوکه ووينې چي دبل چا پيزار يې په پښو کړي دی دليل دی چي کونډه ښځه به کوي اوکه تور پيزار وي دليل دی چي ښځه به يې جنګيالي وي اوکه سره وي نو ښځه به يې ښايسته اوعيش پسنده وي اوکه ژړه وي نوښځه به يې ناجوړه وي اوکه سپينه وي نو دښايسته ښځي سره به نکاح کوي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی که دغوا دپوست پيزار وي دليل دی چي اصيله ښځه به کوي اوکه دبزي دپوست وي دليل دی چي دعربۍ ښځي سره به واده کوي اوکه ووينې چي پيزار ځني ايله سوي دی يا ورك سوي دی نو پر غم اوفکر اوبې حرمتي دليل دی اوکه پيزار دده په پښوکي تنګ وي دليل دی چي دده ښځه به تباه کاره وي اوپه خوب کي زاړه پيزار ليدل دنوي پيزارو څخه ښه دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي پيزار ليدل په اوو وجو وي. ۱: ښځه ۲: خادم ۳: مينځه ۴: قوت ۵: ژوندون ۶: مال ۷: سفر اوپه خوب کي چميار او موچي داسي سړی دی چي ميراث تقسيموي.

## كف \ ورغوي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ووينې چي دده په ورغوی کي يو شي دی دليل دی چي هغونه به ورته څه ملاوسي اوکه ووينې چي دده دلاسونو ورغوي چپه سوي دی دليل دی چي هلته به ښادي وي اوکه ووينې چي دده ورغوي زخمي سوي دی دليل دی چي دسفر څخه به پاته سي اوکه ورغوي خلاص سوي ووينې نو پر فراخ دستي دليل دی او د دې خلاف پر نامردي اوتنګ دستي دليل دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ورغوي ليدل په شپږو وجو وي. ۱: فراخ دستي ۲: مال ۳: رياست ۴: زوی ۵: زړه ورتيا ۶: دښځي سره په يو حرام کار کي داخليدل.

## كف دريا \ د درياب ځګ \ ځګ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ددرياب ځګ ليدل دپاچا څخه يا ديو لوی سړی څخه نفع حاصلول دی.

## کفن

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چې دژوندې یا مړې لپاره کفن جوړوې که هغه سړې معلوم وي نو دهغه څخه به ورته غم رسیږي اوکه دمعلوم سړی څخه یې کفن ایستلي دی دلیل دی چې په دنیا کې به ددغه مړې طریقې تلاش کوي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چې که ووینې چې دمړې کفن یې څیرې دی نو اهل تعبیر وایې چې که خوب لیدونکې نیك پرهیزګار او طالب العلم وي نو دنیا به ده ته مخ کوي او حرام مال به جمع کوي. اوکه ووینې چې دمړو کفن باسې او ځاې په ځاې یې ګرځوي دلیل دی چې حرام مال به دده په لاس روان وي اوکه خوب لیدونکې مفسد وي دلیل دې چې منافق اوچغل خور به سي اوپر خلکو به دفساد او ددرواغو ګواهې ورکوي.

## ګلاب \ ګل ګلاب

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې ګلاب تندرستې ده اوکه ووینې چې ګلاب یې په خوله کې اچولې دی دلیل دی چې تندرست به سي او خلک به یې ثنا او صفت کوي اوکه ووینې چې هر چا ته ګلاب ور کوي دلیل دی چې نوم به یې په ملک کې مشهور سي اوکه عالم وي نو خلک به یې دعلم څخه فایده پورته کوي.

## کلاژه (یو ډول مرغه)

کلاژه په خوب کې لیدل پر بې وفا اوبد دینه سړی دلیل دی که چیرې په خوب کې ووینې چې ده کلاژه نیولې ده دلیل دی چې دپورته صفت والا سړی سره به مینه کوي اوکه ووینې چې دکلاژه سره جنګ کوي دلیل دی چې دصفت والاسړی سره به جنګ کوي اوکه ووینې چې کلاژه دده دلاس څخه والوته دلیل دی چې د دې صفت والا سړی سره به ناسته پریږدې اوکه مړه یې کړه او غوښه یې وخوړه دلیل دی چې دښمن به مغلوب کړې او هغونه به دده مال خوري.

## کلاغ \ غریز کارغه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چې په خوب کې غریز کارغه بد عهد اوبدکاره سړی دی که ووینې چې کارغه یې نیولی دی دلیل دی چې دچا څخه به ددرواغو په حیلې سره غنیمت حاصل کړې اوکه ووینې چې غریز کارغه ددرختې پر ښاخ ناست دی او خبرې کوي نو دا دده پر وبال دلیل دی اوکه دوه کارغان ووینې نو پر غم او مشقت دلیل دی او په خوب کې دغریز کارغه په لیدلو کې څه خیر نسته.

## کلا \ ټوپۍ \ خولۍ \ رخچینه

دانیال علیه السلام ویلي دی چې په خوب کې ټوپې لیدل دهغه په اندازه مطابق عزت اومرتبه ده اوکه ووینې چې دده پر سر دغازیانو ټوپې ده دلیل دی چې پردښمن به غالب راسې. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چې دده پر سر دترکیانو ټوپې ده دلیل دی چې په سختې سره به نفع حاصل کړې اوکه ووینې چې په سر یې داتش پرستو ټوپې ده دلیل دی چې په دنیا کې به عزت حاصل کړې لیکن په دین کې به کمزورې سي اوکه پرخپل سر دپاچا تاج ووینې دلیل دی چې

عزت او مرتبه به حاصله کړي اوکه ويني چي دده پر سر عنابي ټوپي ده نو خوشحاله به سي اونفع به حاصله کړي اوکه ويني چي دده پر سر رومي ټوپي ده دليل دی چي ددين اودنيا خير به يوسي اوکه ويني چي پر ټوپي يي پټکي وهلي دی دليل دی چي داسي کار به وکړي چي هغه به دخلکو څخه پټول غواړي اوکه دوريښمو ټوپي يي پر سر ايښي وي دليل دی چي نفع به حاصله کړي اوکه پر سر يي دزرو ټوپي وي دليل دی چي دخلکو څخه به نفع حاصله کړي اوکه دملغلرو ټوپي ويني دليل دی چي په خلکو کي به عزيز سي او ددينداره او غازي سړی سره به ملګرتيا لري اوکه ټوپي د اوسپني وي دليل دی چي دپاچا څخه به عزت مرتبه اوقوت حاصل کړي اوکه ټوپي دلرګي وي دليل دی چي خپل ځان به په خلکوکي خوار معلوموي اودرواغ به وايي ابراهيم کرماني رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی که ويني چي دګرمي ټوپي يي ديخني په موسم کي پر سر ايښي ده دليل دی چي خير اونفع به يوسي اوکه د دې خلاف ويني دليل دی چي دمراد څخه به منع سي اوکه پر سر توره ټوپي ويني او په ويښه يې هم دغه پرسر وي دليل دی چي خير اونفع به حاصله کړي. اوکه په خوب کي ويني چي ټوپي دده دسر څخه الوتلي ده دليل دی چي د عمل څخه به معزول سي يا به ورته سخت غم ورسيږي اوکه ويني چي د ذکر سوو ټوپيانو څخه يوه ټوپي خلکو دده پرسر ايښي ده دليل دی چي ددغه ټوپي دقدر وقيمت مطابق به دسردار څخه عزت اومرتبه حاصله کړي اوکه ويني چي دده دسر څخه ټوپۍ کښته سوه دليل دی چي دعزت اومرتبي څخه به معزول سي اوکه ښځه ويني چي ددې پرسر دوه کوټيزه ټوپي ده دليل دی چي ددي ښځي به زوی پيداسي چي پاچا به جوړيږي اوکه ويني چي دده پرسر چا دوزير ټوپي ايښي ده دليل دی چي دغه سړی به بددينه وي ليکن دپاچاهانو لپاره نيك دی. جابر مغربي رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی که ويني چي ټوپي يي پرسر کړيده دليل دی چي شرف اومرتبه به يي زياته سي اوکه ويني چي ټوپي خيري اوزړه ده دليل دی چي غمجن به سي اوکه ويني چي داسي ټوپي يي پرسر کړيده چي په ويښه يي هيڅکله هم نه ده پرسر کړي که سپينه وي نو پر نيکي دليل دی اوکه شنه وي نو پر بدي دليل دی اوکه په ويښه داسي ټوپي لري نو بد نه دی اوسره ټوپي په خوب کي ليدل په ناجوړي دليل دی. اسماعيل اشعث رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی که ويني چي ده دتيلي ډکه ټوپي پر سر کړي ده دليل دی چي دهغه په اندازه اومطابق به شرف او عزت حاصل کړي ليکن په دين کي به يي نقصان وي اوکه ويني چي دده ټوپي په اورکي را ايله ده دليل دی چي پاچا به تاوان يعني جرمانه باندي اچوي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي ټوپۍ پر شرف اوبزرګي دليل دی او دا په خوب کي ليدل په شپږو وجووي. ۱: ولايت ۲: رياست ۳: بزرګي ۴: عزت او مرتبه ۵: مقدار ۶: دټوپي جوړونکي. چي مرتبه يې په خوب کي دبزرګانو خدمت کوونکي دی.

## ګز

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي په ګز ياپه بل يو شي باران ناپ کوي نو دليل يي دا دي چي نفع اوفائده به ورته ورسيږي. جابر مغربي رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که

ځوك دسړو يا دوربينمو په كالو ناپ كولو خپل ځان ويني نو دليل يي دا دي چي په سفر كي به ورته هغونده حرام مال ملاويږي.

## گل شدن \ سر گنجي كيدل \ فكر كول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی كه ويني چي دده سر گنجي سوي دی دليل دی چي مراد او مال به ډير حاصل كړي اوبعض اهل تعبير بيان كړي دی چي دده غم اوفكر به زايل سي اوكه قرضدار وي نو قرض به يي خلاص سي اوكه ويني چي دده دگنجي سړی سره ملگرتياده دليل دی چي دمالداره سړي دوست او اشنا به سي اوكه ويني چي دده سر گنجي وو اوبيا باندي ويښته راغله دليل دی چي دده مال به ختم سي او پخپله به قرضداره سي.

## گل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي دگل حكم په دوه قسمه دي يو په درخته گل كيدل اوبل بي درختي او دكوم گل چي پاڼه نه وي دهغه ليدل دخوب ليدونكي پر غم اوفكر دليل لري او كه ځوك سورگل په درخته كي دهغه په موسم ويني دليل دی چي زوی به يي پيداسي اوكه بي وخته يي ويني نو دزوی په وجه به په مصيبت كي گرفتاره سي او په خوب كي دگل درخته سردار او خبري كوونكي سړی دی او دژړ گل درخته سوداگره ښځه حاجت پوره كوونكي ده او دسپين گل درخته پر عزت مرتبي او دولت دليل لري اوكه پخپل كوركي دگل درخته ويني دليل دی چي ديوي انجلي سره به نكاح كوي اوكه پخپل كوركي گل صدبرگ ويني دليل دی چي دزوی په وجه به خوشحاله سي اوكه ډير قسمه گلونه راختلي ويني دليل دی چي د خپلوانو او كوروالا ځخه به خوشحاله سي اوكه دگل درخته دمځكي ځخه راختلي ويني دليل دی چي دده دكور خلک به كامل وي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي گل كم همته او بد عهده سړی دی چي دچا سره وفانه كوي اوكه ويني چي چا ته يي گل وركړيدی يا يي غورزولي دی دليل دی چي دداسي بي وفا سړی دملگرتيا ځخه به ليري سي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي گل خط دی چي دغايب ځخه به ده ته ملاوسي اويابه غايب سړی راسي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي گل ليدل په شپږو وجووي. ۱: زوی ۲: دوست ۳: كم همته ۴: مينځه ۵: غلام ۶: دغايب خط.

## گل شكر \ گل قند

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي گلقند او گل انگبين دخوړلو پر قدر اوغنيمت او حلال مال دليل دی اوكه ويني چي دده سره گلقند او گل گبين دی او خوړلي يي دی كه مالدار وي نومال به يي ښه زيات سي اوكه ناجوړه وي نوشفا به حاصله كړي. اوكه غمجن وي نو خوشحاله به سي اوكه قرضدار وي نو دقرض ځخه به خلاص سي.

## گل خوردن \ خټي خوړل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب كي ويني چي خاوره يي خوړلي ده دليل دي چي پر

مړو به بد وايي اوکه ووينې چې ختې دخاورې سره خوري دليل دی چې خپل مال به په عيال خرچ کوي اوکه ووينې چې دنبی ﷺ دقبر مبارك څخه خاوري خوري دليل دی چې حج به کوي او که ووينې چې دکور لار يي په خاورو سره کړې دی دليل دی چې غمجن به سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کي سپينه اوشنه خاوره ليدل پر حلال مال دليل دی اوژړه خاوره ليدل ناجوړي ده او سره خاوره ليدل بازي اوتماشا ده اوتوره خاوره ليدل غم اوفکر دی او په خيرنو اوخرابو اوبو کي ختـه جوړول غم اوفکردی اوکه ووينې چې په ختو کي ډوب سوي دی دليل دی چې په ډير محنت کي به راسي اوخلاصون به نه حاصلوي اوکه ووينې چې دختو څخه دباندي راوتلي دی او خپل بدن او کالي يي ښه صفا کړي دی نو دغم او فکر څخه به خلاص سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په ګرمه علاقه کي ختـه ليدل ديخي په نسبت زياته سخته ده.

## کلبتين\انبور

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کي انبور خادم دی چې په خوبي سره دپاچا دلاسه مال را باسي اوپه خلکو يي خرچ کوي که ووينې چې دده په لاس کي انبور دی دليل دی چې مال او نعمت به ورته حاصل سي اوکه ووينې چې دده انبور ورك سوي دی دليل دی چې ضرر اونقصان به ورته ورسيږي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي که ووينې چې ده په انبور سره يو شي را ايستلي دی دليل دی چې هغونه به دپاچا څخه خوشحاله سي.

## کلم(يو ډول سبزي)\بند ګوبی

کلم دګوبي په ډول يوه سبزي ده ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې دده سره کلم دی او خوړلي يي دی دليل دی چې دښځي څخه به نفع حاصله کړي اوکه بغير دغوښي يي وخوري دليل دی چې لږ فايده به ورته ورسيږي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که چيري خوب کي غوښه او کلم يو ځاي پوخ کړي او ويې خوري دليل دی چې ډيره نفعه به حاصله کړي اوکه ماښام وي نو لږ فايده ده اوکه يي موسمه يي وخته يي خوړلي وي نو دغم او فکر دليل دی او که خوږ وي نو نفعه يي ډيره زياته ده.

## ګلنار\دانارګل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کي دانارګل ليدل پاکيزه اوښه ناوي ده خاصکر که دانارګل په درخته کي ووينې او په خپل موسم کي وي اوکه ووينې چې دانار ګل ددرختي څخه را ايله دی دليل دی چې دپاکيزه اوښه ناوي يا دمينځي ددېدار څخه به جلا سی.

## کلنګ\زاڼي مرغه

زاڼي په خوب کي مسافر سړی دی ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې ده زاڼي نيولي ده يا چاورکړي ده دليل دی چې دمسافر سړی سره به ملاو سي او دهغه سره به نيکي کوي اوکه ووينې چې دده سره د زاڼي وزر يا غوښه ده دليل دی چې دمسافر سړی څخه به راحت حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې زاڼو ته داني اچوي دليل دی چې دمسافرو

او دفقيرانو په ټولګي به سردار سي اوکه ويني چي د زانې خوي لري نو پر فقير کيدو دليل دی.

## ګلو مري

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوك ويني چي دده مری سلامته ده او څه تکليف ورته نسته دليل دی چي امانت اوقرض به ادا کوي اوکه ويني چي دده په مري کي تکليف اوافت ښکاره سوي دی نو تعبير يي داولني خلاف دی. اوکه خپله مري فراخه ويني دليل دی چي روزي به باندي فراخه سي اومري تنګه ليدل د دې خلاف دی او که خپله مري درسته اوقوي ويني دليل دی چي امانتونه به په ښه شان سره په نظر کي ساتي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که ويني چي چا مري څني پريکړي ده دليل دی چي پريکوونکي به پر ده ظلم کوي يا به دده په دين پيغور کوي اود کوم حيوان چي ذبح کول روانه دی که ويني چي خلکو دهغه مري پريکړي ده پر هغه سړی دليل دی کوم چي ددغه څناور سره نسبت لري چي خلک به ظلم باندي کوي اوکه ويني چي دهغه مري يي پريکړيده دليل دی چي کار به باندي مشکل سي اوکه ويني چي دحيوان مري يي پريکړه او دهغه غوښه يي خوړلي ده که دهغه غوښه حلاله وي نو پر حلال مال دليل دی اوکه حرامه وي نو پرحرام مال دليل دی چي حاصل به يي کړي اوکه ويني چي ده دچا مري پريکړه دليل دی چي پر هغه به ظلم کوي يا به دهغه په دين پيغور ورکوي اوکه ويني چي دچا مري يي خفه کړي ده دليل دی چي دخوب ليدونکي عزت اومرتبه به ختمه سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي مري دسړی پر امدني او خرڅ دليل لري اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چي په خوف کي مري خفه کول دمغلوب سړی پر تنګ ژوند دليل لري.

## کليجه\اينه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي اينه پر خوشحاله ژوند نعمت او پر مال دليل لري چي ده ته به حاصل سي او په اساني سره به ورته ملاو سي. اوکه ويني چي دده سره ايني ډيري دی دليل دی چي ډير مال اونعمت به حاصل کړي اوکه ويني چي اينه يي په خله کي ايښي ده او تيره کړي يي نه ده دليل دی چي دده مال اونعمت به دنورو په قسمت کي راسي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي اينه ليدل په څلورو وجو ده. ۱: حلال مال چي په اساني سره به ورته ملاو سي ۲ : فراخه روزي ۳: نعمت ۴: خوشحاله ژوند.

## کليد\چابي\کنجي\کيلي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي چابي خوش قسمته سړی دی که څوك په خوب کي ويني چي چابي يي پيچلي ده او نه ده خلاصه سوي او دروازه خلاصه سوه دليل دی چي بند کارونه به يي خلاص سي او پر دښمن به کاميابه سي او که ويني چي دده په لاس کي ډيري چابياني دی دليل دی چي بزرګي اومرتبه به حاصله کړي دالله تعالی فرمان دی (له مقاليد السموات والارض، سورة الزمر: ٦٣) دهغه سره داسمانونو او دمځکی چابياني دی. ابراهيم کرمانی رحمه الله

ویلي دی چي په خوب کي چابي دخیر ددروازي خلاصول او دشر ددروازو بندیدل دی اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي د دروازي بندولو چابي نکاح کول دی اوکه وویني چي دجنت ددروازی چابي د ده په لاس کي ده دلیل دی چي په دین کي به پاچا سي. دانیال علیه السلام ویلي دی که وویني چي دده سره داوسپني چابي ده نو پرقوت اونیکي دلیل دی او که وویني چي دده سره دسپینو زرو یا دتانبي چابي ده دلیل دی چي دده خبره به جاري وي اوکه وویني چي دده سره دلرګي چابی ده نو پر لږي نیکي دلیل دی اوکه ووینی چي دده سره دسرو یا سپینو زرو چابی ده دلیل دی چي نوم به یي لوړ سي اوبیان کوي چي ده ته به خزانه ملاو سي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي څونه چابیاني زیاتي وي هغونه به یي مال زیات سي او داهم وایي چي چابی دالله تعالی څخه دعا استغفار او مراد غوښتل دی اوکه ووینی چي چابی یي پر جرنده ایښي ده او دروازه یي خلاصه ده دلیل دی چي حاجت به یي روا وي اوکار به یي خلاص سي اوکه ووینی چي چابی په جرنده کي ماته سوي ده دلیل دی چي دعا به یي خالصه نه وي او که ووینی چي چابی په جرنده کي ماته سوي ده دلیل دی چي دعا به یي خالصه نه وي اوکه ووینی چي په یوه چابی یي ډیري جرندي خلاصي کړي او دروازي یي خلاصي دی دلیل دی چي دښایستي ښځي سره به نکاح کوي. حافظ معبر رحمه الله علیه ویلي دی چي که څوك پخپل لاس کي چابی ووینی نو لمونځ ګذاري به حاصله کړي اوکه ووینی چي چابي ځني ایله سوه نو په لمونځ کي به بیکاره او سست وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی چي په خوب کي چابی په اتو وجو ده. ۱: دکارونو فراخي ۲: دغم څخه فراغت ۳: دناجوړي څخه شفا ۴: مراد حاصلول ۵: ددین قوت ۶: حج کول ۷: ددعا قبولتیا ۸: دعلم زده کول.

## کلیدان \ د چابي ځاي \ کلیبند

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که ووینی چي کلیدان بغیر دزحمت څخه ژر خلاص سوي دی دلیل دی چي دده ددین او ددنیا کارونه به فراخ وي اوکه ووینی چي په مشکله خلاصه سوي ده نو د دې تعبیر خلاف دی اوکه ووینی چي کلیدان یي نه سو خلاصولاي او دروازه بنده پاته سوه دلیل دی چي کار به یي بند سي او دنیك حالي څخه به بد حاله سي او جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دی چي که ووینی چي کلیدان ژر خلاص سویدی دلیل دی چي دغم څخه به خلاص سي اوکه ناجوړه وي نو ژر به شفا حاصله کړي اوکه غلام وي نو ازاد به سي اوکه څه ضرورت یي وي نو پوره به سي او دعا به یي قبوله سي اوکارونه به یي په انتظام سره سي.

## کلیسا \ ګرجه

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دی که ووینی چي ګرجې ته تللي دی او په هغو کي یي دقبلي طرفته لمونځ کړیدی دلیل دی چي دګناه څخه به توبه کوي اوپه دین کي به قوی سي ځکه چي ګرجه دعبادت ځاي دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دی که ووینی چي په ګرجه کي دی دلیل دی چي دده رغبت به دبت پرستو طرفته وي خاصکر که دهغو دقبلې طرفته یي لمونځ کړي وي. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دی که ووینی چي مندر ته تللي دی که خوب لیدونکي پرهیزګار وي نو

خراب به سي خاصكر كه په هغه كي يي استوګنه اختيار كړي وي.

## ګليم\كند\زاړه كالي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي زاړه كالي رئيس او سردار دی كه خوب ليدونكي لوی سړی وي دليل دی چي دده بزرګي او مرتبه به نوره هم زياته سي اوبعض اهل تعبير بيان كړي دی چي صالح اونيك سړی به وي او په فقيرانو كي به ديندار وي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی چي كه څوك په خوب كي ويني چي زاړه كالي يي پيدا كړي دی دليل دی چي دمالداري ښځي سره به واده كوي اوكه داخوب ښځه ويني دليل دی چي خاوند به كوي او دهغه څخه به خير او نفع حاصلوي. اوكه ويني چي پرزړو كالو ناست دی دليل دی چي ښايسته پرهيزګاره اوموافقه ښځه به كوي اوكه ويني چي شنه زاړه كالي دی دليل دی چي دپرهيزګاره او جنګيالۍ ښځي سره به واده كوي اوكه سري وي نو دعيش پسندي ښځي سره به واده كوي اوكه ژړ وي نو دناجوړي ښځي سره به واده كوي اوكه توركالي وي نو دزاهدي اوعابدي ښځي سره به واده كوي اوكه دډيرو رنګونو وي نو په هغه ښځي كي به پورته ذكر سوي صفتونه وي اوكه ويني چي زاړه كالي يي اغوستي دی دليل دی چي دپرهيزګاره سردار په پناه كي به وي او دهغه څخه به نفع حاصله كړي اوكه زاړه كالي يي دځان څخه ليري غورزولي وي او ورك سوي وي نو ددې تعبير خلاف دی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي زاړه كالي ليدل په پنځو وجو وي. ۱: رئيس سړی ۲: بزرګ او پرهيزګار ۳: مالداره ښځه ۴: مينځه ۵: خير او نفع.

## كمان\لينده

دانيال عليه السلام ويلي دی كه ويني چي لينده يي دغشي څخه بغير راكښلي ده دليل دی چي په سفر به ځي او دفايدي سره به واپس راځي اوكه د راكښلو په وخت لينده ماته سويده دليل دی چي سفر به يي ختم نه سي اوممكنه ده چي په لاره كي به ورته ضرر اونقصان رسږي. اوكه څوك په خوب كي ويني چي چا ورته لينده وركړي ده دليل دی چي زوي يا ورور به يي وسي اوكه ويني چي دده لينده ماته سوي ده دليل دی چي دشرف اوبزرګي څخه به ولوېږي يا به دده څخه وركه سي اوكه ويني چي په لينده كي غشي اچوي دليل دی چي ده ته به ديو لوی سړی خط ملاو سي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په لينده كي غشي اچول دليل دی چي حقه اوباطله خبره به كوي دغشي دنيغ والي اوكوږوالي مطابق اوكه ويني چي دځان لپاره يي لينده جوړه كړي ده دليل دی چي دعجمو دپاچا څخه به ورته شرف او بزرګي حاصله سي يا به دعجمي ښځي سره واده كوي او زوی به يي پيداسي اوكه ويني چي په لينده تير اندازي نه سي كولاي دليل دی چي ده ته به دپاچا څخه يا ددغه ښځي څخه فايده نه وي اوكه ويني چي لينده يي خرڅه كړيده يا يي چاته وركړي ده دليل دی چي دده دشرف او بزرګي نقصان به وسي اوبعض اهل تعبير وايي چي دلينده تعبير اوږد ژوند دی. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دی كه ويني چي دده سره نوي اوپاكه لينده ده دليل دی چي ښځه به كوي اوكه ويني چي لينده يي راكښلي ده

دليل دی چي پايداره ښځه به کوي. اوکه ويني چي لينده ورکه سوي ده دليل دی چي دښځي ځخه به جلا سي اوکه ويني چي دده لينده سخته وه او دراکښلو په وخت کي نرمه سوه دليل دی چي دښځي سره به نکاح کوي او دده کار به په اساني سره وسي اوکه سفر کوي نو مبارك به سي او مراد ته به ورسيږي اوکه ويني چي لينده نرمه وه او دراکښلو په وخت سخته سوي ده نو د دې تعبير خلاف دی اوکه ويني چي پخپل لاس يي دځان لپاره لينده جوړه کړي ده دليل دی چي کامیابه به سي اوکه ويني چي لينده يي خرڅه کړي ده او دهغه قيمت يي روپي يا اشرفۍ اخيستي دی دليل دی چي دنيا به په دين خوښوي او که دلينديي قيمت يي دروپي ځخه علاوه بل څه اخيستي وي دليل دی چي مراد به يي پوره سي اوکه ويني چي لينده ورته په بخشش کي ملاو سوي ده دليل دی چي ژر به ښځه کوي او پر دښمن به کامیابی حاصله کړي اوکه ويني چي په کماندان کي يي لينده ايښي ده دليل دی چي ددنيا ځخه به رخصت سي. اوکه ويني چي دده سره پاکيزه اوښه لينده ده دليل دی چي نيك کار خيرات او حسنات به کوي او حج به ادا کړي اوالله تعالی ته به نزدی سي دالله تعالی فرمان دی (فکان قاب قوسين او ادنی، سورة النجم: ۹) پس ددوو لينديو دموټي په اندازه بلکه دهغه ځخه هم نزدي سو. اوکه ويني چي دده سره ډيري لينديې دی دليل دی چي دده به ډير دوستان وي چي دمصيبت پر وخت به دده مدد کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي لينده ليدل په شپږو وجو وي ۱: سفر ۲: زوی يا ورور ۳: ښځه ۴: قوت ۵: نيك کار ۶: په کارونو کي درست سړی.

## كمان \ حلاجي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دنداف لیده پيغور ورکوونکي سړی دی که ويني چي دده په لاس کي دنداف لينده ده دليل دی چي نفاق به کوي اوکه ويني چي دده سره دنداف لينده ده اوپيژني نه چي دده ده نو بدي به کوي.

## كمانه \ په اسمان کي ژړه سره اوزرغونه \ سره اوزرغونه \ قوس قزح

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که په خوب کي په اسمان کي ژړه او زرغونه ويني دليل دی چي په دغه ملك کي به خلک په ناجوړي اخته سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي که ويني چي په هغه کي دسوروالي ځخه شين والي زيات دی نو د دې تعبير داولني خلاف دی. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي په اسمان کي سوروالي دستنو په ډول دی دليل دی چي ددغه ملک پاچا ته به قوت اوکامیابي وي اوکه توري ستني ويني نو د دې تعبير داولني خلاف دی.

## كمان \ كروهه (يو قسم لينده)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کمان کروهه ليدل دپاچا کار دغم او فکر سره دی اوکه ويني چي لينده دده په لاس کي ده او دهغي ځخه يي ټوپۍ غورزولي ده دليل دی چي چاته به خرابه خبره او ښکنځل کوي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي په دغه

ليندي سره دخلکو ټوپي کښته وي دليل دی چي دخلکو تنګولو په وجه به غمجن سي اوکه وويني چي دده کمان کروهه ماته يا ورکه سوي ده دليل دی چي چا ته به تکليف نه ورکوي.

## کمر بند

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که وويني چي کمر بند يي تړلي دی دليل دی چي يو سړی به دده مددګار سي اوبعض وايي چي دده مددګاران زامن اوخپلوان دی اوکه وويني چي کمر بند په ملغلرو اوجواهراتو پيبيلي دی دليل دی چي دهغه دقيمت مطابق به مال حاصل کړي او په هغه سره به يي مددګار قوي سي او ممکنه ده چي دده زوی به پيداسي چي په ټولو قبيلو کي به بختور او دولتمند وي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی که وويني چي دده پر ملا دوه دري کمر بنده تړل سوي دی دليل دی چي مال اونوکران به يي زيات سي اووايي چي عمر به يي اوږد سي اوکه وويني چي چا ته يي کمربند ورکړي دی اوده پر ملا تړلي دی دليل دی چي په سفر به ځي اوکه وويني چي کمر بند يی ځيري يا را ايله سوي دی اوورك سوي دی دليل دی چي دده دمال او بزرګي نقصان به وسي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي که وويني چي دده کمربند په جواهراتو پيبيلي دی دليل دی چي دقوم سردار به سي او دده کور والا به دده په وجه دولتمنده سي اوکه وويني چي چا ورته کمر بند دتوری سره ورکړي دی نو دپاچا لپاره به سفر کوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي کمر بند ليدل په شپږو وجو دی. ۱: دپلار يا ورور يا دخپلوانو دطرفه نفع ۲: زوی ۳: بزرګي اوپناه ۴: اوږد عمر ۵: انصاف اومراد حاصلول ۶: ددين پاکوالی اوکه پر ملا کمربند تړل سوي وويني دليل دی چي ددښمنانو څخه به انصاف حاصل کړي ليکن نيم عمر به يي تير سوي وي.

## ګم شدن\ورکيدل\ورک

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که څوك په خوب کي وويني چي ورك سوي دی چي کوم ځاي دی ورك وي نو هلته به ورك سي ځکه چي دی به يې نه پيژني اوکه وويني چي دده عيال يا زوی ورك سوي دی دليل دی چي دهغه په وجه به غمجن سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که وويني چي دده څخه يو شي ورك سوي دی که هغه شي په تعبير کي نيك وي دليل دی چي دده ضرر به زايل سي او دده کار به په انتظام سره سي اوکه هغه شي په تعبير کي بد وي نو غم او ضرر به ځني ختم نه سي او کار به يي په انتظام سره نه وي.

## کمند\دام

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي وويني چي دام يي اچولی دی او څوك سړی يي پکښي نيولي دی دليل دی چي ددام په اندازه به ديو بزرګ څخه مدد غواړي اوکه وويني چي دام يي اچولي دی او دچا په څټ کي ايله سوي دی دليل دی چي دکمزوري سړی څخه به مدد غواړي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که وويني چي کمند دده په لاس کي پروت دی دليل دی چي ديو مسافر سړی څخه به مدد غواړي اوکه کمند يي اچولي وي او دښمن يي نه دی نيولي دليل دی چي څوك به هم د ده مدد نه کوي.

## کناره\بېري\بیره(یو ډول میوه)

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي بیره پاك مال دی او دمیوي څخه په یوه میوه کي د دې خاصیت نسته اووایي چي د ادم علیه السلام میوه په جنت کي بیره ده اوکه ووینې چي بیره یې خوړلي ده دلیل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي خاصکر بیره حلال مال اوفراخه روزي ده که ووینې چي دبیرو ډیران ورسره دی نو ډیر مال به حاصل کړي.

## ګناه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چي ګناه یې کړې ده او معلومه ورته نه ده چي دڅه قسم ده نو دلیل دی چي په ګناه اوفتنه کي به راسي او ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ګناه کول جرم اوګناه ده، ده ته توبه ایستل پکار دی چي دالله تعالی دعذاب څخه په امن کي سي او کار یې درست سي.

## ګنبده

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب ګنبده ښځه ده که په خوب کي پاکه ګنبده ووینې او پیژني چي دده ده دلیل دی چي دښایسته ښځي سره به واده کوي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کی ګنبده شرف اوبزرګي ده اوکه ووینې چي په غټه ګنبده کي دی دلیل دی چي خیر اونفع به ورته حاصله سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ګنبده لیدل په څلورو وجو وي. ۱: ښځه ۲: مینځه ۳: نفع ۴: عزت او مرتبه.

## ګنج\خزانه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که ووینې چي ده خزانه پیدا کړي ده دلیل دی چي ناجوړه به سي یا به یې زړه ته غم رسیږي اوکه خزانه یې ورکه سوي وي نو تعبیر یې داولني خلاف دی او ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي خزانه حاصلوونکی به په یو خراب ځای کي ناجوړه یا هلاك سي اوکه په اباد ځای کي خزانه پیدا کړي نو دناجوړي څخه به شفا حاصله کړي.

## کنجد\کونځلي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي کونجدي پیداکول مال دی چي هره ورځ زیاتیږي اوکه ووینې چي دده سره کونجدي دی اوهغه خوري دلیل دی چي دهغه په اندازه به نفع حاصله کړي اوکه ووینې چي بې خونده کونجدي یې خوړلي دی دلیل دی چي حرام مال به حاصل کړي او بعض اهل تعبیر بیان کوی چي ده ته به غم او فکر رسیږي.

## ګنده\پیر\بوډا\بوډۍ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي بوډۍ ښځه دنیا ده اوغټ بوډا مسلمان دی چي په کالو ښایسته دی، دلیدلو یې دا دلیل دی چي حلال مال به حاصل کړي اوکه په خوب کي ووینی چي غټ بوډا په خیرنو کالو کي دی اوکافر دی د دې تعبیر حرام مال دی اوبوډۍ اوښه کالو والا دا جهان اوهغه جهان دی او که ووینې چي دبوډي مسلماني ښځي سره یې واده کړي دی دلیل دی چي مال به حاصل کړي. اوکه ووینې چي بوډي ښځه ده دکور څخه ایستلي ده یا

يې ورته طلاق ورکړي دی دليل دی چې دترك دنيا کوشش به کوي او اخرت به تلاش کوي اوکه ووينې چې دغتې بوډۍ ښځې سره يې جماع کړې ده دليل دی چې ددنيا مراد به حاصل کړي.

**كندر (يو قسم خواږه)**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې کندر يې خوړلي دی يا ژوولي دی نو دژولي په اندازه به دچا سره جنګ کوي يا به دهغه شکايت کوی جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کې ووينې چې دده سره کندر دارو دی دليل دی چې غمجن به وي ځکه چې کندر ترخه دي او دليل يې غم دی.

**كندش \ د پرنچې راوستلو دوا \ د نوړې راوستلو دوا**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې دده سره ډير کندش دي دليل دی چې ناجوړې به يې اوږده سي او اخر دا چې شفا به حاصلوي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که وګوري چې کندش خوري دليل دی چې په رنځ اوبلا کې به ګرفتار سي اوکه وګوري چې کندش يې په پزه کې اچولي دی او نوړې يې وکړې دليل دی چې دده مرادبه په مشکله سره پوره سي.

**ګندم \ غنم**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلی دی چې په خوب کې غنم حلال مال دی چې خلکو ته په تکليف سره حاصليږي اوکه ووينې چې ده غنم خوړلي دی دليل دی چې صالح او ديندار به سي اوکه پخ کړي يې خوړلي وي نو غمجن به سي اوکه ووينې چې دده خوله ترنس پوري ډکه ده دغنمو څخه دليل دی چې دده عمر ختم سوي دی. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې دغنمو وږي خوري دليل دی چې په دغه ملک کې به قحط اوتنګي ښکاره سي دالله تعالی فرمان دی (سبع سنبلت خضر واخر يابسات، سورة يوسف: ٤٦) ترجمه: اوه وږي شنه او نور وچ. اوکه ووينې چې غنم کرې يې دي دليل دی چې الله تعالی به په دغه ملک کې غله ارزانه کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې غنم ليدل په درو وجو وي. ۱: دولايت څخه معزول کيدل ۲: نفرت ۳: مسافري. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې وريت سوي غنم خوري دليل دی چې څه نفع به حاصله کړي اوکه ووينې چې غنم يې پر وخت ريبلي دی دليل دی چې ډير مال به په تکليف سره حاصل کړي اوپه خوب کې غنم خرڅونکي داسي سړی دی چې ددين په عوض کې دنيا اختياروي.

**ګندنا**

دانيال عليه السلام ويلي دی چې په خوب کې ګندنا داسي سړی دی چې خلک يې په دوستي سره يادوي او ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې ګندنا حرام مال اوخرابه خبره ده اوکه خوب ليدونکي مصلح او پرهيزګار نه وي دليل دی چې حرام مال به حاصل کړي او هميشه به خرابي خبري اوري او په خوړلو کې يې هيڅ قسم فايده نسته.

**كندوا \ د شاتو مچمچۍ**

که څوك په خوب کې ووينې چې دګبين مچي يې نيولي ده يا چا ورکړيده دليل دی چې قاصد

به ورته راځي او دي به خوشحالوي اوعزت به حاصل کړي اوځلور ورځي وروسته به د ښځو دطرفه مقصود او مراد حاصل کړي خاصکر که دا خوب دورځي ويني.

### کنشت\کنيست\د يهودو عبادت خانه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي په کنشت کي ناست دی او دقبلي طرفته يي لمونځ کړي دی دليل دی چي پرخپل کار به توبه وباسي او دالله تعالی طرفته به رجوع وکړي او په دين کي به قوي سي ځکه چي کنشت دعبادت ځای دی او که ديهودو دقبلي ته لمونځ وکړي دليل دی چي ديهوديانو سره به محبت لري. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی که خپل ځان په کنشت کي ويني دليل دی چي دبي دينو خلکو په خبرو کي به کار کوي او جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي کنشت او ګرجه ليدل دمصلح سړی لپاره خير اونيکي ده او دمفسد سړی لپاره شر اوفساد دی.

### کنګر (دغره يو ډول بوټی)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي په خپل موسم کي کنګر خوري دليل دی چي غم او فکر به ورته رسيږي اوپه خوب کي کنګر خوړل فايده مند نه دی اوکه کنګر ورسره وي اوخوړلي يي نه وي نو غم اوفکر به يي کم وي.

### ګنګی\ګونګي توب

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوك په خوب کي ويني چي ګونګي سوي دی دليل دی چي فقير اوبد حاله به سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی که څوك په خوب کي خپل ځان ګونګي ويني نو دا دده پر تباهي او ددين پر نقصان دليل دی دالله تعالی فرمان دی (صم بكم عمى فهم لا يرجعون، سورة البقرة: ۱۸) کاڼه دی ګونګيان دی او ړانده دی او دوي رجوع نه کوي حق ته. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي په خوب کي ګونګي کيدل په اوو وجو وي. ۱: فقيري ۲: بدحالي ۳: غم اوفکر ۴: دژوند نقصان ۵: مصيبت ۶: دمال نقصان ۷: ددين نقصان اوکه ګونګي په خوب کي ويني چي دده ژبه به خلاصه سي دليل دی چي دده بند کارونه به خلاص سي.

### کنه\کوني (کوچني شپږه)\ريچه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ريچه دخلکو عيال دی که په خوب کي ويني چي ريچه دده بدن خوري دليل دی چي دهغه په اندازه به مال دده عيال خوري اوکه ويني چي پر ځاروي ډيري ريچې دی دليل دی چي خلک به ددغه ځارويو څخه فايده ويني او جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که ويني چي ريچه يي دخپل ځان څخه ليري غورزولي ده دليل دی چي عيال به دخپل ځان څخه ليري کړي اوکه ويني چي دخپلو ځاريو ريچې نيسي او غورزوي يي دليل دی چي چاته به فايده نه رسوي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ريچه ليدل په درو وجو دي. ۱: عيال ۲: نوکران ۳: مال او ډير مطلبونه. اوکه ويني چي ريچه يي مړه کړي ده دليل دی چي په تيرو سوو بيان سوو شيانو کي به نقصان پورته کوي.

## کنيزک\مينځه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي مينځه خير اونيکي ده څونه چي دهغې ښايست وي که څوك ووينې چي دده سره ښايسته مينځه ده دليل دی چي خوب ليدونکي ته به په پټه څه شي ورسيږي اوپه هغه سره به فکر مند سي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي مينځه مال دی که ووينې چي مينځه يي اخيستي ده نو پر خير اونيکي دليل دی اوکه خرڅه کړي يي وي او دهغه پيسي يي اخيستي وي دليل دی چي غمجن به سي اوکه اخيستي يي وي نو خوشحاله به سي اومال به حاصل کړي اوکه ووينې چي مينځه لڅه ده دليل دی چي نقصان به ورته ورسيږي اوکه ووينې چي دښايسته مينځي مخ يي پټ کړي اوکور ته يي راوستله دليل دی چي خوشحاله به سي او نفع به ورته حاصله سي.

## کهربا

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که څوك په خوب کي ووينې چي دده سره کهربا ده دليل دی چي ناجوړه به سي اوژر به شفا حاصله کړي اوبعض اهل تعبير وايي چي دده ناجوړي به اوږده سي.

## گوارش\ جوارش (يو ډول دوا)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خواږه جوارش پر خير اونفع او خوشحالي دليل لري اوترخه اوبي خونده پر غم اوفکر تکليف اوفساد دليل لري او خوشبودار جوارش پر مدح او ثنا دليل لري او دبد بوداره تعبير د دې خلاف دی. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خواږه جوارش خوړل غم اوفکر دی او خوشبودار جوارش پر مدح اوثنا دليل دی.

## گوال\ جوال\ بوری\ گونی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوف کي بوري پر عالم سړی دليل دی او څه شيان چي په هغه کي وي ښه اوبد دی په قول د علی رضي الله عنه يي دليل راوړي دی دوي ويلي دی (ان القلوب واعية) زړونه محافظ دی جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی که بوري نوي پاکه اوفراخه وي نو پر ډيره نفع دليل دی کنه نو لږه نفع به ورته حاصله سي.

## گوديها\شيره\رس

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دټولو رسونو څخه زيات ښه دکجور رس دی د دې څخه وروسته دبادامو اوبيا د ډوډي دی او دټولو څخه کم فايده مند دخشخاشو دی که ووينې چي دکجوري شيره خوري دليل دی چي دهغه په اندازه به دبخيل سړی څخه مال حاصل کړي اوکه دخشخاشو شيره يي خوړلي وي دليل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي ليکن فايده به يي کمه وي اوکه ووينې چي د ډوډي شيره يي چيښلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه دپرهيزگاز سړی څخه مال حاصل کړي اوکه ووينې چي دده سره ذکر سوي ټولي شيري موجودي وي او دهغه څخه يي څه خوړلي دي نو پورته بيان سوي شيان به ورته حاصل سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي خواږه اوخوند ناکه شيره پر نيکي دليل لري او ترخه اوبي

خونده پر بدي دلیل لري.

## ګور\قبر\لحد

دانیال علیه السلام ویلي دی چي دقبر تعبیر قید خانه ده که ویني چي دده دځان لپاره قبر کنبلي دی دلیل دی چي حال به یي تنګ سي اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي دقبر پر ځاي به دځان لپاره کور جوړوي اوکه ویني چي دي خلکو په قبر کي ایښي دی دلیل دی چي دده په حالاتو کي به مشکلات پیښ سي دالله تعالی فرمان دی (ثم اماته فاقبره ثم اذا شاء انشره، سورة عبس: ۲۱ – ۲۲) ترجمه: بیایي مړ کړو او په قبر کي یي کښیښودی بیا چي کله وغواړي نو ژوندي به یي پورته کړي اوکه ویني چي په قبر کي یي ایښي دی اوپر سر یي ورته خاوري اچولي دی دلیل دی چي ددین نقصان به یي وسي او ددنیا څخه به بغیر دتوبي ولاړ سي ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ویني چي خپل ځان یي په قبر کي ایښي دی دلیل دی چي قیدخاني ته به ځي اوکه ویني چي په قبر کي مړ دی دلیل دی چي په قیدخانه کي به مړ سي اوکه ویني چي دده په کوټه کي قبر کنبل سوي دی دلیل دی چي ژوند به یي اوږد وي اوکه ویني چي پر قبر ولاړ دی دلیل دی چي پر ګناه به قایم ورسیږي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که خپل ځان په قبر کي مړ ویني او دده څخه منکر اونکیر سوال کړي وي دلیل دی چي ددغه ملك پاچا به دده مطالبه کوي اوکه منکر اونکیر ته یي غلط جواب ورکړي وي دلیل دی چي دپاچا په عذاب کي به عاجز سي اوکه ویني چي دی یي دقبر څخه را ایستلي دی او پانسي یي ورته ورکړي ده اوبیا یي په قبر کي ایښي دی دلیل دی چي پاچا به پر ده مهرباني کوي اوانعامي کالي به ورته اغوندي اوبیا به یي په قیدخانه کي اچوي اوکه داخوب سوداګر لیدلي وي نو دهغه شمار به په سوداګري کي وي او دهریو شمار دخپل جنس سره دی اهل تعبیرو ته پکار دی چي دشیانو قیاس په ښه شان سره وکړي چي په مغالطه کي رانه سي.

## ګورستان\قبرستان

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي قبرستان دجاهلانو ملګرتیاده چي دین او دنیا یي خرابه ده او غم او پښیماني ده. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ویني چي داهل قبورو زیارت یي کړي دی دلیل دی چي دقیدیانو سره به ملاو سي اوکه ویني چي پر قبرستان باران اوریدلي دی دلیل دی چي په اهل قبورو به دالله تعالی رحمت وي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که مالداره ویني چي قبرونو ته تللي دی اوهغو ته یي سلام کړي دی دلیل دی چي فقیر به سي او دخلکو څخه به خیر غواړي ځکه چي قبرستان دنادارو ځاي دی اوکه ویني چي په معلوم قبرستان کي دی او مړي دقبرونو څخه راوتلي دی دلیل دی چي ددغه ځاي خلک به په بلا او محنت کي اخته سي اوکه ویني چي قبرونه خلاص سویدی اوبعض مړه دی اوبعض ژوندي دی دلیل دی چي په دغه ملك به محنت اوتنګي ښکاره سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي قبرستان لیدل په درو وجو وي. ۱: قید خانه ۲: غم ۳ : محنت او بلا.

## گوز \ غوز

غوز په خوب کي مال دي چي په محنت غم او سختي سره حاصليږي او که ويني چي دغوز سره بازي کوي يا دده په لاس کي دی نو پر جنګ دليل دی ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی چي دکوم غوز مغز خراب سوي وي دهغه دکمي او زياتي مطابق به ورته حرام مال ملاويږي او که دغوز مغز خوندور وي نو پر حلال مال دليل دی او که ويني چي غوز ماتوي دليل دی چي دعجمي سړی څخه به مال حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي دده سره غوز دی دليل دی چي په جنګ کي به راسي او که ويني چي غوز بي خونده او تريخ دی دليل دی چي دبخيل سړی څخه به خرابه خبره اوري او که ويني چي دغوز دمغز څخه يي تيل ايستلي دی دليل دی چي دبخيل سړي څخه به ورته فايده رسيږي.

## گوز هندي \ کوپره

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي چا ورته کوپړه ورکړي ده دليل دی چي نجومي او فالي به سي او که ويني چي کوپړه يي خوړلي ده دليل دی چي ددوي خبره به رښتيا سي او بعض اهل تعبيرو بيان کړيدی چي کوپړه په خوب کي بد سړی دی ياهندي مينځه ده او ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي کوپړه يي خوړلي ده دليل دی چي دنجوميانو خبره به رښتيا ګڼي او په هغوي به اعتقاد لري.

## گوزبويا \ جوز

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي جوز ددين صلاح او دعلم شريعت پيژندل دی که ويني چي جوز يي خوړلي دی دليل دی چي ددين دنيکي لار به اختيار کړي او شريعت به زده کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي دده سره ډير جوز دی او خوري يي او خلکو ته يي ورکوي دليل دی چي په علم او حکمت کي به بي مثاله وي او خلکو ته به فايده رسوي او که چاته يي نه وي ځني ورکړي دليل دی چي دعلم څخه به فايده ده او خلکو ته نه رسوي او بعض وايي چي جوز خوړل پر علم نجوم دليل دی.

## گوييزمين \ خندق \ کنده

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي دمځکي خندق خراب مال دی چي په مکر او چم سره به يي حاصل کړي او که ويني چي په خندق کي پټ سوي دی او دهغه څخه راوتلي نه سی دليل دی چي په مکر او چم سره به په يوکار کي راسي او دهغه څخه به په مشکله راوځي او ځونه چي خندق ژور وي هغونه به کار زيات سخت وي او که ويني چي هغه خندق دته خاني په ډول دی دليل دی چي غل به څه ځني وړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي کنده يا څاه يي کنبلي دی دليل دی چي ديو چا لپاره به مکر اوچم کوي او که ويني چي دهغه څخه يي اوبه را ايستلی دی دليل دی چي په مکر اوچم سره به څه حاصل کړي او ژوند به باندي تير وي او که ويني چي کنده دبل چا لپاره وه نو څه چي موږ بيان کړل دابه هغه سړی ته پيښ سي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي کندي ته ايله سوي دی او دهغه څخه راوتی نه سي

دلیل دی چي په یو غټ کار کي به گرفتاره سي اوخلاصون به نه کړي څني حاصل اوکه د دې خلاف ووینې نو بیا خلاصون دلیل دی.

## کوزه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي داوسپني کوزه خادم دی اوکه دخاوري جوړه وي دلیل دی چي دکوزي دخوبی مطابق به ورته مینځه حاصله سي اوکه ویني چي دکوزي څخه یي اوبه چیښلي دی دلیل دی چي دمینځي سره به جماع کوي اوکه ویني چي کوزه ماته سوي ده دلیل دی چي دده مینځه به مري. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي کوزه مال او نعمت دی که ویني چي دده سره دسرو یا دسپینو زرو کوزه ده دلیل دی چي دخوبني مطابق به ورته مال ملاو سي لیکن په دی کي به تهمت وي اوکه ویني چي دده سره دتانبي یا دکلایي کوزه ده نو بیا مال اونعمت دلیل دی. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي کوزه لیدل په نهو وجو ده. ۱: ښځه ۲: خادم ۳: مینځه ۴: ددین قیام ۵: ډیر عمر ۶: مال ۷: دبدن درستي ۸: خیر او برکت ۹: دښځو میراث او دکوزي راځړولو تعبیر سردار او دامیر لور ده.

## گوساله\دغوا بچی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که په خوب کي ویني چي دغوا بچي یي اخیستي دی یا چا ورته ورکړي دی دلیل دی چي زوی به یي پیداسي اوکه دغوا بچي وي نو لور به یي پیداسي اوکه ویني چي دغوا بچي یي کورته راوستلي دی اولاس یي باندي وهلي دی نو غمجن به سي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دی که ویني چي دغوا بچي دده په کور کي تله راتله کوي نو بیا غم او فکر دلیل دی اوکه ویني چي دځنگلي غوا بچی یي نیولی دی نو بیا زوی دلیل دی اوکه ویني چي دغوا بچی پرملا سپور دی دلیل دی چي دعجمي پاچا سره به ملاوسي اودهغه څخه به مرتبه حاصله کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که ویني چي دده دغوا بچي مړ سوي دی دلیل دی چي دده زوی به مړ سي اوکه ویني چي دده څخه دغوا بچي ورك سوي دی دلیل دی چي دده زوی به دده څخه جلاسي اوکه ویني چي دده سره دغوا بچي دی او ده دهغه غوښه خوړلي ده دلیل دی چي دخپل زوی میراث به خوري. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دی که ویني چي دغوا بچي سپین دی دلیل دی چي دده زوی به پرهیزگار مبارک او مالدار وي اوکه برگ یي ویني نو بیا درمیانه درجي دلیل دی اوکه دغوا بچي قوي او څورب وي دلیل دی چي دده زوی به تندرسته اونیک حاله وي اوکه کمزوري او وچ وي نو د دې تعبیر خلاف دی.

## گوسفند\بزه\سرلی\پوسه\میږه\مږ\وری

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي بزه غنیمت ده که ویني چي بزه پیایي دلیل دی چي په یو ټولگي به عزت او مشري حاصله کړي اوکه ویني چي بعض بزي توري اوبعض سپیني دلیل دی چي په هغه ټولگي کي به عرب او عجم دواړه وي اوکه ویني چي ډیري بزي دی اوپیژني چي دده دی دلیل دی چي ډیر مال به ورته حاصل سي اوکه ویني چي بزه یي په شټ پورته کړي ده دلیل دی چي دچا محنت پر پخپله ذمه اخلي اوکه ویني چي دبزي پخکړي

غوښه یې خوړلې ده دلیل دی چې دهغه په اندازه به ورته مال اوغنیمت حاصل سي اوکه ویني چې سره کړې غوښه یې خوړلې ده نو پر غم اوفکر دلیل دی اوکه ویني چې دخوراك لپاره یې بزه حلاله کړېده دلیل دی چې پر دښمن به کامیابه سي اودهغه مال به خوري. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چې سرلي یې نیولي دي یاچا ورکړیدی دلیل دی چې دده ملګرتیا به دلوی سړي سره وي او دهغه څخه به عزت اومال حاصل کړي اوکه ویني چې دبزې مرې یې پرې کړېده اوهغه یې پرېښې دي دلیل دی چې په لوی سړي به کامیابي حاصله کړي اودهغه څخه مال به اخلي او خرچ کوي به یې اوکه ویني چې په سرلي ناست دی اوهغه دده تابعدار دی دلیل دی چې پر لوی سړي به غالبه سي اوکه ویني چې سرلي پر ده غالب دی نو د دې تعبیر د اول څخه خلاف دی اوکه ویني چې ده دبزې سر او پښې ماتې کړې دی دلیل دی چې مخکې دکوم سړي ذکر سوی دی پر هغه به غالب سي اوکه ویني چې دبزې سر اوپښې قوي او اوږدې دی دلیل دی چې هغه سړی به قوي وي اوکه ویني چې پر پسه باندې اوږد اوږد پشم وو دلیل دی چې دهغه په اندازه به مال اونعمت زیات سي اوکه ویني چې دمېږې څخه یې ډېر پشم اخیستی دی اوپیژني چې دده دي، دلیل دی چې دهغه په اندازه به پر خلکو حکومت کوي او دهغوي څخه به مال اونعمت حاصل کړي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي چې مېږه په خوب کې غټه او سخې ښځه ده په قصه دداود علیه السلام کې الله تعالی ویلي دي (ان هذا اخي له تسع وتسعون نعجة ولي نعجة واحدة، سورة ص: ۲۳) ترجمه: د دې زما دورور ۹۹ بزې دی او زما صرف یوه بزه ده. اوکه ویني چې ده یوه بزه نیولې ده یا چا ورکړېده دلیل دی چې غټه سخې ښځه به دده سره مینه لري او دده غوښتونکې به وي اودهغه څخه به مال حاصل کړي اوکه ویني چې بزه ورکه سویده دلیل دی چې دغه ښځه به دده څخه جلا سي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چې دبزې مرې یې پرېکړې ده دلیل دی چې پر پرهیزګاره ښځه باندې به بهتان لګوي اوکه بزه توره وي نو هغه ښځه به عربی وي اوکه سپینه وي نوهغه ښځه به عجمي وي او دبزې پوست غنیمت او حلال مال دی اوپه خوب کې سرلي لیدل په پنځو وجو وي. ۱: سردار ۲: سرداره ۳: مال ۴: فرمان ۵: مرتبه او نفع.

## ګوشت \ غوښه \ د مختلفو حیواناتو غوښه خوړل په خوب کې

دانیال علیه السلام ویلي دي چې په خوب کې ښونه پخکړې غوښه وخوړل سي پر مال اونعمت دلیل دی چې په اساني سره به یې حاصل کړي خامه غوښه خوړل مال دی چې په غم او سختې سره به یې حاصل کړي او دغوښې اخستل او خرڅول غم اوفکر دی ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې پخکړې غوښه خوړل دوریتې سوي څخه ښه ده او وریته کړه سوي غوښه دکچې غوښه څخه ښه ده اوکه ویني چې دخپل بدن غوښه یې خوړلې ده دلیل دی چې دخپل کور والا غیبت به کوي او بعض اهل تعبیر بیان کړې دی چې داسې کار به کوي چې په هغه سره به پښیمانه سي اوکه ویني چې دخلکو غوښې خوري دلیل دی چې په ناحقه به دخلکو غیبت کوي اوکه ویني چې

څوك يي په پانسي رازړولي دی او دهغه غوښه خوري دليل دي چي حرام مال به خوري اوکه
ويني چي دغټي بزي پخکړي غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي نعمت به حاصل کړي اوکه
ويني چي ذبح کړي بزه يي کورته راوړي ده دليل دی چي دلته به څوك سردار حاصل کړي اوکه
ويني چي دبزي لږ بدن يي کورته راوړي دی دليل دی چي په دغه کور کي به څوك هلاک سي.
جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي ښوربه غوښه په خوب کي ليدل دکمزوری څخه ښه ده اوکه
ويني چي په تازه غوښه يي څوك وهلي دی دليل دی چي هغه به په ژبه خفه کوي اوغيبت به
يي کوي اوکه ويني چي وريته سوي غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به په غم
او فکر سره روزي حاصله کړي اوکه ويني چي دقصاب څخه يي غوښه اخيستي ده او دهغه
قيمت يي ورکړيدی اوکور ته يي وړيده دليل دی چي هلاک به سي. اوکه ويني چي دمار
غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به ددښمن مال اخلي او خرڅوي به يي او
دښمن به مغلوبه کړي اوکه ويني چي داس غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي په خلکو کي به
نيک نام سي او دپاچا څخه به ورته څه ملاو سي اوکه ويني چي داوښ غوښه يي خوړلي ده
دليل دی چي ددښمن مال به اخلي او خوري به يي اوکه ويني چي داوښ د بچي غوښه يي
خوړلي ده دليل دي چي د يتيم مال به خوري او ناجوړه به سي او بيا به شفاء حاصله کړي اوکه
ويني چي دعقاب مرغه غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دظالم پاچا څخه به ورته روپي
حاصلي سي او که ويني چي دهوسۍ غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي هغونه به دښايسته
ښځي څخه مال حاصل کړي اوکه ويني چي دبزي غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي ددښمن
څخه به ورته مفت مال حاصل سي او خرڅ به يي کړي. اوکه ويني چي دتوتکي غوښه يي
خوړلي ده دليل دی چي په مصيبت کي به گرفتاره سي يا به ناجوړه سي اوبعض اهل تعبير بيان
کړي دی چي دتوتکي غوښه په خوب کي خوړل ددښمن مال خوړل دی اوکه ويني چي دبطي
غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به مال اونعمت حاصل کړي اوکه ويني چي
دپړانگ غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي په جنگ کي به نوم وگټي او عزت به حاصل کړي
اوکه دچرچڼي غوښه يي خوړلي وه دليل دی چي دی به د دولت مند سړي يا خپل زوي څخه مال
حاصل کړي اوکه ويني چي دبيزو غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي ناجوړه به سي اوکه
ويني چي دفيل غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دپاچا څخه به مال حاصل کړی اوکه ويني
چي دچرخ مرغ غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دظالم پاچا څخه به ورته نفع حاصله سي اوکه
ويني چي دزرکي غوښه يي خوړلي ده نو دغدار سړي مال به خوري اوکه ويني چي دگونگي
غوښه يي خوړلي ده نو دغلا مال به خوري اوکه ويني چي دخره غوښه يي خوړلي ده دليل دی
چي حرام مال به خوری اوکه ويني چي دسويي غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دښځي مال
به خوري اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي دوراثت مال به حاصل کړي اوکه ويني چي
دچرگ غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دعجمي سړی مال به خوري اوکه ويني چي دچينجی
غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي حرام مال به خوري اوپه اطاعت کي به سستي کوي اوکه

ويني چي دتيتر غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دښځي مال به اخلي او خرڅ به يي کړي اوکه
ويني چي دنولي غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي ناجوړه به سي يا به ورته بيره وي اوکه
ويني چي دسنګ خوار مرغه غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دبيوقوف سړی دمال څخه به
فايده اونفع حاصله کړي اوکه ويني چي دکارغه غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي دمسافر
سړی څخه به خير او نفع حاصله کړي اوبعض وايي چي ددنيا په زينت اودده په کمال دليل دی
اوکه ويني چي دسپي غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي په دښمن به کامیابه سي او دسنجاب
مرغه غوښه خوړل دمسافر سړی غوښه خوړل دی او دسيمرغ مرغه غوښه خوړل دلوی سړی
څخه مال حاصلول دی اوکه دباز غوښه يي خوړلي وي نو دظالم سړی دمال څخه به نفع حاصله
کړي اوکه دبزي دبچي غوښه يي خوړلي وي دليل دی چي ګمراه به يې ورته ملاويږي اوکه
ويني چي دزمري غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي په تجارت کي به د خپلوانو سره جنګ
کوي اوکه ويني چي دطاوس غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي مال اونعمت به حاصل کړي.
اوکه دطوطي غوښه خوري نو بي فايدي علم به زده کوي اوکه ويني چي دګګوشتکي غوښه
يي خوړلي ده دليل دی چي دښايسته ښځي څخه به نفع حاصله کړي اوکه دغوا غوښه وخوري
نو ډير مال به حاصل کړي اوکار به يي په انتظام سره وي. اوکه ويني چي دځنګلي غوا غوښه
يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به ورته دښځي يا دمينځي دمال څخه نفع ورسيږي
اوکه دکوتري غوښه وخوري نو دښځي دمال څخه به ورته نفع وي اوکه دپيشو غوښه وخوري
نونفع به حاصله کړی اوکه دليوه غوښه وخوري نو دظالم پاچا څخه به حرام مال حاصل کړي
اوکه دشمشتي غوښه وخوري نو دعالم څخه به علم حاصل کړي اوکه دکوني کبر غوښه وخوري
نو بوډي ښځه به جادو باندي کوي اوکه دعقيق مرغه غوښه يي خوړلي وي نو دځنګلي سړی
مال به خوري اوکه ويني چي دځنګلي خره غوښه يي خوړلي وي دليل دی چي مال اونعمت به
حاصل کړي اوکه دچرګي غوښه يي خوړلي وي نو دمينځي يا خادم دطرف څخه به ورته مال
حاصل سي اوکه دماهي غوښه يي خوړلي وي دليل دی چي دښځي دمال څخه به څه خوري او
دهيلۍ غوښه خوړل په بزرګي او ولايت دليل لري اوکه ويني چي دمږي غوښه يي خوړلي ده
دليل دی چي بدي به کوي اوکه ويني چي دمګرمچ غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي غم
اومصيبت به ورته رسيږي اوکه دهدهد ملا چرګك غوښه يي خوړلي وي نو دبزرګ او هوښيار
سړی څخه به ورته نفع حاصله سي اوکه دهما مرغه غوښه يي خوړلي وي دليل دی چي دپاچا
څخه به ورته خوشحالي ملاو سي او مرتبه به يي پورته سي اوکه ويني چي دبلبلي غوښه يي
خوړلي ده دليل دی چي دښځي يا زوی يا غلام څخه به ورته نفع وي اوکه ويني چي دبانبي
غوښه يي خوړلي ده دليل دی چي ددښمن مال به خوري اودپړانګ غوښه خوړل هم ددښمن دمال
په خوړلو دليل لري. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي دځناور غوښه خوړل په
څلورو وجو وي. ۱: مال ۲: ميراث ۳: مالداري ۴: مصيبت او فکر.

## ګوش \ غوږ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که څوك په خوب کي ووينې چي دده غوږ ايله سوي دی يا پريکړي دی دليل دی چي ښځي ته به طلاق ورکوي يا به يي لور مړه سي يا به ديو بل څخه جلاسي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي دده مرګ نزدی سوي دی اوکه ووينې چي کوڼ سويدی او څه نه اوري نو دا دده ددين او ديانت پر فساد دليل دی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي غوږ ليدل په اتو وجو دی. ۱: ښځه ۲: خير او نفع ۳: دوست ۴: يو ځای ته تلل ۵: زوی ۶: غلام ۷: مال او مراد ۸: ببيره.

## ګوشوار \ غوږوالي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چي دده په دواړو غوږونو کي والي دی دليل دی چي دده ښايست به د اول څخه زيات سي اوکه ووينې چي په دواړو غوږونو يي قيمتي ملغلري راځړيږي دليل دی چي علم او قران کريم به زده کړي او هوښيار او عالم به سي اوکه ملغلري په يو غوږ پوري ووينې اوپه بل غوږ پوري ونه وينې دليل دی چي علم اوقران کريم به زده کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چي دده سره دوه والي دی دليل دی چي عزت اومرتبه به حاصله کړي اوکه سرې ووينې د ده څخه والي ورک سوي دي دليل دي چي دده دښځي ته به طلاق ورکوي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي والي ليدل په څلورو وجو دی. ۱: ښايسته زوی ۲: علم اوقران زده کول ۳: بزرګي ۴: ښځي ته طلاق ورکول او غم اوفکر دی.

## کوشک \ محل \ ماڼۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي که څوك په خوب کي ووينې چي يو محل ته تللي دی دليل دی چي ښه مال به ورته حاصل سي خاصکر که محل داومو خښتو يا دخاورو وي اوکه دپخو خښتو يا دخاوروی نو پر مال دليل دی ليکن په دين کي به يي نقصان وي اوکه ووينې چي پاچا ورته محل ورکړي دی دليل دی چي دپاچا څخه به مال حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چي دده محل خراب دی دليل دی چي مال به يي ختم سي اوکه ووينې چي دده په محل کي اور لګيدلي دی دليل دی چي پاچا به تاوان ځني اخلي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي محل ليدل په اتو وجو وي. ۱: نعمت ۲: ولايت ۳: مرتبه ۴: رياست ۵: مشري ۶ پاچاهي ۷: خوشحالي ۸: دمحل دلوړوالي او دخوبي مطابق به خوشحالي واده اومرتبه حاصله کړي.

## ګوګرد \ ګوګړ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي ګوګر ليدل غم اوفکر دي او څه خير پکښې نسته.

## کودک \ معصوم \ ماشوم \ کوچنی

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کی ماشوم والی غم اوفکر دی اوکه ووينې چي ماشوم سويدی او دمعلم په مخکي کي کتاب وايي دليل دي چي په غم اوفکر کي به ګرفتار سي ځکه چي ماشوم دفساد څخه صلاح غواړي او اهل تعبير وايي چي که خپل ځان ماشوم ووينې نو کار

به يي كمزوري سي ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي كه ويني چي د ده په مخكي وريت سوي ماشوم پروت دي او ده خوړلي دي دليل دي چي دي به ډير خير حاصل كړي او هغه ماشوم به لويي مرتبي ته رسيږي، ابراهيم كرماني رحمه الله ويلي دي چي ښائسته هلك په تعبير كي فريشته ده او بد صورته هلك نفعه ده اوكه ويني چي دي ماشوم سويدي دليل دي چي مقصد ته به نه رسيږي اوكه ويني چي سړي ماشوم ته شيدي وركړي دي دليل دي چي د پيدا كيدو په وخت به ماشوم سلامت وي.

## كوه\غر

دانيال عليه السلام ويلي دی كه خپل ځان پر لوړ غره ويني اوپيژني چي د ده ملكيت دي دليل دی چي ديو بزرگ سړي په پناه كي به سي اوكه ويني چي غره ته ختلي دي دليل دي چي عزت اومرتبه به حاصله كړي اوبعض اهل تعبيرو بيان كړي دي چي كه په مشكله پر غره ختلي وی نو پر غم او فكر دليل دي اوكه ويني چي د غره څخه لاندي رالويدلي دي دليل دي چي د ده بزرگي او مرتبي ته به نقصان ورسيږي اوكه ويني چي دغره پر سر يي ځای جوړ كړي دي دليل دي چي دپاچا څخه به عزت حاصل كړي او د هغه مقرب به سي ابن سيرين رحمه الله ويلي دي كه و ويني چي ده پر غره آذان كړي دي او لمونځ يي كړي دي دليل دي چي د ده كار به په خير او خوبي سره وي، جابر مغربي رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي غر او محل ته ختل د مراد په پوره كيدو دليل دی، او كه ويني چي د غره په لمن كي را ايله سو دليل دي چي غمجن به سي اوكه و ويني چي د غره په لمن كي يي لمونځ كړي دی دليل دی چي ددين موفق كار به كوي اوكه ويني چي په غره كي دده سره دپاچاهي خلک دی دليل دی چي دپاچا څخه به عزت حاصل كړي اوكه ويني چي غره دخپل ځاي څخه حركت كړي دی اوبيا دريدلي دی دليل دی چي دلته به څوک لوی سړی ناجوړه سي اوبيا به شفا حاصله كړي. اوكه ويني چي غر يي په اساني سره كښينستلي دی دليل دی چي ژر به بخشش حاصل كړي اوكه ويني چي غر دخاوري دی دليل دی چي ده ته به دكنجوس سردار څخه طمع وي اوكه ويني چي پر كوه قاف ناست دي دليل دی چي دده مرگ نزدی دی اوكه ويني چي پر كوه طور دی دليل دی چي دپاچا به باندي باور وي اودده مرادونه به پوره سي اوكه خپل ځان پر غونډي دعرفات ويني دليل دی چي توبه به وباسي او پر گناه به پښيمانه سي اوكه ويني چي پر كوه لبنان دی دليل دی چي دعالمانو او صالحانو سره به ملگرتيا لري اوكه خپل ځان په تاريك غره كي ويني دليل دی چي ده ته دهلاكت بيره ده اوكه ويني چي په غره كي بي لاري سوي دی دليل دی چي دده مرگ نزدی دی يا به قيد خاني ته ځي اوكه خپل ځان پر روښانه غر ويني دليل دی چي مال به حاصل كړي.

اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی كه ويني چي په وران غره كي دی اوكاڼي خواره واره پراته دی اودی پكښي په مشكله گرځي او غشي ولي دليل دی چي دظالم پاچا څخه به ورته بيره وي اوكه ويني چي په غره كي سوري دی او دي په هغه سوري كي دننه تللي دی دليل دی چي دپاچا دراز څخه به خبر سي اوكه ويني چي دهغه سوري څخه يي څه شي را ايستلي دی دليل

دی چي دپاچا څخه به بخشش حاصل کړي. حافظ معبر رحمه الله ويلي دی که ويني چي غره ته ختلي دی دليل دی چي دبزرګ سړی په خدمت کي به مشغول سي اوکه ويني چي دغرونو څخه يي کاڼي راخيستي دی اوهر يو کاڼی خپل خپل ځاي ته غورزوي اودهغه ځاي څخه يي را اخلي اوپر غر يي ايږدي دليل دی چي مال به په قهر سره جمع کوي اوکه ويني چي دغرونو پر غاړه يي ځاي اخيستي دی دليل دی چي دلوی سړی خدمت به کوي اودهغه څخه به نفع حاصله کړي. اوکه ويني چي دغر څخه لاندي را ايله سوي دی دليل دی چي مراد به يي پوره نه سي اوکه ويني چي پر غره دپخو خښتو او چوني څخه ځيني جوړي سوي دی او دي دغره سرته باندي ختلي دی دليل دی چي مراد به ورته ژر حاصل سي اوکه ويني چي ځيني دکچي خښتو دی نو تعبير يي ښه دی اوکه داوسپني وي نو بد دی اوکه ځيني دسپينو زرو وي نو مراد به يي پوره نسي اوکه ويني چي دغره پرسر ولاړ دی دليل دی چي دپاچا خاص مقرب به سي اوډير مال به حاصل کړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي غر ليدل په پنځو وجو دي. ۱: پاچا ۲: دمنشي کار ۳: کاميابي حاصلول ۴: لوړوالي حاصلول ۵: سرداري حاصلول.

## ګوهر \ ملغلري

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ملغلري ليدل ښايسته اومالداره ښځه ليدل دی اوکه ويني چي دده سره ملغلره ده دليل دی چي ښځي ته به طلاق ورکوي اوکه ويني چي دده سره ډيري ملغلري دی دليل دی چي ډير مال به حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی که ويني چي ملغلري خرڅوي دليل دی چي د ښځو په شغل کي به مشغول سي اودلالي به کوي اوکه ويني چي په بعضو ملغلرو کي سوري دی او دبعضو ورته پام نه دی دليل دی چي دپيغلو اوکونډو ښځو دلالي به کوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي سپينه ملغلره زوی دی که ويني چي سپينه ملغلره ورسره ده دليل دی چي زوی به يي پيداسي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ملغلري ليدل په اتو وجو وي. ۱: مال ۲: علم ۳: مشهور زوی ۴: قيمتي شي ۵: ښايسته ښځه ۶: فايده منده ښځه ۷: خير اوبرکت ۸ : نيک کار کول. اوکه خوب ليدونکي پرهيزګار نه وي نو دهغه لپاره دپښيماني دليل دی او په خوب کي ملغلري خرڅونکي دعلم او حکمت خاوند دی.

## کوچه \ کوڅه \ ګلۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که څوك په خوب کي ويني چي په اباده کوڅه کي دی دليل دی چي خير اونفع به ورته ورسيږي خاصکر که په مصلح خلکو کي وي اوکه د دې خلاف ويني دليل دی چي بدي نقصان اوضرر به ورته رسيږي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که ويني چي په فراخه کوڅه کي مقيم دی نو دا دده لپاره دغم اوفکر دليل دی.

## کاکيره بوټي \ د کيکر درخته

که څوك په خوب کي ويني چي دده سره کيکر دی يا چا ورکړيدی دليل دی چي غمجن به سي اوکه ويني چي کيکر يي خوړلي دی نو پر زيات او سخت غم او فکر دليل دی اوکه ويني

چي چا کيکر ورکړي دی دليل دی چي هغه ته به غم اوفکر رسوي اودکيکر په ليدلو کي هيڅ قسم خير اونفع نسته، او الله تعالی ښه پوهيږي.

## [ ل ]

### لباچه\چوغه

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي چوغه ليدل نيکي او ددين مضبوطوالي دی خاصکر که شنه وي اوکه ووينې چي دده سره دسمور يا دسنجاب مرغه چوغه ده دليل دی چي دايماندار سړی په پناه کي به سي. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی که ووينې چي دده سره شنه چوغه ده دليل دی چي دامانتدار سړي څخه به ورته نفع ورسيږي اوکه سره چوغه يي اغوستي وي دليل دی چي يو فکر او مصيبت به حاصل کړي اوکه سپينه وي نو دمصلح اومالدار سړي څخه به نفع حاصله کړي اوکه ژړه وي نو پر ناجوړي دليل دی اوکه اسماني رنګ وي نو پر غم او فکر دليل دی اوکه توره وي او خوب ليدونکي قاضي ياخطيب وي نو خير اونيکي به حاصله کړي اوکه قاضي يا خطيب نه وي نو پر نقصان اوبي حرمتي دليل دی. اسماعيل اشعث رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي دوريښمو چوغه دسړيو لپاره دنقصان دليل دی او دښځو لپاره خوشحالي ده او داسماني رنګ چوغه دسړو اوښځو دواړو لپاره ښه ده او سپينه اوفراخه چوغه پر خير اونيکي دليل لري اوتنګه چوغه په خوب کي ليدل دمال پر نقصان دليل لري. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي دسوترو چوغه دسړيو او ښځو لپاره ښه ده اوپه خوب کي چوغه په څلورو وجو ده. ۱: ښځي ۲: امانتداري ۳: دکارونو درستي ۴: خير او نفع.

### لباس\کالي\جامې

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی که ووينې چي دګرمي کالي يي په يخني کي اغوستي دی دليل دی چي مال به يي زيات سي ليکن خوف اوبيره به ورته رسيږي ليکن د دې انجام به ښه وي اوکه ښځه ووينې چي دی دسړو کالي اغوستي دی دليل دی چي دخاوند څخه به ورته څه حاصل سي. ابراهيم کرمانی رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي که دبيداري په نسبت په خوب کي خراب کالي ووينې دليل دی چي دده کاربه بد وي اوکه ښه ووينې نو دده کاربه ښه وي اوکه خپل کالي دسردارانو په ډول ووينې دليل دی چي سردار به سي اوکه خپل کالي دبدکارو په ډول ووينې دليل دی چي ډيره ګناه به کوي اوکه ووينې چي دده کالي دعالمانو دي دليل دی چي دعلم څخه به حصه حاصلوي اوکه دصوفيانو کالي لري دليل دی چي ددنيا څخه به لاس اخلي اوکه دمالدارو کالي لري دليل دی چي په مال جمع کولو کي به حريص سي اوکه ووينې چي ديهوديانو او عيسايانو کالي لري دليل دی چي دده زړه به دهغوي طرفته مايل وي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيهِ ويلي دی چي په خوب کي کالي ليدل په اوو وجو وي. ۱: پاك دين ۲: مالداري ۳: عزت اومرتبه ۴ : نفع ۵: ښه ژوند ۶: نيك عمل ۷: عدل به غواړي.

## لبها\شونډي\شونډان

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي شونډي لیدل دمراد په پوره کیدو دلیل دی او ویني چي لاندي شونډه دلوړي شونډي څخه ښه ده نو دلیل دی چي عمل به یې ښه وي اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دي چي په خوب کي شونډي خپلوان دی اوکه ویني چي دده لوړه شونډه دخپل ځای څخه را ایله سویده دلیل دی چي دده مال به په زوال کي وي اودلاندي شونډي هم دغه تعبیر دی اوکه ویني چي دده لاندي شونډه پریکړه سوه دلیل دی چي ښځي ته به طلاق ورکوي یا به ښځه دی هلاک کړي اوکه دواړي شونډي پریوه ځای ویني دلیل دی چي ده ته به دمور اوپلار دطرف څخه مصیبت رسیږي او داهم وایي چي دی به چغل خور وي اوکه خپلي شونډي درد کوونکي ویني دلیل دی چي غمجن به سي اوکه ویني چي دده شونډي دیو بل سره منښتی دی او خلاصیږي نه دلیل دی چي کار به یې بند سي اوکه ښځه پر خپله شونډو تور داغ ویني دلیل دی چي عزت به یې زیات سي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که خپلي شونډي یې په غاښونو زخمي کړي وي دلیل دی چي جنګ به کوي چي دهغه څخه به ورته دهلاکت بیره وي اوکه ویني چي دده شونډي پړسیدلي دی دلیل دی چي مال به یې زیات سي اوکه ویني چي دده شونډي سري سوی دی دلیل دی چي حاکم به سي اوکه ویني چي دده شونډي شني یا سپیني دی دلیل دی چي ددوستانو څخه به غم حاصل کړي اوکه کمزوره یې ویني نو حال به یې بد سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي لوړه شونډه په هلکانو اولاندیني پر انجلیانو دلیل لري.

## لحاف\بړستن\شړۍ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی چي په خوب کي بړستن ښځه ده که ویني چي نوي او پا که بړستن ورسره ده دلیل دی چي ښځه به کوي اوکه ویني چي نوي بړستن یې اخیستي ده نو پیغله مینځه به اخلي اوکه ویني چي دده بړستن ورکه سوي ده نو ښځي ته به طلاق ورکوي اوکه بړستن خیرنه اوڅیري ویني نو دده عیال به ناموافقه اوجنګیالي وي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که ویني چي دده سره بړستن ده دلیل دی چي دینداره اومالداره ښځه به کوي اوکه بړستن سپینه وي نو دده ښځه به مالداره او پرهیزګاره وي اوکه سره وي نو ښځه به یې عیاشه وي اوکه ژړه وي نو ښځه به یې ناجوړه وي او رنګداره بړستن پرمکاري اودهوکه بازي ښځي دلیل لري.

## لرزیدن\رپیدل\لړزېدل\ښوربدل\رپږدېدل

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ویني چي دده څټ ښوري دلیل دی چي په امانتداري کي به کمزوري وي اوکه ویني چي دده سر ښوري دلیل دی چي ده ته به دحاکم څخه نقصان رسیږي اوکه ویني چي دده لاس رپیږي دلیل دی چي ښه ژوند والا به وي اوکه ویني چي دده سینه رپیږي دلیل دی چي داسي خبره به اوری چي په هغه سره به فکر مند اوغمجن سي اوکه ویني چي دده نس ښوري دلیل دی چي دچا څخه ورته قوت اوپناه وي دهغه څخه به ورته غم اوتکلیف رسیږي اوکه ویني چي دده پښه ښوري دلیل دی چي په سبب دهغه مراد چي دی یې

دحاصلولو کوشش کوي دهغه ځخه به غم اوسختي ويني دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي دبدن داندامونو رپيدل يوڅه بيره وي.

## لرزيدن چيزها \ شيان ښورېدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که څوك په خوب کي ويني چي اسمان رپيږي دليل دی چي په دغه ملك کي به فتنه فساد اوظلم ډير وي اوکه ويني چي لمر اوسپوږمي رپيږي دليل دی چي ددغه ملك پاچا ته به غم اوضرر رسيږي اوکه ويني چي ستوري رپيږي دليل دی چي دپاچا مقربينو کي به خفګان ښکاره سي اوکه ويني چي ځمکه رپيږي نو پر فتنه او افت دليل دی اوکه ويني چي غر رپيږي دليل دی چي ددغه ملك پاچا ته به نقصان رسيږي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کي ويني چي عرش رپيږی نو دعالمانو پر بد ديانتي اوفساد دليل دی اوکه ويني چي لوح قلم رپيږي نو دمنشياتو او داهل علم په بدحالي دليل دی اوکه اووه اسمانونه په رپيدو ويني دليل دی چي ددغه ملك والاوو دفساد په وجه به دالله تعالی عذاب اوغصه وي اوکه ويني چي لمر اوسپوږمي دستورو په وجه رپيږي نو ددغه ملک دپاچا په جنګ قتل او خونريزي دليل دی اوکه ويني چي دپاچا کور يامحل رپيږي دليل دي چي پر دغه ځاي والاو به محنت اوافت راځي اوکه ويني چي دده بدن رپيږي نو پر فساد اومصيبت دليل دی.

## لشکر \ لښکر \ فوج \ اردو

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که په خوب کي ويني چي لښکر په يو ځاي کي دی يا راغلي دی دليل دی چي هغه ځای والاوو ته به تکليف رسيږي اوکه لښکر تيار ويني نو چي په کوم ملك کي لښکر دی دهغه دقوت او مدد دليل دی اودکوم پاچا چي لښکر دی دهغه په قوت دليل دی اوکه لښکر بغير دوسلي وي نو دپاچا او دملك والا پرکمزوري اوعاجزي دليل دی. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي لښکر ليدل. په پنځو وجو وي. ۱: ملخ ۲: سيل ۳: سخته هوا ۴: جنګ ۵: بلا او خواري.

## لعل \ لال

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي لعل ښايسته اومالداره ښځه ده که ويني چي دده سره اتش لعل دی يا چا ورته ورکړي دی يا ده اخيستي دی دليل دی چي داسي قسم ښځه به کوي يا به پاکيزه اوعقلمنده مينځه اخلي اوکه ښځه يي وي نو پاکيزه اوښايسته لور به يي پيدا سي اوکه ويني چي دده سره ډير لعلونه دی دليل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي ليکن په دين کي به ګمراه وي جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي دوست ته يې دلعل ټکړه ورکړيده دليل دی چي دهغه په اندازه دقيمت مطابق به دخپلوانو ځخه مالداره ښځه کوي اوکه ويني چي يوچا نا اشنا ورته دلعل ټکړه ورکړي ده دليل دی چي د دې صفت نامعلومه ښځه به کوي اوکه ويني چي يوچا ځوان ورته دلعل ټکړه ورکړيده نو مال به حاصل کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي لعل ليدل په څلورو وجو وي. ۱: ښځه ۲: مينځه ۳: نفع

۴: ددنيا مال او انجلياني.

### لعوق\ چيکني

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي دچيکني مزه اوخوند خوړ اوخوشبوداره دی نو پر خير او نفع دليل دی اوکه دانارو جنغوزو او دخشخاشو وغيره چيکني ويني نو که ترخه تروه اوبدبويه وي نوپر بدي اونقصان دليل دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي خواږه چيکني پر خير اونفع دليل لري او دترخي تعبير ددي خلاف دی.

### لفاح الشمامه\ دستنبويه گل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي دستنبويه خوري دليل دی چي ناجوړه به سي اوکه ويني چي چاته يي ورکړي دی نو هغه به ناجوړه سي اوکه بوي کړي يي وي نودخوشحالي خبره به اوري اوکه ويني چي دده سره ډير دستنبويه گلونه دی نو مال به حاصل کړي.

### لقلق (يو ډول مرغه)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي لقلق يي نيولي دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي دباحسب اونسبةً ازاد اوعاقبت انديش سړی سره به يي صحبت وي اوکه ويني چي لقلق يي وژلي دی دليل دی چي لوی دښمن به دده دلاسه هلاک سي اوکه ويني چي لقلق ورسره خبري کوي دليل دی چي داسي کار به وکړي چي په هغه سره به خلک حيران سي اوده ته به دلوي سړی څخه نفع حاصله سي اوکه ويني چي د لقلق غوښه يي خوړلي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به ددهقان څخه مال حاصل کړي.

### لقمه\ گوله

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي چا خوږه گوله دده په خوله کي ايښيده دليل دی چي هغه سړی به ده ته ښه خبره کوي اوکه هغه گوله خرابه اوتروه وي نو د دې تعبير داولني خلاف دی. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که ويني چي چا دده په خله کي خوږه گوله ايښي ده که مصلح وي نو حلال مال به حاصل کړي اوکه گوله خوږه اوگرمه وي دليل دی چي په يوه خبره به په مصيبت کي راسي اوکه گوله دده په مري کي په اساني سره تللي وي نو تعبير يي د اول خلاف دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي په خوله کي گوله ايښودل په دروجو ده. ۱: مچول ۲ : پاکه خبره ۳: دگولي داندازې مطابق نفع.

### لقوه (يو ډول ناجوړي)

لقوه يوه ناجوړي ده چي په هغه کي خوله کږيږي ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي دلقوي په ناجوړي سره دده خوله کږه سوي ده دليل دی چي دخلکو په نزد به ذليله اوخوار سي اوکه خپل مخ ښايسته ويني نو په خلکو کي به معزز اومقبول سي . جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي لقوه پر نفاق دليل لري چي په خلکو کي دمنافقت خبري کوي اوکه ويني چي ده ته لقوه سويده نو دناجوړي پر ښکاره کيدو اوددين پر نقصان دليل دی.

## لګام\واګې

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې واګه يې پرې سويده ياورك سوي دی دليل دی چې دده په مرتبه او بزرګۍ کې به نقصان وسي اوکه ووينې چې داسونو په ډول دده پر سر واګې دی دليل دی چې روژې به نيسي اودګناهونو څخه به توبه کوي. حضرت علی رضي الله عنه ويلي دی چې کوم سړی ناکاره او بدخويه وي دهغه په خوله کې واګې اچول کيږي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې واګې دنيك سړی پر سروي چې هميشه دمالك په حکم کې وي او ازاد سر ښه نه دی اوبيان کوي چې خوب والا با ادبه اوهوښيار سړی وي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې واګې په درو وجو وي. ۱: شرف او بزرګي ۲: روژه نيول ۳: ادب او هوښيارتيا او په خوب کې واګې خرڅونکې دولايت په کارونو کې تدبير کوونکي دی.

## لګدزدن\لتي‌وهل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې ده ځوك په لته وهلی دی دليل دی چې دده څخه يا دده دخپلوانو څخه به هغه ته نقصان رسيږي اوکه ووينې چې اس دی په لته وهلي دی دليل دی چې دده په مرتبه اوبزرګۍ کې به نقصان ښکاره سي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چې خوب ليدونکې به په فساد کې مشغول سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی که ووينې چې ښځې ته يې لته ورکړې ده دليل دی چې دښځې په وجه به فکر مند سي اوکه ووينې چې غټې بوډې په لته وهلی دی دليل دی چې مال به يې ختم سي اوکه ووينې چې اوښ ورته لته ورکړې ده دليل دی چې دلوی سړی څخه به ورته نقصان رسيږي اوکه ووينې چې غوايې ورته لته ورکړې ده دليل دی چې په دغه کال کې به ورته نقصان رسيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې لته وهل په څلورو وجو وي. ۱: نقصان ۲: ضرر ۳: غم اوفکر ۴: د عيال فساد.

## لک\لاک

ابن سبيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ځوك په خوب کې ووينې چې دده سره لاک دی دليل دی چې دخراب سړی څخه به ورته نفع حاصله سي اوکه ووينې چې لاک يې په اور کې ايښې دی اودود کوي دليل دی چې دده کار اونوم به په ملک کې په نيکې سره مشهور سي اوکه ووينې چې لاك يې خوړلې دی نو پر غم دليل دی اوکه ووينې چې چاړه يې په لاکو کلکه کړيده دليل دي چې ددوو هوښيارو او پرهيزګارو سړو ترمينځ به صلح کوي.

## لوبيا

لوبيا يو قسم سبزي دی ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې په خوب کې لوبيا که په موسم کې يې ووينې نوښه دی اوکه بی موسمه يې ووينې نو پر غم اوفکر دليل دی.

## لوح محفوظ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چې لوح محفوظ په عام تعبير کې دديانتدار سړی دی چې خپل مال دالله تعالی په لاره کې خرڅ کوي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلی دی چې دلوح محفوظ تعبير علم حکمت اوقران کريم دی که ووينې چې لوح محفوظ کوچنې اوکم دی دليل دی چې حال به يې

بد سي. اوكه ويني چي په لوح محفوظ څه ليكي دليل دی چي كار به يي نيک سي اوكه ويني چي پر لوح محفوظ گرځي دليل دی چي دلوی پاچا سره به يي كار راسي اوپه دی كي به حاكم سي اوكه ويني چي دده نوم په لوح محفوظ ليكل سويدی دليل دي چي ددمرگ نزدی دي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي لوح محفوظ ليدل په شپږو وجو وي. ۱: زياتي ۲: زوی ۳: علم ۴: هدايت ۵: حكومت ۶: حكمت.

## لوزينه \ دبادامو حلوی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی كه ويني چي لوزينه يي دچيني سره په خوله كي ايښي ده دليل دی چي دچا څخه به ښه خبره اوري اوكه ويني چي ډيره لوزينه يي خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به مال حاصل كړي اوكه ده ته چا لوزينه وركړي وي دليل دی چي ښه خبره به ورته كوي يا به دهغه لپاره نيك كار كوي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی كه ويني چي ده لوزينه خوړلي يا اخيستي يا چا وركړي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به حلال مال اونعمت حاصل كړي او خرڅوي به يي اوكه ويني چي ده چا ته لوزينه وركړي ده دليل دی چي هغه ته به مال اونعمت ور كوي. اوكه ويني چي لوزينه ځني وركه سويده يا چا ځني پټه كړي ده دليل دی چي دده دمال نقصان به وسي.

## لنگ شدن \ گوډ كيدل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دگوډ كيدلو دليل دا دی چي داسي كاربه كوي چي په هغه كي به خير شر سستي ضعيفي اوكمزوري وی اوبعض اهل تعبير بيان كړي دی چي كه خپل ځان گوډ او كمزوري ويني دليل دی چي دخلكو په نظر كي به ذليله او خوار سي. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی كه ثوك خپل ځان گوډ ويني دليل دی چي په دين اودنيا كي به كمزوري وي اومراد به يي پوره نه سي اوكه ويني چي ځان يي قصدا گوډ كړيدی دليل دی چي دخپل ژوند په كار كي به دچا څخه مدد غواړي اوكه ويني چي گوډ سوي دی اوپر امسا گرځي دليل دی چي دمعتبر سړی څخه به مدد غواړي اومراد به حاصل كړي اوكه ويني چي خپله يي ځان گوډ كړي دی دليل دی چي په ښكاره طور سره به په چا بروسه كوي او په اصل كي به يي په هغه اعتماد نه وي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی كه ثوك خپل ځان په دواړو پښو گوډ ويني او په دواړو لاسونو كي يي لرگي نيولي دی اوگرځي دليل دی چي دواده اودكور په كارونو كي به عاجز سي اوكه ويني چي په پښه كي يي زوز ننوتلي دی او دهغه په وجه نسي گرځيدلای دليل دی چي دشر څخه به په امن كي سي اوكه ويني چي په دواړو پښو كي يي زوز ننوتلي دی او پړسيدلي دی او گوډ نه دی دليل دی چي دښمن به حسد باندي كوي او دده مال او مرتبه به زياته سي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي كه گوډ په خوب كي ويني چي دده پښي جوړي سوي دی او گوډ گوډ نه گرځي دليل دی چي بند كارونه به يي فراخ سي او دكوم مراد څخه چي نا اميده وي هغه به پوره سي اوكار به يي په انتظام سره سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي گوډ كيدل په پنځو وجو وي. ۱: په كارونو كي سستي ۲:

نامرادي ۳: فقيري ۴: غم اوفکر ۵: دعيش او عشرت نقصان.

### لويد\غټ ديګ

دتانبي ديګ په خوب کي دکور خدمتګار دی چي داصله عيسايي وي که ويني چي دده په لاس کي نوي اوغټ ديګ دی دليل دی چي دده خادم به امانتدار وي اوکه زوړ خيرن اوکوچني وي نو تعبير يې د دې خلاف دی اوکه ويني چي غټ ديګ ايله سو اومات سو دليل دی چي خادم به مري. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی که ويني چي په غټ ديګ کي سوري دی دليل دی چي خادم به يې ناجوړه سي اوکه دپاکو اوبو څخه يې ډك ويني نو دخدمتګار څخه به ورته فايده وي اوکه دخوراك دشيانو څخه يې ډك ويني نو دهغه په اندازه به خير اونفع حاصله کړي اوکه ويني چي دديګ څخه يې داشيان خوړلي دی دليل دی چي ده ته به دخدمتګار څخه خير اونفع حاصله سي.

### ليمون\ليمبو

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي ليمبو پر خپل موسم اوبې موسمه خوړل په ناجوړي درد اوغم دليل دی که شين وي نو غم اوفکر به يې کم وي او دليمبو په خوړلو کي خير اونفع نسته والله اعلم.

## [م]

### مار

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي مار بدخوا اوپټ دښمن دی اوکه ويني چي دده په کور کي مار دی نو دکور پر دښمن دليل دی اوکه په ځنګل کي يې ويني نو پر نا اشنا دښمن دليل دی اوکه ويني چي دمار سره يې جنګ کړي دی دليل دی چي ددښمن سره به جنګ کوي اوکه ويني چي مار پر ده غالب سوي دی دليل دی چي پر دښمن به کاميابي نه حاصلوي اوکه ويني چي مار چيچلي دی دليل دی چي ددښمن څخه به نقصان حاصل کړي اوکه ويني چي ده مار وژلي دی دليل دی چي دښمن به مغلوبه کړي اوکه ويني چي دمار غوښه يې خوړلي ده دليل دی چي دهغه په اندازه به ددښمن مال خوري او خير اوخوشحالي به ويني اوکه ويني چي مار يې دوه ځايه کړي دی دليل دی چي ددښمن څخه به انصاف حاصل کړي اوکه دواړه حصي يې راپورته کړي وي دليل دی چي ددښمن مال به خوري. اوکه ويني چي مار ورسره په مهرباني سره خبري کړي دی دليل دی چي عجيبه کار به ورته پيښ سي اودهغه څخه به واده او خوشحالي ويني اوکه ويني چي مار ورسره په تندي اوتيزي سره خبري کړي دی دليل دی چي دښمن به باندي غالبه سي اوکه مړ مار ويني دليل دی چي الله تعالی به شر اوفساد ځني ليري کړي او تکليف به ورته نه وي اوکه ويني چي مار دده تابعدار دی دليل دی چي مرتبه اوبزرګي به حاصله کړي اوکه ويني چي مار ځني تښتيدلي دی نو ددښمن پرکمزوري دليل دی اوکه ويني چي مار شين دی دليل دی چي دښمن به يې ديندار

او امانتدار وي او که دنورو مارونو څخه علاوه تور مار ویني نو پر لښکر دلیل دی او ژړ مار پر ناجوړه دښمن دلیل لري او سور مار پر عیاش او عیش پسند دښمن دلیل لري او که ویني چي دمار ډیري پښي دی دلیل دی چي دده دښمن به قوي او زړه ور وي او که ویني چي ډیر ماران دده په مخکي جمع دی او دي تنګوي دلیل دی چي ډیر خپلوان به دده دښمنان وي لیکن دهغو څخه به نقصان نه ویني او که ویني چي دمارانو ښکرونه او ډیر غاښونه دی دلیل دی چي دده دښمن به بد او بد خویه وي جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي مار دده دپزي یا غوږ یا دتیونو یا دکوچني یا لویو بولو دځاي څخه راوتلي دی دلیل دی چي دده زوی به دده دښمن وي او که ویني چي مار دده دخولي څخه راوتلي دی دلیل دی چي دنقصان خبره به کوي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دی چي سپین مار لیدل ددښمن لیدل دی او تورمار سپاهي دی او که ویني چي دمارڅخه تښتیدلي دی او مار نه دی لیدلي دلیل دی چي ارام او خوشحالي به حاصله کړي او که ویني چي مار دی نیولي دی او تکلیف یي ورته نه دی رسولي دلیل دي چي بزرګي به حاصله کړي او ددښمن څخه به په امن کي سي. خالد اصفهاني رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي شین مار دده تابعدار سوي دی دلیل دی چي خزانه به حاصله کړي او که ویني چي دده دلستوڼي څخه مار وتلي دی دلیل دی چي دده زوی به دده دښمن وي او که ویني چي مار یي وژلي دی او دهغه وینه یي پخپل بدن پوري مږلي ده دلیل دی چي د دښمن مال به حاصل کړي او که ویني چي پخپله بستره کي یي مار وژلي دی دلیل دی چي ښځه به یي مري او که ویني چي مار دده دګریوان یا دخولي څخه راوتلي دی او په مځکه کي ننوتلي دی دلیل دی چي هلاک به سي او په خوب کي ښامار ضعیف او کمزوري دښمن دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلی دی چي په خوب کي مارلیدل په لسو وجووي. ۱: طاقت ۲: ژوند ۳: سلامتیا ۴: پاچاهي ۵: سپه سالار ۶: ښځه ۷: دولت ۸: مرګ ۹: هلك ۱۰: سیلاب.

**مار چوبه \ کور کمان**

که ویني چي مارچوبه جمع کوي او دهغه موسم هم وي دلیل دی چي مال او نفع به حاصله کړي او که ویني چي او م مار چوبه خوري نو پر غم او فکر او دده پر نقصان دلیل دی.

**مار قشیشا (د سترګو دوا)**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي مارقشیشا پر غم تکلیف او ناجوړي دلیل دی.

**مازو (یو ډول دوا)**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي ددرختي څخه یي مازو جمع کړي دی دلیل دی چي په غم او سختي سره به مال حاصل کړي او که ناجوړه ویني چي دده سره دمازو ډیران دی نو پر مکروه مال دلیل دی او خوړل یي حرام مال خوړل دی او که مازو ژړ وي نو پر ناجوړي دلیل دی او شنه او تور مازو پر غم او فکر دلیل دی.

**ماست \ مستې**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي خوړي مستي په خیر او نفع دلیل دی او تروي په

غم فكر دليل دی ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي خوړي مستي خوړل په حلال مال اوتروي په غم او فكر دليل دی. دانيال عليه السلام ويلي دی كه ووينې چي مستي يي خوړلي دی خاصكر كه خوړي وي نو په سفر كي به مال حاصل كړي اوكه ووينې چي دمستو څخه يي كوچي ايستلی دی دليل دی چي خوب ليدونكي به دهغه په اندازه مال حاصل كړي.

## ماش

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی كه پخ كړي ماش په خوب كي ووينې نو په لږ خير دليل دی او اومه خوړل پر غم دليل دی اوكه ووينې چي دده په كور كي ماش دی او په خلكو يي تقسيموي دليل دی چي بي غمه به سي. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كی ماش وچ يا لانده اومه يا پاخه ليدل پر غم اوفكر دليل دی.

## ماكيان\چرګه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب كي چرګه په خادم يامينځي دليل دی كه ووينې چي چرګه يي اخيسته ده يا چاوركړي ده دليل دی چي مينځه به اخلي يابه خادم په مزدوري اخلي اوكه ووينې چي ډيري چرګی ورسره دی دليل دي چي دخادمانو څخه به مال حاصل كړي اوكه ووينې چي چرګه يي حلاله كړي ده دليل دی چي دده دغلام زوی يا مينځه به په يو مصيبت كي ګرفتاره سي. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دی كه ووينې چي دده سره دچرګی هګي ده دليل دی چي لور به يي پيداسي يا به دخادمانو څخه مال حاصل كړي او جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي چرګه ښايسته ښځه ده اوتوره چرګه دمندري چرګي څخه ښه ده اوكه ووينې چي دده په كور كي چرګي دچرګ په ډول اواز وكړي نو ناخوښه خبره به اوري. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي دچرګي بچي په درو وجو وي. ۱: ښځه ۲: مينځه ۳: خادم.

## ماميرا (دسترګو دوا)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي ماميرا پر داسي ناجوړي دليل لري چي په هغه سره به ورته خير اوثواب حاصل سي.

## ماميثا (يو ډول بوټی)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب كي ماميثا پر وخت اوبي وخته پر غم اوفكر دليل دی.

## ماه\سپوږمی\مياشت

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب كي سپوږمي دپاچا وزير دی كه ووينې چي سپوږمي يي نيولي ده يا يي پخپل ملكيت كي ووينې دليل دی چي دپاچا مقرب به سي يا به وزير سي اوكه ووينې چي دسپوږمي سره جنګ كوي دليل دی چي دوزير سره به جنګ كوي اوكه ووينې چي دسپوږمي په ځاي مقيم سوي دی دليل دی چي دپاچا وزير به سي اوكه ووينې چي دسپوږمي رڼا يي اخيستي ده دليل دی چي وزارت به حاصل كړي اوكه ووينې چي داسمان څخه يي سپوږمي نيولي ده اورڼا اوپلوشي نه لري اوتوره تاريكه هم نه ده دليل دی چي دغمونو څخه به خلاص سي اوكه ووينې چي سپوږمي توره ده او پخپل ځاي هم نه ده دليل دی چي دپاچا وزير

به دیو کار په وجه دده محتاج سي ابن سیرین ﷫ ویلي دی چي په خوب کي سپوږمي خاصکر که دڅوارلسمي وي پاچا لیدل دی اوکه ووینی چي سپوږمي دوه ځایه سوي ده دلیل دی چي پاچا یا وزیر به هلاک سي اوکه ووینی چي سپوږمي دده سره خبري کوي دلیل دی چي خلک به ده ته خپل فریاد کوي او خپل انصاف به غواړي او دا سړی به ولایت حاصلوي اوکه ووینی چي دوي سپوږمیاني دیوبل سره جنګ کوي دلیل دی چي دوه پاچاهان به یوبل سره جنګیږي اوکه ووینی چي په دغه سپوږمیو کي یوه را ایله ده اوماته ماته سوي ده دلیل دی چي په دوو پاچاهانو کي به یو غورزیږي. جابر مغربی ﷫ ویلي دی چي په خوب کي ووینی چي سپوږمي یي په لاس یاغیږه کي نیولي ده دلیل دی چي ښځه به کوي که داولني تاریخ سپوږمي ووینی دلیل دی چي دغه ښځه به دده څخه په اصل اونسب کي کمي درجي والاوي اوکه سپوږمي نیمه ووینی نو دښځي اصل به دمولازادګانو وي اوکه دڅوارلسمي سپوږمي وي نو دغه ښځه به دده څخه په اصل اونسب کي ښه وي اوکه داخوب ښځه ووینی دلیل دی چي د دې صفت خاوند به کوی اوکه ووینی چي پاکیزه اوروښانه سپوږمي دده په کور کي راکښته سوي ده دلیل دی چي په دغه کور کي به ښځه کوي او دهغه څخه به نفع حاصله کړي اوکه ووینی چي یو شي سپوږمي پټه نیولي ده دلیل دی چي دوزیر حال به بد سي او معزول به سي. ابراهیم کرمانی ﷫ ویلي دي که پرخپل ځاي دڅوارلسمي سپوږمي روښانه ووینی او دهغه رڼا دده دکور پربرابر ځلیږي دلیل دی چي دغه کور والا به دپاچا یا وزیر څخه خیر اونفع وینی اوکه دڅوارلسمي سپوږمي تاریکه ووینی دلیل دی چي غم اونفرت به ورته حاصل سي اوکه ووینی چي د اولني ورځي سپوږمي راختلي ده لیکن رڼا یي زیاته وه یا دڅوارلسمي سوي ده دلیل دی چي زوی به یي پیداسي چي پاچا یا وزیر به سي اوکه ووینی داولني ورځي سپوږمي دخپل ځاي څخه راختلي دلیل دی چي زوی به یي پیداسي یابه په یو مشکل کارکي راسي چي خلکو ته به ځني غم اوفکر وي. اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دی چي که څوك په خوب کي سپوږمي ووینی دلیل دی چي ددغه ملک دپاچا به زوی پیداسي اوکه دسپوږمي رڼا زیاته ووینی دلیل دی چي ددغه هلک عمر به زیات وي اوکه دڅوارلسمي سپوږمي ووینی دلیل دی چي دهغه عمر به ددرمیاني درجي وي اوکه په سپوږمي کي نقصان ووینی دلیل دی چي دپاچا یا دوزیر په خدمت کي به مشغول سي. اسماعیل اشعث ﷫ ویلي دی که ووینی چي سپوږمي یي په لاس کي نیولي ده یا سپوږمي دده غیږي ته راغلي ده دلیل دی چي دده به عالم اوهوښیار زوی پیداسي که داخوب څوك دپاچا مقرب ووینی دلیل دی چي پاچا به سي اوکه ووینی چي ده سپوږمي لمر او ټول ستوري نیولي دی اوټول تك تور دي دلیل دی چي خوب لیدونکي به هلاک سي که پرهیزګار وي نو په غم اوفکر کي به راسي یا به ناجوړه سي او اخر داچي شفا به حاصله کړي. جعفر صادق ﷫ ویلي دی چي سپوږمي په خوب کي لیدل په اولسو وجوده. ۱: پاچا ۲: وزیر ۳: ملګري ۴: رئیس ۵: شرف اومرتبه ۶: دوست ۷: مینځه ۸: غلام یا خادم ۹: بیهوده کار ۱۰: والي ۱۱ : مفسد عالم ۱۲: بزرګ سردار ۱۳: پلار ۱۴: مور ۱۵: ښځه ۱۶: زوی ۱۷: بزرګي.

## ماهي\کب

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په ګرم درياب کي ماهي ليدل بلا اوسختي ده او په يخ درياب کي ليدل خوشحالي ده اوکه ډير تازه اوغټ ماهي ويني نو پر مال غنيمت دليل دی اوکه کوچني ماهي ويني نو غم او فکر دی اوکه دماهي په نس کي ملغلري پيدا کړي دليل دی چي زوی به يي پيداسي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي چا ورته خشك يا نمکين ماهي ورکړي دی دليل دی چي ده ته به درئيس يا پاچا څخه نقصان رسيږي اوکه نمکين ماهي وخوري دليل دی چي غلام به ورته نقصان ورسوي اوکوچني ماهي خوړل جنګ دی اوکه ويني چي دماهي دبدن يو شي لکه وينه هډوکي يا څه چي دماهي په نس کي وي هغه يي پيدا کړي دی دليل دی چي دمال خير اوبرکت دی يا به غلام اخلي اوکه ويني چي ددرياب څخه يي غټ ماهي نيولي دی دليل دی چي مالداره ښځه به کوي. چابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي تازه او سور کړي ماهي مال اونعمت دی ځکه چي تازه ماهي دجنت په خوراکونو کي دي او د عيسى عليه السلام پردستر خوان باندي وو کوم چي دده لپاره داسمان څخه راکښته سو دالله تعالى فرمان دی (ربنا انزل علينا مائدة من السماء، سورة المائدة: ۱۱۲) ترجمه: اي زموږ ربه پرموږ داسمان څخه دسترخوان راوليږي. اوکه ويني چي دماهي دخلي څخه راوتلي دی دليل دی چي په يو کار کي به درواغ خبره کوي اوکه په خوب کي ماهی دده دعضو تناسل څخه راوځي دليل دی چي لور به يي پيداسي اوکه ښځه ويني چي د دې دخلي څخه ماهي راوتلي دی دليل دی چي غمجن به سي اوکه ويني چي په درياب کي يي ماهي نيولي دی دليل دی چي دلوی سړي څخه به مال او نعمت حاصل کړي اوکه تازه ماهي يي خوړلي وي نو مال به حاصل کړي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي ماهي خرڅوي دليل دی چي ده ته اودده خلکو ته به خير اونفع ورسيږي اوکه ويني چي په حوض يا ويالي کی ماهي نيسی دليل دی چي دعامو خلکو څخه به په مکر او دهوکي سره يو شي اخلي اوکه ويني چي ددرياب ماهي دده سره خبري کوي دليل دی چي دپاچا راز به ښکاره کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ماهي ليدل په شپږو وجو دی. ۱: وزير ۲: لښکر ۳: پيغله انجلي ۴: غنيمت ۵: غم اوفکر ۶: هندو مينځه.

## ماهي خوره ډيک

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي ډيك ښځه ده که ويني چي ډيك يي نيولي دی يا چا ورکړي دی نو ښځه به کوي اوکه دده دلاسه الوتلي وي يا ورك سوي وي نو ښځي ته به طلاق ورکوي اوکه غوښه يي ورڅخه خوړلي وي نوهغونه به مال خرچ کوي جابر مغربیرحمة الله عليه ويلي دی چي په خوب کي د ډيك تعبير غم اوفکر دی.

## مبرد\سوان

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دی که ويني چي دده سره سوان دی او په هغه سره زنګ صفا کوي دليل دی چي مشکل کار به باندي امان سي خاصکر که اوسپنه دده وي اوکه ويني چي صفا اوسپنه باندي مبني دليل دی چي د ذلت اونقصان کار به کوي. اوبعضو بيان کړي دی چي

سوان نرمه خبره ده اوكه ويني چي سوان مات يا ورك سوي دى دليل دى چي يو كار به كوي چي صحيح به نه وي. جابر مغربى رحمه الله ويلي دى كه ويني چي دكور تانبي او لوښي په سوان صفا كوي دليل دى چي دده ځخه به دكور خادم ته يو شي ملاويږي يا به دده په وجه خادم دكار ځخه خلاصون حاصل كړي.

## مطهره \ لوټه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى كه ويني چي دده سره نوي لوټه ده دليل دى چي په سفر كي به خير اونفع ويني اوكه زړه او ماته وي نو تعبير يي داولني خلاف دى. جعفر صادق رحمه الله ويلي دى چي په خوب كي لوټه په درو وجو ده. ۱ : سفر ۲: مال ۳: ژوند.

## مثقبه \ برمه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى كه ويني چي پر برمي باندي په درخته يا لرګي كي سوري كوي دليل دى چي په مكر اودهوكه سره به يو شي اخلي اوبعضي وايي چي مقصد به يي حاصل سي جابر مغربى رحمه الله ويلي دى كه ويني چي په برمي سره دچا په بدن كي سوري كوي دليل دى چي په مكر او دهوكي سره به ځوك په مصيبت كي ګرفتار كړي.

## مجلس علم \ د علم مجلس \ علمي مجلس

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى كه ويني چي دعلم په مجلس كي ناست دى او عالم چاته قران كريم وايي او دقران تفسير حديث شريف اوتوحيد بيانوي دليل دى چي په دغه ځاي كي به مضبوط عمارت جوړوي چي دشريعت خلاف به وي. جابر مغربى رحمه الله ويلي دى كه ويني چي دعلم مجلس كي ژاړى دليل دى چي ددنيا په كاركي به مشغول سي او خوشحاله به سي اوكه د دې خلاف ويني نو غمجن به سي اوكه ويني چي دعلم په مجلس كي بيهوښه سوي دى اوعقل ځني تللي دى دليل دى چي داسي كار به ورته پيښ سي چي په هغه به سرګردانه اوحيران سي ليكن انجام به يي ښه وي

## مجلس شراب \ د شرابو مجلس \ شرابي مجلس

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى كه ويني چي دشرابو په مجلس كي دى او شراب يي نه دى چيښلي دليل دى چي په فساد اوحرامو كى به مشغول نه سي ليكن خوشحاله به وي اوكه ويني چي دشرابو په محفل كي مجلسيان او باجي دى دليل دى چي ده ته به غم فكر او جنګ پيښ سي.

## مجمره \ انګېټۍ \ ايټر \ هيټر

ددي وضاحت په حرف عين كي د (عود) په لفظ كي بيان سوي دى.

## مجره \ د دواوو لوښى

ابن سيرين رحمه الله ويلي دى كه ويني چي دده سره مجره ده دليل دى چي عالمه ښځه به كوي او دهغه ځخه به خير اونفع وي اوكه ويني چي مجره ماته يا وركه سوي ده دليل دى چي ښځه به

یي مري اوکه ښځه یي نه وي نو دده به یو څوك خپل مري جعفر صادق رحمه الله ویلي دی که ووینې چې پر دې څه لیکل سویدی که قرانکریم یا دالله تعالی نومونه باندې لیکل سوي وي نو پر صلاح او نفع دلیل دی اوکه خلاف وي نو پر شر او فساد دلیل دی.

## محراب

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ووینې چې په محراب کې یې لمونځ کړې دی دلیل دی چې دصالح زوی زیږي به ورته وسي د زکریا علیه السلام په هکله دالله تعالی فرمان دی (وهو قائم یصلي في المحراب، سورة آل عمران: ۳۹) هغه ولاړ وو چې په محراب کې یې لمونځ کوي که ووینې چې لمونځ یې پر وخت کړې دی دلیل دی چې زوی به یې صالح وي اوکه ووینې چې په محراب کې ناست دی دلیل دی چې په لمونځ کې به سستې کوي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ووینې چې دمحراب عمارت یې جوړ کړې دی دلیل دی چې دده زوی به عالم او هوښیار وي او بعض وایي چې خپل مال به خرڅ کوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې په خوب کې محراب لیدل په پنځو وجو دی. ۱: امام ۲: پاچاهي ۳: قاضي ۴: تهانه دار ۵: دخلکو قاصد.

## مخنث\هیجړا\نر ښځی

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ووینې چې دې هیجړا سوي دی او دښځو په ډول یې ځان ښایسته کړې دی دلیل دی چې ده ته به خوف اوبیره وي او په مصیبت کې به راسي اوکه ووینې چې د ښځو کالي یې ایستلي دی او دسړو کالي یې اغوستي دی اودسړو په حال سوی دی دلیل دی چې خوف عاجزي او مصیبت به ځنې لیری سي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دی که ووینې چې دده صحبت د هیجړاګانو سره دی دلیل دی چې دده ناسته پاسته به دمفسدانو سره وي اوکه ووینې چې دهغوی سره مقیم سوي دی دلیل دی چې دمفسدانو دصحبت څخه به جلا سي.

## مداد\رنګ\سیاهي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که په خوب کې رنګ ووینې نو روزي به باندې فراخه سي اوکه ووینې چې سیاهي ځنې ورکه سوي ده نو د دې تعبیر خلاف دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دی که ووینې چې رنګ دده پرکالو توي سوي دی دلیل دی چې نقصان به یې وسي اوکه خوب لیدونکي منشي وي نو سرداري به حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دی چې په خوب کې رنګ په څلورو وجو وي. ۱: سرداري ۲: خوشحالي او ارام ۳: ژوند ۴: واده او خوشحالي.

## مذکر\نصیحت کوونکی

که څوك په خوب کې ووینې چې خلکو ته نصیحت کوي دلیل دی چې ده ته به خوشحالي وي اوکه ناجوړه وي نو شفا به حاصله کړي او خپل دښمن به مغلوب کړي. ابن سیرین رحمه الله ویلي دی که ووینې چې خلکو ته نصیحت کوي نو پدې کې ددین صلاح او داخرت خلاصون دی اوکه ووینې چې دخلکو ناصح دی نو ده ته دالله تعالی پناه حاصلول پکار دی توبه دې وباسي چې دشر اوفتني څخه په پناه کې سي.

## مذي

مذي هغه ته وايي چي په شهوت سره دمني څخه مخکي کومي اوبه وزي، ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي مذي وتل دهغه په اندازه خوشحالي ده.

## مرجان

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي مرجان زوي دی که سور وي نو زوی به يي ښايسته وي اوکه مرجان د ډيرو جواهرو سره ويني نو مال اونعمت به حاصل کړي جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي مرجان ليدل په څلورو وجو وي. ۱: ښځه يازوی ۲: زينت ۳: ښايست ۴: دخادم دطرفه مال.

## مرد معروف\مشهور سړی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که په خوب کي مشهور سړی دبيداري په ډول ويني دليل دی چي دهغه هم نومه يا دهغه په ډول به ويني اوکه نامعلوم ځوان سړی ويني نو دده دښمن به وی اوکه نامعلوم بوډا ويني نو دده نصيب به وي او خير به حاصل کړي ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی که په خوب کي بوډا ويني دليل دی چي ديانت ددين ښه والي اونيکي به حاصله کړي اوکه ځوان سړی ويني دليل دی چي دلوی سړی څخه به ورته زحمت اونفرت رسيږي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي بوډا سړی ليدل دولت اوبخت دی اوځوان سړی ليدل مکر حيله او مکروه شي ليدل دی.

## مردار سنګ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي مردار سنګ يي خوړلي دی دليل دی چي دناجوړي څخه به ورته دهلاکت بيره وي اوکه چاته يي بخشش کړي وي يا يي خرڅ کړي وي دليل دی چي دغم اوناجوړي څخه به په امن کي سي اوژړ مردار سنګ ناجوړي اوفکر دی.

## مردن درخواب\په خوب کي مړ کيدل

دانيال عليه السلام ويلي دي که په خوب کي ويني چي مړسوي دی او خلک ورته ژاړي اوزاري کوي يايي په کفن کي نغښتي دی يا يي په جنازه کي ايښي اوقبر ته يي اچولي دی نو دا ټول دده ددين په فساد دليل لري اوکه ويني چي بيا يي دقبر څخه را ايستلي دی نو د دې تعبير خلاف دی اوکه ويني چي په قبر کي يي ايښي دی اوخاوري يي باندي اچولي دی او خلک واپس ځني راغلي دی دليل دی چي دده دين به هيڅکله هم اصلاح نه حاصلوي. اوبعضي وايي که ويني چي مړ سوي دی اوخلکو پورته کړي دی او د ده په جنازي پسي ډير خلک روان دی دليل دی چي شرف عزت اوحکومت به حاصل کړي ليکن ظلم به باندي کيږي اوکه ويني چي دي مړ وو اوبيا ژوندي سو دليل دی چي دګناه څخه به توبه کوي اوبعض وايي چي عمر به يي زيات سي اوکه ويني چي ده ته چا ويلي دی چي ته به هيچيري هم نه مري دليل دی چي په جهاد کي به شهيد سي. اوکه ويني چي مړ سوي دی اوچا ورپس ژړلي نه دی او دده په جنازي پسي څوك نسته دليل دی چي خراب کور به يي چيري هم اباد نه سي اوکه په خوب کي ځان

دمړو سره ويني او دده خيال وي چي دي د ډير وخت څخه مړ دی دليل دی چي دجاهلانو سره به سفر کوي. ابن سيرين رحمه الله که څوك دامعلومول غواړي چي دده حال داهل صلاح په نزد څنګه دي که مړی په خوب کي دده دصلاحيت زيري ورکړي اودده سره په روڼ تندي ښي خبري وکړي دليل دی چي دده حال به دالله تعالى په نزد نيك وي اوکه ويني چي مړي ورسره خرابي خبري کوي او مخ ځني اړوي نو دده حال به دالله تعالى په نزد بد وي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي نابيره نه وي نو ددين پر فساد دليل دی او زنکندن چي څونه سخت وي پر عذاب دليل دی اوکه مرګ نابيره نه وي نو ددين په فساد دليل دی او زنکندن چي څونه سخت وي په عذاب اومصيبت دليل لري اوکه ويني چي دی مړ دی اوچا ورته غسل ورکړي دی دليل دی چي توبه به وباسي اوکه ويني چي دده په جنازي پسي يو ټولګي روان دی دليل دی چي په دغه ښار کي به لوی سړی مري. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی که ويني چي دي مړ دی اوخلک دده په جنازي پسي روان دی دليل دی چي دخپل قدر مطابق به ولايت اوبزرګي حاصله کړي اوکه مړي په جنازه کي دروند وي دليل دی چي په خلکو به قهر اوظلم کوي اوکه ويني چي په جنازه کي سپك دی دليل دی چي دخلکو سره به نيکي کوي اوکه ويني چي مړي په لاسونو کي وړي دليل دی چي حرام مال به حاصل کړي اوکه ويني چي ژوندي مړ سوي دی او خلک يې پر تخته پري باسي اوهغه تخته خلکو په لاسونو کي پورته کړي ده دليل دی چي دپاچا خدمت ته به ځي او دهغه څخه به خير اونفع ويني اوکه ويني چي مړ سوي دی اوبيا ژوندي سوي دی دليل دی چي دغه ښار به خراب سي اوکه ويني چي دوباره مړ سوي دی دليل دی چي دده دزامنو څخه به يو مري اوکه ويني چي دده زوی مړ سويدی دليل دی چي مالدار به سي اووايي چي ددښمن څخه به په امن کي سي اوکه ويني چي دده مور اوپلار مړه سوي دی دليل دی چي کار به يې خراب سي اوکه ښځه ويني چي حامله وه اومړه سويده او خلک ورته ژاړي دليل دی چي زوی به يې پيداسي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی که ويني چي مړي دوباره مړ سوي دی او په مرګ يې خلک رو رو ژاړي دليل دی چي دده په اهل کي به دچا واده کيږي او خوشحالي به ويني اوکه ويني چي په مرګ يې ښځي اوسړی شور او ژړا کوي دليل دی چي دده اهل بيتوته به غم اوفکر رسيږي اوکه ښځه ويني چي دامړه ده اوغسل يې ورته ورکړي دی او په جنازه کي يې ايښي ده دليل دی چي نيکه خبره به کوي اوکه ويني چي دفن کړي يې ده نو د دې تعبير بد دی.

## مرده زنده شدن \ د مړي ژوندي کيدل

ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دی که ويني چي مړي ژوندي سوي دی دليل دی چي حال به يې نيك سي خاصکر که مړي خوشحاله او خندرويه ويني اوکه ژوندي مړ ويني نو دده حال به بد سي خاصکر که مړي تريو تندي وي اوکه څوک خپل مړ پلار ژوندي ويني دليل دی چي دولت اومرتبه به حاصله کړي خاصکر که په پاکيزه کالو کي اوخوشحاله يې ويني اوکه مور ژوندي ويني دليل دی چي دغمونو څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه ښځه ويني چي د دې زوی

ژوندي سوي دی دلیل دی چي دهغې يو څوك غايب به دسفر څخه راسي. اوكه پردي مړي ژوندي ويني دليل دی چي دهغه مړي دخپلوانو حال به نيك سي اوكه ويني چي ژوندي مړ سوي دی نو د دې تعبير داولني خلاف دی اوكه ويني چي ده مړي ژوندي کړی دی دليل دی چي كافر به دده دلاسه مسلمان سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چي كه څوك خپل مور اوپلار تريو تندي غمجن او په خيرنو كالو كي ويني دليل دی چي دده په دولت اومرتبه كي به نقصان وي. په كوم صفت چي مړی په خوب كي ويني هغه دژوندي پر احوالو دليل لري اوكه څوك خپل پلار يا مور خندرويه اوپه پاكو كالو كي ويني دليل دی چي شرف اوبزرگي اومرتبه به حاصله كړي اوكه د دې خلاف ويني نو تعبير يي هم خلاف دی. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دی كه چا مړي په خوب كي وليدي اوپوښتنه يي څني وكړه چي ته خو مړ سوي وي هغه وويل چي نه زه خو ژوندي يم دليل دی چي په دي جهان كي دمړي خبره ښه ده اودالله تعالی خوشخبري ده دالله تعالی فرمان دی (ولا تحسبن الذين قتلوا في سبيل الله امواتا بل احياء عند ربهم يرزقون فرحين بما اتهم الله من فضله، سورة آل عمران: ۱۶۹ – ۱۷۰) ترجمه: اوكوم خلك چي دالله تعالی په لاره كي قتل سوي دی هغوي مړه بوله بلكي ژوندي دي او د خپل رب په وړاندي خوراك كوي، هغوی ته چي خپل رب څه وركړي دی په هغه خوشحاله دي. دا ايت پردي خبره دليل دی چي مړي څه وايي هغه رښتيا وايي اوكه ويني چي مړي خوشحاله پخپل كور كي ناست دی دليل دی چي صدقه او دعا هغه ته رسيږي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی كه ويني چي مړي يي پخپل كور كي په غيږ كي نيولي دی دليل دی چي تندرست اوسلامت به سي او مرتبه او دولت به حاصل كړي كه مړي دده دخپلوانو څخه وي نو هغه مړي دده څخه ددعا او صدقي اميد لري اوكه څوك مړي دخپل كور والاو څخه خوشحاله ويني دليل دی چي دده دكور والاو حال به ښه سي اوكه مړي تريو تندي اوغمجن ويني نو د دې تعبير داولني خلاف دی اوكه ويني چي دده دكورني مړي دده سره جنګ كړي دی يا يي مخ څني اړولي دی دليل دی چي هغه مړي به ده ته څه وصيت كړي وي او ده به نه وي پوره كړي اوكه ويني چي مړي په خندا او خوشحالي دده خواته راغلي دی دليل دی چي هغه ته دعا اوصدقه رسيدلي ده اوكه د دې خلاف ويني دليل دی چي دهغه په حق كي به يي كوتاهي كړي وي اوكه ويني چي مړي ورسره ښي خبري كوي دليل دی چي دده حال به نيك سي اوكه خرابي خبري ورسره وكړي يا ورته څه وصيت وكړي نو د دې تعبير بد دی اوكه مړي ورسره دعلم او حكمت خبري وكړي يا ورته څه وعظ يا نصيحت وكړي نو دا دده پر ديانتي او ددين پرصلاح دليل دی. اوكه مړي ددنياوي ژوند څخه ښه خوشحاله اوپه پاكيزه كالو كی ويني دليل دي چي دهغه خاتمه په خير او سعادت سره سويده اوكه ددي خلاف ويني دليل دی چي مړي دالله دعذاب څخه په امن كي دی او انجام يي ښه دی. حافظ معبر رحمه الله ويلي دی كه ويني چي مړي دده پر څټ لاس اچولي دی او دی يي په غيږ كي اخيستي دی دليل دی چي عمر به يي زيات سي اوكه ويني چي مړي ورته څه توجه نه

ده کړي اونه يې بيا ورسره څه خبره کړي ده دليل دی چي خوب ليدونکي دي دهغه لپاره صدقه ورکړي اوهغه دی په نيکه دعا سره ياد کړي اوکه يې تريو تندي اوغمجن وويني دليل دی چي گنهگار به وي اوکه مړي اول خندلي وی اوبيا يې ژړلي وي دليل دی چي دغه مړی مسلمان نه دی مړ اوکه دمړي تور تندي ووينې دليل دی چي په کفر کي مړ دی دالله تعالی فرمان دی (فاما الذين اسودت وجوههم اكفرتم بعد ايمانكم فذوقوا العذاب بما كنتم تكفرون، سورة آل عمران: ۱۰۶) ليکن دکومو خلکو مخونه چي تور دی ايا تاسو دايمان څخه وروسته کفر کړي دی نو دکفر دوجي څخه په عذاب کي اوسي. اوکه مړي عاجز او دکالو څخه بغير ووينې دليل دی چي دمړي حال به بد وي. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی که ووينې چي مړي په لمونځ کي دی دليل دی چي دغه مړي په ژوند کي ډير استغفار کړي دی اوکه ووينې چي مړي په هغه ځاي کي لمونځ کوي کوم ځای چي به يې په ژوند کي کوی نو دا دمړي پر پاك دين او دژوندي پر ښه انجام دليل دی.

## مړده چيزي دادن\دمړي څه ورکول

دانيال عليه السلام ويلي دی که ووينې چي مړی ددنيا څه سامان ورکوي دليل دی چي هلته به دڅه شي درسيدلو اميد نه لري اوکه ووينې چي مړي ورته څه شي دخوراك يا چيښاك ورکړيدی او ده خوړلي دی دليل دی چي حلاله روزي به حاصله کړي. اوکه خوړلي يې نه وي نو د دې تعبير خلاف دی اوکه ووينې چي مړي ورته دخپلو کالو څخه څه ورکړي دی او ده اغوستي دی دليل دی چي دمال او جان څخه به ورته غم اوفکر رسيږي اوکه کالي يې نه وي اغوستي دليل دی چي خوب ليدونکي به ددي جهان څخه رحلت کوي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ووينې چي مړي ده ته دوه کالي ورکړي دی او ده اخيستي دی اوبيا يې ايستلي دی اوخلکو ته يې ورکړي دی دليل دی چي دده نقصان به نه کيږي بلکه مال به يې هلاک سي اوکه ووينې چي مړي ده ته دکم قيمت کالي ورکړي دی اوبيا يې ځني اخيستي دی دليل دی چي ددغه مړي کار به خراب وي اوکه ووينې چي مړي ورته زاړه کالي ورکړي دی دليل دی چي خوب ليدونکي به فقير سي اوکه نوي کالي يې ورته ورکړي وي دليل دی چي عزت اوبزرگي به حاصله کړي. اوکه مړي ورته قرآن کريم يا دفقهي وغيره کتاب ورکړي وي دليل دی چي دخيرات اوعبادت توفيق به حاصل کړي اوکه مړي کالي خرڅوي دليل دی چي دغه کالي به گران سي اوکه مړي ته يې څه بخشش کړي وي اوهغه نه وي قبول کړي دليل دی چي ده ته به ضرر اونقصان رسيږي.

## مړده ناليدن\دمړي ژړا

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که څوک مړي بدحاله اوژړيدونکي ووينې دليل دی چي په دنيا کي ده کوم خراب کار کړي دی دهغه په هکله سوال ځني سوي دی اوکه مړي ناجوړه ووينې دليل دی چي دهغه څخه به ددين او دايمان سوال سوي وي اوکه مړی دسر دددرد څخه ژاړي نو په دنيا کي چي يې کوم تکبر کړي وي دهغه پوښتنه به ځني سوي وي او بعض اهل تعبير وايي چي ده دمور او پلار په حق کي څه قصور کړي وي دهغه سوال به ځني سوي وي اوکه مړي دغاښونو

ددرد دوجي څخه ژاړي نو دغیبت په هکله به پوښتنه ځني کیږي اوکه دسترګو ددرد دوجي څخه ژاړي نو په دنیاکي چي یي دخلکو پرعیال کوم بدنظر کړي وي دهغه په هکله به سوال ځني وسي اوکه دغوږ ددرد څخه ژاړي نو کومي خرابي خبري چي یي اوریدلي وي دهغه سوال به ځني کیږي اوکه دلاس د درد څخه ژاړي نو ده چي څه دښځو یا ورونو په حق کي کړي وي دهغه پوښتنه به ځني کیږي اوکه د اړخ ددرد څخه ژاړي دلیل دی چي څه ده د ښځو په حق کي کړي دی دهغه سوال به ځني کیږي اوکه دملا ددرد څخه ژاړي نو دمور او پلار په حق کي به سوال ځني کیږي اوکه دعضو تناسل ددرد څخه ژاړي نو په دنیا کي چي یي زنا یا فساد کړي وي دهغه سوال به ځني کیږي اوکه دکوناټو ددرد څخه ژاړي نو په دنیا کي چي څه ده په سفر اوکور کي دخپلوانو په حق کي کړي وي دهغه په هکله به سوال ځني کیږي اوکه مړي دپښو اوپنډیو ددرد څخه ژاړي دلیل دی چي څه ده په دنیا کي کړي وي دهغه په هکله به سوال ځني کیږي.

## مجامعت کردن بامرده \ د مړي سره جماع کول

جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي اصل خوب دا دی چي دمړي سره جماع وکړي اومني ځني نه وي وتلي نو تعبیر به یي ښه اوریښتوني وي اوکه غسل باندي واجب سوي وي نو بي کاره دی اوکه وویني چي دمړی سره یي جماع کړي ده دلیل دی چي دکوم ځاي څخه امید نه لري دهغه ځاي څخه به یي امید پوره سي اوکه دخپلي مړي خور یا مور سره یي جماع کړي وي دلیل دی چي دیو ځاي څخه به دغه مړي ته صدقه اوثواب رسیږي اوکه دمړي سره یي جماع کړي وي نو دهغه مړي دمال څخه به ورته څه حاصل سی اوکه مړی یي په شهوت سره مچ کړي دی دلیل دی چي ښځه به کوي او دمړی لپاره به څه دخیر کارکوي یا به یي په دعا سره یا دوي.

## جامهای مرده \ د مړي کالي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که وویني چي مړی شنه کالي اغوستي دی دلیل دی چي ددنیا څخه شهید تللي دی اوکه په سپینو کالو کي یي وویني دلیل دی چي دهغه درجه به نیکه وي اوکه په تورو کالو کي یي وویني دلیل دی چي دهغه حال بد دی او ددوزخیانو لباس تور دی اوکه په سرو کالو کي یي وویني دلیل یي بد دی اوکه په زړو کالو یا په اوبدلو کالو کي یي وویني دلیل دی چي خوب لیدونکي به په غم اومصیبت کي مبتلا سي اوکه په نقشداره کالو کي یي ووینې دلیل دی چي دده به دمړي سره جنګ کیږي او حق بجانب به مړ وي اوکه ددی خلاف ووینې نو حق بجانب به ژوندی وي او بعض اهل تعبیر بیان کړي دی چي که ژوندي سړی په خوب کي مړي ته کالي ور واغوندي دلیل دی چي دده مرګ نزدی دی.

## کفن مرده \ د مړي کفن

ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چي معلوم مړی ته یي کفن اغوستي دي دلیل دی چي په دي جهان کي به دمړی طریقه اختیار کړي که عالم وو نو په علم کي اوکه مالدار وو نو په مال کي اوکه ووینې چي دمړي څخه یي کفن ایستلي دی دلیل دی چي دغه مړی په قبر کي ژوندي دي او حال یي نیك دی اوکه ووینې چي مړي ته یي کفن ورکړي دی دلیل دی چي دمړی

خپلوانو ته به کالي ور کوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دمړی لباس په درو وجو وي. ۱: مال ۲: دمشکل کار ښکاره کیدل ۳: ددین فساد. اوکه وویني چي مړي نظر باندي کړي دی دلیل دی چي عمر به یي زیات سي لیکن په کور کي به یي خرابي راځي اوکه وویني چي مړی ژوندي سوي دي دلیل دی چي مشکل کار به باندی ښکاره سي د دې وجي څخه که بي کاره وي نو کار به حاصل کړي اوکه پاچا وي نوعلم اوحکمت به یي زیات سي اوڅه امید چي یي وي هغه به پوره سي اوکه په یو کار کي پریشانه وي نوهغه به پوره سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی که څوك ووینی چي لوی سړي یا عالم ژوندي سوي دی دلیل دی چي دده خوي او مذهب به ژوندي سي خواه که نیك وي یا بد وي اوکه وویني چي ده یو شي مړی ته ورکړي دی دلیل دی چي دشي نرخ به ګران سي اوداهم وایي چي مړی به بخښل سوي او شهید وی اوکه وویني چي مړی ته خوراك غواړي دلیل دی چي مړی دده څخه دصدقي امید لري.

## مرغ\مرغان

ابن سیرین رحمة الله علیه ویل دی چي په خوب کي مرغه څونه غټ وي هغونه به په همت سره دغټ کار طلب کوي اوکه وویني چي ډیر مرغان په څه ځاي کي اوازونه کوي دلیل دی چي دغه ځاي والاو ته به غم اومصیبت رسیږي اوکه وویني چي دده سره دمرغه هګي ده دلیل دی چي زوی به یي پیداسي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی که وویني چي مرغه دده سره خبري کوی دلیل دی چي دده کار به لوړ سي اوکه وویني چي مرغه دده په لاس کي کښېنستلی دی دلیل دی چي غمجن به سي اوکه وویني چي ده دمرغه په ملابوج ایښي دی دلیل دی چي دهغه سړی څخه کوم چي دغه مرغه یې وطرفته منسوب دی ده ته به نقصان ځني رسیږي اوکه وویني چي مرغه دده دبدن څخه تازه غوښه وړي ده دلیل دی چي څوك به دده څخه په زوره مال اخلي اوکه وویني چي دخپل بدن غوښه یې مرغه ته اچولي ده دلیل دی چي دخپل مال څخه به چا ته څه ورکوي اوکه وویني چي مرغه دغوښي ټکړي دهډوکي سره دده په مخکي اچولي دی دلیل دی چي مال به حاصل کړي او دهر مرغه تعبیر هغه سړی دي څوك چي دمرغه طرفته منسوب وي او داخبره مخکي بیان سوي ده. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دی چي مرغه دبنده فروش په ډول دی چي غلام اومینځه خرڅوی اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دی که وویني چي مختلف قسمه مرغان ښار ته راغلي دی دلیل دی چي دلته به نا اشنا لښکر راځي اوکه وویني چي مرغه دده سترګی ایستلي دی دلیل دی چي دده دین ته به تباهي رسیږي اوکه وویني چي دمارغه وینه یي چیښلي ده نو دده مال ته به نقصان رسیږي.

## مرغ آبی\مرغابي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي مرغابي دنورو مرغانو څخه په تعبیر کي ښه ده اوکه وویني چي ده مرغابي نیولي ده یا چا ورکړیده دلیل دی چي مال نعمت او بزرګی به حاصله کړي او دزړه مراد ته به رسیږي اوکه وویني چي دده سره ډیري مرغابي جمع سوي دی دلیل دی چي مال به حاصل کړي او پر دښمن به کامیابي حاصله کړي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دی چي مرغابي

ژوند دی اوکه ويني چي مرغابي يي نيولی ده يا چا ورکړي ده دليل دی چي مال اوبزرگي به حاصله کړی او ددی هډوکي مال اونعمت دی او جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي خلکو په يو ځاي کي مرغابي ايښي ده دليل دی چي په هغه ځاي کي به مصيبت اوغم وي اوکه ويني چي دمرغابي بچي يي نيولي دی يا چا ورکړي دی دليل دی چي زوی به يي پيدا سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کی مرغابي ليدل په څلورو وجو ده. ۱: مال ۲: بزرگي ۳: رياست ۴: حکومت ځکه چي مرغابي کله په اوبو کي اوکله په مځکه کي وي ددې وجي څخه مرغابي په خوب کی ليدونکي چي کوم مراد غواړي هغه ته به ورسيږي.

## مردمان\خلک\خلق

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي خلکو شنه کالي اغوستي دی نو دا دده پر ارام او پاك دين او خوشحالي دليل دی اوکه ويني چي خلک تور اوخيرن کالي لري نو د دې تعبير داولني خلاف دی اوکه ويني چي دهغوي کالي اسماني رنګ دی نو پر مصيبت اوفکر دليل دی اوکه ويني چي نوي اوفراخه کالي لري نو پر عشق او دنعمت اوفکر دليل دی اوکه ويني چي نوي اوفراخ کالي لري نو پر عيش او دنعمت پر فراختيا دليل دی.

## مرغزار\چمن

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دی که څوك په خوب کي چمن ويني او دبوټو قسمونه نه پيژني نو دده پر دين او اسلام دليل دی اوکه ويني چي پخپل چمن کي دی نوپه قدر دهغه دده پر دين او اعتقاد دليل دی اوکه ويني چي دبل چا دچمن سيل يي کړي دی دليل دی چي دده صحبت به دنيکو خلکو سره وي اوکه ويني چي په چمن کي خوشحاله ګرځي دليل دی چي ژوند به يي فراخ سي اوکار به يي په انتظام سره وي اوچمن په خوب کي بزرګ سړی دی دهغه دښوالي مطابق اوکه چمن پاك او ښه ويني اوپيژني چي دده دی دليل چي دلوی سړی سره به ملاو سي او دهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي اوکه ويني چي دپسرلي په موسم کي ګرځي اوګلونه او غوټي راشني سوي دی اوداوبو نهر پکښي جاري دی دليل دی چي دده مرګ به دشهيد وي او که دپسرلي په موسم کي چمن ويني اوځاي معلوم يانامعلوم وي او ګلونه اوکشمالي پکښي ولاړ وي دليل دی چي دده به دلوی سړی سره ملګرتيا وي چي د خپلو مزدورانو څخه جلا سي اوکه چمن ښايسته ويني شنه بوټي اوګلونه پکښي وي او اوبه پکښي جاري وی او دي هغه وران کړي دليل دی چي ددغه ملک پاچا ته به ناګهاني مرګ راځي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی که ويني چي چمن ته تللي دی او په هغه کي يي زمري ليدلي وي دليل دی چي ددغه ملك پاچا به ظالم اوجابر وي اوکه په هغه کي يي سرلي ليدلي وي دليل دی چي ددغه ملک پاچا ته به ډير مال حاصل سي او په هغو به بروسه نه وي اوکه ويني چي دچمن څخه يي ګلونه جمع کړي دي او کور ته يي راوړي دی دليل دی چي دپاچا څخه به خير اونفع حاصله کړي. اسماعيل اشعث رحمه الله عليه ويلي دی چي په خوب کي چمن ښځه ده اوکه ويني چي په تر وتازه چمن کي مقيم سوي دی دليل دی چي ددغه ځاي څخه به ښايسته اوجنګيالي ښځه کوي اوکه ويني چي

ښه او ښايسته چمن دی نو ددې تعبير خلاف دی. جعفر صادق رحمه الله ويلي دی چي په خوب کي چمن ليدل په اوو وجو وي. ۱: دين ۲: اعتقاد ۳: ژوند ۴: پاچا ۵: بزرګ سړی ۶: خير اونفع ۷: مراد حاصلول.

## مرهم \ ملهم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی که ويني چي پر زخمي بدن يي مرهم ايښي دي نو ده ته ددين نقصان رسيږي اوکه چا ته يي ورکړي وي نو دخلکو زامنو ته به خير اونفع رسوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که پر زخم يي مرهم ايښي وي اوهغه مرهم غوښه خوري نو دمال نقصان دی.

## مرواريد \ ملغلري

دانيال عليه السلام ويلي دی چي په خوب کي ملغلره دغلام يا مينځي زوی دی ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کی ملغلره ښايسته مينځه ياښايسته ښځه ده اوکه ويني چي دده سره بي شماره ملغلري دی دليل دی چي هغونه به ورته نفع ورسيږي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دی چي که خرابه ملغلره ويني نو دعلم او دحکمت په خبرو دليل دی اوبعض وايي چي په هلکانو او انجونو دليل لري. ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که خرابه ملغلره ويني نو پر ښځو او انجليانو دليل دی اوکه ويني چي دده سره ډيري ملغلري دی نو هغونه به مال حاصل کړي اوکه ويني چي دده دخلي څخه دملغلرو هار راوتلي دي دليل دی چي دده دخلي څخه به دعلم او حکمت ښايسته برابر کلام راځي اوکه ويني چي ملغلري يي خوړلي دي دليل دی چي دعلم توحيد اوحکمت خبري پټوي يا به قران کريم هيروي اوکه ويني چي دملغلرو لړۍ يي په کور کي يا لاره کي اواري کړي دي دليل دی چي دده تصنيفات او تاليفات به په علم حکمت کي ډير وي او خلک به دده دکلام څخه علم او پوهه حاصله کړي اوکه ويني چي دلرګو په ځاي ملغلري سوزوي دليل دی چي خلکو ته به علم اوحکمت ډير زده کوي خو دغه خلک به د زده کولو قابل نه وي اوکه ويني چي دده سره ډيري ملغلري دی اودی پرهيزګار او ديندار وي نو دا دده پر ديانت اودين دليل دي اوکه مالداره وي نو مال به يي زيات سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی که ويني چي دده سره ملغلري دی دليل دی چي دده به ښايسته زوی پيداسي د الله تعالی فرمان دی (کانهم لؤلؤ مکنون، سورة الطور: ٢٤) ترجمه: ګويا که دغه هلکان به داسي وي لکه چي ملغلري په غلاف کي پټي وي. اوکه غټه ملغلره ويني چي دحدڅخه زياته غټه وي نو ډير زيات مال به حاصل کړي اوکه ويني چي ملغلره يي خرڅه کړي ده دليل دی چي علم اوقرانکريم به هيروي اوکه ويني چي ملغلره يي په خله کي ايښي ده اوتيره کړي يي ده دليل دی چي الله تعالی به ورته علم اوحکمت ورکړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که ويني چي دده سره ډيري ملغلري دی دليل دی چي الله تعالی به ورته علم قران او حکمت ورکړي اوکه ويني چي دده دخولي څخه قيمتي ملغلري يوه يوه راوزي دليل دی چي ښي خبري به کوي چي خلک به يي خوښوي اوکه ويني چي دملغلرو هار دده دلاسه ايله سوي دی اومات سوی دی دليل دی چي

ډیري خبري به کوي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي ملغلره یي په خراب ځای کي اچولي ده دلیل دی چي علم اوحکمت به کم عقلو خلکو ته ښیي اوکه ویني چي ملغلره یي سوزلي ده یا یي په کاڼی ماته کړي ده دلیل دی چي دشریعت خلاف کار به کوي اوکه ویني چي ملغلره دده دپښي ګخه لاندي ماته سوي ده دلیل دی چي زوی به یي مري اوکه ویني چي ملغلره دده دعضو تناسل څخه راوتلي ده اوپه ملغلره کي سایه نسته دلیل دی چي لور به یي پیداسي اوکه ویني چي دملغلري هارونه یي په مري کي اچولي وي دلیل دی چي هر قسم علم به حاصل کړي اوکه دچا په غاړه کي یي اچولي وي نو هغه سړی ته به علم اوحکمت ښیي اوکه ویني چي دملغلرو والي دده په دواړو غوږونو کي دی دلیل دی چي قران کریم به حفظ کوي اوکه ویني چي دده سره دملغلرو ډیران دی دلیل دی چي دهغه په قدر به مال حاصل کړي. جابر مغربي رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي ملغلري خرڅوي دلیل دی چي دغه سړی مصلح او پرهیزګاره دی اوده ته دهر علم څخه حصه ورکول سوه اوکه دغه سړی داهل علم څخه وي دلیل دی چي زامن اوډیر زامن اوډیر علم به ورته حاصل سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي ملغلره لیدل په شپږو وجو وي. ۱: قران کریم ۲: حکمت او هوښارتیا ۳: مال ۴: ښځه ۵: ښایسته مینځه ۶: نیك زوی اوپه خوب کي ملغلري خرڅونکي داسي سړی دی چي ډیر زامن ډیر علم اومال لري.

## مزدوران

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي مزدوران دده په کور کي دی اوکار کوي دلیل دي چي دده به دپاچا دخپلوانو سره جنګ کیږي او دهغوي څخه به جلا سي جابرمغربي رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي دخلکو په کورونو کي مزدوري کوي دلیل دي چي په سخت کار کي به ګرفتاره سي او دکور دخاوند به دچا سره ښکار کیږي اوکه ویني چي مزدوران دده په کور کي کار کوي دلیل دی چي دي به غمجن سي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دی که ویني چي مزدوران دده کورته خاوري راوړي دلیل دي چي مال اونعمت به حاصل کړي اوددي خلاف دمال پر نقصان دلیل دی.

## مژګان\ باڼوګان

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي دسترګو باڼو لیدل ددین په نظر کي ساتل دی اوکه ویني چي دده باڼو رپیږي نوناجوړه به سي اوکه ویني چي دده باڼو ایله سویدی نو دده دین به خراب وي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دی چي که ویني چي دده باڼو کاږه سوي دي دلیل دی چي دمال نقصان به یي وسي او باڼو په رپیدو لیدل دناجوړي دلیل دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دی چي په خوب کي باڼو لیدل په څلورو وجو وي. ۱: ددین حفاظت ۲: موافق دوست ۳: مال او روزي ۴: خوشحالي په قدر دزوی حاصل دا دی چي په باڼو کي هر قسم خیر اوشر لیدل په دي څلورو وجو دلیل لري.

## پرهيز دانه\مزدورها\د مريضانو نرم خوراک\پرهيز

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې پرهيز دانه که تريخ اوبې خونده نه وي نو پر خير او نفع دليل لري اوکه تريخ اوبې خونده وي نو پر ضرر اوغم دليل لري.

## مس\تانبا

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې دده سره تانبا ده نو دهغه په اندازه به مال حاصل کړي ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چې دتانبې لوښي لکه ګلاس اولوټه اوڅه چې د دې مشابه وي د اتول پر واده اونکاح باندې دليل لري. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی که ووينې چې ده تانبه ويلي کړې اوصفا کړې يې ده دليل دی چې ګران کار به باندې اسان سي اومال به په مشقت سره حاصل کړي.

## مستي\بې هوښي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې بې هوښي په لمونځ اومال کې سستي ده ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې بې هوښي که دشرابو د وجې څخه وي دليل دی چې په خوف اوبيره کې به وي.

## مسجد\جماعت\جومات

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چې اباد جماعت په تعبير کې عالم سړی دی په چاپسې چې دصلاح لپاره ډير خلک راځي دالله تعالی فرمان دی (ومسجد يذكر فيها اسم الله كثيرا، سورة الحج: ٤٠) او په جماعتونو کې دالله تعالی ذکر ډير کيږي اوکه ووينې چې ده جماعت جوړ کړي دی دليل دی چې دمسلمانانو لپاره به خير او نيکي کوي اوددی څخه به ورته اجر اوثواب ملاوسي يا به څوک پخپل کار جمع کوي يا به يو قوم پر دين اسلام اوشريعت قايموي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې دجماعت بنياد ايښول ښځه کول دی که ووينې چې ده دجماعت بنياد ايښې دی که بنياد يې ختم کړي دی دليل دی چې حلاله ښځه به کوي اودغه ښځه به ديندراه اوپرهيزګاره وي اوکه ووينې چې ده دجماعت ډيوه مړه کړې ده دليل دی چې دده زامن به مري اوکه ووينې چې په جامع مسجد کې ناست دی اودده څخه چاپيره وانبه شنه سويدی دليل دی چې څوك به پر ده دداسې شي ګمان کوي چې په ده کې به نه وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دی که ووينې چې دی چا دجماعت د دروازې څخه منع کړي دی دليل دی چې هغه به پر ده ظلم کوي اوکه ووينې چې ده په جماعت کې لمونځ کړي دی او دده مخ دقبلې طرفته نه وو نو د دې تعبير بد دی اوکه ووينې چې ده په جماعت کې مخ او لاس پريولي دی دليل دی چې خپل مال به په دغه جماعت کې خرڅوي او مراد به ورته حاصل سي اوکه جماعت وران ووينې نو يوڅوك عالم به مري. اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دی چې په خوب کې مسجد جوړول خواهش دی اوخلک جمع کول دی اوبيا هغوي پر سمه لار راوستل دی او ددښمنانو غيبت کول دی دالله تعالی فرمان دی (وقال الذين غلبوا على امرهم لنتخذن عليهم مسجدا، سورة الكهف: ٢١) اوکوم خلک چې

پخپل کار غالب وو هغوي وويل چي موږ به پردي جماعت جوړوو اوکه ويني چي دده په ځاي کی جماعت جوړ سوي دي دليل دی چي په دين کي به شرف اوبزرگی حاصله کړي او مخلوق ته به دالله تعالی طرفته بلنه ورکوي اوکه ويني چي ديو قوم سره جمات ته تللي دی دليل دی چي دجنگيالي ښځي سره به واده کوی. اوکه ويني چي په جماعت کي يي چراغ بل کړي دی دليل دی چي مصلح زوی به يي پيدا سي اوکه ويني چي دمکي مکرمي يا دمديني منوري جمات ته تللي دی دليل دي چي دهر طرف څخه به په امن کي سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کی جمات ليدل په دولسو وجووي. ۱: پاچا ۲: قاضي ۳: عالم ۴: رئيس ۵: امام ۶: خطيب ۷: موذن ۸: امير ۹: خير او برکت ۱۰: مسجد ۱۱: ښځه کول ۱۲: نيکي کول، اوکه ويني چي دجمعي په ورځ يي جماعت ښاسته کړيدی نو دا دده پر ايمان او ددين په درستي دليل دی اوکه ويني چي جماعت ته تللي دی دليل دی چي دبيري څخه به په امن کي سي دالله تعالی فرمان دی (ومن دخله کان امنا، سورة آل عمران: ۹۷) او څوك چي په دي کي داخل سو په امن کي به سي.

## مسح

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی که ويني چي ده پر موزو مسح کړيده دليل دی چي په سفر به ځي او په دي سفر کي به ډير مال حاصل کړي اودده کار به په انتظام سره وي.

## مسکه \ کوچي

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی چي تازه غوړي په تعبير کي مال اوحلال نعمت دی اوکه ويني چي کوچي يې اخيستي دي يا چا ورکړي دی او ده خوړلي دی دليل دی چي دهغه په اندازه به حلال مال حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي کوچي خوړل رينښتوني گواهي ورکول دی که دبزي کوچي وخوري دليل دی چي مال اونعمت به ورته حاصل سي اوکه دغوا کوچي وخوري دليل دی چي دغه کال به باندي مبارك سي اودهغه په اندازه به خير او برکت حاصل کړي حاصل دا دی چي دحلال ځناور کوچي پرحلال مال دليل دی اودکومو غوښه چي حرامه وي پرحرام مال دليل دی. جعفر صادق رحمة الله علیه ويلي دی چي په خوب کي کوچي په څلورو وجو دليل لري. ۱: حلال مال ۲: رينښتوني گواهي ۳: علم او پوهه ۴: گناه اومعصيت.

## مسواک

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دی که ويني چي ده مسواك وهلي دی دليل دی چي مال به په خيرات کي خرڅ کړي او پر دي به څه ثواب نه وي. جابر مغربی رحمة الله علیه ويلي دی که ويني چي ده دمخکنيو غاښونو مسواك کړي دی دليل دی چي پر ورونو اوخوندو به احسان کوي اوکه ويني چي دټولو غاښونو مسواك يي کړي دی دليل دی چي دټولو خپلوانو سره به نيکي کوي.

## مشرق \ مغرب \ ختيځ \ لوېديځ

ابن سيرين رحمة الله علیه ويلي دي چي په خوب کي مشرق ددنيا پر پاچاهانو دليل دي اودلمر راختل

پر حکومت دلیل لري اودپاچاهانو دطرف څخه فرمان دي اودلمر لویدل د دې خلاف دي اوکه ووینې چې داصلاح دکار لپاره په مشرق کې دي نو پر نعمت دلیل دي اوکه خپل ځای خراب ووینې دلیل دي چې دده مراد به پوره نه سي اوپه هر حال کې دلمر دراختلو ځای دلمر لویدلو څخه ښه دي او دلمر دراختلو ځای پر مرتبې اوبزرګۍ دلیل لري اودلمر دلویدلو ځای پر بدبختۍ اوعاجزۍ دلیل دي.

## مشرک شدن \ مشرک کیدل

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې که مشرك ووینې چې مسلمان سوی دي دلیل دي چې په اسلام کې به مري اوکه ووینې چې مشرك دقبلې طرفته لمونځ کوي یا دالله پاك شكر ادا کوي دلیل دي چې هغه به مسلمان سي اونعمت به باندې زیات سي دالله تعالی فرمان دي (الله نور السموات والارض مثل نوره کمشکوة، سورة النور: ۳۵) الله پاك داسمانونو او دزمکو نور دي او دده دنور مثال دتاخ په شان دي اوکه ووینې چې مشرك دمسلمان کورته راغلی دي نوهم دغه تعبیر یې دي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چې که څوک مشرك په خوب کې ووینې او خوب لیدونکی پرهیزګار وي نو دلیل دي چې دعلم تلاش به کوي اوپر دښمن به کامیابي حاصله کړي اوکه پرهیزګار نه وي دلیل دي چې دبد مذهبه خلکو سره به صحبت ساتي.

## مشک \ خوشبو

دانیال علیه السلام ویلي دي که ووینې چې دده سره مشك دي دلیل دي چې با ادبه اوهوښیار به سي اوټول خلک به دده تعریف کوي اوکه ووینې چې دده څخه دمشکو یا دکافور خوشبویي راځي دلیل دي چې دده عقیده اویقین به پاك اوصفا وي او دحق لاري ته به راځي. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چې مشك میده کوي دلیل دي چې دچا سره به نیکي کوي جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چې په خوب کې مشك لیدل په شپږو وجو وي. ۱: ښځه ۲: دوست ۳: خوشحاله ژوند ۴: مینځه ۵: ډیر مال ۲: ښه خبره.

## مشک آب \ داوبو مشک

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې داوبو مشک سفر دي که ووینې چې دده سره نوي داوبو مشك دي دلیل دي چې په سفر به ځي اوډیره فایده به حاصله کړي اودزوړ مشك تعبیر د دې خلاف دي جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چې په خوب کې د اوبو مشک لیدل په درو وجووي. ۱: سفر ۲: مال ۳: ژوند.

## مصحف \ قرآن شریف

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چې په خوب کې قران کریم په تعبیر کې علم او حکمت دي اوکه ووینې چې قران مجید یې اخیستي دي دلیل دي چې طالب العلم او هوښیار به سي اوکه ووینې چې سوزلي یې دي نو داکار دده ددین په فساد دلیل دي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چې ده قران کریم خلاص کړي دي اوپر سر اوسترګو یې ایښي دي دلیل دي چې دده ټول

کارونه به په اندازي سره وي او دښار حاکم به سي اوکه ووينې چې قران مجيد دده سره خبري کوي که نيکي خبري وي نو پر نيکي دليل دي اوکه بدي خبري وي نو پر بدي دليل دي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي چې په خوب کي قران کريم ليدل په پنځو وجو وي. ۱: علم او حکمت ۲: ميراث ۳: امانت ۴: حلاله روزي ۵: دين او ديانت.

**معطلګي (يو ډول دوا)**

معطلګي يو قسم سرېښ دوا ده ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي که ووينې چې معطلګي ژوي دليل دي چې ده ته به خير پيښ سي ابراهيم کرماني رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي که ووينې چې معطلګي په اوبو سره خوري دليل دي چې هغونه به دچا شکا يت کوي که وګوري چې معطلګي په اور دود کوي دليل دي چې خوب ليدونکي به دپاچا تکليف پورته کوي.

**مطبوخ \ جوشانده**

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي که ووينې چې ده دناجوړي لپاره جوشانده پخکړي ده او جوشانده دهغه مطابق وي دليل دي چې ددين صلاح به تلاش کوي اوکه جوشانده دهغه مطابق نه وي دليل دي چې ددين صلاح به نه تلاش کوي اوکه ووينې چې جوشانده يې چيښلي ده اوهغه اثر کړي دي نو پر صلاح تندرستي او خير دليل دي اوکه ددې خلاف ووينې نو پر غم اونقصان دليل دي.

**مطرب \ غزلچي**

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي چې که ووينې چې غزلچي څه غزلي وايي دليل دي چې دحرامو شيانو طرفته به مايل سي اوکه هغه ډول دبله يا ددې په ډول يو ساز ږغوي نو پر غم دليل دي اوپه خوب کي ډم توب کول خير اونفع ده اوتعبير بيانوونکي ته پکار دي چې که څوك داسي سړى وي لکه قاضي مفتي او واعظ دادري سره قومونه دژړا او زاري خاوندان دي او په تعبير کي پر فساد دليل لري.

**معجون**

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي که ووينې چې معجون يې ددرد اوناجوړي لپاره جوړ کړي دي دليل دي چې دده څخه به خلکو ته خير اونفع ورسيږي اوکه ووينې چې دغه معجون دهر چا لپاره وو دليل دي چې دده څخه به عامو خلکو ته خير اونفع رسيږي.

**معده**

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي که ووينې چې دده معده قوي اوبي نقصانه ده دليل دي چې عمر به يې زيات سي اوکه د دې خلاف ووينې نو عمر به يې لنډ وي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي چې په خوب کي معده په شپږو وجو ده. ۱: حرام مال ۲: زوی ۳: ډير عمر ۴: بدي ۵: ناخوښه خبره ٦: داسي کار کول چې په هغه سره به فايده او نفع حاصلوی.

**معزول شدن \ معزول کيدل**

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ ويلي دي که ووينې چې ديو کار څخه معزول سويدي يا چا معزول کړي دي

دليل دي چي ښځي ته به طلاق ورکوي اوکه ښځه نه لري نو په تجارت به يي نقصان کيږي.

## معصفر (يوګل دي)

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي معصفر په دروجو دي. ۱: غم اوفکر ۲: داسي کار چي دهغه په کولو سره غم او سختي رسيږي.

## معلم\استاذ\ښوونکی

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي استاذ سردار اوهوښيار دي اوکه ويني چي تعليم ورکوي اوماشومانو ته علم ښيي نو خلکو ته به حق خبره کوی ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي استاذي کوي اوهلکانو ته علم ښيي دليل دي چي دپاچاهي لايق نه دي اوپرخپل ځاي به دهغه خبره روا وي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي استاذي کول په ځلورو وجووي. ۱: حکومت کول ۲: عزت اومرتبه ۳: بزرګي ۴: حکم کول.

## مغز

دانيال عليه السلام ويلي دي چي په خوب کي دهډوکي اودسر مغزه ذخيره سوي مال دي اوکه ويني چي مار اولړم دده ماغزه خوري دليل دي چي دخلکو مال به خوري. اسماعيل اشعث رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دسر مغزه دفن سوي مال دي اوکه ويني چي خراب اوبي خونده مغزه يي خوړلي دي دليل دي چي دده مال حرام دي يا يي دهغه زکات نه دي ورکړي جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي هر قسم مغزه ليدل په درو وجو وي. ۱: پټ مال ۲: عقل ۳: صبر.

## مبتلا شدن\اخته کيدل

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي که په خوب کي ويني چي په څه جنګ کي اخته سوي دي چي نه سي لوړيدلاي دليل دي چي په ټولو کارونو کي به ضعيف او سست وي جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي څوک يي مبتلا کړي دي دليل دي چي دده ژوند به خراب کړي اونقصان به ورکړي ورته.

## مقراض\غيچي

د دي بيان به ان شاء الله په حرف نون کي راځي.

## مقعد\د لويو بولو ځاى

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي مقعد دخوب ليدونکي شغل اوکسب دي که خپل مقعد دباندي وتلي ويني دليل دي چي دده کسب اوکار به تباه سي اوکه ويني چي دده دمقعد سوري بند سوي دي نو هم دليل دی چي کار اوکسب به يي بند سي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي مقعد ليدل په ځلورو وجو وي. ۱: کسب اوکار ۲: دمال نفع ۳: ژوند.

## مقنعه\لوپټه

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي لوپټه د ښځو لپاره خاوند او دسړو لپاره ښځه ده

اوکه ویني چې لوپټه د دې دسرڅخه جلا سویده دلیل دي چې خاوند به ورته طلاق ورکوي اوکه توره لوپټه ویني نو خاوند به یې بدکاره وي اوکه سره وي نو خاوند به یې عیش پسند وي اوکه اسماني رنګ وي نو خاوند به یې په مصیبت کې راځي اوکه ژړه وي نو خاوند به یې ناجوړه رقم وي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې لوپټه په څلورو وجو ده. ۱: ښځه ۲: مینځه ۳: خادم ۴: دښځو څخه نفع اوکه لوپټه تاریزه یا دپشمني وي نو ددې خاوند به پرهیزګار مصلح او دیندار وي.

## مسلمان شدن \ مسلمانیدل

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که مسلمان په خوب کې ویني چې دوباره مسلمان سوي دي دلیل دي چې دبلا او افتونو څخه به په امن کې سي اوکه کافر ویني چې مسلمان سوي دي دلیل دي چې الله پاك به دده په قسمت کې اسلام نصیب کړي اوکه ویني چې مسلمان کافر ته ویلي دي چې مسلمان سه دلیل دي چې دهغه به ټول کارونه سم سي، جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که ویني چې مسلمان کافر سوي دي دلیل دي چې په بلا کې به ګرفتار سي اودکار خاتمه به یې په خیر سره نه وي اوکه ویني چې کافر دده په لاس مسلمان سوي دي دلیل دي چې څوك به دبدکاري اوفساد څخه منع کوي.

## مسمار \ میخ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که په خوب کې میخ ویني نو پر لوی سړی دلیل دي چې دده په کارونو کې ولاړ وي او پوره کوي یې اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دي چې په خوب کې میخ پاچا یا لوی امیر دي اوکه ویني چې دده سره غټ او مضبوط میخ دي دلیل دا دي چې دلوی سړی سره به یې صحبت وي اوکه ویني چې یو شي یې په میخ جوړکړي دي دلیل دي چې دلوی سړی په وجه به دده خراب کارونه جمع سي اوسم به سي او که ویني چې میخ مات سوي یا ورك سوي دي نو ددې تعبیر خلاف دي جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې میخ لیدل په څلورو وجو وي. ۱: لوی سړی ۲: هغه سړی چې دخلکو سره وعده پوره کوي ۳: امیر یا حاکم ۴: خراب او نقصاني کارونه.

## مګس \ مچ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې مچ بد اومفلس سړي دي که ویني چې مچان پر ده جمع سوي دي یا دده په سترګو اوخله کې ننوزي دلیل دي چې دبد سړی څخه به خرابه خبره اوري چې په هغه سره به یې زړه خفه سي اوکه دمچ اواز یې اوریدلي وي نو خلک به په شور کولو ویني. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې مچ حاسد اوبد سړی دي که ویني چې دده څخه چاپیره مچان جمع سویدي دلیل دي چې دده کاربه دحاسدانو سره وي اوکه ویني چې دده په کور کې ډیر مچان ګرځي دلیل دي چې خلک به دده خبري کوي اوکه ویني چې مچان یې خوري دلیل دي چې بد خلک به دده دخپلوانو سره حسد کوي اوکه مچ یې مړ کړي وي نو حاسدان به مغلوبه کړي اوکه ویني چې مچان تر مځکې لاندې ځي دلیل دي چې

حاسدان به دده جمع کړي مال اخلي اوخزانه کوي به يي او ده ته به نقصان رسوي.

**مګس انګبین \ دګبین مچۍ**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي دګبین مچي فراخ روزي والا سړی اوګټوره ښځه ده که ویني چي دګبین مچي يې نیولي ده یا چا ورکړي ده دلیل دي چي دهغه په اندازه به مال او غنیمت حاصل کړي. جابر مغربي رحمه الله علیه ویلي دي که ویني چي پر ده دګبین مچي جمع سوي دي اودي چیچي دلیل دي چي په غم سره به مال اونعمت حاصل کړي اوکه ویني چي مچي ګبین خوري نونقصان اوضرر به ورته ورسیږي اوکه ویني چي دمچونو ګبین يي اخیستي دي دلیل دي چي دخیر اونفع خبري به اوري او دهغه څخه به فایده ویني.

**مکه مکرمه**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي که څوك خپل ځان په مکه مکرمه کي ویني دلیل دي چي دکعبي شریفي زیارت او حج به کوي اوکه ویني چي مکي مکرمي ته دتجارت لپاره تللي دي او دحج لپاره نه دي تللي دلیل دي چي ددنیا پر مال حریص دي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دي که ویني چي په مکرمه کي دصلاح اوپرهیزګاري سره دي اوپه عبادت کي مشغول دي دلیل دي چي په دنیاوي نفع کي دي اوکه مکه مکرمه اباده اوډکه ویني دلیل دي چي مال اونعمت به باندي فراخ سي اوکه وران يي ویني نو تعبیر يي داول څخه خلاف دي.

**ملخ**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي ژوندي ملخ لښکر دي اوپوخ ملخ روپۍ او اشرفۍ دي اوکه ویني چي په ښار یا یو ځاي کي ملخان ښکاره سویدي اوهغه ځاي ته يي نقصان رسولي دي نو په دغه ځاي کي به لښکر جمع کیږي او ددغه ځاي خلکو ته به بلا اوزحمت رسیږي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي که ویني چي ده ډیر ملخان جمع کړیدي اوپه لوښي کي يي اچولي دي دلیل دي چي مال به جمع کوي او دښځي په مهر کي به يې ورکړي اوکه ویني چي بي اندازي ملخان راغلي دي اوپه دریاب جمع سوي دي او دهغه ځاي سبزي يي خوړلي دي دلیل دي چي بي اندازي مال به هلته جمع سي او که ملخان بیرته راسي نو پر ویراني باندي دلیل دي.

**منادي**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي که ویني چي منادي تیر سوي دي او دهغه خبري دعلم اوحکمت مطابق دي او پخپله صالح او پرهیزګار وي نو پر خیر او زیري دلیل دي جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دي که خوب ویني چي ددې دنیا داصلاح منادي ده دلیل دي چي خیر اوصلاح به حاصله کړي اوکه ددنیا دخیر منادي وي دلیل دي چي د دې جهان منادي به حاصله کړي اوکه دشر اوفساد منادي وي نو د دې تعبیر د اول څخه خلاف دي.

**مناره**

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي مناره داسي سړی دي چي خلک ددین د لاري

طرفته رابولي كه ويني چي مناره يي جوړه كړيده دليل دي چي نيك كار به كوي اودمسلمانانو ټولګي به راجمع كوي اوكه ويني چي مناره يي خرابه كړي ده دليل دي چي مسلمانان به جلا جلا سي اوبعض اهل تعبير بيان كړي دي چي ددغه مناري موذن به ددنيا څخه رحلت وكړي.

ابراهيم كرمانی رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چي په خوب كي مناره پاچا ياڅوك لوی سړی دي كه په كوڅه كي مناره ويني دليل دي چي څوك لوی سړی به دغه كوڅي ته راځي اوكه مناره دچوني او خښتو ويني نو شاهي سرداربه سي اوكه داومو خښتو مناره ويني دليل دي چي دغه لوی سړی به درعاياو څخه وي اوديانداره او ميلمه دوست به وي اوكه دكاڼو اوچوني مناره ويني دليل دي چي هغه به دظالم پاچا سردار وي اوكه دلرګي مناره ويني دليل دي چي هغه سردار به بد اوكم همته به وي اوكه مناره دجماعت په دروازه ويني دليل دي چي هغه سردار به عالم اوفاضل وي اوخلک به دشريعت كارونو طرفته رابولي اوكه ويني چي دجماعت مناره را ايله ده دليل دي چي ددين دبزرګانو څخه به څوك مري او په خلكو كي به فكر اوخفګان راځي اوكه ويني چي دښار په مينځ كي مناره ده نو په پاچاهي دليل دي اوكه ويني چي مناره دتنبي يا دپيتلو ده دليل دي چي پاچا به جابر اوظالم وي اوكه ويني چي دمناري څوكه دسروزرو يا دسپينو زرو ده دليل دي چي پاچا به درواغجن بي وفا اوغدار وي اوكه مناره دپخو خښتو وي دليل دي چي پاچا به ظالم اومتكبر وي اوكه خپل ځان دمناري په څوكه ويني دليل دي چي پاچا ته به نزدي سي اوكه ويني چي پر مناري خوراك ايښول سوي دي دليل دي چي په دغه ملك كی به ظالم پاچا ښكاره سي. جابر مغربی رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي كه ويني چي په مناري كي دي او دلمونځ اذان يي كړي دي دليل دي چي پاچا به دمخلوق سره نيكه وعده كوی اوكه ويني چي دجامع مسجد په مناره كي يي دلمونځ اذان كړي دي دليل دي چي حج اوعمره به كوي اوكه ويني چي مناري حركت كړي دي دليل دي چي پاچا به ناجوړه سي اوكه ويني چي پاچا مناره راغورزولي ده دليل دي چي پاچاهي به حاصله كړي اودغه پاچا به مغلوب كړي او دهغه څخه به ولايت واخلي. جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چي په خوب كي مناره ليدل په څلورو وجو وي.
۱: پاچا ۲: څوك لوی سړی ۳: امام ۴: موذن.

## منبر

ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چي په خوب كي منبر اسلامي پاچا دي او څه خير اوشر چي په منبر كي ويني دهغه تعبير به پر پاچا واقع كيږي اوكه ويني چي منبر ته ختلي دي اودحكمت اوعلم خطبه يي ويلی ده كه عالم نه وی نو دده زوی يا دده په خپلوانو كي به څوك عالم سي اوكه ويني چي پر منبر يي شعرونه ويلي دي يا يي دشريعت خلاف خبري كړي دي دليل دي چي په مسلمانانو كي به په بي ديني اودبدعت په خبرو سره رسوا سي اوبعض اهل تعبيرو بيان كړي دي چي دي به پانسي كيږي اوكه پاچا ويني چي منبر ته ختلي دي اومنبر را ايله سوي دي او مات سوي دي دليل دي چي دپاچاهي څخه به معزول سي. ابراهيم كرمانی رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي كه ويني چي منبر ته ختلي دي او پوره خطبه يي ويلي ده او راكښته سوي دي دليل دي

چي دخطابت دعلم اوحکمت خبري کړي دي، اوکه ښځو او نرانو ته ګډوډ يې خبري کړي وي دليل دي چي رسوا به سي ځکه چي ښځو ته دعلم خطبه ويل دسړو په مينځ کي اوسړو ته د ښځو په مينځ کي جايز نه دي اوکه ويني چي دمنبر څخه را لويدلی دی خواه که عالم وي يا جاهل دليل دي چي دعزت څخه به معزول سي او په خلکو کي به ذليله اورسوا سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي منبر ته ختلي دي دليل دي چي عالم مصلح اوديندار به سي اوبزرګي عزت اومرتبه به حاصله کړي اوکه مفسد وي نو دغلا په جرم کي به ونيول سي اوپانسي به سي او څونه چي منبر لوی اوپاك ويني هغونه به عزت اومرتبه حاصله کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي به خوب کی منبر ليدل په پنځو وجووي. ۱: پاچا ۲: قاضي ۳: امام ۴: خطيب ۵: پانسي کول.

## منجم\نجومي\عامل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي نجومي سويدي دليل دي چي دبزرګانو اوپاچاهانو په نزد به عزت اومرتبه حاصله کړي ليکن درواغ اومحاله خبري به کوي خاصکر که په خوب کي يي هم دنجومو داحکامو خبري کړي وي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دعلم نجوم اوهيبت ناکه خبري کوي نو دپاچا اولويو خلکو څخه به عزت حاصل کړي اوکه داحکام نجوم خبري کوي نو د دې تعبير بي حرمتي ليدل او درواغ ويل دي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نجومي دروا غجن اوناشکره بنده دي.

## منجنيق\مچلوغه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي پر ښار يا دمسلمانانو پر قلعه په مچولغه کانی ولي دليل دي چي په شا پسي دمسلمانانو غيبت کوي اوکه ويني چي دکافرانو پر ښار يا قلعه په مچلوغه کانی غورځوي دليل دي چي هغوي به دښمن ګڼی اوهميشه به يي بدي کوي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دښار څخه شاوخوا مچلوغه لګيدلي دي اوښار خرابه وي دليل دي چي دي ښارته به ددښمن خطره وي اوکه ويني چي مچلوغه ماته سوي ده يا په اور سوځلي ده دليل دي چي د دې ښار پاچا به پر دښمنانو فتح حاصله کړي اودښار اوسيدونکي به دبيري څخه په امن سي.

## منديل\دسمال

منديل مراد ځني غټ دسمال دي يعني پټکي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کی دسمال خادم دي اوددي دکمي زياتي اونقصان وغيره تعبير پر خادم رجوع کوي که ويني چي دده سره نوي دسمال دي ياچا ورکړي دي دليل دي چي خادم به ورته حاصل سي اوکه دسمال سپين ياشين وي نو دده خادم به ديانتدار وي اوکه سور وي نو دده خادم به عيش پسند او سرکښه وي اوکه ژړوي نو دده خادم به په اصل کي ناجوړه رقمه وي اوکه اسماني رنګ وي نو دده خادم به مصيبت ناك اوغمجن وي اوکه دسمال دتولي په ډول وي نو دده خادم به پرهيزګار وي اوکه ويني چي دسمال دپشم يا دتارونو دي نو دده خادم به امانتدار او ديندار وي اوکه

دسمال درینبمو وي نو دده خادم به بې وفا اومتکبر وي اوکه دسمال زوړ خیرن اوڅیري سوي وي دلیل دي چي دغه خادم به بې وفا اومتکبر وي اوکه دسمال زوړ خیرن اوڅیري ووینی دلیل دي چي ددغه خادم ځخه به نیکي ویني اوکه ووینی چي دسمال ورك سوي دي دلیل دي چي خادم به ځني جلا سي اوکه ووینی چي دسمال سوزل سوي دي دلیل دي چي دده خادم به مري.

## منشور\فرمان\حکم

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که ووینی چي عالم یا زاهد یا مصلح سړي ورته حکم کړي دي چي په دي کار کي تیار اوسه دلیل دي چي ددین په کار کي به دده صلاح وي اوددنیا او اخرت خلاصون اوسعادت به حاصل کړي اوکه د دې خلاف ووینی نو خلاصون به حاصل کړي اوکه ووینی چي پاچا ورته حکم کړي دي دلیل دي چي شرف اوبزرگي به حاصله کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که ووینی چي پاچا ورته حکم ورکړیدي اوپه دغه ښار کي مصلح خلک دي دلیل دي چي دپاچاځخه به لویه مرتبه حاصله کړي اوکار به يې په انتظام سره سي اوکه دغه ښار خراب اوبد ولایت والا وي نو د دې تعبیر داولنی خلاف دي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي که ووینی چي ده ته فریشتي یا پیغمبر لیکل سوي فرمان ورکړي دي دلیل دي چي الله پاک به دي وبخښي او دده ځخه به راضي اوخوشحاله وي اوکه فرمان توروي نو د دې تعبیر داولنی خلاف دي.

## منقاره\مشوکه\مښوکه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که ووینی چي دده دچرگ په ډول مشوکه ده دلیل دي چي دمښوکي دغلا والي مطابق به ورته مال حاصل سي اوکه ووینی چي غټ مرغه لکه عقاب اوتپوس وغیره دي په مښوکه وهلي دي نوغم اوسختي به ورته رسیږي او دمال نقصان به يې وسي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که ووینی چي دده دچرگ مښوکه ده دلیل دي چي دهغه دقدر وقیمت مطابق به ورته بزرگي نعمت خیر اونفع حاصله سي اوکه ووینی چي دده مښوکه ده او په هغه سره خلکو ته نقصان رسوي دلیل دي چي خلکو ته به دده ځخه تکلیف او زحمت رسیږي.

## مني

مني هغه اوبه دي دکومو ځخه چي بچي پیدا کیږي ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي مني لیدل مال دي چي په هغه سره به خوشحاله سي که ووینی چي دده سره دمني د اوبو ماتي ده دلیل دي چي ډیر مال به حاصل کړي اوکه ووینی چي دده دعضو تناسل ځخه ډیره مني وتلي دي دلیل دي چي دهغه په اندازه به پخپله گټه ډیر مال حاصل کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي که ووینی چي دده دعضو تناسل ځخه مني جاري ده دلیل دي چي دهغه په اندازه به دپردو ځخه مال حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که ووینی چي دده مني وتلي دي دلیل دي چي مال به حاصل کړي دالله تعالی فرمان دي (انا خلقنا الانسان من نطفة امشاج نبتليه، سورة الدهر: ۲) موږ انسان دمني ځخه پیدا کړي دي چي هغه موږ ازمایو جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي په

خوب کي مني په څلورو وجو ده. ۱: زوی ۲: دمال زیاتوالي ۳: دمال نقصان ۴: بزرګي اوکه ووینې چي دده مني دباندي وتلي دي نو تعبیر بیانونکي ته پکار دي چي دمال په زیاتوالي تعبیر بیان کړي اوکه مني نه وي وتلي نو دمال نقصان به یي وسي.

**مهد\زانګو\ټال**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چي پر ټال ناست دي اوخوب لیدونکي د دې قابل وي نو په راحت اساني او خوشحاله ژوند دلیل دي او دخوف اوبیرې څخه به په امن کي سي اوکه ووینې چي دټال څخه را ایله سوي دي نو د دې تعبیر داولني خلاف دي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چي پر ټال ناست دي دلیل دي چي مهربانه ښځه به کوي یا به ښایسته مینځه اخلي اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دي چي ټال په خوب کي ارامګاه عزت اومرتبه ده دهغه چا لپاره چي د دې قابل وي کني قیدخانه ده. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي ټال په اتو وجو دي. ۱: اساني او راحت ۲: ژوند ۳: عزت ۴: مرتبه ۵: امن ٦: دولت ۷: مهربانه مینځه ۸: ښځه او دښځو لپاره ټال لیدل په څلورو وجو دي. ۱: قید خانه ۲: تنګ ځای ۳ : غم او فکر ۴: رنج او محنت.

**مهر**

ددي بیان په حرف ط کي تیر سوي دي.

**مهره\کنجکه\غمی**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویل دي که ووینې چي غمی یي پیدا کړي دي یا یي اخیستي دي یا چا ورته ورکړي دي دلیل دي چي دهغه دقدر او قیمت مطابق به مال حاصل کړي یا به ورته خدمتګار ملاو سي اوکه ووینې چي غم پاك اوسپین دي نو خدمتګار به یي مصلح اوپرهیزګار به ناجوړه وي اوکه تور وي نو دده خدمتګار به سخت زړی او بدخویه وي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي غمي لیدل په اوو وجو وي. ۱: ښځه ۲: خدمتګار ۳: مینځه ۴: مال ۵: ادب او هوښیارتیا ٦: زوی ۷: ازاد غلام.

**مهمان\میلمه**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي میلمستیا دڅه شي جمع کول دي اوکه ووینې چي یو قوم دمیلمستیا لپاره رابللي دي دلیل دي چي داسي کار به کوي چي دي به دټولو کارونو څخه منع کوي اوکه ووینې چي دي خلکو دمیلمستیا لپاره باغ ته بیولي دي اوپه هغه باغ کي اوبه جاري دي او دمیوو څخه ډك دي دلیل دي چي جهاد ته به ځي اوشهید به سي دالله تعالی فرمان دي (فیها بفاکهة کثیرة وشراب، سورة ص: ۵۱) ترجمه: په دې کي ډیري میوي اوشربت دي ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي داسي میلمستیا لیدل چیري چي کنډو او دوپېره باجه او داسي نور شیان وي نوپر غم فکر اومصیبت دلیل دي اوکه دا پکښي وي نو پر خیر اوبرکت دلیل دي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي میلمستیا دغایب پر

واپس راتلو دليل لري جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي که وويني چي ناوي يې بغير دنکاح څخه را ايستلي ده او ميلمنه کړي يې ده نو دليل دي چي ده ته به غم اوفکر رسيږي.

**مورچه \ ميږي**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که وويني چي ميږي په يو شي کي جمع سويدي دليل دي چي ډير خلک به دده کور ته راځي او که وويني چي ډير ميږي دده دکور څخه وتلي دي دليل دي چي دده دکور خلک به بل ځاي ته ځي اوکه وويني چي دلوړه څخه ميږي دده کورته راځي دليل دي چي غل به دده کور ته راځي اوکه وويني چي دده پر بدن ډير ميږيان جمع سوي دي يا دده دخولي څخه راوځي دليل دي چي ژر به هلاک سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي ميږي کمزوري دښمن دي که پخپل کور کي ډير ميږي وويني دليل دي چي دده نسل به زيات سي اوکه وويني چي ميږي دده دکور څخه دباندي وتلي دي دليل دي چي دده نسل به کم سي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دي چي سور ميږي پر کمزوري او سست سړی دليل لري اوتور او غټ ميږي دغلاپر مال او پر کوروالاو دليل لري اوکه وويني چي ميږي دده دکور څخه دباندي وتلي دي دليل دي چي ددي کور حال به پريشانه وي.

**مورو \ د سيبو درخته**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که وويني چي دده سره دسيبو درخته ده دليل دي چي دده به دازاد خوش طبعيته ښايسته اوکامل العقل سړی سره دوستي وي اودهغه څخه به فايده حاصلوي ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي که وويني چي دسيبو درخته ماته ده يا ده دځاي څخه ايستلي ده دليل دي چي دداسي سړی دصحبت څخه به جلاسي او جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دسيبو درخته ډير مال اونعمت دي اوبعضو ويلي دي چي نيك عمله زوی دي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دسيبو درخته ليدل په څلورو وجوي. ۱: هوښيار مزدور ۲: صالح زوی ۳: ډير مال ۴: نفع اوکه ښځه وويني چي دي دسيبو تړل سوي لاستي خپل خاوند ته ورکړي دي دليل دي چي د دې نکاح به مضبوطه وي.

**موز \ کېله \ کېلا**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي کيلا دمالدارو لپاره مال دي او ددينذارو لپاره دين دي او دکيلا پاڼه دټولو درختو دپاڼو څخه ښه ده اوکه وويني چي ده کيلا اخيستي ده يا چاورته ورکړي ده اوخوب ليدونکي مالدار وي نو مال به يي نورهم زيات سي اوکه وويني چي ده کيلا خوړلي ده دليل دي چي ددين اوددنيا نفع به حاصله کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي کيلا په درو وجو ده ۱: دمال زياتوالي ۲: ددين زياتوالي ۳: حلاله روزي اوخوشحاله ژوند او بعضو اهل تعبير ويلي دي چي که په موسم کي يي کيلا خوړلي وي دليل دي چي ښايسته اومالداره ښځه به کوي او دهغه څخه به فايده حاصلوي.

**موزه**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي ديخني په موسم کي موزه ليدل پر خير اونيکي

دلیل دي او دګرمي په موسم کي غم اوفکر دي او دموزي په تعبیر کي داهل تعبیرو اختلاف دي. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي موزي یي په پښو دي اووسله یي لګولي ده دلیل دي چي دښمن به د ده څخه فکر مند سي اوکه ویني چي دموزي سره وسله نسته دلیل دي چي غم اوفکر به ویني خاصکر که موزه تنګه وي اوکه ویني چي دده په پښه کي دپوست موزه ده دلیل دي چي ښځه به کوي اوکه ویني چي دده په پښه کي دپوست موزه تنګه ده دلیل دي چي ده ته غم اوفکر رسیږي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي دده موزه دسرلي دپوست ده دلیل دي چي مال به حاصل کړي اوکه ویني چي دده موزه دلاندي څخه څیری یا سوزل سوي ده دلیل دي چي ښځه به یي مري اوکه ویني چي دده موزه ورکه سوي ده دلیل دي چي دده دمال به نقصان وسي اوکه ویني چي دده موزه دپښي څخه ختلي ده دلیل دي چي واده او خوشحالي به حاصله کړي اوکه قیدي وي نو خلاصون به حاصل کړي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي دده موزه دکور څخه دباندي ایله ده دلیل دي چي ښځي ته به طلاق ورکوي اوکه ویني چي ده پردي سړی ته موزه ورکړي ده یا یي خرڅه کړیده یا دده موزه خلکو څیري کړي ده دلیل دی چي دده ښځه به مري. اوکه ویني چي دده موزه چا پټه کړي ده دلیل دي چي ځوان سړی به دده دعیال قصد کوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي موزه که نرمه وي اوپښي ته تکلیف نه ورکوي نو دهغه لیدل په اوو وجووي. ۱: ښځه ۲: خادم ۳: مینځه ۴: قوت ۵: ژوند ٦: نفع حاصلول ۷: خیر اونفع حاصلول.

## موش\مږه

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي مږه ښځه ده چي په ښکاره پرهیزګاره او په پټه بدکاره وي اوکه ویني چي ده مږه نیولي ده یا چاورکړیده دلیل دي چي دپورته ذکر سوي صفت ښځه به کوي اوکه ویني چي مږه یي په نغاره کي نیولي ده دلیل دي چي په مکر اوچم سره به ښځه کوي اوکه ویني چي دده په کور کي ډیري مږي جمع سوي دي او ټولي یو رقم دي دلیل دي چي ددغه مږو مطابق ښځي به دده په کور کي جمع سي اوکه ویني چي مختلف قسمه مږي دي څه توري او څه سپیني دي نو د دې تعبیر خلاف دورځي اوشپي دي په حدیث شریف کي دي چي حضور صلی الله علیه وسلم ویلي دي چي شپه او ورځ دوی مږي دي چي دخلکو عمرونه خوري. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي دده دپزي دسوري څخه یا دعضو تناسل څخه مږه راوتلي ده دلیل دي چي ناکاره لور به یي پیداسي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي دده کورته ځنګلي مږي راغلي دي دلیل دي چي دلته به ناکاره ښځي جمع سي او په خوب کي دمږو تعبیر مال او دفسادي ښځو سامان دي اوکورني او ځنګلي مږي دتعبیر په لحاظ سره برابري دي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي ده مږه نیولي ده اودهغي لکۍ نسته دلیل دي چي بي اصله ښځه به کوي اوکه ویني چي مږه دده په لاس کي مړه ده دلیل دي چي پر ده به مصیبت راځي اوکه ویني چي پر مږه یي پښه مړلي ده دلیل دي چي ناکاره ښځه به کوي اوبیا به یي پریږدي اوکه ویني چي مږه یي په کانی ویشتلي ده نو پر چا به

تهمت لګوي اوکه ویني چي دده په بستره کي مړه ده نو دناکاره ښځي سره به دفساد اراده کوي اوکه وويني چي مړه يي نيولي ده نو دناکاره ښځي مال به خوري.

## موم

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي سپين موم مال اونعمت دي اوژړ موم ناجوړي ده اوکه وويني چي ده سپين موم خوړلي دي دليل دي چي حلال مال به حاصل کړي اوکه وويني چي موم دده څخه ورك سوي دي يا يي خرڅ کړي دي نو دمال پر نقصان دليل دي جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چي دهر رنګ موم مال اونعمت دي اوکه وويني چي ده سپين موم ژوولي دي نو دنورو مومونو څخه ښه دي اوکه وويني چي ده موم ژولي دي دليل دي چي دچا شکايت به کوي اوکه وويني چي موم يي په اور سوزلي دي دليل دي چي هغونه به دپاچا څخه مال اخلي اوکه وويني چي دموم څخه شمعي جوړوي او خلکو ته يي ورکوي دليل دي چي خپل مال به په خير صلاح اوصدقه کي خرڅ کړي او په خلکو به بخشش او احسان کوي.

## موميايي\سلاجيت

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که وويني چي سلاجيت يي خوړلي دي نو پر غم اوفکر دليل دي اوکه وويني چي چا ته يي ور کړي دي يا يي دکورڅخه دباندي غورزولي دي نو دغم اوفکر څخه به خلاصون حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که وويني چي سلاجيت يي دبدن دخرابوالي په وجه خوړلي دي او جوړ سوي دي نو د دې تعبير داولني خلاف دي.

## موی\وريښته\ويښته

دانيال عليه السلام ويلي دي چي په خوب کي ويښته دسړو لپاره غم اوفکر دي او دښځو لپاره ښايست دي او دحيوانانو وريښته لړ مال دي اوکه صوفي وويني چي دده د سر ويښته اوږده دي دليل دي چي ښايست اوصلاح به حاصله کړي اوکه صوفي نه وي نو د وريښتو د اوږدوالي مطابق به غم اوفکر حاصل کړي اوکه وويني چي ده لړ وريښته پريکړي دي او غورزولي يي دي دليل دي چي غم اوفکر به ځني ليري سي. ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که وويني چي دحج په موقع يي دسر ويښته خرېيلي دي نو په صلاح او دګناهونو پرکفاره دليل دي اوکه دحرمت په مياشت يعني رجب ذی الحجه ذی قعده اومحرم کي يې وويني دليل دي چي قرض به يي ادا سي اودغم څخه به خلاصون حاصل کړي اوکه وويني چي ټول ويښته يي خرېيلي دي دليل دي چي څه لوړ بيان سوي دي زيات به وي اوکه خوب ليدونکي مالداره ښځه وي او وويني چي سر يي خريلي دي نو خاوند يا مشر به يي مري. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي که پاچا ويښته اوږده وويني نو پر لښکر دليل دي اوکه عام خلک يي وويني نو دغم اوفکر په زياتوالي دليل دي اودبدن دويښتو زياتوالي پر غم اوفکر دليل دي اوکه سړی وويني چي دده دسر ويښته ببر او ګډوډ دي نو دا د دين پر نقصان دليل دي اوکه دخپل سر ويښته زوړند وويني نو دمور اوپلار يا دبزرګ دطرف څخه پر غم اوفکر دليل دي اوکه خپل سر کتي وويني نو پر زيات ژوند اوخوشحالي دليل دي اوکه وويني چي دده دعلويانو په ډول دوې زلفي دي دليل دي چي

سرداري به حاصله کړي اونيک نومه به سي اوکه ويني چي ده خپل ويښته ايستلي دي دليل دي چي خپل مال به ورک کوي اوکه ويني چي ده خپل ويښته ږمونځ کړي دي دليل دي چي پرخپلو کارونو به قادر وي اوډيره نفع به حاصلوي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ده د خپل ترخ ويښته او دنامه څخه لاندي ويښته خريلي دي نو دا ددين پر علاج دليل لري اودترخ ويښته پر مال اومراد حاصلولو دليل دي اوکه ويني چي دترخ ويښته يې خريلي دي دمروت پر زياتوالي دليل دي اوکه ويني چي دده پر سينه ويښته دي دليل دي چي پر ده به قرض جمع سي اوپر بدن ويښته دقرض مال دي اوکه ويني چي ده دخپل بدن ويښته خريلي دي نو دا دمال پر نقصان دليل دي اوکه خوب ليدونکي فقير اوقرضدار وي نوقرض به يې ادا سي اودغم اوفکر څخه به خلاص سي اوکه ويني چي پر ځان يې چونه مږلي ده اودخپل بدن څخه يې ويښته ليري کړي دي دليل دي چي که مالدار وي نوفقير به سي اوکه فقير وو مالدار به سي. اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده څخه ويښته ايله سوي دي که مالدار وي نو دمال پر نقصان دليل دي اوکه فقيروي نو مالدار به سي اوکه قرضداروي نوقرض به يې ادا سي اوکه ناجوړه وي نوشفا به حاصله کړي اوکه ويني چي دده دراسته طرف ويښته مشرق اودچپه طرف ويښته مغرب ته تللي دي دليل دي چي دده به دوه زامن پيداسي چي دهغو نوم به په مشرق اومغرب کي مشهور سي. حافظ معبر رحمة الله عليه ويلي دي که عالم په خوب کي ويني چي دده ويښته ګلکتي سوي دي نو داپر بدعت اودهغه پر رسوايي دليل دي اوکه جاهل داخوب ويني نو نعمت اوعزت به حاصل کړي اوکه ويني چي ده ويښته ايستلي دي دليل دي چي امانت به ادا کوي اوکه ويني چي دده دنامه څخه لاندي ويښته اوږده دي دليل دي چي ده ته به نقصان رسيږي او دويښتو اوږدوالي دښځو لپاره ښه دي اوکه ويني چي خپل دنامه څخه لاندي ويښته يې خريلي دي دليل دي چي دده په دين کي به نقصان وي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي دويښتو په خوب کي خريل ليدل په پنځو وجو وي. ۱: حج کول ۲: سفر کول ۳: عزت اومرتبه ۴: امن ۵: دولت دالله تعالی فرمان دي (محلقين رؤوسکم ومقصرين، سورة الفتح: ۲۷) خپل سرونه خريلو والا او لنډونکي. اوکه دخوب ليدونکي سر خريل عادت وي نودهغه دنيک اودبد دليل دي.

## مي پخته \ پخکړي شراب \ پاخه شراب

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي دشرابو تعبير حرام مال دي که ويني چي شراب يې چيښلي دي او نشه سوي دي دليل دي چي دنشي مطابق به عزت اومرتبه حاصله کړي اوکه ويني چي بغير دشرابو چيښلو نشه سويدي دليل دي چي ده ته به ډيره بيره ورسيږي دالله تعالی فرمان دي (وترى الناس سکارى، سورة الحج: ۲) ترجمه: اوته به خلک په نشه کي ويني. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دي چي دشرابو دچيښلو مطابق دمال اونعمت کمي دي اوکه ويني چي دده سره شراب دي اوده په خواهش سره چيښلي دي دليل دي چي دخلکو سره به جنګ کوي اوکه ويني چي

په شرابو کي غرق سوي دي دليل دي چي په جنګ کي به هلاک سي. اسماعيل اشعث رحمه الله
ويلي دي که ويني چي شراب يې چيښلي دي دليل دي چي حرام مال به په حرامو بدلوي اوکه
ويني چي شراب داوبو سره ملاو سوي دي دليل دي چي مال به حاصل کړي چي دهغه څه
حصه به حلاله او څه به حرامه وي اودا هم وايي چي د ښځو څخه به مال اخلي اوکه ويني چي
شراب خرڅوي دليل دي چي حرام شي به خرڅوي.

## ميخ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي ميخ ورور دي که ويني چي په ديوال کي يې ميخ
لګولي دي دليل دي چي دده ورور به په ميخ لګول سوي ځاي کي يو سړی نيسي ځکه چي
ديوال په خوب کي سړی دي اوکه ويني چي ميخ يې په رسي تړلي دي دليل دي چي دده ورور
به ديو سړی سره ملاويږي اوکه ويني چي دده پر ملا ميخ وهلي دي دليل دي چي زوی به يې
پيدا کيږي چي پاچا به جوړيږي يا به پوره شرف اوبزرګی ته رسيږي يا به پرهيزګاره سي چي
نوم به يې په ټول عالم کي مشهور سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي ميخ
په ټولو شيانو کي بزرګي او ددين دنيا مرتبه ده اوکه ويني چي دده دکور پر دروازه ميخ دي
دليل دي چي شرف اوبزرګي به حاصله کړي اوکه دخپل کور څخه يې ميخ ايستلي دي
اودباندي يې غورزولي وي نو ددې تعبير داولني خلاف دي اوکه ويني چي دده سره دلرګي يا
داوسپني يا دسپينو زرو يا دتانبي يا دهډوکي ميخ دي دليل يې پر دوه قسمه دي ۱: يو داچي
ښځه به کوی ۲: دوهم داچي څوك به دوست جوړوي اوکه ويني چي په ستنه يا لرګي کي يې
ميخ لګولي دي دليل دي چي دموافق سړی سره به انډيوالي کوي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي
که ميخ داوسپنی يا دتانبي وي نو تدبير يې نيک دي اوکه داوسپني يا دهډوکي وي نو پر
قوت اونيکي دليل دي اوکه ويني چي دده په لاس کي داوسپني ميخ دي دليل دي چي زوی به
يې پيداسي چي دپاچاهي قابل به وي اوکه زوی يې نه وي نو دليل دي چي الله تعالی به ورته
علم اوپوهه ورکړي اوکه اهل علم نه وي نو دعالمانو سره به مينه لري اوکه ويني چي دسرو
ياسپينو زرو ميخ يې په مځکه کي ښخ کړي دي دليل دي چي پخپله ګټه به مالدار سي. جعفر
صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي ميخ ليدل په څلورو وجووي. ۱: ورور ۲: زوی ۳:
دوست ۴: د ښځي سره نکاح کول.

## ميش\بزه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي بزه غټه ښځه ده د دې شرح په حرف ك کي بيان
سويده اودلته هم څه بيانيږي که ويني چي پر بزه ناست دي اوهغه دده تابعداره ده دليل دي
چي لوی سړی به دده فرمانبردار سي اوکه بزه جنګ کوي اوبزه باندي غالبه سوي ده دليل دي
چي دښمن به باندي غالب سي اوکه ويني چي دبزی ښکرونه غټ اومضبوط سوي دي دليل
دي چي خوب ليدونکي به قوي اومالدار سي اوکه ويني چي دبزي پوست يې ايستلي دي او
غوښه يې ځني جلا کړي ده دليل دي چي دغم څخه به خلاص سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي

دي که ویني چي بزه دده سره جنګ کوي دلیل دي چي يو ښځه به دده سره مکر اوحیله کوي اوکه ویني چي دبزي غوښه دده دکور څخه دبل چا کور ته وړل سوي دي دلیل دي چي دده ښځه به دبل سړی په عشق کي اخته سي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي بزه په خوب کي په شپږو وجو وي. ۱: امام ۲: خلیفه ۳: امیر ۴: رئیس ۵: مال ۶: زوی.

## میوه\فروټ

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي میوه چي ترشه اوخوږه وي پر خیر اونفع دلیل دي اوکومه میوه چي اومه اوتروه وي پر بي فایدو او عبثو خبرو دلیل دي اوتور انګور اوزیتون پر غم اوفکر دلیل دي اوکه ویني چي ددرختي څخه یي میوه شکولي ده دلیل دي چي دهغه په اندازه به دبزرګ سړی څخه مال حاصل کړي اوکه ویني چي په ناستي یي د درختو څخه میوه شکولي ده دلیل دي چي حلال اوښه شي به حاصل کړي اوکه ویني چي ددرختي څخه یي بغیر دلاس لګولو میوه را ایله کړي ده دلیل دي چي بغیر دغم اومشقت څخه به ورته حلال مال حاصل سي اوکه ویني چي ددرختي څخه یي میوه اخیستي ده که پر خپل موسم وي نو هیڅ بیره نسته او پر حلال رزق دلیل دي اوکه بي موسمه وي نو ددي تعبیر خلاف دي. دانیال علیه السلام ویلي دي چي کومي میوي په خپل موسم کي په خوب کي ویني او ویي خوري دلیل دي چي دهغه په اندازه به مال حاصل کړي اوکه میوي پرخپل وخت نه وي نو دده مال به خراب وي اودهري میوي تعبیر ددرختي طرفته رجوع کوي که نیك وي اوکه بد وي اوژړي میوي ماسوا دلیمبو بهي اوزرد آلو څخه پر ناجوړي دلیل لري ځکه چي د دې درو سره په تعبیر کي نقصان نسته او تروي میوي پر غم اوفکر دلیل دي او لندي یخ سوي اوخوږي میوي پرخپل موسم پر حلاله روزي دلیل دي او په خوب کي اومه اوبي خونده میوي پر حرام مال غم اومصیبت دلیل لري اوکه ویني چي دګرمي میوه یي په یخني کي خوړلي ده دلیل دي چي ناجوړه به سي. ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي که خوږي میوي بي وخته ویني نو پر غم اوفکر دلیل دي حاصل دادي چي کومه میوه لنده شنه خوشبوداره او خوږه وي دهغه تعبیر خیر اونفع ده. اسماعیل اشعث رحمه الله ویلي دي که ویني چي میوي خرڅوي که دخلکو خوښي وي نو دلیل دي چي دلوی سړی په کارکي به مشغول سي اوکه تروي اوبي خونده میوي خرڅوي نو پر غم اوفکر او تکلیف دلیل دي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي میوي خرڅونکي که ښي او خوږي میوي خرڅوي نو پر ښوالي اوخیر دلیل دي تعبیر بیانوونکي ته پکار دي چي نیك بد جنس اوناجنس وپیژني نو هله دي تعبیر بیان کړي چي داصل څخه خطا نه سي، او الله تعالی ښه پوهیږي.

# [ن]

## نابینا\ړوند

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که څوك په خوب کي ویني چي ړوند سویدي دلیل دي چي ددین

اسلام څخه به ګمراه سي او که ویني چي دده یوه سترګه ړنده ده دلیل دي چي دده نیم دین تللي دي یا یي غټه ګناه کړي ده اودده په اندامونو کي به پر یو مصیبت راځي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي دړوند لاس یي نیولي دي او رابولي یي دلیل دي چي ګمراه به سي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي ړوند سوي دي دلیل دي چي دخپله لاسه به ښه کارونه کوي او که ویني چي ده دچا سترګه ړنده کړي ده دلیل دي چي هغه به ددین دلاري څخه لیري کوي او که ویني چي حیوانان یي ړانده کړیدي نو پرهغه سړی دلیل دي کوم چي حیوانان یې وطرفته منسوب دي چي هغه ته به ضرر اوتکلیف رسوي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي ړندوالي په اووه وجو دي. ۱: فقیري ۲: بدحالي ۳: غم اوفکر ۴: دبدن نقصان ۵: مصیبت ۶: دمال نقصان ۷: ددین تباهي. دالله تعالی فرمان دي (صم بکم عمی فهم لایرجعون، سورة البقرة: ۱۸) کاڼه دي ګونګیان دي ړانده دي دوي چي رجوع نه کوي حق ته. او که ړوند په خوب کي ویني چي بینا سوي دي دلیل دي چي ددنیا کارونه به باندي اسانه سي اودنا امیدي څخه به امید وار سي او دالله تعالی درحمت څخه به نصیبه حاصله کړي دالله تعالی فرمان دي (لا تقنطوا من رحمة الله ان الله یغفر الذنوب جمیعا، سورة الزمر: ۵۳) ترجمه: دالله تعالی درحمت څخه مه نا امیده کیږي ځکه چي الله تعالی ټول ګناهونه بخښي.

## ناخن\نوکان

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي نوکان پر سخاوت قوم اوخلکو دلیل دي اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دي چي دوسلي والا په حق کي نوکان وسله ده او که ویني چي ده نوکان په غږچي پریکړي دي دلیل دي چي دده دین به قوي وي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي نوکان قوت طاقت اوددنیا مال حاصلول دي او که ویني چي دده نوکان مات سوي دي دلیل دي چي مال به حاصل نه کړی او که ویني چي دده نوکان را ایله سوي دي اوبیا راختلي دي اوغټ سوي دي دلیل دي چي دده کار به ښه سي اوډیر مال به حاصل کړي او که ویني چي دده نوکان تور او بیده سوي دي نوپر غم اومصیبت دلیل دي او که ویني چي نوکان یي دونه اوږده سوي دي چي دماتیدو بیره یي ده نو د دي تعبیر خراب دي او که ویني چي دده نوکان دبیخ څخه پري سوي دي اوبدل سوي دي نو دا دکارونو پر بندیدو دلیل دي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي دده نوکان پر برابر حد دي نو دا ددین او ددنیا پر صلاح دلیل دي او که ویني چي ده نوکان درست کړیدي دلیل دي چي ډیر مال به حاصل کړي اودپښو او دلاسونو دنوکانو یو رقم تعبیر دي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي نوکان لیدل په شپږو وجو وي. ۱: قوت اوعقل ۲: په دنیا کي دخلکو مقدار ۳: زړه ورتیا ۴: زوی ۵: نفع ۶: دغلام زوی یا دورور زوی.

## ناخن پرا\غچي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي غچي تقسیمونکي سړی دي که ویني چي ده دسر

ويښته يا کالي په غچي کړي دي دليل دي چي داتول به ښه سي اوکه ويني چي ده ته چا غچي ورکړيده يا ده اخيستي ده دليل دي چي که زوی يې وي نوبل زوی به يي پيداسي اوکه لور يي وي نوبله لور به يي پيدا سي اوکه غچي دوه تکړي ويني نو هم يي دغه تعبير دي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ده ته چا غچي ورکړي ده يا ده اخيستي ده يا يي پيدا کړي ده که دده سره اس وي نوبل اس به اخلي يابه يې حاصلوي اوکه دده سره ملك وي نوبل ملك به حاصل کړي علی هذالقياس څه چي دده سره وي هغه به نور حاصل کړي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي غچي نيك نومه اونيك اصله سړی دي چي دهغه سره به دوستي کوي او دده په دين اودنيا کي به زياتوالي وي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي غچي ليدل په درو وجو ده. ۱: تقسيمونکي سړی ۲: نیک اصله سړی ۳: ناموافقه دوست.

## ناريا (يو ډول سبزي)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي ناريا خوړل که خوړ وي اودبزي يا دچرګ په غوښه کي پخ سوي وي نوپر خير اونفعي دليل دي اوکه دغوا يا په يوه سخته غوښه کي پخ سوي وي نو دغم اوفکر دليل دي.

## نار مشک (يو کوچنی بوټی)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده په مځکه کي نارمشک راشين سوي دي دليل دي چي دده نوم به په خير خوشحالي اوخوبي سره په ملک کي مشهور سي اوکه ويني چي نارمشك يي دمځکي څخه ايستلي دي نو د دې تعبير خلاف دي ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده سره تازه دنار مشکو ګلدسته ده او که پخپل موسم کي وي نودخير او ښيګڼي دليل دي.

## نارنج

دانيال عليه السلام ويلي دي چي نارنج ژړ وي ليکن خوشبودار او په ليدلو کي ښه اوپاکيزه دي او دجنت دميوو څخه دي د دې وجي څخه په خوب کي ښه دي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نارنج ديو څخه تر درو پوري زامن دي که ددرو څخه زيات ويني نو هغونه مال دي او شين نارنج ښه دي اوژړ نارنج هم پر وخت بد نه دي ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي نارنج شين دي نو دبعض اهل تعبيرو په نزد پر ناجوړي غم اوفکر دليل دي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نارنج ليدل په څلورو وجو وي. ۱: دوست ۲: جنګ ۳: زوی ۴: دخلکو څخه نفع.

## ناطف (يو قسم حلوا)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده سره ډير ناطف دی او دهغه څخه يې خوري دليل دي چي ډير مال اونعمت به حاصل کړي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي دشهدو او دشاتو ناطف ليدل دليل دی چي ډير مال اونعمت به حاصل کړي ليکن دشهد ناطف په فايده کی ښه دي

جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دشهدو ناطف په درو وجو دي. ۱: خوږې خبري ۲: حلال مال ۳: ژوند.

## ناف\نوم

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نوم ښځه او دهغه ترلاس لاندي مينځه ده که ويني چي دده نوم را ايله سوي دي دليل دي چي ښځي ته به طلاق ورکوي يا به يي مينځه مری اوکه ويني چي دده نوم پري سوي دي دليل دي چي دده عيال به مری او کار به يي تباه سي اوکه ويني چي دده نوم کوچني دي نو د دې تعبير د اولني خلاف دي اوکه ويني چي دده په نوم کي سوري دي دليل دی چي دده په حال کي به خلل ښکاره سي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده پر نوم يا پر سينه دخط په ډول وريښته راوتلي دي دليل دي چي دنبی صلی الله علیه وسلم دسنتو سره به مينه لري اوکه ويني چي دده دنوم وريښته پريکړه سوي دي دليل دي چي دمور او پلار ځخه به جلا سي اوکه ويني چي دنوم ځخه ترنس پوري چاود راغلي دي دليل دي چي عالم اوهوښيار به سي ليکن مال به يي ختم سي اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ده دچا نوم پريکړي دي اوخوړلي يي دي دليل دي چي دهغه په اندازه به مال ورك سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نو ليدل په پنځو وجو وي. ۱: ښايسته ښځه ۲: مينځه ۳: مال او رزق ۴: هلك ۵: مور او پلار.

## ناقوس\شپيلۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي شپيلي منافق درواغجن اوبي فايدي سړی دي که ويني چي شپيلۍ ږغوي دليل دي چي دمنافق سړی سره به کښيني اودرواغ به وايي او خوشحاله به وي اوکه ويني چي شپيلي ماته سوي ده نو د دې تعبير داولني خلاف دي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي شپيلۍ ليدل په درو وجو ده. ۱: درواغ ويل ۲: نفاق ۳: په زړه کي دکافرانو سره مينه لرل.

## نام گردانيدن\نوم بدلول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي که په ښه نومونو کي يي نوم بدل سوي وی لکه محمد احمد سعد او داسي نور پر خير اوصلاح دليل دي اوکه دده لقب دده دنوم اولقب ځخه بدتر وي نوبيا پر شر اوفساد دليل دي جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نيك نوم او نيك کنيت اوريدل لکه ابوالخير ابو الفضل ابو سعيد يا ابو البرکات اوداسي نور پر خير اومال دليل لري اوکه د دې خلاف ويني لکه ابولهب عتبه او شيبه اوداسي نور پر شر او نقصان دليل لري لکه ځنګه چي بيان سوي دي.

## نامه\خط

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده سره بند خط دي دليل دي چي پټه خبره به اوري اوکه خط خلاص سوي وي نوښکاره خبره به اوري اوکه ويني چي دده پر خط مهرلګيدلي دي

دلیل دي چي دده مهر سوي خط به په خیر سره رسیږي. ابراهیم کرمالی رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چي چا ده ته خط ورکړي دي اودهغه سرنامه یي ایستلي دي دلیل دي چي ده ته به دچا ښخه خیر رسیږي اوکه ددغه خط عنوان نه وي نو پر غم اوفکر دلیل دي اوکه ووینې چي دهغه عنوان لیکل سوي دي او پر هغه مهر لګیدلي دي اوچا خلاص کړي نه دي دلیل دي چي داسي کار به کوي چي دهغه ښکاره به نیك وي او په باطن کي به غم اوفکر وي اوکه ووینې چي دخط مهر یي لیري کړي اوویې وایه دلیل دي چي دده عزت اومرتبه به زیاته سي اوکه خوب لیدونکي ویونکي وي اووینې چي ده خط ویلي دي دلیل دي چي دده عزت اومرتبه به زیاته سي اوبعض اهل تعبیر بیان کړي دي چي دده مرګ نزدي دي دالله تعالی فرمان دي (اقراء کتابك کفی بنفسك الیوم علیك حسیبا، سورة الاسراء: ۱۴) ترجمه: خپل کتاب ووایه نن ورځ ته دخپل حساب اخستلو لپاره پوره یي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چي ده ته دپاچا خط ملاو سوي دي او ده خلاص کړي دي او ویلي یي نه دي نو پر غم اوفکر دلیل دي اوکه خلاص یي کړي او ویې وایه او په هغه کي څه زیري لیکل سوي وي نو پر واده خوشحالي اونفع دلیل دي اوکه په هغه کي څه خرابه خبره لیکل سوي وي نو پر خفګان اوهلاکت دلیل دي اوکه ووینې چي دمهر سره خط یي حاصل کړي دي اوپاچا ته یي ورکړیدي نو پرخیر اونفع دلیل دي. اسماعیل اشعث رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چي دده په لاس داسمان څخه خط راغلي دي نو پر خیر او امید واري دلیل دي اودده کارونه اوهر یو مراد به یي پوره سي اوکه ووینې چي په هغه کي ناخوښي خبري لیکل سوي دي دلیل دي چي دده کارونه به پوره نسي.

**نانها\ډوډی**

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي پاکیزه ډوډي لیدل ژوند دي اوکه پاکیزه ډوډی نه وي نو ژوند به یي په خفګان وي اوکه ووینې چي ډوډۍ یي اخیستي ده اوکور ته یي وړي ده نو پر خیر نفع فراخه روزی اوپر حلال مال دلیل دي اوکه ووینې چي ده ته چا ډوډي ورکړي ده دلیل دي چي ده ته به خوشحالي رسیږي. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي که ووینې چي ده دوه دري ډوډي پیدا کړي دي دلیل دي چي دغم اوفکر څخه به خلاص سي اوخوشحالي او راحت به وینې اوکه ووینې چي ده په نامعلوم ځاي کي نیمه ډوډي پیدا کړي ده دلیل دي چي دده نیم عمر تیر سوي دي اوکه ووینې چي ده لږ ډوډي پیدا کړي ده اوخوړلي یي ده دلیل دي چي دده مرګ نزدي سوي دي اوکه ووینې چي دده سره ډیري ډوډي دي اوخوړلي یي نه دي دلیل دي چي هغونه به مال حاصل کړي اوکه ووینې چي ګرمه ډوډي یي خوړلي ده دلیل دي چي ده ته به غم ورسیږي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي ګرمه ډوډي لیدل ژوند اوخوشحالي ده او وچه ډوډي د دې خلاف ده او چاڼ کړي ډوډي خوړل پرقحط اوتنګي دلیل لري اوګرمه او پاکه ډوډي خوړل دپاچا پر عدل او انصاف دلیل دي اودباجري ډوډي پر تنګ ژوند او پرهیزګاري دلیل لري اود اوربشو ډوډي خوړل پرپرهیزګاري دلیل دی او دشولو ډوډي پرسختي اودکارونو پر

بنديدو دليل لري او ددالو اودكرخو ډوډي پر غم اوفكر دليل لري. جابر مغربي رحمه الله ويلي دي كه ويني چي ده وچه ډوډي خوړلي ده دليل دي چي روزي به باندي فراخه سي اوبعض وايي چي په خوب كي نري ډوډي خوړل دعمر پر لنډلوالي دليل دي اوكه ويني چي غونډه ډوډي دده پر تندي راځړيږي ده نو فقير به سي اسماعيل اشعث رحمه الله ويلي دي چي د ډوډي تعبير امير بزرگ او رئيس خلک دي اوكه پاچا په خوب كي يوه ډوډي ويني دليل دي چي ملك به يي زيات سي او كه سوداگر ويني نو مال به يي زيات سي او ديوي ډوډۍ تعبير ديوي روپي څخه تر زرو روپو پوري دي دهر سړي دحوصلي مطابق اوكه په عوامو كي څوك سړى يي ويني نو دهغه جايداد اوعزت به زيات سي. دانيال عليه السلام ويلي دي چي په خوب كي د ډوډي څخه ښه شي نسته ځكه چي ډوډي حلال مال دي چي بغير دمحنت څخه حاصليږي او په خوب كي د ډوډي پخولو تعبير دژوند په طلب كي كار كول دي او په ډوډي كي تادي كول دمال بزرگي حاصلول دي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي ډوډي په څلور وجو وي. ۱: خوشحاله ژوند ۲: حلال مال ۳: دخير اوبركت مياشت ۴: دمال طلب اوكه ويني چي ډوډۍ خلاصه ده دليل دي چي ډير مال به په جنگ سره حاصل كړي اوبعض وايي چي نانبايي په تعبير كي عادل پاچا دي.

## نانخوا\ سپيركۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي سپيركي پرغم اوفكر دليل لري اوكه ويني چي سپيركي يي چا ته وركړي ده يا يي غورزولي ده دليل دي چي دغم اوفكر څخه به خلاصه سي او دسپيركۍ په خوړلو اوليدلو كي ماسوا دغم اوفكر څخه هيڅ خير اونفع نسته او الله جل جلاله ښه پوهيږي.

## ناودان\ ناوه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي كه څوک په خوب كي ويني چي دچتونو څخه اوبه بغير دناوو لاندي رابهيږي دليل دي چي دلته به جنگ او خونريزى كيږي اوكه ويني چي بغير دبارانه په ناوو كي اوبه رابهيږي دليل دي چي دغه ځاي والاوته به دپاچا دطرفه څخه تاوان او غم رسيږي او كه ويني چي وريځ اوباران دي او ترناوو ناوو اوبه رابهيږي دليل دي چي الله تعالى به پر دغه ځاي والاوو بخشش اورحمت وكړي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دي كه ويني چي ده پرخپل چت ناوه ايښي ده دليل دي چي دلوى سړي څخه به نفع حاصله كړي اوكه ويني چي دده پركور ناوه را ايله ده اوماته سويده نو د دې تعبير داولني خلاف دي اوكه ويني چي ناوه داوسپني يا دتانبي ده، دليل دي چي هميشه به دده كارونه په انتظام سره وى اوكه ويني چي ده دچا دناوي اوبه چيښلي دي دليل دي چي دهغه په اندازه به دچا څخه نفع حاصله كړي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي ناوه په دوو وجوده. ۱: دښار رئيس ۲: سردار ۳: لږ خير اونفع.

## نايي زدن\ شپيلۍ وهل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب كي شپيلي وهل پر غم اوفكر اومصيبت دليل دي او

دشپیلۍ اواز اوریدل پر غم اوفکر دلیل دي اوکه ویني چي شپیلي وهي دلیل دي چي په غم او فکر کي به ګرفتار سي. ابراهیم کرماني رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي شپیلي وهونکي هغه سړی دي چي خلکو ته خیر رسوي او په شپیلي وهلو کي خیر نسته.

## نباتات\سبزي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي که سبزي دهغه په موسم کي ویني او دهغه تنه نه وي نو پر خیر او نفع دلیل دي اوچي تنه يې دښاخونو څخه بغیر وي نوپر مال نعمت او دمرتبې د زیاتوالي په اندازه دسبزي پر کوچنیوالي او لوړوالي اودښاخونو پر نري والي دلیل دي اوکه ویني چي دده پر بدن باندي سبزي یا وابنه یا درخته شنه دي دلیل دي چي خیر اونفع به حاصله کړي او څونه چي سبزي زیات ویني خیر اونفع به زیات وي اوکه ویني چي دده پر غوږ یا ژبه یا خوله باندي سبزي راشنه سوي دي دلیل دي چي دده مرتبه به زیاته سي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي دمځکي په سبزي کی دعام اوخاص لپاره نعمت اوزړه غوښتونکي مال دي اوکه ویني چي دده په مځکه کي ډیر بوټي راشنه سوي دي دلیل دي چي خوب لیدونکي به ديندارِه اومسلمان سي. جعفر صادق رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي کوچني بوټي په څلورو وجو وي. ۱: مال ۲: نفع بزرګي اومرتبه ۳: خوشحاله ژوند ۴: د دولت زیاتوالي.

## نبات جلاب\دګلابو بوټي

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي دګلابو بوټي لیدل ښه خبره ده اوکه ډیر بوټي ویني نو پر مال اونعمت دلیل دي اوکه ویني چي چا دده په خله کي بوټي ایښي دي دلیل دي چي دهغه څخه به ښه خبره اوري یا به دي مچوي. ابراهیم کرمانی رحمة الله علیه ویلي دي چي په خوب کي دګلابو بوټي لیدل په پنځو وجو وي. ۱: ښه خبره ۲: مچول ۳: نفع اومال ۴: زامن ۵: حلاله روزي.

## نباش\کفن چور\کفن کښ

ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي که څوك په خوب کي ویني چي دی کفن کښ سویدي که عالم وي دلیل دي چي دباطلي دنیا په طلب کي به خپل علم خرڅوي او په دي کي به خپل عمر ضایع کوي. جابر مغربی رحمة الله علیه ویلي دي که کفن کښ ویني چي ده ډیر کفنونه جمع کړي دي نو مصلح به سي اوعلم اوحکمت به حاصل کړي اوبعض وايي چي حرام مال به جمع کړي او دخلکو څخه به ملامتیا حاصله کړي.

## نویسنده\لیکوونکی\لیکوال

دانیال علیه السلام ویلي دي که لیکونکي ویني چي ده څه لیکلي دي دلیل دي چي په مکر اوچم سره به دچا مال اخلي اونه کوونکي کار به کوي اوکه ویني چي ده دپاچا لپاره څه لیکلي دي دلیل دي چي ډیر مال اونعمت به حاصل کړي اوکه ویني چي دعامو خلکو لپاره يې څه لیکلي دي دلیل دي چي په خپل مکر اوفریب سره به خلک پریشانه کوي. ابن سیرین رحمة الله علیه ویلي دي که ویني چي ناڅاپه منشي سوي دي دلیل دي چي په مکر اوچم سره به روزي ګټي اوکه عام سړی

وي او ويني چي دليکلو کار کوي دليل دي چي خير اونفع به حاصله کړي اوکه ويني چي شعر غزل او افسانه ليکي دليل دي چي ددنيا په کارکي به لګيږي اوداخرت کار به هير کړي اوکه ويني چي قرانکريم توحيد اودعا ليکي دليل دي چي خير اونفع به حاصله کړي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دي که څوك په خوب کي ويني چي دويني په سياهي يي خط ليکلي دي نو دليل دي چي دسود چيك به ليکي. اسماعيل اشعث رحمه الله عليه ويلي دي که منشي په خوب کي ويني چي ده سردار ته خط ليکلي دي که صالح وي نو دده ددين اوديانت پر ضايع کيدو دليل دي اوکه بدکاره وی نو توبه به وباسي اوکه ويني چي په سره سياهي ليکل کوي نو ددنيا پر عيش عشرت دليل دي اوکه ژړه وي نوناجوړه به سي اوکه په شنه سياهي سره ليکل کوي نو دده نوم به په خير اوخوشحالي سره په ملك کي مشهور سي اوکه ويني چي په سرو يا سپينو زرو سره ليکل کوي دليل دي چي دپاچا څخه به خير اونفع حاصله کړي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي ليکل په څلورو وجو وي. ۱: خير او نفع ۲: مال اونعمت ۳ : په مکر او چم سره څه حاصلول ۴: معزول کيدل.

## نبیذ\شراب

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي شراب حرام مال دي چي په جنګ سره حاصليږي اوکه ويني چي په شرابو کي غرق سوي دي دليل دي چي په لويه فتنه کي به راسي اوکه ويني چي دده په کور کي ډير شراب دي دليل دي چي هغونه به ورته نفع حاصله سي ابراهيم کرمانی رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي شراب يي چيښلي دي اونشه سوي دي دليل دي چي ده ته به خوف اوبيره رسيږي اوکه ويني چي دبل چاسره شراب چيښي دليل دي چي جنګ به کوي اوکه ويني چي شراب په وياله يا درياب کي بهيږي اودي پکښي لمبيږي دليل دي چي په فتنه کي به راسي اوکه ويني چي دشرابو پياله دده په لاس کي ده او دده ملګري ځني اخيستي ده دليل دي چي ددنياوي عيش په وجه به په جنګ کي راسي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي شراب په اوبو کي ګډوی او چيښي يي دليل دي چي دده لاس ته به څه حلال اوڅه حرام مال راځي اوکه ويني چي شراب خرڅوي دليل دي چي مال به برباد کړي اودمالك شراب چيښل پر معزول کيدو دليل دي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي شراب په درو وجووي. ۱: پټه نکاح ۲: حرام مال ۳: د دې جهان نعمت اوکه څوك په خوب کي ويني چي دشرابو لپاره انګور مړي دليل دي چي دپاچا يا درئيس نزدي سړی او دهغه څخه به مال حاصل کړي.

## نخاسي\د غلامانو خرڅونکي

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي نخاسي کوي دليل دي چي محاله خبره به کوي او د درواغو قسمونه به خوري او په خوب کي دنخاسي کولو هيڅ فايده نسته.

## نخچير\ښکار

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي ښکار دده مطيع اوتابعدار دي دليل دي چي رئيس او

بزرګ به سي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دي چي دغلو مشر به سي اوکه ويني چي ښکار دده تابعدار نه دي نو ددې تعبير د اول خلاف دي اوکه ويني چي دښکار په شکل سوي دي دليل دي چي بي دينه به سي او دباطل طرفته به ميلان کوي. جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ښکار يي په جال سره نيولي دي دليل دي چي دځنګلي سړی سره به ملاويږي اوکه ويني چي دښکار غوښه يي خوړلي ده دليل دي چي دځنګلي سړی څخه به څه مال اخلي اوکه ويني چي په ښکارونو کي مقيم سوي دي اوده ته په دي مقيم کيدو سره څه نقصان نه دي رسيدلي دليل دي چي په ځنګلي ټولګي کي به مقيم سي اودهغه څخه به خير اونفع حاصله کړي اوکه د دې خلاف ويني دليل دي چي ده ته به تکليف رسيږي اوفايده به ورته نه وي اوکه ويني چي ښکار دده سره خبري کوي اودده تابع وي که اهل علم اوفضل وي نو دپاچا نزدي سړی به سي اومال به حاصل کړي اوکه جاهل وي نوداسي کار به کوي چي په هغه سره به خلک تعجب کوي.

## نخود

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نخود که لانده وي يا وچ پر غم اوفکر دليل لري اوکه ويني چي دچا څخه يي نخود واخيستل اوويي خوړه دليل دي چي دهغه په وجه په غم اوفکر کي ګرفتاره سي اوکه ويني چي ده نخود په ښوروا يا غوښو کي پخکړي او خوړلي دي دليل دي چي دده غم اوفکر به کم سي.

## نردباختن\شطرنج کول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي شطرنج کول باطل کار او ددنيا دهوکه ده اوکه څوك په خوب کي ويني چي شطرنج کوي اوپر مقابل غالب سوي دي دليل دي چي په بې فايدي کار اوفريب سره به پر چا غالب سي اوکه مخالف باندي غالب سوي وي نو د دې تعبير خلاف دي.

## نردبان\اندرپايه\زينه\پوړۍ

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که څوك په خوب کي ويني چي پر زينه باندي ختلي دي اوهغه زينه دختي او خښتو وي نو پرخير او صلاح دليل دي اودده دين به زيات وي اوده ته به نيکي رسيږي اوکه زينه دچوني اوکاڼو وي دليل دي چي سخت زړي اوبي رحمه به وي اوکه دلرګي وي نو دده دين به کمزوري وي اوکه ويني چي لوړ پر زينه ختلي دي که دچوني وي نوپاچا به سي ورته خير اونفع به حاصله کړي اوکه ويني چي پر زينه لاندي راکښته سوي دي نو د دې تعبير د اول څخه خلاف دي جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دزيني څخه کښته را ايله سوي دي دليل دي چي دمرتبي او بزرګي څخه به را ايله سي اونقصان به يي وسي او جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي زينه مصلح او پرهيزګار سړي دي چي پر دښمن به کاميابه سي او دبدکاره لپاره منافقت دي.

## نرګس\دنرګس ګل

دانيال عليه السلام ويلي دي چي په خوب کي ګل نرګس خوش طبعه ښايسته اوپاک سړی دي ابن

سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي ګل نرګس ښه خبره ده اوکه ښځه ویني چي دچا ګل نرګس اخستي دي یا چا ورته ورکړي دي دلیل دي چي ښایسته زوی به یي پیداسي اوکه یي خاوند نه وي نوښایسته خاوند به کوي اوکه ویني چي نرګس یي دمځکي څخه را ایستلي دي دلیل دي چي خوب لیدونکي به ښځي ته طلاق ورکوي یا به یي زوی مري اوکه ویني چي نرګس یي دمځکي څخه را ایستلي دي اوغلام ته یي ور کړي دي دلیل دي چي دده غلام به تښتي اوکه ښځه ویني چي دي دګل نرګس دسته خپل خاوند ته ورکړي ده دلیل دي چي د دې خاوند به دي ته طلاق ورکوي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي نرګس په درو وجو وي ۱: خوشطبعه او ښایسته ښځه ۲: زوی ۳: دوست چي د هغه دوستي قوي وي. او که ویني چي ده شین نرګس را اخیستي دي دلیل دي چي احسان اونیکي به کوي اوپه خیر کي به مشهور سي اوکه ویني چي دده سره نرګس وو اوزیات سو دلیل دي چي دده عیال به زیات سي.

## نژم\نغم\غار

که ویني چي ده نژم اخستي دي دلیل دي چي هغونه به په دین کي ګمراهي حاصلوي اوکه ویني چي نژم په رڼا سره بدل سو دلیل دي چي توبه به کوي اوکه وینی چي دنژم په رڼا کي تللي دي دلیل دي چي منافق به وي جعفر صادق رحمه الله ویلي دي که ویني چي په تاریك نژم کي دي نو دغم اوفکر او دکار دبندیدو دلیل دي اوکه ویني چي هوا روښانه سوه اوسمدستي ځای ښکاره سو دلیل دي چي په دي ملك کي به ناګهانه مرګ راځي جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي نژم لیدل په خوب کي په څلورو وجووي. ۱: تاخیر ۲: دکارونو پټیدل ۳: بدعت ۴: ګمراهي ابراهیم اشعث رحمه الله ویلي دي چي که څوك له غار څخه رڼا ته راغلي دلیل یي دي چي دغریبي څخه به مالداري ته راسي او دبدعت اوګمراهي څخه به لیري سي ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي غار لیدل ښه نه دي.

## نسرین\درامبیل ګل

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي درامبیل ګل لیدل دلیل دی چي ده ته به څه ملاو سي او داهم وایي چي دده به زوی پیدا کیږي اوکه درامبیل ددرختي څخه لیري وي نو پر غم او فکر دلیل دي اوکه ویني چي چا ورته درامبیل ګلدسته ورکړي ده دلیل دي چي په دوي کي به بحث پیدا کیږي اوکه درامبیل ګل په درخته کي ویني دلیل دي چي خوشحاله به سي یا به ده ته لږ څه ملاویږي.

## نشاسته\د غنمو د مغز حلوا

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي دغنمو نشاسته حلال مال دي چي دتجارت په وجه به په تکلیف سره حاصل سي اوکه ویني چي ده نشاسته خوړلي ده دلیل دي چي غمجن به سي اوبعض وایي چي ناجوړه به سي اوکه ویني چي نشاسته یي حلوا کړي ده اوخوړلي یي ده دلیل دي چي مال اونعمت به حاصل کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که څوك په خوب کي ویني

چي ده دغنمو څخه نشاسته ايستلي ده دليل دي چي پخپله ګټه به څه شي په تکليف او سختي سره حاصل کړي.

## نشستن\کښېنستل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي پر مځکه ناست دي او ارام يې حاصل کړي دي دليل دي چي په سفر کي به دده کار نيک وي او که ويني چي ډير بيده سوي دي نو هم يې دغه تعبير دي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي پر اس يا خره يا غاتري کښېنستل په څلورو وجو وي ۱: بخت ۲: دولت ۳: مرتبه ۴: حکومت او په هوا کښېنستل پر پاچاهي دليل دي که هوا دده تابع وي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دمصلح خلکو سره ګرځي او په لاره کي ناست دي دليل دي چي لالچي او ددين مخالف به وي دالله تعالی فرمان دي (فرح المخلفون بمقعدهم، سورة التوبة: ۸۱) وروسته پاته کيدونکي پخپله ناسته باندي خوشحاله دي. او که ويني چي دغه خلک ددين مخالف وو او هغوي يې پري ايښي دي او ناست دي نو ددې تعبير داول څخه خلاف دي اسماعيل اشعث رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دمصلح او پرهيزګارو خلکو سره ناست دي دليل دي چي په خير او صلاح کي به يې زياتوالي کيږي او که دبدکاره خلکو سره ناست وي نو د دې تعبير خلاف دي.

## نعل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نعل مال دي که هر رنګه ورته رسيږي که ويني چي دده سره دغاتري نعل دي نو دپاچا څخه به ورته نفع حاصله سي او که نعل دخره وي نو دبزرګانو څخه به مال حاصل کړي او که ويني چي حيوانانو ته نعلونه لګوي دليل دي چي په سفر به ځي او نعل بند هغه سړي وي چي په خلکو کي ددوستي تلاش کوي.

## نعلين\چپلکي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده دپيزارو تسمي شليدلي دي دليل دي چي تر ډير وخت پوري به په سفر کي وي او که ويني چي دده په چپلکو کي سوري دي دليل دي چي په څه وجي به دسفر څخه پاته سي او غم به ورته رسيږي او که ويني چي دده چپلکي شني وي دليل دي چي دده سفر به د اخرت لپاره وي او که ويني چي دده سره چپلکي نسته اوددي وجي څخه دسفر څخه پاته سوي دي دليل دي چي خادمه به حاصله کړي جابر مغربي رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده سره چپلکي توري دي دليل دي چي دده ښځه به مالداره وي او که سري وي نو دده ښځه به عياشه او خوش پسنده وي او که سپيني وي نو دده ښځه به پرهيزګاره او ښايسته وي او که ويني چي دده په چپلکو کي ذکر سوي ټول رنګونه دي نو دده په ښځه کي به دا ټول صفتونه وي او که ويني چي دده دچپلکو بندونه دغوا دپوست دي دليل دي چي دده ښځه به داصله عجمي وي او که د اوښ دپوست يې ويني دليل دي چي دده دښځي اصل به عربي وي او که ويني چي دتللو په وخت کي دده چپلکي ورکي سوي دي نو دسفر څخه به پاته سي، که

دده دچپلکو بند د اوښ دپوست وي نو دده ښځه به ناجوړه سي او اسماعيل اشعث رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي دده چپلکي څيري سوي دي نو دغه تعبير يي دي او جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي چپلکي ليدل په درو وجو وي ۱: سفر ۲: ښځه ۳: مينځه.

## نعناع \ پودينه

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي پودينه پرغم اوفکر دليل لري که څوك په خوب کي ويني چي دده په مځکه کي پودينه ده دليل دي چي په غم اوفکر کي به گرفتارسي اوکه ويني چي ده پودينه خوړلي ده دليل دي چي دده غم به زيات سي اوکه ويني چي دبل چا په مځکه کي يي پودينه ده دليل دي چي مځکي والا ته به غم اوفکر وي اوکه ويني چي دخپلي مځکي څخه يي پودينه ايستلي ده او غورزولي يي ده دليل دي چي دغم اوفکر څخه به خلاص سي.

## نفت \ د خاورو تيل

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نفت ناکاره ښځه ده که ويني چي په ځان پوري دخاورو تيل مږي دليل دي چي دناکاره ښځي سره به ملاقات کوي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دي چي خوب ليدونکي به حرام شي خوري اوکه ويني چي دده سره ډير زيات دخاورو تيل دي دليل دي چي حرام مال به جمع کوي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي دخاورو تيل ليدل په درو وجو دي. ۱: ناکاره ښځه ۲: چغل خور ۳: حرام مال.

## نفرين \ نفرت کول

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي که څوك په خوب کي ويني چي دظالم څخه نفرت کوي دليل دي چي پر دغه ظالم به کامیابي حاصلوي اوکه ويني چي دي ظالم دي اومظلوم دده څخه نفرت کوي نو د دې تعبير د اولني خلاف دي. ابراهيم کرماني رحمه الله عليه ويلي دي چي ناحقه دبي گناه څخه په نفرت کي دليل دي چي پر چا به ظلم کوي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي ديو سړی څخه په ناحقه نفرت کوي دليل دي چي دده کار به بندسي اوبعض وايي چي په خوب کي په ناحقه نفرت کول دخوب ليدونکي طرفته رجوع کوي اوکه په حقه نفرت کوي نو د دې تعبير به پرهغه سړي واقع کيږي دچا څخه چي يي نفرت کړي وي او دمفسد په نسبت پر مصلح سړي ژر اثر کوي اوکه مفسد سړی په حقه يا په ناحقه نفرت کوي نو مخالف به رجوع کوي.

## نقاد \ کوټه معلومونکی \ نقد کوونکی \ کره کتونکی

نقاد په خوب کي عالم هوښيار اوحکيم دي ځکه چي هر ښه شي خوښونکي دي ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي که ويني چي ديندار اوصالح سړي نقاد سوي دي دليل دي چي دځان څخه به قرانکريم او ددين علوم حاصل کړي اوکه ددنيا طلب کوونکي دي دليل دي چي دځان لپاره به شرف اوبزرگي حاصله کړي او ددنيا مال به خوښوي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نقاد عقلمند سړی دي چي په نيك بد مصلح اومفسد کښي فرق کوي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي په خوب کي نقاد په څلورو وجو دي. ۱: هوښيار سړی ۲: حکيم ۳: عقلمند ۴: کار

معلومونکي.

### نقره\سپین زر

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي سپین زر پر ازادو ښځو دلیل لري که څوك ووینی چي ده دخپل کار لپاره سپین زر اخستي دي دلیل دي چي په دغه ځاي کي به دښځي سره واده کوي ځکه چي سپین زر دښځو ذات دي اوکه ووینی چي دسپینو زرو دوکان ته تللی دي اوسپین زربی ځني را ایستلي دي دلیل دي چي هغونه به مال حاصل کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي که ووینی چي دده سره سپین زر دي نو پر زوی دلیل دي.

### نقصان\تاوان

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي که ووینی چي دده په بدن کي نقصان سوی دي دلیل دي چي هغونه به یي دمال نقصان وسي لیکن د ښځو دبدن په نقصان کي صلاح ده څنګه چي په حرف ز کي د ښځو په حقله بیان سوي دي. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي که ووینی چي دده په مال یا په څه شي کي نقصان سوي دي دلیل دي چي فکر مندبه سي او ده ته به نقصان رسیږي.

### نګارګري\نقش کول\نقاشي\رسامي\مصوري

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي که څوك په خوب کي ووینی چي پر چت او دکور پر دیوالونو نقاشي کوي دلیل دي چي دنیادار به سي او ددنیا پر کارونو مین دی. ابراهیم کرمانی رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي نقاشي اومصوري کول باطل او ناحق کار دي دالله تعالی فرمان دي (ما هذا التماثیل التي انتم لها عاکفون، سورة الانبیاء: ۵۲) داڅه تصویرونه دي چي تاسو ورته منجاوري کوي. جابر مغربی رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي نقش کول پر دنیا مین کیدل دي او سمه لاره پریښول اوپر باطله لاره تلل دي. اسماعیل اشعث رحمه الله علیه ویلي دي که ووینی چي پخپلو لاسونو دساهي رنګ اونقش جوړوي دلیل دي چي ددنیا په ګټلو کي به مکر اودهوکه کوی. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي نقش کول په څلورو وجودي. ۱: ددنیا ښایست ۲: بي فایدي کار ۳: مکر او دهوکه ۴: فریب او درواغ.

### نګین\انګشترۍ\ګوتمۍ

ابن سیرین رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي دګوتمۍ غمی شرف بزرګی اومال دي اوبعض اهل تعبیرو بیان کړي دي چي زوی دي اوکه ووینی چي دده دګوتمۍ غمي ورك سوي دي دلیل دي چي دده په بزرګي اومرتبې کي به نقصان راسي یا به یې زوی مړ کیږي اوکه ووینی چي دده دګوتمۍ غمي مات سوي دي نوهم دا تعبیر یي دي اوکه ووینی چي دده پر ګوتمۍ ناګهانه غمي ښکاره سوي دي دلیل دي چي دغمي دقدر و قیمت مطابق به نعمت حاصل کړي. جعفر مغربی رحمه الله علیه ویلي دي چي دپاچاهانو لپاره غمي دولایت تاج دی او دښځو لپاره خاوند دي او دعامو خلکو لپاره مرتبه اونیکي ده. جعفر صادق رحمه الله علیه ویلي دي چي په خوب کي ګوتمي لیدل په اتو وجو ده. ۱: ښځه ۲: مال ۳: ولایت ۴: ژوند ۵: زوی ۶: بزرګي ۷: مال اونعمت ۸:

عمل.

## نماز \ لمونځ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي كه څوك په خوب كي ويني چي لمونځ دمشرق طرفته كوي دليل دي چي حج ته به ځي اوكه دحج وخت نه وي نودده مينه به دعيسايانو سره وي اوكه ويني چي دمغرب طرفته لمونځ كوي او دده ميلان دقبلي طرفته وي دليل دي چي ددين په لاره كي به حيران سي اوكه ويني چي لمونځ دقبلي طرفته كوي دليل دي چي ددين په لاره كي به مستقيم سي. ابراهيم كرمانی رحمه الله ويلي دي كه ويني چي ديو قوم امامتي كوي دليل دي چي څونه مقتديان وي هغونه به پر يو ټولگي سرداري كوي اوكه ويني چي دلمونځ وخت تير سوي دي او ده څه پاك ځاي نه دي پيدا كړي چي لمونځ پكي وكړي دليل دي چي دده كار به په مشكله پوره سي اوكه ويني چي لمونځ يي مات كړي او ادا يي نه كړي يايي بي اودسه وكړي دليل دي چي په څه مطلب كي وي هغه به پوره نسي اوكه ويني چي ده په جمات يا مدرسه كي امامتي كړي ده دليل دي چي ددغه ملك پاچا به دده تابعداروي اوكه د دې خلاف ويني نو تعبير يي هم خلاف دي اوكه ويني چي په لمونځ كي يي ركوع اوسجده په ښه رقم سره ادا كړي ده دليل دي چي دده ددين اوددنيا كار به نيك وي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي كه ويني چي دماپښين لمونځ يي په وخت ادا كړي دي او اسمان روښانه اوپاك دي دليل دي چي دالله تعالی دطرف څخه به دده مرتبي لوړي سي اوكه په اسمان كي تاريكه او وريځ وي نو پر غم اوفكر دليل دي اوكه ويني چي ده لمونځ كړي دي دليل دي چي دده اميد به پوره سي اوكه ويني چي ده دماښام فرض كړي دي دليل دي چي دخپل اهل وعيال سره به معامله كوي اودهغوي څخه به خوشحاله سي اوكه ويني چي دسهار لمونځ يي ادا كړي دي دليل دي چي په سفر به ځی اوكه دا خوب ښځه ويني نوهغې ته به حيض راسی اوكه بي اودسه لمونځ وكړي دليل دي چي ناجوړه به سي اوكه دماخستن فرض وكړي دليل دي چي په امن كي به سي او په دښمن به كامیابه سي اوكه ويني چي په باغ كي يي لمونځ كړي دي دليل دي چي دگناه څخه به توبه كوي اوكه ويني چي په كشتي كي يي لمونځ كړي دي دليل دي چي دقرض څخه به خلاص سي اوكه ويني چي دلمونځ په ځاي كي نه وو اولمونځ يي كړي دي دليل دي چي مفسد اوبدكرداره به وي اوكه ويني چي لمونځ يي وكړي ځنگل ته ولاړي دليل دي چي دنبی صلی الله علیه وسلم د قبر مبارك زيارت به كوي او كه ويني چي په كعبه كي يي لمونځ كړي دي دليل دي چي دده كار به دخليفه دطرفه په انتظام سره سي اوكه ويني چي دلمونځ څخه وروسته يي سجده كړيده دليل دي چي پر لوی اودولتمند سړی به كامیابه سي اوپر هغه به قابض سي. اوكه ويني چي ده دالله تعالی څخه ماسوا بل چاته سجده نه ده كړي دليل دي چي مراد به يي پوره سي اوكه ويني چي ده پر ديوال سجده كړيده دليل دي چي ده ته به دبزرگانو تكليف اوخواري رسيږي اوكه ويني چي لمونځ يي كړيدي اوگبين يي وچيښل دليل دي چي دخپل عيال سره به نزدي والي كوي اوكه ويني چي په لمونځ كي په التحيات ناست دي دليل دي چي دغم څخه به خلاص سي اومراد به

یې پوره سي اوکه ووینې چې ده دلمونځ اولنی سلام چپه طرفته ګرځولی دي دلیل دي چې دده احوال به بد سي اوکه ووینې چې په ناستې یې لمونځ کړي دي دلیل دي چې په دښمن به کامیابي حاصله کړي اوبعض وایي چې دده عذر به قبول کړي اوکه ووینې چې په لمونځ کې یې دځان لپاره دعا کړیده دلیل دي چې دده به زوی کیږي دالله تعالی فرمان دي (اذ نادي ربه نداء خفیا، سورة مریم: ۳) کله چې ده خپل رب ته په پټه اواز وکړي. اوکه ووینې چې ده په تاریکه کې لمونځ کړي دي دلیل دي چې دغمونو څخه به خوشحالي حاصله کړي اوکه ووینې چې ده دشپې لمونځ کړي دي دلیل دی چې دهر قسم بیري څخه به په امن کې سي او نعمت اوبزرګي به حاصله کړي اوکه ووینې چې ده پر اړخ لمونځ کړي دي دلیل دي چې ناجوړه به سي اوکه ووینې چې ده دجمعې لمونځ کړي دي دلیل دي چې په سفربه ځي اوحلال رزق به حاصل کړي اوکه ووینې چې ده په بیت المقدس کې لمونځ کړي دي دلیل دي چې کعبې ته به ځي اوانجام به یې ښه وي.
حافظ معبر رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې لمونځ کول په درو وجو وي. ۱: فرض ۲: سنت ۳: نفل که ووینې چې فرض لمونځ کوي دلیل دي چې الله تعالی به دده په قسمت کې حج وکړي او دبدکاري څخه به یې بچ کړي دالله تعالی فرمان دي (ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر، سورة العنکبوت: ٤٥) ترجمه بیشکه لمونځ دبی حیایي اوګناه څخه بچ کوي. اوکه ووینې چې سنت لمونځ یې کړي دي دلیل دي چې په کارونو کې به صبر کوي او نیك نامي به یې روښانه سي اوپر مخلوق به شفقت کوي اوکه ووینې چې نفل لمونځ یې کړي دي دلیل دي چې دعیال قدربه کوي او ددوستانو په کار کې به کوشش کوي اودهرچا سره به ښه سلوك کوي اوکه ووینې چې نفل لمونځ یې کړي دي دلیل دي چې دعیال قدر به کوي او ددوستانو په کار کې به کوشش کوي او دهرچا سره به ښه سلوك کوي اوکه ووینې چې په څاروي یې لمونځ کړي دي دلیل دي چې ډیر فکرونه به ورته وي اوکه ووینې چې په کارخانه یا دکان کې یې لمونځ کړي دي دلیل دي چې الله تعالی به دده په کسب اوکار کې برکت واچوي اوکه ووینې چې ده دجمعې لمونځ کړیدي دلیل دي چې دده کار به په تسلي اوجمعیت سره وي. خالد اصفهاني رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې الله تعالی ته رکوع اوسجده کول الله تعالی ته نزدي والي دي دالله تعالی فرمان دي (کلا لا تطعه واسجد واقترب، سورة العلق: ۱۹) ترجمه: د هغه هیڅکله اطاعت مه کوه سجده کوه اونزدي سه. بعض اهل تعبیر بیان کړي دي که ووینې چې په لمونځ کې یې رکوع نه ده کړي دلیل دي چې دمال زکوة نه ور کوي اوکه ووینې چې لمونځ یې کړیدي دلیل دي چې الله تعالی به دده عبادت قبول کړي اودده دعا به منظوره سي اوالله تعالی به پر ده درحمت نظر وکړي.
جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چې په خوب کې لمونځ کول په اوو وجو وي ۱: امن ۲: ښادي ۳: عزت ۴: مرتبه ۵: خلاصون ۶: مراد حاصلول ۷: په قضا کې نقصان. او په خوب کې رکوع اوسجده په پنځو وجووي ۱: مراد حاصلول ۲: دولت ۳: مدد ۴ : کامیابي ۵: امر حق پر ځاي

راوړل دالله تعالی فرمان دي (یا ایها الذین امنوا ارکعوا واسجدوا واعبدوا ربکم وافعلوا الخیر لعلکم تفلحون، سورة الحج: ۷۷) اي ایمان والاو رکوع کوي او سجده کوي او دخپل رب عبادت کوي اونیک کار کوي د دې لپاره چي تاسو خلاصون حاصل کړي. اوکه ووینی چي ده دمړي جنازه کړې ده دلیل دي چي دهغه لپاره به دعا اوثنا کوي اوکه ووینی چي ده پوره لمونځ نه دي کړي نو د دې تعبیر د اولني خلاف دي.

## نمد \ لمسي

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که ووینی چي دده سره سپین اوپاك لمسي دي دلیل دي چي حلال مال به حاصل کړي اوکه خیرن وي نوهیڅ نفع یي نسته اوکه ووینی چي دده سره ډیر لمسي دي نو د خپل کسب څخه به ملال حاصل کړي اوکه ووینی چي سوزل سوي دي نوپه فساد کي به خپل مال ورك کړي. ابراهیم کرمانی رحمه الله ویلي دي که ووینی چي دده په بدن سپین لمسي دي دلیل دي چي مالداره ښځه به کوي یا به پیغله مینځه اخلي اوکه ووینی چي دده سره داوښ دپشم لمسي دي دلیل دي چي دپاچا څخه به نفع حاصله کړي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که ووینی چي دده لمسي ورك سوي دي دلیل دي چي دده دمال نقصان به وسي او په خوب کي دلمسي ګنډلو والا داسي سړی دي چي دحلال طرفته مایل وي او دحرامو څخه پرهیز کوي.

## نمک \ مالګه

ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي مالګه نقد درهم اونیک کار دي که څوك ووینی چي دده سره سپینه مالګه ده دلیل دي چي دهغه په اندازه به نقدي روپي حاصلي کړي ابراهیم کرماني رحمه الله ویلي دي که ووینی چي ده مالګه خوړلي ده دلیل دي چي دپرهیزګاري لاره به اختیار کړي اوخیرنه اوتوره مالګه پر جنګ دلیل دي. جعفر صادق رحمه الله ویلي دي چي په خوب کي مالګه په پنځو وجو ده. ۱: نقدي روپي ۲: نیکي ۳: عزت ۴: ډیر مال ۵: نیک خادم اوپه خوب کي خرابه مالګه په څلورو وجو ده ۱: کوټه درهم ۲: ناخوښي خبري ۳: غم او فکر ۴: خوشحالي.

## نمک سود \ مالګین

نمك سود یعني مالګه پکښي ملاو سوي سي، ابن سیرین رحمه الله ویلي دي که ووینی چي ده مالګینه څربه غوښه خوړلي ده نو پر نعمت او رزق دلیل دي اومیراث به حاصل کړي اوکه مالګینه کمزوري غوښه یي خوړلي وي نو ده ته به نقصان رسیږي اوغوښه چي څونه کمزوري وي هغونه به نقصان زیات وي اوسري کړي غوښه پر غیبت دلیل دي. جابر مغربی رحمه الله ویلي دي که ووینی چي سري کړي کمزوري غوښه یي خوړلي وي دلیل دي چي ده ته به دپاچا دخلکو څخه نقصان رسیږي اوکه مانده اوبي غوښه یي خوړلي وي دلیل دي چي دلوي سړی څخه به ورته نقصان حاصل سي اوکه مالګینه غوښه دکمزوري ځنګلي ځناور وي دلیل دي چي دځنګلي خلکو څخه به نقصان حاصل کړي غرض داچي په کمزوري غوښه کي نفع نسته.

## نهنګ \ مګر مچ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي مګر مچ غل ظالم اوجنګيالي سړی دي که څوك په خوب کي ووينې چي مګر مچ دي په اوبو کي ډوب کړی دي دليل دي چي په اوبو کي به هلاک سي اوکه ووينې چي دي مګرمچ خوړلي دي دليل دي چي ده ته به ددښمن څخه زحمت اوتکليف حاصل سي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دي که ووينې چي مګرمچ دي اوبو ته بيولي دي دليل دي چي ماهي به دي هلاک کړي اوکه ووينې چي مګرمچ پر ده غالبه سوي دي نو د دې تعبير د اول څخه خلاف دي اوکه ووينې چي دده سره مګر مچ غوښه يا پوست يا هډوکي دي دليل دي چي دي به ددښمن څخه نقصان حاصل سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که ووينې چي مګر مچ دي اوبو ته وړي دي دليل دي چي ددښمن دلاسه څخه به شهيد سي.

## نوديدين \ نوی شی ليدل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي کوم شي نوي اودخلکو خوښ وي هغه پر خير اوخوشحالي دليل دي او دزوړ شي ذکر په حرف ك کي سوي دي.

## نوحه کردن \ ژړل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که ووينې چي ژاړي دليل دي چي دغه ځاي به دده لپاره مبارك نه وي او ددغه ځاي لوی خلک به ديوبل سره بې اتفاقه وي اوکه ووينې چي دښار حاکم مړ دي او خلک ژاړي دليل دي چي هغوي ته به ددغه حاکم څخه تکليف او ظلم رسيږي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دي چي حاکم ته به خوشحاله وي. اوکه ووينې چي خلک ژاړي دليل دي چي دهغوي سره به دظالم څخه بې انصافي او ظلم کيږي او دهغه څخه به غمجن او عاجز سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي که ووينې چي ژاړي اوشور کوي دليل دي چي ده ته به غم فکر اونقصان رسيږي اوکه ووينې چي ژاړي او په کراره کراره نوحه کوي نو پر خوشحالي اوښادي دليل دي اوکه ووينې چي د ښځو سره ډير سړي دي او په پورته اواز سره ژاړي دليل دي چي په دغه ځاي کي به دپاچا په وجه غم او فکر وي.

## نوشادر (يو ډول دوا)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي نوشادر غم او فکر دي که څوك په خوب کي ووينې چي دده سره نوشادر دي دليل دي چي غمجن به سي اوکه ووينې چي ده نوشادر خوړلي دي نو پر زيات او سخت غم دليل دي.

## نيرو مند \ طاقتور \ ځواکمن

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که ووينې چي دويښتيا په نسبت زيات طاقتور سوي دي نو په دنيا او اخرت کي دده د احوالو په ښه کيدو دليل دي چي شرط د دې دا چي خوب ليدونکي نيک کاره وي اوکه فسادي وي نو د دې تعبير خلاف دي.

## نيزه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که څوك په خوب کي ووينې چي دده سره نيزه اونوره وسله هم ده

دليل دي چي بزرگي اومراد به يي پوره سي اودده حكم به په وطنونو كي جاري سي اوكه صرف نيزه ويني دليل دي چي دده زوی يا ورور به مري اوكه ويني چي دده نيزه چا وړي ده دليل دي چي دده كار به په مشكل كيږي اوكه ويني چي چا دي په نيزه زخمي كړي دي دليل دي چي دخلكو غيبت به كوي او په خوب كي نيزه پر قوت او پر خلكو دكاميابي دليل دي اوكه ويني چي دده په لاس كي دنيزي سر دي دليل دي چي دده صحبت به دنيكو كار مسافر سره وي اود هغه څخه به خير اونفع حاصله كړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب كي نيزه په اتو وجو ده. ۱: قوت ۲: سفر ۳: ولايت ۴: ښځه ۵: زوی ۶: امن ۷: توانايي ۸: دنيزي په قدر درستي اوپه خوب كي نيزه جوړونكي داسي سړي دي چي دخلكو مدد كوي اودهغه څخه هر چا ته قوت او طاقت حاصليږي.

## نبشتن\ليكل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي كه څوك په خوب كي ويني چي ليكل كوي يا چا ته ليكل زده كوي دليل دي چي علم اوعقل به زده كړي اوكه ويني چي څه ليكي نو دهغه پر شر اوفساد دليل دي اوكه ويني چي قران حديث توحيد اودعا ليكي نو پر خير اوصلاح دليل دي او شعر ياغزل پر بدي دليل دي.

## نيشكر\گنی

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي كه ويني چي گني خوري دليل دي چي په يو كار كي به مشغول سي او دگني دخوړلو په اندازه به په هغه كي جنگ اوبحث وي اوكه ويني چي ده گني چا ته وركړي دي دليل دي چي دبحث څخه به خلاص سي.

## نيكو كردن\نيكي كول

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب كی نيكي كول په دين كي هغونه قوت او بزرگي ده او داخرت دعذاب څخه خلاصون دي خاصكر كه خوب ليدونكی پرهيزگار او ايماندار وي. ابراهيم كرمانی رحمة الله عليه ويلي دي كه ويني چي دده سره چا نيكي كړي ده اوده هغه ذليله كړي دي دليل دي چي په ټولو كارونو كي به ناشكره سي دالله تعالی فرمان دي (ولا تنسوا الفضل بينكم ان الله بما تعملون بصير، سورة البقرة: ۲۳۷) ترجمه پخپلو كي احسان مه هيروي بيشكه الله پاك ستاسو دعملونو ښه ليدونكي دي. اوكه ويني چي دمشركانو سره يي نيكي كړي ده دليل دي چي خپل مال به په داسي خلكو خرڅ كوي چي هغوي ته د دواړو جهانونو خير وي.

## نيل (د كالو رنگ)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب كي نيل ليدل غم اوفكر دي اوكه څوك په خوب كي ويني چي دده سره نيل دي دليل دي چي دهغه په اندازه به ورته غم اوفكر وي اوكه ويني چي ده چا ته نيل ور كړي دي يا دهغه څخه ورك سوي دي دليل دي چي دغم اوفكر څخه به خلاص سی اوكه ويني چي ده خپل كالي په نيل رنگ كړي دي دليل دي چي ده ته به غم اوفكر

رسيږي اوده ته به دخپلوانو او دوستانو په وجه تکليف رسيږي اوکه ويني چي ده نيل خوړلي دي دليل دي چي ده ته به په درياب کي افت رسيږي.

## نيلوفر (يوډول ګل)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که څوك په خوب کي نيلوفر په خپل موسم کي په بوټي کي ويني دليل دي چي ده ته به دچا څخه څه ملاو سي يابه دده صالح زوی پيدا سي اوکه ګل دبوټي څخه جلا ويني نو پر غم او فکر دليل دي. ابراهيم کرماني رحمة الله عليه ويلي دي که ښځه ويني چي دي دنيلوفر دبوټي څخه نيلوفر وشکوي اوغلام ته يي ورکړي دليل دي چي د دې غلام به تښتي اوکه ويني چي دې ته خپل دوست دنيلوفر ګلدسته ورکړي ده دليل دي چي ددوي ترمينځ به جدايي راسي. دانيال عليه السلام ويلي دي چي په خوب کي دنيلوفر بوټي مينځه ده چي دهغه څخه به ليدونکي ته نقصان رسيږي.

# [و]

## واشه\باښه مرغه

باښه يو ښکاري مرغه دي ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که باښه خپل مطيع اوتابعدار ويني چي دلاسه الوځي اوپه اواز راځي اوهغه يي دغه رقم اموخته کړي دي نو پر حلال مال او دخوب ليدونکي پر مرتبی دليل دي اوکه ويني چي باښه سپينه او پاکيزه ده او دده پر لاس ناسته ده او دده تابعداره ده دليل دي چي دلوي سړی څخه به قدر مرتبه اوعزت حاصل کړي اوکه ويني چي باښه الوتلي ده اوتار دده په لاس کي پاته سوي دي دليل دي چي قدر اومرتبه به يي ختمه سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي چي باښه په خوب کي دپاچاهانو لپاره ملك او بزرګي ده او دمالدارو لپاره مال دي او دفقيرانو لپاره زوي دي اوکه ويني چي باښه دده دلاسه ايله اومړه سوي ده که خوب ليدونکي پاچا وي نو دملك څخه به جدا سي اوکه امير يا سردار وي نو دمرتبي او عزت څخه به ايله سي اوکه مالدار وي نوفقير به سي اوکه فقير وي نو دهغه زوی به مري اوبعض اهل تعبيرو بيان کړي دي چي باښه بي شرمه سړی دي اوکه ويني چي ده دباښي غوښه خوړلي ده دليل دي چي هغونه به ددښمن مال خوري اوکه ويني چي په يو ځاي کي ډيري باښې جمع سوي دي دليل دي چي بدمعاش خلک به دلته جمع سي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي باښه ليدل په څلورو وجو وي. ۱: قدر اومرتبه ۲: حکومت ۳: مال ۴: نفع.

## والي\حاکم

که ويني چي حاکم دتخت څخه معزوله سوي دي يا دهغه تخت مات سوي دي يا چا دهغه څخه توره اخيستي ده يا دهغه کور خراب سوي دي يا په جال کي ګرفتار سوي دي او وژل سوي دي يا څاروي دهغه پر سر ختلي دي اوايله دي يا چا غورزولي دي نو داټول پردي خبري دليل دي چي هغه به دشرف اوبزرګي څخه معزوله سي. ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که حاکم ويني چي

دده لنګوټه دچا دلنګوټي سره يو ځاي سويده دليل دي چي دهغه سرداري عزت اوښه عادت به قوي وي اوکه ويني چي په پښه کي يي پړي دي دليل دي چي دخوب ليدونکي شرف اوبزرګي به زياته سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که ويني چي حاکم سوي دي اوپخپل عمل کي منصف اوديندار دي او خلک ځني خوشحاله دي دليل دي چي خير اوصلاح به حاصله کړي او که د دې خلاف ويني نو پر شر اوفساد دليل دي خاصکر که خوب ليدونکي مفسد اوبدکاره وي.

## وحوش\ځنګلي ځناوران

وحوش ځنګلي ځناوران په دي کي چي کوم نر دي هغه پر سړو دليل لري اوکوم چي ښځه وي هغه پر ښځو دليل دي ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که ويني چي دځنګلي ځناورو ښکار کوي يا چا ورته وحشي ښکار ورکړي دي نو پرمال نعمت اوغنيمت دليل دي اوددي دغوښي اودپوست هم داتعبير دي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي که ويني چي ځنګلي ځناوران دده مطيع او تابعدار دي لکه څنګه چي د سليمان عليه السلام وو دليل دي چي يو ټولګي چي دهغوي په اسلام کي به خلل وي دده تابعدار به سي خاصکر که خوب ليدونکي پرهيزګار وي.

## ورنج

ددي بيان په حرف س کي سوي دي هلته يي وګوري.

## وردنه\چج

چج او دروټو شکور دواړه په خوب کي شريك اوديوبل متفق دي که ويني چي چا ورته چج ورکړي دي دليل دي چي ده ته به شريك حاصل سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که ويني چي دده سره چج دي دليل دي چي دچا سره ملګرتيا کوي اوهغه ته به سمه لاره ښيي او دباطل څخه به يي ليري کوي اوکه ويني چي دده چج مات سوي دي دليل دي چي دداسي سړي دملګرتيا څخه به جدا سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي چج ليدل په درو وجو وي. ۱: په کارونو کي اتفاق کوونکي ۲: دژوند شريك ۳: مشکل کار به پر ده اسان وي.

## ورده\برده فروشي\د غلامانو تجارت کول

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که څوك په خوب کي ويني چي ددښمن په قبضه کي غلام سوي دي دليل دي چي دښمن به پر ده غالب سي اودي به مغلوب سي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي که ويني چي برده فروشي کوي لکه دغلام اودمينځي دليل دي چي ده ته به خير اونفع رسيږي اوکه ويني چي دکافرانو څخه يي غلامی اخيستي ده نو ددې تعبير بد دي جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که غلام يي اخيستي وي نو د دې تعبير بد دي اوکه خرچ کړي يي وي نو نيک دي اوکه خرچ کړي يي وي اوبيا يي اخيستي وي نو دليل دي چي پر دښمن به کامیابه سي اوکه ويني چي دده غلام تنبيدلي دي نو پر نيکي دليل دي اوکه مينځه تنبيدلي وي نو پربدي دليل دي اودده دمال نقصان به وسي او په خوب کي برده فروش داسي سړی دي چي دخلکو اختيار پخپل لاس کي اخلي.

## ورسان\کوتره

ورسان یو مرغه دي چي په خراسان کي ورته کوتره وايي دا په خوب کي ليدل ښځه اومينځه ليدل دي ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که څوك په خوب کي ووينې چي ده ورسان کوتره نيولی ده يا چا ورته ورکړې ده دليل دي چي ښځه به کوي اوکه ووينې چي ده ورسان کوتره اخيستې ده او دده دلاسه الوتلې ده دليل دي چي ښځې ته به طلاق ورکوي يا به مينځه خرڅوي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دي که ووينې چي ده ورسان کوتره اخيستې ده او دهغه غوښه يې خوړلې ده دليل دي چي دهغه په اندازه به دښځې مال په ظلم سره خوري اوکه ووينې چي دده سره ډيري ورسان کوترې دي دليل دي چي ډيري مينځې به اخلي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي ورسان کوتره ليدل په درو وجو ده. ۱: نفع ۲: ژوند ۳: غم اوفکر.

## وزغ\شمشتي\چيندخ\چونګښه\چنګاښ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي وزغ نيك عابد سړی دي اوکه ووينې چي ده چيندخ نيولې دي دليل دي چي دنيك پرهيزګار سړي ملګري به شي اوکه ووينې چي ده دچيندخ سره جنګ کړي دي دليل دي چي دداسي سړي سره به جنګ کوي اوکه ووينې چي په يو ځاي کي ډير چيندخان جمع سوي دي اوشور کوي نو پر دغه ځاي به دالله تعالی عذاب راځي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دي که ووينې چي چيندخ يې مړ کړي دي او دهغه غوښه يې خوړلې ده دليل دي چي پرهيزګاره سړی په مغلوب کړي او دهغه مال به اخلي اوخرڅ به يې کړي اوکه ووينې چي دي چيندخ خوړلې دي دليل دي چي پرهيزګار سړي ته به تکليف رسوي اوکه ووينې چي ده چيندخ نيولې دي او داوبو څخه دباندي په وچه کي غورزولې دي دليل دي چي پرهيزګار سړي به دکار څخه منع کوي اوهغه ته به نقصان رسوي.

## وزير

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که ووينې چي دپاچا دوزير کار نيک دي دليل دي چي ددغه وزير کار به نيك سي اودهغه دولت به زيات سي اوکه د دې خلاف ووينې نو تعبير يې بد دي اوکه څوك ووينې چي دي وزير سوي دي او دي منصف اوديندار وي دليل دي چي دعدل اودکار مطابق به بزرګي حاصله کړي اوکه ووينې چي وزير دسترخوان غوړولې دي دليل دي چي مرتبه نعمت اورزق به پر ده فراخه سي اوعمر به يې زيات وي اوکه ووينې چي وزير دده کورته راغلې دي دليل دي چي ده ته به دپاچا په وجه غم اوفکر رسيږي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دي که ووينې چي ده دوزير سره ډوډې خوړلې ده دليل دي چي دهغه څخه به شرف اوبزرګي حاصله کړي اوکه ووينې چي دوزير کور نړيدلې دي يا وزير ناجوړه سوي دي يا پاچا معزول کړي دي يا اس را غورزولې دي يا غوايې په ښکر وهلې دي نو داټول دهغه پر معزول کيدو دليل دي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي وزارت ليدل په څلورو وجو وي. ۱: که ووينې چي دلمر يا سپوږمې سترګه سوي ده ۲: که ووينې چي دجله يا فرات سوي دي ۳: که ووينې چي پاچا په ملا کمربند تړلې دي ۴: که دنبی عليه السلام په څلورو سره يارانو کي يو دده په سرتاج ايښې دي نو دا

ټول دوزارت حاصلولو دليلونه دي.

## وسمه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي وسمه غم اوفکر دي اوکه ويني چي دده په مځکه کي ډيره وسمه ده نو پر غم اوفکر دليل دي اوکه ويني چي دوسمي بوټي ده دمځکي څخه را ايستلي دي دليل دي چي دغم اوفکر څخه به خلاص سي اوکه ويني چي ده وسمه خوړلي ده دليل دي چي دعيال په وجه به ده ته غم وی اوکه ويني چي دوسمي دسته يې ده ته ورکړي ده دليل دي چي دواړو کي به جنگ راځي جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ده دوسمي دسته د خپل عيال په لاس کي ورکړي ده دليل دي چي ديوبل څخه به جلا سي اودوسمي په ليدلو کي خير نسته.

## وشه\وريښمين رنگين کالي

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب کي وشه غم اوفکر دي اوکه ويني چي دده سره وشه نيونکي دي دليل دي چي دده غم اوفکر به زيات سي اوکه ده چا ته وشه ور کړي وي دليل دي چي دغم اوفکر څخه به خلاص سي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ده دوشه سره يو شی نغښتی دي دليل دي چي دده به گډوډ کار جمع سي اوکه ويني چي ده وشه ژولي ده دليل دي چي دخلکو به ډير غيبت کوي.

## وضويي\نماز\د لمانځه لپاره اودس

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ده مخ او لاس په پاکو اوبو پريولي دي دليل دي چي کار به تلاش کوي اوپوره به يي کړي اوکه ويني چي په خرابو اوبو يي پريولي دي نو د دې تعبير د اولني خلاف دي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي ده خپل مخ او لاس پريولي دي دليل دي چي دي به دخپلو دوستانو لپاره مدد غواړي اودده مراد به حاصل سي.

## وکيل

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که څوك په خوب کي ويني چي دپاچا يا دقاضي وکيل جوړ سوي دي او پخپل کار کي منصف جوړ سوي دي نو دليل دي چي ددنيا خير اوصلاح به حاصله کړي اوکه دوکالت په کار کي نه وي نو د دې تعبير د اول څخه خلاف دي. جابر مغربی رحمة الله عليه ويلي دي که وکيل ويني چي ده پرخپل موکل مهرباني کړي ده دليل دي چي چا ته به پاکيزه خبره کوي اوکه موکل ورين تندي ويني دليل دي چي ده ته به دهغه څخه نفع حاصله سي اوکه د دې خلاف ويني نو تعبير يي بد دي.

## واري\د جذام ناجوړي

دجذام ناجوړي په خوب کي ليدل مال دي چي ده ته به حاصليږي خاصکر که پر بدن سپيني پولي ويني ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ويني چي دده پر بدن دجذام ناجوړي ده دليل دي چي ده ته به خراب کار پيښ سي اوبعض وايي چي دي به مشهور کړي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي جذام دفقير لپاره مالداري اونعمت دي او دمالدارو لپاره دگناه څخه بچ کيدل دي

اوکه ووينې چې دده ټولې ګوتې پرې سوې دي دليل دي چې نيك کار به کوي اوممکنه ده چې دده زوی يا ورور به ددنيا څخه ځي.

## ويراني\کنډر

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې دکور اودکان وغيره کنډر ددين پرګمراهي دليل دي اوکه ووينې چې ده کنډر اباد کړي دي نو د دې تعبير ښه دي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي که ووينې چې اباد ځاي خراب سوي دي دليل دي چې دهغه ځاي خلک به په بلا اومصيبت کې ګرفتار سي اوکه ووينې چې کنډر يې اباد کړي دي نو دخوب ليدونکي دکار پرسموالي دليل دي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چې که ويراني دالله تعالی دطرف څخه وي دليل دي چې خوب ليدونکي ته به نفع وي اوکه ويراني دمخلوق دوجې څخه وي نو د دې تعبير خلاف دي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي که ووينې چې ده جماعت او مدرسه ورانه کړي ده نو دا دده دکار پرنقصان دليل دي.

## [ هـ ]

## هاون دسته\لنګړي

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې لنګړي دوه شريکان دي چې ديوه بل ته ضرورت وي اوکه دواړه متفق سي نو کار به يې نيك اوفايده مند سي که په دوي کې يو نه وي نو فايده به نه وي اوکه ووينې چې په لنګړي کې دخوراك څه شي دي دليل دي چې خوب ليدونکي ته به دهغه دقدر وقيمت مطابق په تکليف اومشقت سره نفع حاصله سي اوکه هغه شي ددستونو دبندولو دارو وي نو دمال پر زياتوالي دليل دي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که په لنګړي کې څه خوړ شي وټکوي نو دليل دي چې په تکليف اوسختي سره به فايده پورته کړي اوکه يخ وي نو پر غم اوفکر دليل دي اوکه جواهرات په لنګړي کې وټکوي دليل دي چې هغونه به نفع ويني او اخر داچې دده مال به ورك سي.

## هباء\دهوا ذرې\ذرې

هباء دهوا ذرې چې په لمر کې وي ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې ذرې بې فايدې خبره اوپريشانه کار دي چې خير اونفع پکې نسته دالله تعالی فرمان دي (فجعلنه هباء مشورا، سورة الفرقان: ۲۳) ترجمه: اومونږ هغه خوري وري ذرې کړې. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي که دهوا زرې سرې ووينې نو دليل دي چې په دغه ملك کې به ناجوړي وي اوکه توري ووينې نو پر مصيبت دليل دي اوکه سپينې وي نو پر بې غمي دليل دي.

## هدهد\ملاچرګک

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چې په خوب کې ملاچرګک عقلمند اوهوښيار سړی دي چې خلکو ته دښتو خبرو خبر ورکوي اوکه ووينې چې ده ملاچرګك نيولي دي يا چا ورته ورکړي دي دليل

دي چي د ذکر سوي صفت سړی سره به دده صحبت وي او دهغه څخه به هوښيارتيا حاصله کړي اوکه وويني چي ده ملاچرګک وژلي دي دليل دي چي پر هوښيار اوبزرګ سړی به کاميابي حاصله کړي اوهغه به مغلوبه کړي اوکه ووينې چي ده دملاچرګك غوښه خوړلي ده دليل دي چي دهغه په اندازه به پخپل عمل سره دخلکو څخه مال حاصل کړي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي ملاچرګك ليدل په څلورو وجو وي. ۱: ښه خبره به اوري ۲: بزرګي ۳: پر دښمن کاميابي ۴: دالله تعالی دفرمان مطابق به هر يو کار په هوښيارتيا سره کوي.

## هديه \ تحفه \ ډالۍ

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که ووينې چي ده چا ته تحفه ورکړيده که هغه شي ښه نيك او ددواړو لايق وي نو دواړو ته به نفع وي اوکه هغه شي خراب وي نو دواړو ته به ديو بل څخه نفع وي بلکه پرشر اوفساد دليل دي اوکه ووينې چي چا ده ته شي دتحفي په طور ورکړي دي اوهغه شي ده ته محبوب دي نو پرخير اوصلاح دليل دي اوکه هغه شي ښه نه وي نو پر شر اوفساد دليل دي اوکه ووينې چي ده ته بوډا سړي يا بوډۍ ښځي تحفه ورکړي ده نو خير به حاصل کړي اوکه ځوان سړي يا ځواني ښځي ورته ورکړي وي نو د دې تعبير د اولني خلاف دي.

## هريسه (يو ډول خوراک)

هريسه دعربو مشهور غوړ خوراك دي ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که څوك په خوب کي ووينې چي ده هريسه خوړلي ده دليل دي چي دهغه په اندازه به خير اونفع حاصله کړي اومراد به يي پوره سي اوبعض اهل تعبير بيان کړي دي چي دده به زوی پيدا سي چي دهغه په وجه به دده سترګي روښانه سي حضور عليه السلام ويلي دي (الهريسة اطعمة الجنة) ترجمه: هريسه دجنت په خوراکونو کي دي جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي که هريسه دځربي بيزي دغوښي وي نو پر خير اونفع دليل دي اوکه دغليظي غوښي وي اوبي خونده وي دليل دي چي خوب ليدونکي ته به د هغه په اندازه نقصان رسيږي.

## هزار داستان \ د بلبل او مينا په ډول مرغه

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي هزارداستان مرغه خوش اوازه اوخوش زبانه زوی دي ليکن هغه به لږ غوندي ضعيف الحاله وي اودعلم اوادب خاوند اوهوښيار به وي اودخلکو په نزد به محبوب هم وي اوکه څوك ووينې چي ده ته هزار داستان مرغه په تحفه کي ورکړه سوي دي نو دليل دي چي دده به د دې صفت زوی پيداسي اوکه ووينې چي ده هزارداستان مرغه په باغ کي نيولي دي دليل دي چي دده به دنيکو اوښو خبرو والا خلکو سره صحبت وي. ابراهيم کرمانی رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي هزار داستان بلبل اومينا خوش اوازه ښځه وي اوکه څوك ووينې چي ده هزار داستان اخيستي دي نو دليل دي چي خوش اوازه مينځه به اخلي اوکه ووينې چي هزار داستان دده دلاسه الوتلي دي دليل دي چي ښځي ته به طلاق ورکوي يا به يي مينځه تښتي يا به مړه سي. جابر مغربی رحمه الله ويلي دي چي هزار داستان مرغه په خوب

كي زوى اوغلام وي او څوك خوش زبانه اوخوش اوازه هم وي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلي دي چي هزار داستان مرغه په خوب كي ليدل په پنځو وجو وي. ۱: ښځه ۲: زوى ۳: قاضي ۴: حكيم ۵: غلام.

## هليله\ايريړه\هريړه

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي كابلي ايريړه په خوب كي ليدل دغم اوفكر دليل دي اوژړه ايريړه پر ناجوړي دليل دي اوتوره ايريړه پر مصيبت دليل دي اوكه ويني چي ده په دي قسم ايريړو كي يوقسم خواړه تيار كړي دي نو دليل دي چي غم اوفكر به يي ډير سخت وي اوكه ويني چي په دي ايريړو كي يي يوه ايريړه دچيني يا شكري يا شهدو سره خوړلي وي نو دليل دي چي دده غم اوفكر به كم سي او دايريړي په ليدلو كي هيڅ نفع نسته.

## هُما(يو ډول مرغه)

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي چي هما په خوب كي دولت عزت اوبزرگي اومرتبه ده اوكه څوك ويني چي دده سره هما مرغه دي نو په قدر ددغه مرغه به عزت اودولت حاصل كړي اوكه ويني چي هما دده دلاسه الوتلي دى نو دليل دي چي دده په عزت مرتبه اوحرمت كي به نقصان راسي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دي چي په خوب كي هما مرغه پاچا وي يا رئيس يا بزرگ وي اوكه څوک ويني چي ده هما مرغه ووژي او دهغه غوښه يي وخوړه دليل دي چي په بزرگ او رئيس سړي به قهر او غلبه حاصله كړي اودهغه مال به اخلي او وبه يي خوري اوكه ويني چي دده سره هما مرغه دي دليل دي چي دپاچا يا رئيس يابزرگ څخه به نفع حاصله كړي اوكه ويني چي هما مرغه يي په غشي يا كاڼي ويشتلي دي دليل دي چي په داسي خلكو پسي به بدي خبري كوي اوكه ويني چي هما مرغه دي زخمي كړى يا نوكاري كړي دي دليل دي چي ده ته به دداسي خلكو څخه ضرر اونقصان رسيږي. جعفر صادق رحمة الله عليه ويلی دي چي هما مرغه په خوب كي ليدل په اووه وجو وي. ۱: پاچا ۲: رئيس ۳: عزتمند سړى ۴: دولت ۵: سرداري ۶: حكم پوره كول ۷: عزت او بخت.

## هوا

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي كه ويني چي هوا صفا اوروښانه ده دليل دي چي ددغه ملك دخلكو تندرستي او ژوند به ښه سي اوهغوي ته به راحت ملاو سي او ددغه ځاي عالمانو او حكيمانو ته به دعزت اودمرتبي ترقي حاصله سي اوكه ويني چي هوا تياره اوگرد وغبار والا ده نو دليل دي چي ددغه ملك خلكو ته به غم اوفكر ورسيږي اوكه ويني چي هوا سور رنگي ده دليل دي چي دلته به فتنه راسي اوكه ويني چي هوا شنه ده دليل دي چي دلته به غلي ميوي سبزياني اوبوټي ډير پيدا سي اوكه ويني چي هوا سپينه اوپاكه سويده دليل دي چي ددغه ملك خلكو ته به دنعمت فراخي كسب اوژوند ډير حاصل سي. ابراهيم كرماني رحمة الله عليه ويلي دي كه ويني چي هوا ددوړو څخه پاكه صفا ده اوسخته چليږي دليل دي چي نا اشنا پاچا به دغه ملك ته راځي اوخلكو ته به غم اوتكليف رسوي اوكه ويني چي په ښار يا په يو ځاي كي ليږ

هوا صفا اوروښانه سوه نو دليل دي چي ددغه ځاي خلکو ته به نعمت فراخي خير اونفع رسيږي اوکه وويني چي هوا په مختلفو ډولو وه نودليل دي چي ددغه ملك دخلکو احوال به خراب او پريشانه سي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي هوا ليدل به پنځو وجو وي ۱: بزرگي ۲: نفع ۳: تندرستي ۴: امن ۵: ژوند. داپنځه وجي دروښانه او صفا هوا دي.

## هوام (دځمکي حشرات او چينجي)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي کوم چينجي په مځکه لوېيږي دهغه تعبير دهغه په اندازه اوصلاحيت باندي وي ځکه چي په دوی کي کوم دادني درجي وي دهغه تعبير په علم تعبير کي په قوي دښمن باندي وي په نسبت دهغو چينجو چي زهرناك وي. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي دمځکي حشرات يا چينجي ليدل څه بيره ده چي هغه دښکنځل مار اوحاسد سړی دطرفه وي.

## هيزم (دسوزولو خشاک)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي دسوزلو لرگي وچ يا لانده پر جنگ اودښمني دليل دي اوکه وويني چي هيزم يعني دسوزلو خشاك يي کورته راوړي دي دليل دي چي ده ته به په ښار اوکور کي جنگ پيښيږي اوکه وويني چي نا اشنا سړی ده ته دسوزلو خشاك ورکړي دي دليل دي چي دده به د نا اشنا سړی سره جنگ کيږي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دي که وويني چي دي په ځنگل يا صحرا کي دسوزلو خشاك جمع کوي دليل دي چي دا سړی به بدکرداره حاسد او بدزبانه وي اوژر به گرفتاره سي دالله تعالی فرمان دي (حمالة الحطب في جيدها حبل من مسد، سورة اللهب: ٤ – ٥) ترجمه: پر سر اخستلي لرگي گرځيدونکي دي د دې په څټ کي به دمونجو رسي وي. اوکه وويني چي ددرختو څخه دسوزلو لرگي جمع کوي دليل دي چي ددبدبي والا خلکو او دبزرگانو ترمينځ به ازمايش کوي اوبي اصله خبري به کوي اوکه وويني چي دغه درختي دکومو څخه چي ازمايش کوي شکوي نو دليل دی چي بي اصله خبري به کوي اوکه وويني چي دغه درختي دکومو څخه چي بي دسوزلو لرگي جمع کول ميوه داري وي دليل دي چي دي به په ډير همت والا اوبزرگانو خلکو کي وي او د دبدبي مالك به وي غرض داچي دسوزلو خشاك وچ او لانده په خوب کي ښه نه دي.

# [ ي ]

## ياره \ بنگړي \ کړی

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که سړی وويني چي ده کړي په لاس کړي ده دليل دي چي ده ته به څه تکليف يا زحمت رسيږي اوکه دغه کړي دسپينو زرو وي نو دليل دي چي غم اوفکر به ورته کم وي او دښځو داغوستلو شيان دسړو لپاره ښه نه وي او دغه شيان دسړيو او دښځو لپاره ښه نه وي او دگلوبند او غوړوالي او داسي نور چي دپاچاهانو زينت وي هغه دسړو لپاره ښځه او د

ښځو لپاره خاوند وي په اندازه دهغه څه چي يي ليدلي وي اوشرح اوتفصيل دهر اغوستونکي شي دلفظ مطابق د دې کتاب په اوله حصه کي بيان سوي دي.

**ياسمين\رامبيل**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ووينې چي ده ته ملګري درامبيل ګلدسته ورکړي ده دليل دي چي د دوي ترمينځه به خبري پيښيږي او ديو بل څخه به جلا سي اوکه ښځه ووينې چي دي درامبيل ګلونه ددرختي څخه وشکول اوخپل خاوند ته يي ورکړل دليل دي چي خاوند به ورته طلاق ورکړي اوکه څوك ووينې چي درامبيل ګلونه يي خپل غلام ته ورکړل دليل دي چي دده غلام به تښتي اوپه خوب کي درامبيل درخته مالداره بدخويه بد ذاته اوحاسده ښځه وي اوکه رامبيل خوشبوداره وي نو دا ښځه به سخي او احسان کوونکي وي.

**يافتن\حاصلول\ترلاسه كول**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که ووينې چي ده څه شي پيدا کړي دي نو که خوب ليدونکي صالح او پرهيزګار وي نو په وينښه به څه حاصلوي اوکه صالح اودستر اودحيا خاوند نه وي نو دليل دي چي ده ته به څه غم اوفکر رسيږي. ابراهيم کرمانی رحمة الله عليه ويلي دي که ووينې چي ده دوه شيان پيدا کړي دي او دا دواړه شيان يو شي دي نو پر خير اونفع دليل دي اوداسړی به حج او عمره ادا کوي اوکه ووينې چي ده لس شيان پيدا کړي دي اوهغه لس سره شيان يورقم دي نو پر خير اونفع اوحلاله روزي دليل دي اودنور تعداد اوشمار تعبير هم پر دي قياس دي اوکه شيان يي پيدا کړي وي اوهغه ديو جنس اوقسم څخه نه وي نو د دې تعبير بد دي.

**يافتن كانها\د كانونو پيدا كول**

ابن سيرين رحمة الله عليه ويلي دي که په خوب کي ووينې چي ده غر مات کړي دي هلته يي دسرو زرو کانونه پيداکړي دي دليل دي چي د خپل قدر مطابق به ولايت اوحکومت حاصلوي اوکه خوب ليدونکي مصلح نيکو کار پرهيزګار او اهل دين و نو الله تعالی به ورته علم اوحکمت نصيب کړي اوکه ووينې چي ده دسپينو زرو کان پيدا کړي دي دليل دي چي دبزرګانو اورئيسانو خلکو څخه به ښځه کوي چي مالداره اوښايسته به وي اوبعض اهل تعبير وايي چي دده به مبارك زوی پيداسي اوکه ووينې چي ده دتانبي يا دپيتلو کان پيداکړي دي دليل دي چي دده به دبدکردار او بي رحمه رئيس اوسردار سره ناسته اوملاقات وسي اوکه ووينې چي دقلعي يا دسيکي يا دټين کان يي پيدا کړي دي دليل دي چي ښايسته ښځه به کوي اوکه ووينې چي داوسپني کان يي پيدا کړي دي دليل دي چي دقوي سردار او رئيس سره به يي صحبت اوملاقات وسي اوکه ووينې چي دشيشي کان يي پيدا کړي دي دليل دي چي دپاچا يا ښځي دطرفه به ورته نفع ورسيږي اوکه ووينې چي دزبرجدو او زمرودو دجواهراتو کان يي پيداکړي دي دليل دي چي دمرتبي اومال خاوند به سي اوکه ووينې چي دياقوتو کان يي پيدا کړي دي دليل دي چي دده عزت اومال اودولت به زيات سي اوکه ووينې چي دفيروژي کان يي پيدا کړي دي دليل دي چي پر دښمن به کاميابه سي اوهغه به مغلوب کړي اوکه ووينې چي دعقيقو کان

يي پيداكړي دي دليل دي چي دپاچا څخه به نفع حاصله كړي اوكه ووينې چي دشبي كان يي پيداكړي دي دليل دي چي دسردار او رئيس سره به بحث كوي اوكه ووينې چي دلعلونو كان يي پيدا كړي دي دليل دي چي مرتبه اودبدبه به حاصله كړي اوكه ووينې چي دنوشادرو كان يي پيداكړي دي دليل دي چي غمجن اوفكرمند به سي اوكه ووينې چي دمالگي كان يي پيدا كړي دي دليل دي چي دبزرگ يا رئيس څخه به نفع حاصله كړي اوكه ووينې چي درانجو يا دزاك كان يي پيداكړي دي دليل دي چي غم اوفكر به ورته ورسيږي اوكه ووينې چي دگل زرد يعني دژړي خاوري كان يي پيدا كړي دي دليل دي چي ناجوړه به سي اوكه ووينې چي ده دسپيني خاوري گل سفيد يادكهر يا خاوري كان يي پيدا كړي دي دليل دي چي دسردار او رئيس سره به دده ملاقات اوناسته وسي.

## یاقوت (یو ډول جواهر)

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي كه ووينې چي دده سره سور يا شين ياقوت دي دليل دي چي نيكه او ښايسته مينځه يا ښځه به ورته حاصله سي يا به ددي ښايسته لور پيداسي اوكه ووينې چي دده سره عيب ناكه ياقوت دي دليل دي چي هغه مينځه يا هغه ښځه چي دده سره وي پر ده به حرامه سي. ابراهيم كرمانی رحمه الله عليه ويلي دي كه ووينې چي دده سره شين ياقوت دي دليل دي چي ښايسته با اصله اوبانسبه ښځه به كوي اوكه ښځه يي وي نودليل دي چي دده به زوی پيدا سي اوكه ووينې چي دده سره ياقوت منقوش يعني غير خالص ياقوت دي دليل دي چي دده زوی به مفسد وي. اسماعيل اشعث رحمه الله عليه ويلي دي كه ووينې چي دده سره سور ياقوت دي دليل دي چي مالداره اوښايسته ښځه به كوي اوكه ووينی چي ياقوت شين دي دليل دي چي پرهيزگاره اونيك سيرته ښځه به كوي اوكه ووينې چي ياقوت سپين دي دليل دي چي دغه ښځه به پيغله پرهيزگاره مصلحه اونيكو كاره وي. جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دي چي ياقوت ليدل په خوب كي په شپږو وجو دي. ۱: مال ۲: مينځه ۳: علم ۴: زوی ۵: نيك سړی ۶: پيغله انجلي.

## يبروج (دانسان په ډول يو بوټی)

يبروج د يو واښه جرړي دي چي پخپلو كي د يوبل سره يو ځاي سي دسړی او ښځي په شكل وي دي ته ابرو صنم هم وايي اودا دسړی په شكل كي وي. ابن سيرين رحمه الله عليه ويلی دي كه څوك په خوب كي ووينې چي دده سره ابروصنم بوټي دي يا چا ورته وركړي دي دليل دي چي دبد سړی په خدمت كي به مشغول سي اودهغه څخه به زحمت اوتكليف حاصل سي اوكه ووينې چي ده يبروج بوټي خوړلي دي دليل دي چي دبد سړي دمال څخه به څه خوري او يبروج بوټي په خوب كي ليدل دهيڅ قسم نفعي سبب نه وي.

## يخ\واوره

دانيال عليه السلام ويلي دي چي واوره په خوب كي ليدل غم اوفكر وي خاصكر كه ديخني په موسم كي ووينې اوكه ووينې چي واوره خوري دليل دي چي ډيره روزي به حاصله كړي ليكن چي واوره ډيره اوبي اندازي ووينې اوپخپل وخت يعني د يخني په موسم كي وي اوكه ووينې چي

دي پاکه واوره خپل کورته وړي دليل دي چي د هغه په اندازه به مال جمع کړي. ابراهيم کرماني رحمه الله ويلي دي که څوك دګرمي په موسم کي صفا اوپاکه واوره ويني دليل دي چي حلال مال به جمع کوي اوکه ويني چي واوره خيرنه اوترخه ده دليل دي چي څه مال به جمع کوي چي حرامه به وي اوکه په خوب کي پاکه صفا واوره ديخني په موسم کي ويني دليل دي چي خپل ژوند به په ښه رقم سره تير کړي اودخپل روزګار څخه به نفع ويني او دده ددوستانو زړونه به دده څخه خوشحاله وي. جابر مغربي رحمه الله ويلي دي چي په يخو ملکونو کي د يخني په موسم کي واوره په خوب کي ليدل پر خير اونفع اوتندرستي دليل لري اوپه ګرمو ملکونو کي پر قحطي او تنګي دليل لري. اوبعض اهل تعبيرو بيان کړي دي چي واوره يا بريښنا په خوب کي ليدل که په يخو ملکونو کي وي نو دنعمت پر فراختيا دليل لري اوپه ګرمو ملکونو کي پر قحط اوغم دليل لري. جعفر صادق رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي واوره ليدل په شپږو وجووي. ۱: فراخ روزي ۲: ژوندون ۳: مال ۴: ارزان نرخ ۵: غم او فکر ۶: قحط اوتنګي.

## يشم\يشب ( يو ډول قيمتي کاڼی)

ابن سيرين رحمه الله ويلي دي چي په خوب کي يشب پر بي اصله ښځي دليل لري اوکه ويني چي دده سره ديشب کاڼی ګوتمي ده يا چا ورته ورکړي دي يا ده اخيستي ده دليل دي چي دبي اصله ښځي سره به واده کوي اوکه ښځه يي وي نو لور به يي پيدا کيږي اوکه ويني چي دده سره څه ديشب کاڼی دي دليل دي چي د ښځو دطرف څخه به څه خير اونفع حاصله کړي.

## يل\پهلوان

واضحه دي وي چي يل يو مبارك او مبارز مقابله کوونکي سړی اوجنګجو سړی و، ابن سيرين رحمه الله ويلي دي که پاچا ويني چي دي په يوه مقابله کي جنګ کوونکي افسر يا پهلوان جوړ سوي دي دليل دي چي پخپله پاچاهي کي به قوت اودبدبه حاصله کړي اوکه داخوب عالم ويني چي په بحث کي نوموړي سوي دي دليل دي چي پرخپل مخالف به غالبه راسي اوکه سوداګر سړی ويني چي پر جنګ کوونکي پهلوان سوي دي دليل دي چي په تجارت کي به ډير مال حاصل کړي اوکه داخوب سپاهي ويني دليل دي چي مالدار به سي او مال به حاصل کړي دالله تعالی فرمان دي (يا ايها الذين امنوا اركعوا واسجدوا واعبدوا ربكم وافعلوا الخير لعلكم تفلحون، سورة الحج: ۷۷) اوکه ويني چي ده دچا سره جنګ کړي دي او پر هغه غالب سوي دي نو دليل دي چي پر دښمن به غالبه سي اوکه ويني چي مخالف باندي غالب سوي دي نو تعبير يي خلاف دي اوکه ويني چي دښځي سره يي جنګ کړي دي اوپر هغه غالب سوي دي نو دليل دي چي دده حال به خراب سي اوخوار اولا چاره به سي.

## يهودی شدن\يهودي کيدل

ابن سيرين رحمه الله ويلي دی چي که څوك په خوب کي ويني چي دي يهودي سوي دی نودليل يي دا دي چي دبدعت پر لاره به ځي او ديهوديانو مدد به کوي او دهغو په خبره به يقين کوي

كه څوك په خوب كي ويني چي دي يهودي ياعيسائي يامشرك يابت پرسته سوي دی نودا دده پر ګمراهی دليل دی او پر الله تعالی به دروا غ اوبهتان تړي او كه ويني چي د دې مذهب څخه اوښتي دی اومسلمان سوي دی نو دليل يي دا دي چي ده يوه لويه ګناه كړيده اوبيا يي دهغه څخه توبه كړي ده او دالله تعالی طرفته به رجوع وكړي اوكه ويني چي ځان دعلم دين څخه بي علمه ګڼي او خبر ورته نه وي چي دكومي قبلي طرفته لمونځ وكړي نودليل يي دا دي چي سر ګردانه حيرانه اوعاجز به سي جعفر صادق رحمه الله عليه ويلي دی كه څوك ويني چي يهودي سوي دی نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونكي ته به مشكل راسي او دشرعي سنتو مخالفت به كوي اوكه په خوب كي اتش پرست ويني نو دليل يي دا دي چي خوب ليدونكي به په دنيا اخته سي او داخرت دكارڅخه به غفلت كوي جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دی چي كه يهودي په خوب كي ويني چي مسلمان سوی دی نو دليل يي دا دي چي ژربه مړ سي يا به مسلمان سي.

**يوز \ پړانګ \ ليوه**

ابن سيرين رحمه الله عليه ويلي دي چي پړانګ په خوب كي دښمن دي چي دښمني باندي ښكاره كيږي اوكه ويني چي دپړانګ سره جنګ كوي نو كه پر پړانګ دي غالب سوي وي نو دليل دي چي پر دښمن به كاميابي حاصله كړي. ابراهيم كرمانی رحمه الله عليه ويلي دي كه ويني چي ده پړانګ نيولي دي دليل دي چي ددښمن سره به صحبت وملاقات كوي اوكه ويني چي پړانګ ځني تښتيدلي دي دليل دي چي دښمن به دده څخه تښتي اوكه ويني چي ډير پړانګان دده تابع دي دليل دي چي دده دښمن به خوار او ذليله وي. جابر مغربی رحمه الله عليه ويلي دي كه ويني چي ده دپړانګ غوښه خوړلي ده دليل دي چي دهغه په اندازه به ددښمن مال اخلي اوبعضو ويلي دي كه ويني چي ده پړانګ ووژي نوپه دي كي څه خير اونفع نسته اوكه ويني چي ده پړانګ پر خپل څټ كښينولي دي او چيري يي وړي دليل دي چي ددښمن پېټي به پورته كوي اوكه ويني چي يو څو پړانګان دده كور يا كلي ته راغلي دي او په زوره اوازونه كوي دليل دي چي دا سړی به د خپل دښمن په وجه څه غم تكليف اوضرر حاصل كړي چي په قدر د دې پړانګانو د اوازونو به وي كوم چي ده ليدلي وي، او الله پاك ډير ښه پوهيږي.

تمت بالخير

تاريخ اختتام

السبت، ۰۹ ربيع الأول، ۱۴۳۲



# اشاریه (انډیکس)

**یادونه**: په کتاب کې د راغلو ټولو شیانو نومونه دلته د الف با په ترتیب سره راغلي دي او له هر توري سره څنګ ته یې صفحه لیکل سوې ده، لومړی خپل توری وګوری چې په کوم توري شروع کېږي بیا یې د هماغه توري په لیست کې پیدا کړئ، او په څنګ ته لیکل سوي نمبر والا صفحه کې یې مطالعه کړئ.

## [ الف ]

